# مظاهر حق جدید

د مشکوه المصابیح پښتو شرحه

اتم جلد

**تالیف**

علامه نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمة الله علیه

**تزئین اوترتیب**

مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دارالعلوم دیوبند)

**ځانګړتیاوي**

۱: حدیثونه د اعراب سره.

۲: تحت لفظي ترجمه.

۳: د حدیثونو تخریج.

٤: د لغاتو حل .

**مباحث**

کتاب الاداب

کتاب الرقاق

کتاب الفتن

صداقت کتب خانه

بسم الله الرحمن الرحیم

(د مشکوٰة المصابیح پښتو شرحه)

# مظاهر حق

**تالیف:** نواب محمدقطب الدین خان دهلوي رحمه الله

**ترتیب او تزئین:** مولاناعبدالله جاوید غازي پوري (فاضل دیوبند)


**خپرندوی:** صداقت خپرندویه ټولنه

**پښتو ژباړه:** محمد رسول سعید

**تصحیح کوونکي:** بسم الله رحیمي، مولوي عبدالکریم کریمي، مولوي عبدالجبار

**لومړی چاپ:** ۱۳۹۲ش - ۲۰۱٤ ع.

**پنځم چاپ:** ۱۳۹۹ل. / ۲۰۲۰م.

**د خپرونو لړ:** ۱۸۳

**چاپ شمېر:** ۱۰۰۰ ټوکه

**د تر لاسه کولو ځایونه:**

**صداقت خپرندویه ټولنه**-کندهار

اوله ناحیه، نوی سړک- کریم اعتماد مارکېټ

Sadaqat.books@gmail.com / ۰۷۰۰۳۰۵۴۰۷

**کندهار:** صداقت خپرندویه ټولنه- ارګ بازار- قلم او کتاب مارکېټ ۰۷۰۰۳۰۹۲۴۴ .

**کابل:** صداقت خپرندویه ټولنه، کوټه سنګي مینه یار مارکېټ او **اکسوس کتاب پلورنځی. هلمند** :تاج منور خپرندویه ټولنه. **هرات:** صداقت کتاب پلورنځی- کوچه ګدام. **جلال آباد:** مومند خپرندویه ټولنه.ننګرهار مارکېټ. **غزني:** نعماني کتاب پلورنځی. **پکتیکا:** مجاهد کتاب پلورنځی. **خوست:** اسلامي کتاب پلورنځی.

# د مظاهر حق اتم جلد فهرست

# بَابُ الْمُفَاخَرَةِ وَالْعَصَبِيَّةِ

## (د فخر او تعصب بيان)

د فخر يا فخارة معنی د فخر کولو ده يعني په خپل حسب، نسب، کورنۍ، قبيلې، قوم، ډلي، علم، اخلاقو يا شتمنۍ وغيره باندي ناز کول او فخر کول، د تفاخر معنی ده يو پر بل باندي فخر کول، د مفاخرت معنی ده په فخر کي د يو بل برابري کول، او د افتخار او تفخر معنی ده يو د بل په مقابله کي زيا تېدل.

مفاخرت يعني د فخر او ناز اظهار کول که چيري د حق په معامله کي وي او د يو ديني مصلحت له کبله وي او د اسلام پر دښمنانو باندي خپل برتري، شان او شوکت او د خپل قوت د اظهار په توګه وي نو جائز ده، همدارنګه مفاخرت د صحابه کرامو او سلفو څخه منقول دی او که د مفاخرت تعلق د ناحقه معاملې سره وي او د نفسانيت او غرور په توګه وي نو بد دی او په عامه اصطلاح کي د مفاخرت استعمال په دغه معنی کي زيات کېږي.

د عصبيت معنی ده د عصبي يا متعصب کېدل يعني د خپل مذهب يا قوت او سختۍ د اظهار لپاره جدل او خصومت کول، عصبه هغه سړي ته ويل کېږي چي د خپل غوره والي او يا د خپل قوم حمايت کوي يا د خپل قوم او ډلي د وقار لپاره په غصه سي، تعصب هم که چيري د حق په معامله کي وي او د ظلم او تعدي سره نه وي نو مستحسن (ښه) دی او که چيري د تعصب تعلق د حق خبري نه منلو، ظلم او تعدي اختيارولو او د خپل قوت بې ځايه اظهار کول وي نو بد دی، په عامه توګه د تعصب اطلاق پر خپل خبري، خيال او د خپل قوم په حق کي د ناروا سختۍ اختيارولو او پر نورو باندي ظلم او تېری کول دي لکه څرنګه چي په دغه باب کي د نقل کېدونکو حديثونو څخه به معلوم سي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### غوره کس

﴿۴٦٧٦﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سُئِلَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَيُّ النَّاسِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي څوک بزرګ

أَكْرَمُ قَالَ أَكْرَمُهُمْ عِنْدَ اللهِ أَتْقَاهُمْ قَالُوا لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ قَالَ

او مکرم دئ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل د الله ﷻ په نزد بزرگ او برتر کس هغه دئ چي د الله ﷻ څخه بیریږي، صحابه کرامو وویل: زموږ د سوال مطلب دا نه دئ بلکه موږ د حسب او نسب په اړه د انسان شرافت پوښتو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل:

فَأَكْرَمُ النَّاسِ يُوسُفُ نَبِيُّ اللَّهِ ابْنُ نَبِيِّ اللَّهِ ابْنِ نَبِيِّ اللَّهِ ابْنِ خَلِيلِ اللَّهِ قَالُوا

په انسانانو کي بزرگ او شریف حضرت یوسف علیه السلام دئ چي د الله ﷻ د نبي (یعقوب علیه السلام) زوی د الله ﷻ د نبي د اسحاق علیه السلام لمسی او د الله ﷻ د نبي د حضرت ابراهیم علیه السلام کړوسی دئ، صحابه کرامو وویل:

لَيْسَ عَنْ هَذَا نَسْأَلُكَ قَالَ فَعَنْ مَعَادِنِ الْعَرَبِ تَسْأَلُونِي قَالُوا نَعَمْ قَالَ فَخِيَارُكُمْ فِي الْجَاهِلِيَّةِ خِيَارُكُمْ فِي الْإِسْلَامِ إِذَا فَقُهُوا. متفق عليه.

زموږ د سوال مقصد دا هم نه وو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ایا تاسو د عربو د خاندان او قبیلو په اړه زما څخه پوښتنه کوئ؟ صحابه کرامو وویل: هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: څوک چي د جاهلیت په زمانه کي غوره وو هغه په اسلام کي هم غوره دئ په شرط د دې چي هغه فقیه یعني عقلمند او پوه وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۳۶۲، رقم: ۴۶۸۹، ومسلم ۴\۱۸۴۶، رقم: ۱۶۸– ۲۳۷۸.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د آخري جواب مطلب دا وو چي د جاهلیت په زمانه کي د کومو خلکو په ذات او شخصیت کي داسي امتیازي صفات او ځانګړتیاوي وې چي د هغه په وجه هغوئ د نورو خلکو په نسبت زیات غوره او څرګند وه او د هغه صفاتو او ځانګړتیاوو په وجه هغوئ تر ټولو غوره ګڼل کېدل، هغه خلک د خپلو خپلو ځانګړتیاوو په وجه د اسلام په زمانه کي هم معزز او مکرم ګرځول کیږي په شرط د دې چي هغوئ د ایمان او اسلام په قبلولو سره د دین علم او د شریعت احکام او مسائل تر لاسه کړي وي، فرق دادی چي د جاهلیت په زمانه کي پر هغوئ د کفر سایه، د معصیت تاریکي او د جهل ګرد خپور سوی وو او د خواهش نفس په دام کي راګیر سوي وه او په دې اعتبار سره د هغوئ د ذاتي شرافت او صفاتو څه حیثیت نه وو مګر اوس د ایمان او اسلام پاکي او د عبادت او علم دین نور د هغوئ ذات او شخصیت پاک کړی

دی د هغوئ ژوند یې ځلانده کړی دی او هغوئ یې د حق پیروان ګرځولي دي ، ددې څخه معلومه سوه چي د معادن څخه مراد د خلکو خپل ذوات او شخصيات دي چي ښه صفات او غوره ځانګړتیاوو سره متصف وي لکه څرنګه چي په کتاب العلم کي دا روايت نقل سوی دی چي : الناس معادن كمعادن الذهب والفضة..الخ، يعني د خلکو هم کانونه وي لکه څرنګه چي د سرو او سپينو زرو كانونه وي، نو كومه كورنۍ او افراد چي د خپل ځانګړتياوو په اعتبار د جاهلیت په زمانه کي تر ټولو غوره شمېرل کېدل نو د اسلام په زمانه کي هم هغوئ تر ټولو غوره دي په شرط ددې چي هغوئ د دين علم تر لاسه کړي .

## د یوسف علیه السلام مقام

﴿۴۶۷۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْكَرِيمُ ابْنُ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ ابْنِ الْكَرِيمِ يُوسُفُ بْنُ يَعْقُوبَ بْنِ إِسْحَاقَ بْنِ إِبْرَاهِيمَ عَلَيْهِمُ السَّلَامِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : كريم ابن كريم ابن كريم يوسف بن يعقوب عليه السلام بن اسحاق عليه السلام بن ابراهيم عليه السلام دئ ، بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤١٩، رقم: ٣٣٩٠.

**تشريح**: مطلب دادی چي د کورنۍ شرافت او عظمت او نسبي غوره والي کومي ځانګړتیاوي چي حضرت يوسف عليه السلام ته تر لاسه وي هغه بل چا ته تر لاسه نه دي، تر ټولو لوی شرف د دوئ څخه پرته بل چا ته تر لاسه نسو چي نو موړی خپله نبي وو، پلاریې هم نبي وو او د هغه نیکه هم نبي وو، د هغه ور نېکه نبي وو ، ددغه ځانګړتیا څخه پرته د هغه حسن و جمال، عدل او انصاف، علم او پوهه او حکومت چي کوم صفتونه وه د هغو په اعتبار د هغه ذاتي مكرمت ته تر ټولو غوره مقام تر لاسه دی.

## د رسول ﷺ میړانه

﴿۴۶۷۸﴾: وَعَنِ الْبَرَاءِ بْنِ عَازِبٍ قَالَ فِي يَوْمِ حُنَيْنٍ كَانَ أَبُو سُفْيَانَ بْنُ

د حضرت براء بن عازب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د حنين په ورځ ابو سفيان د رسول الله ﷺ د

الْحَارِثِ آخِذًا بِعِنَانِ بَغْلَتِهِ يعني بغلة رسول الله صلى الله عليه وسلم فَلَمَّا

غاتري واګي ونيولې او کله چي مشرکان د څلورو خواوو څخه پر رسول الله ﷺ چاپيره سول نو

غَشِيَهُ الْمُشْرِكُونَ نَزَلَ فَجَعَلَ يَقُولُ أَنَا النَّبِيُّ لَا كَذِبْ أَنَا ابْنُ عَبْدِ الْمُطَّلِبْ قَالَ فَمَا رُئِيَ مِنَ النَّاسِ يَوْمَئِذٍ أَشَدُّ مِنْهُ. متفق عليه.

رسول الله ﷺ د غاتري څخه را کښته سو او دا يې ويل زه نبي يم په دې کي دروغ نه سته او زه د عبدالمطلب زوی (يعني اولاد) يم، د راوي بيان دئ په دغه ورځ د رسول الله ﷺ څخه زيات زړه ور هيڅوک نه دی ليدل سوی. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٦٤، رقم: ٣٠٤٢، ومسلم ٣\١٤٠٠، رقم: ٧٨- ١٧٧٦.

**تشريح**: دغه حديث د رسول الله ﷺ پر بې مثاله مېړاني دلالت کوي چي په يو داسي جګړه کي چي هلته د هوازن او غطفان د قبيلو سره د عربو نورو ډېرو جګړه مارو قبيلو هم ملګرتيا کړې وه هغوئ خپل بې پايه حربي قوت او انفرادي طاقت په ذريعه پر اسلامي لښکر باندي په دومره سختئ حمله وکړه چي د ماتي صورت ظاهرېدونکی وو، نبي کريم ﷺ پر غاتري باندي په سپرېدو سره د مجاهدينو سره اوږه پر اوږه وجنګېدی او خپلي غاتري ته يې په پونده ورکولو سره د کفارو پر لښکر حمله کول او بيا کله چي د دين دښمنانو رسول الله ﷺ د هري خوا څخه راګير کړ او غاتري ته د وړاندي تللو لار تر لاسه نه سوه نو رسول الله ﷺ را کښته سو او پر پښو يې د دښمن پر لښکر په مېړانه حمله وکړه او الله تعالی کفارو ته ماته ورکړه او د رسول الله ﷺ يې فتح په برخه کړه.

که څه هم رسول الله ﷺ په حسب، نسب او کورنئ شان باندي د فخر کولو او نازېدو څخه منع فرمايلې ده مګر د رسول الله ﷺ د رجز په توګه فرمايل چي زه د عبدالمطلب فرمانبردار زوی يم، دا داسي اظهار د فخر نه دی چي منع دی ځکه هغه فخر منع دی چي د جاهليت د زمانې مطابق د بې ځايه اظهار دنامه، تعصب او غرور په توګه وي، حال دا چي د رسول الله ﷺ ذکر سوی فخر د دين د طاقت او شان زياتولو او د کفارو په مقابله کي خپل رعب او دبدبې ظاهرولو لپاره وو، او داسي فخر جائز دی، ددې څخه پر ته يوه خبره دا هم وه چي د جاهليت په زمانه کي ځينو عربو لکه کاهنانو او اهل کتابو به د رسول الله ﷺ د نبوت ظاهرېدو څخه مخکي د بعثت خبر ورکوی او د نبي اخر زمان کومي نښي او علامې چي به يې ښودلې په هغو کي به يوه نښه دا هم وه چي هغه پيغمبر به د عبدالمطلب د اولاد څخه وي.

## غوره انسان

﴿۴۶۷۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا خَيْرَ الْبَرِيَّةِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاكَ إِبْرَاهِيمُ عَلَيْهِ السَّلَامُ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي د نبي كريم ﷺ په خدمت كي حاضر سو او عرض يې وكړ اې په مخلوقاتو كي غوره ! رسول الله ﷺ ورته وفرمايل په مخلوقاتو كي غوره انسان حضرت ابراهيم علیه السلام وو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۸۳۹\۴، رقم: ۱۵۰- ۲۳۶۹.

**تشريح**: دلته يو سوال پيدا كيږي چي كله د صحيح حديثو څخه دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ د ټولو نبيانو سردار او تر ټول مخلوق غوره دی نو خير البرية يعني په ټول مخلوق كي غوره مصداق حضرت ابراهيم عليه السلام څرنگه سو؟ ددې درې جوابه دي: يو دا چي د حقيقت په اعتبار په ټول مخلوق كي تر ټولو غوره د رسول الله ﷺ ذات دی، د تواضع او انكساری له مخي او د ابراهيم علیه السلام ددغه حيثيت په لحاظ كولو سره چي هغه خليل الله او د رسول الله ﷺ جد اعلى (مشر نيكه) دی هغه يې د خير البرية مصداق وګرځوی، لكه څرنګه چي په عامه توګه ليدل كيږي چي يو شريف النفس او خليق انسان خپله تر ټولو زيات مستحق كېدو سربېره ډېر وخت بل چا ته پر ځان ترجيح وركوي او د هغه تعظيم كوي، دوهم دا چي په ذكر سوي روايت كي د نبي كريم ﷺ ، حضرت ابراهيم علیه السلام د خيرالبرية مصداق ګرځول د هغه زمانې واقعه ده كله چي تر هغه وخته پوري دا وحي نازل سوي نه وي چي رسول الله ﷺ د آدم علیه السلام په اولاده كي تر ټولو غوره دی، دريم دا چي د ذكر سوي ارشاد مطلب دا وو چي حضرت ابراهيم علیه السلام په خپل زمانه كي تر ټول مخلوق غوره وو، او رسول الله ﷺ دا خبره په زيات ارزښت سره د بيانولو له كبله دغه الفاظ وفرمايل.

## د رسول ﷺ عاجزي

﴿۴۶۸۰﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُطْرُونِي كَمَا أَطْرَتِ النَّصَارَى ابْنَ مَرْيَمَ فَإِنَّمَا أَنَا عَبْدُهُ فَقُولُوا عَبْدُ اللّٰهِ وَرَسُولُهُ. متفق عليه

د حضرت عمر رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو زما په تعريف كي زياتي

مه كوئ لكه چي د پر تعريف د عيسى عليه السلام نصاراوو كوى ، زه خو د الله جل جلاله بنده يم تاسو ما ته د الله جل جلاله بنده او د هغه رسول وايا ست . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٤٧٨، رقم: ٣٤٤٥، ومسلم٣\١٣١٧، رقم: ٥- ١٦٩١.

**تشريح**: عبوديت او بندگي چي تر ټولو لوړه درجه ده دا د رسول الله ﷺ خاص صفت دى چي حقيقي بنده د رسول الله ﷺ ذات دى او په عبوديت كي رسول الله ﷺ تر ټولو كامل دى نو د رسول الله ﷺ د مدح او تعريف حال او د لوړتيا بيان د همدغه صفت په ښرگندولو كي دى نه دا چي د رسول الله ﷺ د ذات منقبت او د تعريف په داسي الفاظو بيان او د هغه صفاتو په ذريعه وكړل سي چي د هغه شخه د رسول الله ﷺ مقام عبوديت تر شا پاته سي او هغه حد راسي چي د هغه شخه د معبود صفات پېل كيږي .

## فخر مه كوئ

﴿٤٦٨١﴾: وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ الْمُجَاشِعِيِّ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ أَوْحَى إِلَيَّ أَنْ تَوَاضَعُوا حَتَّى لَا يَفْخَرَ أَحَدٌ عَلَى أَحَدٍ وَلَاَ يَبْغِيْ اَحَدٌ عَلٰى اَحَدٍ. رواه مسلم.

د حضرت عياض بن حمار مجاشعي رضي الله عنه شخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى زه د وحي په ذريعه خبردار كړم چي عاجزي اختيار كړه دو مره چي هيڅوك پر چا فخر ونه كړي او نه څوك پر چا ظلم او زياتي وكړي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ٤\٢١٩٧، رقم: ٦٤- ٢٨٦٥.

**تشريح**: دغه حديث پر دې خبره دلالت كوي چي داسي فخر چي د غرور او تكبر په توگه وي حرام دى .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د جاهليت فخر

﴿٤٦٨٢﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيَنْتَهِيَنَّ أَقْوَامٌ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه شخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خلك دي په خپلو پلرونو

يَفْتَخِرُونَ بِآبَائِهِمُ الَّذِينَ مَاتُوا إِنَّمَا هُمْ فَحْمُ جَهَنَّمَ أَوْ لَيَكُونُنَّ أَهْوَنَ عَلَى

او نيكونو فخر كول پريږدي او پر هغه پلرونو او نيكونو باندي چي مړه سوه او د دوږخ سكاره سول كنه نو د الله ﷻ په نزد به د نجاست د هغه څخه زيات ذليل سي

اللّٰهِ مِنَ الْجُعَلِ الَّذِي يُدَهْدِهُ الْخِرَاءَ بِأَنْفِهِ إِنَّ اللّٰهَ قَدْ أَذْهَبَ عَنْكُمْ عُبِّيَّةَ

چي نجاست د خپلي پزي سره راباسي ، الله تعالى ستاسو څخه د كبر او پر پلرونو او نيكونو

الْجَاهِلِيَّةِ وَفَخْرَهَا بِالْآبَاءِ إِنَّمَا هُوَ مُؤْمِنٌ تَقِيٌّ وَفَاجِرٌ شَقِيٌّ النَّاسُ كُلُّهُمْ بَنُو آدَمَ وَآدَمُ خُلِقَ مِنْ تُرَابٍ. رواه الترمذي وابوداؤد.

باندي د فخر كولو علت بيولى دى اوس يا خو متقي يعني پرهيزگار مؤمن دئ يا فاجر، بدبخت او بدكاره كيدل د ذلت سبب دئ ټول انسانان د آدم عليه السلام اولاد دي او آدم عليه السلام د خاورو څخه پيدا كړل سوى دئ . ترمذي او ابوداؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۳۹، رقم: ۱۱٦، والترمذي ۵\٦۹۰، رقم: ۳۹۵۵.

**تشريح**: هغوئ د دوږخ سكاره سي: مطلب دادى كه چيري پلار او نيكه مشرك او كافر وي نو هغوئ به يقينا دوږخ ته ځي او كه هغوئ كافر او مشرك نه وي نو د هغوئ په اړه هم دا كيداى سي چي په يو وجه د هغوئ خاتمه پر خير نه وي سوى او هغوئ د دغه دنيا څخه د ايمان څخه پرته رخصت سوي وي او هغوئ په دوږخ كي اچول سوي وي نو په دغه صورت كي هم څرگنده ده چي كوم خلك د دوږخ په اور كي په سوځېدو سره د سكارو په ډول سوځلي او تور سوي دي د هغوئ په اړه غرور كول او په هغوئ فخر كول د ناپوهۍ خبره ده .

خلاصه دا چي كوم خلك د جاهليت په زمانه كي په مړه سوو پلار او نيكه تكبر كوي او د خپل كورنۍ په دنياوي لويي باندي فخر او غرور كوي نو هغوئ ته رسول الله ﷺ د مردارۍ د چينجي سره تشبيه وركړې ده ، په خپل پلار او نيكه باندي د هغوئ فخر كول يې داسي كار گرځولى دى لكه د مردارۍ چينجى چي د خپل بدن څخه مرداري خارجوي ، د دې څخه معلومه سوه چي محض د خپل لويي څرگندولو او پر خلكو باندي د خپل ناروا ارزښت لپاره په خپل پلار او نيكه باندي غرور كول او د فخر اظهار كول ډېر سخت د نفرت وړ كار دى ، يو چا څومره ښه ويلي دي:

دوش دیدم که ابلهي مي گفت ‌‌‌‌ پدر من وزیر خان بودست
باوجودیکه نیست معلومم ‌‌‌‌ خود گرفتم که آنچنان بودست
هیچ کس دیده که گهه خوردست ‌‌‌‌ کین بعهد قدیم نان بودست

## تعریف

﴿۴۶۸۳﴾: وَعَنْ مُطَرِّفِ بْنِ عَبْدِاللهِ بْنِ الشِّخِيْرِ قَالَ انْطَلَقْتُ فِي وَفْدِ بَنِي

د حضرت مطرف بن عبد الله بن شخیر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د بني عامر په وفد کي زه رسول

عَامِرٍ إِلَى رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقُلْنَا أَنْتَ سَيِّدُنَا فَقَالَ السَّيِّدُ

الله ﷺ ته ورغلم، زموږ وفد رسول الله ﷺ ته وویل: تاسو زموږ بادار یاست، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: بادار

اللّٰهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى قُلْنَا وَأَفْضَلُنَا فَضْلًا وَأَعْظَمُنَا طَوْلًا فَقَالَ قُوْلُوا قولكُمْ أَوْ بَعْضِ قَوْلِكُمْ وَلَا يَسْتَجْرِيَنَّكُمُ الشَّيْطَانُ . رواه ابوداؤد

الله تعالی دئ، موږ وویل: تاسو په موږ ټولو غوره یاست، د غوره والي او بخښښ په اعتبار زموږ بزرګ یاست، رسول الله ﷺ وفرمایل دا خبره کوئ او ددې څخه کمه خو شیطان دي تاسو خپل وکیل جوړ نه کړي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۱۵۴، رقم: ۴۸۰۶.

**تشریح**: د جَرِيّ معنی د وکیل ده چي د خپل موکل قائم مقام وي، نو د (لا يستجرينكم الشيطان) مطلب دادی چي تاسو زما تعریف په داسي الفاظو مه کوئ چي د هغه څخه دا معلومه سي چي شیطان تاسو خپل وکیل ګرځولی یاست او تاسو د هغه د وکالت په توګه بې فکره څه چي غواړئ هغه وایاست، نو هغه خلک په سخته ګمراهۍ کي اخته دي چي د رسول الله ﷺ په تعریف کي د حد څخه تجاوز کوي او نبي ﷺ دومره لوړوي ګواکي بنده ته د خدای ﷻ درجه ورکوي لکه د مروج مولود په قصائدو نقلیه وو کي داسي الفاظ بیان او مختاره کیږي چي په هغه سره د پروردګار په شان کي ډېره بې ادبي کیږي.

په ځینو روایتو کي په (یستجرینکم) کي د یاء پر ځای همزه ده، په دغه صورت کي د جري

پر ځای جرات وي او معنى به يې دا وي چې شيطان دي تاسو زما په تعريف کې داسي بې باکه نه کړي چې غلط او د حقيقت څخه خلاف څه ويل چې غواړئ هغه بې فکر وايا ست.

سردار خو الله ﷻ دى: مطلب دادى چې هغه ذات چې د مخلوق د ټولو چارو حقيقي مالک دى او هغه ذات چې پر هر يوه باندې د حکمرانۍ ور دى او د هغه په قدرت کې ټول نظم او تصرف دى يوازې د الله تعالى ذات دى نه بل څوک.

علماؤ ليکلي دي چې د رسول الله ﷺ د هغه دلي له خوا خپل ځان ته د سردار ويلو منع کول په دې وجه نه وه چې هغه خلکو د رسول الله ﷺ سرداري او سيادت ثابت کړې وو ځکه چې رسول الله ﷺ بېله شکه د ټولو انسانانو سردار دى بلکه د رسول الله ﷺ د منع وجه دا وه چې هغه خلکو رسول الله ﷺ د سيد او سردار په لفظ په داسي انداز مخاطب کړى وو لکه څرنګه چې د يو قوم او قبيلې سردار او مشر مخاطب کيږي، حال دا چې هغه خلکو ته پکار وه چې هغوئ رسول الله ﷺ د نبي يا رسول د الفاظو په ذريعه مخاطب کړى واى چې د بشريت تر ټولو لوړه مرتبه ده.

## كرم د تقوا نوم دئ

﴿۴۶۸۴﴾: وَعَنِ الْحَسَنِ عَنْ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَسَبُ الْمَالُ وَالْكَرَمُ التَّقْوٰى. رواه الترمذي وابن ماجة.

حضرت حسن رضی اللہ عنہ د حضرت سمرة رضی اللہ عنہ څخه روايت کوي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: حسب (فضيلت او عظمت) د مال او کرم د تقوا نوم دئ. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۶۳، رقم: ۳۲۷۱، وابن ماجه ۲\۱۴۱۰، رقم: ۴۲۱۹.

**تشريح**: حسب: هغه فضائلو او عاداتو ته وايي چې په يو انسان کې وي نو صاحب حسب انسان د خپل ځان او خپل پلار او نېکه خصائل او فضائل شميري او د هغه په ذريعه خپل حيثيت زياتوي، کرم د خير صفات چې دي د هغو اطلاق پر ټولو ښېګڼو او شرف باندې کيږي، د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادى چې د خلکو په نزد اصل حسب او نسب شتمني ده چې کوم څوک شتمن او خان وي نو هغه حسب والا او د فضيلت خاوند ګڼل کيږي او د هغه عزت کيږي که د چا سره مال او شتمني نه وي نو د ټولو په نظر کې کم وي حال دا چې د الله تعالى په نزد اصل فضيلت په تقوا او پرهيزګارۍ کې دى ځکه چې بېله تقوا هيڅ فضيلت هم اعتبار نه لري، د الله

ﷺ په نظر کي کريم يعني بزرګ او شريف هغه څوک دی چي پرهيزګار وي لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي دي: (ان اکرمکم عند الله اتقاکم)، بېله شکه په تاسو کي زيات تقوا داره د الله تعالى په نزد هغه څوک دی چي په تاسو کي زيات پرهيزګاره وي.

## د جاهليت نسب

﴿۴۶۸۵﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ تَعَزّٰى بِعَزَاءِ الْجَاهِلِيَّةِ فَأَعِضُّوْهُ بِهَنِ أَبِيْهِ وَلاَ تَكْنُوْا. رواه في شرح السنة.

د حضرت ابی بن کعب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل کوم سړی چي د جاهليت په نسب باندي فخر کوي هغه ته ووایاست چي د خپل پلار په شرمګاه غاښ ولګوه او په کنايه کي ورته مه وایاست. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۱۲۰، رقم: ۳۵۴۱.

**تشريح**: هَنٌ يا هَنّ هر هغه قبيح او بد شي ته وايي چي په څرګنده يې نوم نه اخيستل کيږي، ددغه لفظ اطلاق پر شرمګاه باندي هم کيږي، يعني که چيري د شرمګاه نوم اخيستل وي نو ددغه مقصد لپاره د هن لفظ استعماليږي نو رسول الله ﷺ وفرمايل که يو سړی په خپل پلار او نېکه باندي فخر کوي چي د جاهليت په زمانه کي تېر سوي وي نو هغه ته په څرګنده د پلار بښکنځل وکړه او د هغه د پلار د شرمګاه په ذکر کولو سره د اشارې او کنايې څخه کار مه اخله بلکه د هغه صريح نوم واخله يعني د هغه سره د ادبي خبرو کولو اړتيا نسته په څرګنده ورته ووايه چي اوس ولاړ سه د خپل پلار شرمګاه وګوره او ددغه ارشاد مطلب د پلار، نېکه او کورني شتمنۍ او عزت باندي فخر کونکو څخه د سخت نفرت اظهار او هغوئ ته سخت خبرداری ورکول مقصد دی چي يو سړی په خپل پلار او نېکه باندي په فخر او مباهات اخته نه سي.

ځيني حضرات د: من تعزى بعزا الجاهلية...الخ: مطلب دا بيان کړی دی چي کوم څوک د جاهليت د زمانې رسمونه او عادتونه اختياروي لکه نوحه (ماتم او وير) وېښتان شکول، جامې څيرل او داسي نورو په ذريعه ماتم کوي نو هغه ته په څرګنده د پلار بښکنځل وکړه، يا کوم څوک چي د جاهليت د زمانې په ډول خلکو ته بد او رد وايي نو هغوئ ته پېغور ورکوئ او هغوئ ته بښکنځل کوئ نو د هغه په وړاندي د هغه د پلار خرابي په کنايه او اشاره نه بلکه په څرګنده بيان

کړئ یعني داسي ورته ووایاست چي ستا پلار به د بتانو عبادت کوی ، د فسق او فجور ژوند یې اختیار کړی وو ، په زنا، شرابو او نورو بدیو کي اخته وو که د هغه په مخکي داسي خبره وکړل سي نو بیا به هغه هیچا ته بد نه وایي او د چا بې عزتي به هیڅکله نه کوي .

﴿۴۶۸۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ أَبِي عُقْبَةَ عَنْ أَبِي عُقْبَةَ وَكَانَ مَوْلًى مِنْ

حضرت عبدالرحمن بن ابي عقبه د ابي عقبه څخه روایت کوي چي آزاد سوی غلام وو او دی

أَهْلِ فَارِسَ قَالَ شَهِدْتُ مَعَ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُحُدًا فَضَرَبْتُ

مولی د اهل د فارس وو روایت دئ چي زه د احد په غزا کي د رسول الله ﷺ سره شریک وم او په

رَجُلًا مِنَ الْمُشْرِكِينَ فَقُلْتُ خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْفَارِسِيُّ فَالْتَفَتَ إِلَيَّ فَقَالَ هَلَّا قُلْتَ خُذْهَا مِنِّي وَأَنَا الْغُلَامُ الْأَنْصَارِيُّ . رواه ابوداؤد.

مشرکانو کي مي یو سړی په توره یا نیزه ووهئ او هغه ته مي وویل واخله یو وار زما څخه هم واخله (یعني زما دلاسه هم یو وار وخوره) او زه یو فارسي غلام یم ، رسول الله ﷺ زما په لور وکتل او وه یې فرمایل : تا داسي ولي نه وویل چي یو وار زما د لوري هم وخوره او زه یو انصاري غلام یم . ابوداؤد .

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۲، رقم: ۵۱۲۳.

**تشریح**: د رسول الله ﷺ د خبرداري مطلب دا وو که چیري تا خپل نسبت فارسي ته په کولو سره چي هغوئ مجوسیان دي ، ددې پر ځای انصاري ته کړی وای چي ډېر زړه ور او د الله ﷻ د دین مرسته کونکي دي نو زیات به ښه وای ، او له دې کبله هم موزون وو چي مولی القوم منهم، (یعني د یو قوم د غلام شمېر د هغه قوم څخه کیږي)، ددې په موجب ستا تعلق هم د دوئ سره دی.

د مولی دوه ډولونه دي، یو مولی عتاقه، هغه غلام ته وایي چي هغه مالک ازاد کړی وي او دوهم دا چي هغه خلک چي د هغوئ وطني تعلق د غیر عرب سیمو او هیوادو سره وي او اسلام یې قبول کړی وي او په هجرت کولو سره مدینې منورې ته راتلل، نو هغوئ به خپل ځان د مهاجرینو او انصارو په اختیار کي ورکوی او د هغوئ د ښه او بد مالک او متصرف به هغوئ وه، داسي خلکو ته مولی موالات ویل کیږي، حضرت ابو عقبه ﷛ چي د هغه اصل نوم راشد وو ، همدارنګه مولی (غلام) وو چي هغه اصلا د فارس اوسیدونکی وو او کله چي هغه اسلام

قبول کړ او د خپل هیواد فارس څخه په هجرت کولو سره مدینې منورې ته راغلی نو د یو انصاري په روزنه کي وو ، د حدیث راوي عبدالرحمن رضي الله عنه د نومورې (ابو عقبه رضي الله عنه) زوی دی او د هغه شمېر د ثقه تابعینو څخه دی.

## د قوم بې ځایه حمایت کول

﴿۴۶۸۷﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ نَصَرَ قَوْمَهُ عَلَى غَيْرِ الْحَقِّ فَهُوَ كَالْبَعِيرِ الَّذِي ردى فَهُوَ يُنْزَعُ بِذَنَبِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : کوم څوک چي په ناحقه د خپل قوم مرسته کوي هغه د هغه اوبښ په ډول دئ چي په څاه کي ولوېږي بیا د هغه لکۍ ونیسي او راکاږي یې . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۱، رقم: ۵۱۱۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي څرنګه یو اوبښ په څاه کي په لوېدو سره هلاکیږي همدارنګه هغه سړی په څاه کي په لوېدو سره په روحاني توګه تباه کیږي او د هغه د را ایستلو هیڅ لار نه وي کوم چي په ناحقه معامله کي یا په یو داسي معامله کي چي د هغه حق کېدل مشتبه وي د خپل قوم او جماعت حمایت او مرستي په ذریعه خپل ځان د لوړولو هڅه کوي.

ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه قوم او ډلي د هلاکېدونکي اوبښ مشابه ګرځولي دي ځکه چي کومه ډله د حق په پرېښودو سره باطل اختیار کړي نو هغه ګویا هلاکیدونکي شمېرل کیږي او کوم څوک چي د هغه قوم او ډلي حمایت کوي نو هغه ته یې د هغه اوبښ د لکۍ سره تشبیه ورکړې ده لکه څرنګه چي یو اوبښ په څاه کي ولویږي هغه د لکۍ په نیولو سره راکښل هغه د هلاکېدو څخه نسي ساتلای ، همدارنګه کوم قوم او ډله چي د باطل کېدو په وجه د هلاکت کندي ته لوېدلې وي نو د هغه هغه حمایتي او مرسته کونکي د هلاکت د کندې څخه خلاصون نسي ورکولای .

## عصبیت څه شي دئ

﴿۴۶۸۸﴾: وَعَنْ وَاثِلَةَ بْنِ الْأَسْقَعِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ مَا الْعَصَبِيَّةُ قَالَ أَنْ تُعِينَ قَوْمَكَ عَلَى الظُّلْمِ. رواه ابوداؤد.

د واثله بن اسقع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وويل : اې د الله رسوله ! عصبيت څه شى دئ ؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل : عصبيت دادئ چي ته په ظلم د خپل قوم حمايت وکړې . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۱، رقم: ۵۱۱۹.

**تشريح**: ددې څخه معلومه سوه که چيري د حق په معامله يعني د حق په يوه فيصله کي د خپل قوم او دلي حمايت او رعايت وکړل سي نو دا ښه کار دى لکه څرنګه چي په راتلونکي حديث کي فرمايل سوي دي.

## د قوم حمايت کول پريږدئ

﴿۴۶۸۹﴾: وَعَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكِ بْنِ جُعْشُمٍ قَالَ خَطَبَنَا رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ خَيْرُكُمُ الْمُدَافِعُ عَنْ عَشِيرَتِهِ مَالَمْ يَأْثَمْ . رواه ابوداؤد.

د حضرت سراقه بن مالک بن جعشم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زموږ په مخکي خطبه وويل چي په تاسو کي غوره سړى هغه دئ چي د خپل قوم د لوري څخه (د ظلم) مدافعت وکړي تر څو پوري چي په دغه مدافعت کي د ګناه مرتکب نه وي . ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۱، رقم: ۵۱۲۰.

**تشريح**: که چيري دا سوال پيدا سي چي کوم څوک د ظلم او زياتي دفع کوي نو هغه خپله د ظلم مرتکب څرنګه کيږي؟ ددې جواب دادى چي د مثال په توګه يو سړى چي هغه د ظلم څخه زباني هدايت او خبرداري او د افهام و تفهيم په ذريعه منع کيداى سي مګر يو سړى د هغه ظلم د دفع لپاره خپله ژبه ذريعه ګرځولو پر ځاى خپل لاسونه ذريعه وګرځوي چي ظلم کونکى ووهي او څرګنده ده چي دا رواه نه دي يا هغه ظلم د دفع کولو لپاره لږ وهل کافي وي ، که يو سړى ډېر زيات وهل وکړي يا يې ووژني نو د هغه دغه کار ته بالکل ناواجب ويل کيږي، خلاصه دا چي د يو ظالمانه کار د منع کولو لپاره داسي اقدام کول چي د ضرورت څخه زيات او د واجبي حد څخه متجاوز وي نو د ظلم هغه مدافعت خپله ظلم ګرځي .

## د عصبيت بدوالى

﴿۴۶۹۰﴾: وَعَنْ جُبَيْرِ بْنِ مُطْعِمٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ دَعَا إِلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا مَنْ قَاتَلَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ وَلَيْسَ مِنَّا

مَنْ مَاتَ عَلَى عَصَبِيَّةٍ. رواه ابوداؤد.

د حضرت جبير بن مطعم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوک زموږ څخه نه دئ چي خلکو ته د عصبيت دعوت ورکوي او هغه څوک زموږ څخه نه دئ چي د عصبيت پر بنياد جگړه کوي او هغه څوک زموږ څخه نه دئ چي د عصبيت په حالت کي مړ سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۳، رقم: ۵۱۲۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي په عصبيت کي اخته کېدل يعني د هغه سړي او قوم ملگرتيا کوي چي پر باطل وي په هر حال کي بد او منع کار دی، په شرط ددې چي د هغه عصبيت تعلق د دين سره نه وي بلکه محض د ظلم او تعدی په توگه وي.

## مينه سړی ړوند او کوڼ کوي

﴿۴۶۹۱﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ حُبُّكَ الشَّيْءَ يُعْمِي وَيُصِمُّ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د يو شي سره ستا مينه کول تا ړوند او کوڼ جوړوي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۶، رقم: ۵۱۳۰.

**تشريح**: ددغه ارشاد په ذريعه دا حقيقت څرگند سوی دی چي د ميني ليونتوب انسان ړوند او کوڼ کوي چي هغه د ميني د غلبې په وجه دخپل محبوب شي د عيب نه د لېدو صلاحيت لري او نه د اورېدو، که چيري په محبوب کي يو خرابي ويني نو هغه هم بنه گڼي او که د هغه څخه يو خرابه خبره واوري نو هغه هم بنه گڼي، يا دا مراد دی چي مينه انسان د محبوب څخه پرته د شي څخه ړوند او کوڼ کوي چي هغه د جمال د يار څخه پرته بل هيڅ شي ته نه گوري او نه د محبوب څخه پرته بله خبره اورېدل خوښوي.

په دغه باب کي دغه حديث نقل کول پر دې دلالت کوي چي دغه ارشاد د هغه چا په اړه فرمايل سوی دی چي د چا په مينه کي مغلوب وي، په باطل او ناروا کارو کي د هغه حمايت او مرسته کوي چي هغه حق نه ويني او نه يې اوري بلکه محض د ميني په وجه د ناحق او باطل ملگری او مرسته کونکی جوړېږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### عصبيت څه شي دئ

﴿٤٦٩٢﴾: عَنْ عُبَادَةَ بْنُ كَثِيرِ الشَّامِيُّ مِنْ أَهْلِ فِلَسْطِينَ عَنْ امْرَأَةٍ مِنْهُمْ

حضرت عبادة بن كثير شامي د خپل قوم د يوې ښځي څخه چي د هغې نوم فسيله وو نقل كوي

يُقَالُ لَهَا فُسَيْلَةُ انها قَالَتْ سَمِعْتُ أَبِي يَقُولُ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

چي د فسيله بيان دئ ما د خپل پلار څخه دا اوريدلي دي چي ما رسول الله ﷺ ته وويل: اې د الله

وَسَلَّمَ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَمِنُ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ يُحِبَّ الرَّجُلُ قَوْمَهُ قَالَ لَا

رسوله ! د يو سړي خپل قوم عزيز او محبوب ګڼل په عصبيت كي داخل دي ؟ رسول الله ﷺ

وَلَكِنْ مِنْ الْعَصَبِيَّةِ أَنْ ينصر الرَّجُلُ قَوْمَهُ عَلَى الظُّلْمِ. رواه احمد وابن ماجة

وفرمايل: نه، مګر دا خبره په عصبيت كي داخله ده چي يو سړی په ظلم كي د خپل قوم حمايت او مرسته وكړي . احمد او ابن ماجه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۱۰۷، وابن ماجه ۲\۱۳۰۲، رقم: ۳۹۴۹.

**تشريح**: په دغه ارشاد كي د عصبيت پر مفهوم باندي په ډېر ساده انداز كي رڼا اچول سوې ده او دا خبره څرګنده سوې ده چي د خپل ډلي او قوم جائز ملګرتيا كول او د هغه فطري او قانوني حقوقو تر لاسه كولو او ساتني لپاره داسي هڅه كول چي د نورو حقوقو او مفاداتو باندي تاوان ونه لويږي نو دا د عصبيت په معنى كي داخل نه دی ، هو كه چيري د خپل قوم او ډلي داسي مرسته وكړل سي چي پر نورو باندي د ظلم جذبات ظاهريږي يا د خپل ډلي او قوم په هڅه كي ظلم او زياتى وي او د هغه هڅه يو قانوني جواز نه وي نو هغه ته عصبيت ويل كيږي او د شريعت په نظر كي به د هغه ملګرتيا او معاونت هيڅ حقيقت نه لري .

### په خپل نسب مه نازيږه

﴿٤٦٩٣﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

د حضرت عقبه بن عامر جهني رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَنْسَابُكُمْ هَذِهِ لَيْسَتْ بِمَسَبَّةٍ عَلَى أَحَدٍ كُلُّكُمْ بَنُو آدَمَ طَفُّ الصَّاعِ لَمْ تَمْلَئُوهُ

ستاسو نسب يو داسي شی نه دئ چي تاسو د هغه په سبب چا ته بد وواياست (يعني خپل ځان شريف وګڼئ او نور خلک ذليل وګڼئ) تاسو ټول د آدم عليه السلام اولاد ياست، په شان د برابرۍ د کاسې له بلي کاسې سره چي تاسي يې ډکه نه کړئ

لَيْسَ لِأَحَدٍ عَلَى أَحَدٍ فَضْلٌ إِلَّا بِدِينٍ أَوْ تَقْوَى وَكَفَى بِالرَّجُلِ أَنْ يَكُونَ بَذِيًّا فَاحِشًا بَخِيلًا. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

چا ته پر چا فضيلت نسته يوازي د دين او تقوا په سبب فضيلت کيدلای سي د يو سړي د بدۍ لپاره دومره خبره کافي ده چي هغه اوږد ژبی، پالتو خبري کونکی او بخيل وي. احمد او بيهقي په شعب الايمان کي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۴/۱۴۵، رقم: ۵۱۴۶.

**تشريح**: د صاع څخه مراد پيمانه ده، د ارشاد خلاصه داده چي څرنګه يو صاع يعني پيمانه د دوهمي پيماني سره برابر وي يا د دواړو په مينځ کي چي کوم شيان وي هغه يو ډول وي همدارنګه ټول انسانان د يوه پلار آدم عليه السلام د پلار کېدو په حيثيت کي برابر دي او هيڅ انسان ته پر بل انسان باندي د نسب په اعتبار هيڅ فوقيت او غوره والی نسته.

د تقوا څخه مراد د شرک خفي او شرک جلي څخه ځان ساتل دي او د لويو او کوچنيو ګناهو څخه پرهېز کول دي، د دغه ارشاد مطلب دادی چي انسان د انسان کېدو په حيثيت سره يو پر بل هيڅ فضيلت نه لري بلکه انساني خلقت او نفساني تقاضو په اعتبار ټول انسانان د تاوان او خسران پر مقام دي مګر کوم انسان چي د ايمان او اسلام دولت لري او د هغه سره د تقوا کمال او دين دارۍ هم وي نو هغوئ نه يوازي دا چي د آخرت د تاوان څخه خوندي وي بلکه د انسانيت د اعلی مظهر کېدو په وجه پر نورو خلکو باندي فضيلت هم لري نو دغه حقيقت ته په دغه آيت کريمه کي هم ارشاد فرمايل سوی دی: (والعصر ان الانسان لفي خسر الا الذين آمنوا وعملو الصالحات) قسم دي په زمانه سره چي انسان په لوی تاوان کي دی، پر ته د هغه خلکو څخه چي ايمان يې راوړی دی او نېک کارونه کوي.

شيخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله د طيبي رحمه الله په حواله سره د دغه حديث مطلب بيان کړی دی چي د طف صاع معنی د هغه پيمانې ده چي پوره ډکه وي نو انسان ته په طف صاع سره

تشبيه وركول دا حقيقت څرګندوي چي ستاسو د ټولو انسانانو پلار آدم عليه السلام دی او آدم عليه السلام د خاورو څخه پيدا سوی دی ځکه نو تاسو ټول د خپل نسب په اعتبار په تاوان او د کمال درجې ته په نه رسېدو کي د يو بل بالکل نژدې او برابر ياست چي هر انسان د خپل طبعي جبلت په وجه په تاوان او خساره کي اخته دی مګر هغه انسان د تاوان او خسارې څخه خوندي دی چي د ايمان او اسلام حامل او د تقوا پر مرتبه فائز وي.

خلاصه دا چي يوازي تقوا او پوره ديندارې يو داسي وصف دی چي يو انسان معزز او مکرم ګرځوي کوم څوک چي مؤمن، متقي او پرهيزګار وي نو هغه انسان د فضيلت حامل کېدای سي او د دغه وصف څخه پرته د نسب په وجه انسان غوره کيدای نه سي او نه محض په کورني شان او شوکت سره يو انسان ته پر نورو انسانانو باندي لوړوالی ورکول کيږي.

==========

# بَابُ الْبِرِّ وَالصِّلَةِ

## (د نيکۍ او خپلوۍ پاللو بيان)

بِرّ: د باء په زېر سره دی او معنی يې د نېکۍ او احسان ده، په عامه توګه د دغه لفظ اطلاق پر هغه نېکۍ او خير باندي کيږي چي د هغه تعلق د مور او پلار د طاعت او فرمانبردارۍ او د هغوئ سره د ښه چلن کولو سره وي ځکه د لغت په کتابو کي ليکلي دي چي د بر معنی د مور او پلار د فرمانبردارۍ او اطاعت کولو ده، په ذکر سوي عنوان کي هم د دغه لفظ دا معنی مراد ده، څرګنده دي وي چي د دغه لفظ ضد عقوق دی چي د هغه معنی د مور او پلار نافرماني کول دي او د هغوئ سره د سرکښۍ او تکليف رسولو چلن کول دي، د صله لغوي معنی د يو ځای کولو او د پېوند لګولو ده مګر په عامه اصطلاح کي د دغه لفظ معنی د خپل قريبانو او دوستانو سره د ښه چلن کولو او هغوئ ته د ورکړي ده نو په عنوان کي د دغه لفظ دغه معنی مراد ده.

### اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د مور حقوق

﴿۴۶۹۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَنْ أَحَقُّ بِحُسْنِ

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي وويل: اې د الله رسوله! زما د ښه چلن

صَحَابَتِيْ قَالَ أُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ أُمُّكَ قَالَ أُمُّكَ قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ أُمُّكَ

لپاره څوک زیات مناسب دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستا مور، هغه بیا وویل: بیا څوک ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستا مور، هغه بیا وویل: بیا څوک ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل ستا مور،

قَالَ ثُمَّ مَنْ قَالَ اَبُوْكَ وفي رواية قال أُمُّكَ ثُمَّ أُمُّكَ ثُمَّ أُمُّكَ ثُمَّ اَبَاكَ ثُمَّ أَدْنَاكَ أَدْنَاكَ. متفق عليه.

هغه بیا وویل: بیا څوک ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ستا پلار ، او په یوه روایت کي داسي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ستامور، ستا مور، ستا مور ، بیا ستا پلار بیا ستا نژدې خپلوان ، بیا ستا نژدې خپلوان. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۰۱، رقم: ۵۹۷۱، ومسلم ۴\۱۹۷۴، رقم: ۱- ۲۵۴۸.

**تشريح**: د دغه نړۍ د ټولني اصلاح او کاميابي په اصل کي د يو بل حقوق ، د تعلق ساتل او د يو بل سره د ښه چلن کولو باندي منحصر ده ، د شريعت اسلامي تقاضا داده چي انسان دي په دنيا کي د يو بل سره کوم تعلق او قرابت ولري او هغه تعلق او قرابت کي چي د مراتبو فرق دی د حقوقو په ادا کولو کي او په معاملاتو کي ددې لحاظ ضروري دی ، څرګنده ده چي د قرابت په اعتبار د مور قرابت تر ټولو زيات دی او د هغې تعلق تر ټولو زيات نژدې دی ، نو د يو انسان د احسان او ښه چلن او خدمت تر ټولو زيات چي کوم ذات کيدای سي هغه مور ده ، د مور څخه وروسته پلار دی او بيا نور قريبان دی مګر په دغه قرابت کي هم د تعلق او قرابت درجې ډيري او نژدې وي هغو مره به هغه مقدم ګڼل کيږي ، په ذکر سوي حديث کي دا قاعده بيان سوې ده.

ځينو حضراتو د دغه حديث د الفاظو څخه يوه مسئله اخذ کړې ده چي پر يو سړي باندي د مور او پلار سره د ښه چلن او ښېګڼي کولو کوم حقوقو عائد کيږي په هغو کي د مور برخه د پلار څخه درې چنده زياته ده ځکه چي هغه د زوی بار پورته کول ، د ولادت تکليف او د تي ورکولو محنت زغمي .

د فقهي په کتابو کي ليکلي دي چي پر اولاد باندي د مور حق تر پلار زيات دی او د هغه سره ښه چلن او ښېګڼه او د هغې خدمت زيات واجب او ضروري دی او که داسي صورت وي

چي په هغه کي په يوه وخت کي د دواړو د حقوقو ادا کول مشکل سي د مثال په توګه د مور او پلار په مينځ کي په يو وجه خنډ راسي ، نو که چيري هلک د مور د حقوقو رعايت کوي نو پلار ناراضه کيږي او که د پلار د حقوقو لحاظ ساتي نو مور ناراضه کيږي نو په داسي صورت کي درميانه لار اختيارول پکار دي چي په تعظيم او احترام کي دي پلار ته فوقيت ورکړل سي او په خدمت او مالي مرسته کي دي مور ته فوقيت ورکړل سي .

د مور او پلار د حقوقو فهرست ډېر اوږد دی بلکه که چيري د هغوئ مرتبې او درجې ته وکتل سي نو حقيقت دا دی که چيري اولاد خپل ټول ژوند د هغوئ د حقوقو په ادا کولو کي صرف کړي نو بيا هم د خپلي ذمه داری څخه خلاصيداى نسي مګر شريعت يو څو شيان بيان کړي دي چي د هغو زيات ارزښت دی او د هغو لحاظ کول په هر حال ضروري دی د مثال په توګه تر ټولو مخکي شی دادی چي د هغوئ د جائز خواهشاتو پوره کول او د هغوئ فرمانبرداري لازم وګڼل سي او د هغوئ رضا او خوشحالي د خپل ځان لپاره يو لوی سعادت وګڼي، د خپل توان سره د هغوئ په اړتياوو او راحت کي د خپل مال او سامان مصرفول پکار دي او د هغوئ سره داسي چلن کول پکار دي چي د هغوئ د شان سره سم وي، اولاد دي د هغوئ په مخکي تواضع او انکساري اختياروي او د هغوئ په مخکي کي د نرمۍ رويه اختياروي او تر څو چي کيداى سي د هغوئ خدمت دي کوي تر دې چي هغوئ راضي او خوشحاله وي، د هغوئ په فرمانبرداري کي دي هيڅ کوتاهي نه کوي مګر اطاعت او فرمانبرداري په هغو کارو کي پکار ده چي مباح وي ، د هغوئ سره بايد د بې ادبۍ رويه اختيار نه کړل سي او نه تکبر ورسره وکړي که څه هم هغوئ مشرک وي ، د خبرو کولو په وخت کي خپل اواز د هغوئ د اواز څخه پورته کول نه دي پکار او نه د هغوئ په نامه اخيستلو سره د هغوئ مخاطب کول پکار دي ، په يو کار کي بايد د هغوئ څخه مخته والی ونسي او نه د هغوئ په مقابله کي د خپل ځان ښکاره کولو هڅه وسي ، همدارنګه ددې خبري خيال ساتل پکار دي که چيري مور او پلار غير شرعي کارونه کوي نو د هغوئ په مخکي کي د امر باالمعروف او نهي عن المنکر د فريضې ادا کولو پر وخت هم د هغوئ احترام وکړل سي او د نرمۍ رويه ورسره اختيار کړل سي ، که په يو ځل وينا باندي هغوئ منع نسي نو بايد پټه خوله سي او د هغوئ په اړه دي استغفار کوي ، دا خبره د قرآن کريم د هغه آيت څخه اخذ سوې ده چي د حضرت ابراهيم عليه السلام له خوا د خپل پلار د نصيحت او موعظت يادونه ده .

## د مور او پلار خدمت

﴿۴۶۹۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَغِمَ أَنْفُهُ رَغِمَ أَنْفُهُ رَغِمَ أَنْفُهُ قِيلَ مَنْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ مَنْ أَدْرَكَ وَالِدَيْهِ عِنْدَ الْكِبَرِ أَحَدَهُمَا أَوْ كِلَيْهِمَا ثُمَّ لَمْ يَدْخُلِ الْجَنَّةَ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هغه چا پزه دي په خاورو لړلې وي، د هغه چا پزه دي په خاورو لړلې وي، د هغه چا پزه دي په خاورو لړلې وي، (يعني هغه دي ذليل او خوار وي) پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! د چا پزه ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د هغه چا چي په خپل مور او پلار کي يې يو يا دواړه په سپين ږيرتوب کي تر لاسه کړل او بيا په جنت کي داخل نه سي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۱۹۷۸، رقم: ۹- ۲۵۵۱.

## د مشرکي مور سره هم ښه چلن

﴿۴۶۹۶﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ أَبِي بَكْرٍ قَالَتْ قَدِمَتْ عَلَيَّ أُمِّي وَهِيَ مُشْرِكَةٌ فِي عَهْدِ قُرَيْشٍ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ أُمِّي قَدِمَتْ عَلَيَّ وَهِيَ رَاغِبَةٌ أَفَأَصِلُهَا قَالَ نَعَمْ صِلِيهَا. متفق عليه.

د حضرت اسماء بنت ابي بکر (رض) څخه روايت دئ چي زما مور زما کور ته راغلل (يعني دمکې څخه مدينې ته) او هغه مشرکه وه، او دا د هغه وخت پېښه ده چي د قريشو سره د حديبيې صلح سوې وه ، ما وويل : اې دالله رسوله ! زما مور ما ته راغلې ده او هغه د اسلام څخه بيزاره ده ، ايا زه د هغې سره خپلوي وپالم (ښه چلن وکړم) ؟ رسول الله ﷺ راته وفرمايل هو وه يې پاله د هغې سره ښه چلن وکړه . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۳۳، رقم: ۲۶۲۰، ومسلم ۲\۶۹۶، رقم: ۵۰- ۱۰۰۳.

## د كافرانو سره صله رحمي

﴿۴۶۹۷﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ سَمِعْتُ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ آلَ أَبِي فُلَانَ لَيْسُوا لِيْ بِأَوْلِيَاءَ إِنَّمَا وَلِيِّيَ اللَّهُ وَصَالِحُ الْمُؤْمِنِينَ وَلَكِنْ لَهُمْ رَحِمٌ أَبُلُّهَا بِبَلَاهَا. متفق عليه.

د حضرت عمرو بن عاص ﷛ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي د ابو فلان اولاد (يعني د ابو لهب ، ابوسفيان يا نور) زما دوستان نه دي ، بلكه زما دوست الله تعالى دئ او نيک بخت مؤمن، مګر ددغه خلكو سره زما خپلولي ده زه يې د هغوئ سره كوم (يعني دهغوئ سره چي كوم چلن كوم د خپلوى له كبله يې كوم) .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۱۹، رقم: ۵۹۹۰، ومسلم ۱\۱۹۷، رقم: ۳۶۶- ۲۱۵.

**د لغاتو حل**: ببلالها : اى بصلتها والاحسان اليها (ښبګنه)

**تشريح**: د (ابو فلان اولاد) په اړه علماؤ ليكلي دي چي رسول الله ﷺ په خپل ارشاد كي صريح نوم اخيستى وو مګر راوي د ارشاد بيانولو په وخت كي د هغه نوم صريح ذكر نه كړ بلكه لفظ د ابو فلان په ذريعه يې اشاره وكړه او د صريح نه ذكر كولو وجه دا معلوميږي چي راوي په كومه موقع كي دغه ارشاد بيان كړ هغه وخت د هغه نوم صراحتا ذكر كولو سره د يو فتنې بېره وه ، د بخاري او مسلم په اصل نسخو كي هم لفظ د ابي څخه وروسته خالي ځاى پرېښودل سوى دى او يو نوم په صراحت سره ذكر سوى نه دى او ددې علت هم هغه دى ، پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ په خپل ارشاد كي كوم نوم په صراحت سره فرمايلي وو ، نو محققينو ويلي دي چي هغه ابولهب دى او ځينو حضراتو ابوسفيان يا حكم ابن ابي العاص بيان كړى دى مګر صحيح خبره داده چي د رسول الله ﷺ د ارشاد تعلق د يو خاص فرد سره نه دى بلكه د رسول الله ﷺ مراد په عامه توګه د خپل قبيلې او كورنۍ افراد دي لكه اهل قريش يا بنو هاشم يا د رسول الله ﷺ د اكاګانو زامنان،

زما دوست نه دى ...الخ: ددغه جملې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا څرګندول وو چي د خپلي كورنۍ د خلكو سره زما مالي مرسته او هغوئ ته وركړه په دې وجه نه ده چي هغوئ زما ډېر خوښ دي يا زما د هغوئ سره زيات روحاني او باطني تعلق دى بلكه هغوئ زما قريبان دي ځكه زه د قرابت حق ادا كولو لپاره د هغوئ مالي مرسته كوم ، تر څو چي د باطني او روحاني

تعلق او میني سوال دی نو زما تعلق او زیاته مینه د هغه چا سره ده چي مؤمن صالح وي که څه هم هغه زما قریب وي یا قریب نه وي، زما دوست الله ﷻ دی یا نېک بخته مؤمنان، د نیک بخته څخه ټول صالح مسلمانان مراد دي که څه هم ځینو حضراتو ابوبکر ؓ او ځینو حضرت علي ؓ مراد اخیستی دی.

## حرام عملونه

﴿۴۶۹۸﴾: وَعَنِ الْمُغِيرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ حَرَّمَ عَلَيْكُمْ عُقُوقَ الْأُمَّهَاتِ وَوَأْدَ الْبَنَاتِ وَمَنَعَ وَهَاتِ وَكَرِهَ لَكُمْ قِيلَ وَقَالَ وَكَثْرَةَ السُّؤَالِ وَإِضَاعَةَ الْمَالِ. متفق عليه.

د حضرت مغیرة ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی پر تاسو د مور نافرماني او تکلیف رسول، انجوني ژوندی ښخول او بخل حرام کړي دي او قیل وقال (یعني بې ګټي بحثونه او مباحثه) زیات سوالونه کول او مال ضائع کول یې مکروه ګرځولي دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۶۸، رقم: ۲۴۰۸، ومسلم ۳\۱۳۴۱، رقم: ۱۲-۵۹۳.

**د لغاتو حل**: ومنع هات: عبر بهما عن البخل والسوال (بخل او فقر کول)

**تشريح**: په خاصه توګه د مور یادونه ځکه سوې ده چي پر اولاد باندي د مور حقوق تر پلار زیات وي لکه څرنګه چي مخکي تېر سوي دي چي د مور حق د پلار تر حق درې چنده زیات دی یا د دغه خاصوالي وجه داده چي مور په طبعي توګه د پلار څخه زیاته حساسه او د کمزوري زړه والا وي، پلار خو د اولاد لوی تکلیف هم زغملای سي، مګر مور د خپل اولاد په معمولي خبره هم ناراضه کیږي، که چیري اولاد د هغې د حقوقو په ادا کولو کي لږ غفلت او کوتاهي وکړي نو د هغې زړه سمدستي متاثره کیږي او هغه سخت تکلیف محسوس کوي، دا بېله خبره ده چي د اولاد د کوتاهیو څخه چي څومره مور عفوه کوي هغومره پلار نه کوي او ددې سبب هم د مور د زړه کمزوري کېدل دي.

د منع معنی د بندولو یا محروم کولو ده او ددې څخه مراد بخل دی، (هات) په اصل کي د (ات) په معنی دی چي د ایتا صیغه امر ده او د هغه معنی ده راکړه، دلته دغه لفظ د غوښتلو او سوال کولو یعني د یو چا په مخکي د لاس غزولو په مفهوم کي استعمال سوی دی، علماؤ

ليکلي دي چي منع د هات څخه مراد دادی چي په خپل مال باندي د نورو خلکو چي کوم حق واجب وي نو هغه نه ادا کوي او دنورو د مال څخه هغه شي اخلي چي د هغه لپاره حلال نه دی، ځيني حضرات وايي چي نه يوازي په مال کي منع وهات حرام گرځولی سوی دی بلکه د هر ډول حقوقو نه ادا کول حرام دي که د هغو تعلق د مال سره وي يا د افعالو سره وي او که د اقوالو سره وي يا د اخلاقو سره وي، همدارنگه د يو داسي شي غوښتنه کول چي پر نورو باندي هيڅ ډول حق واجب نه وي او نور خلک د يو داسي شي په ورکولو کي په تکليف کول چي پر هغه واجب نه دی نو دا حرام دی.

(قيل وقال) : دا يوه محاوره ده چي زموږ په ژبه کي هم همدارنگه استعماليږي، ددغه جملې اطلاق په عامه توگه پر بې گټې بحث او حجت باندي کيږي، دلته په حديث کي هم د قيل وقال مکروه گرځولو مطلب د بې گټي او پالتو خبرو کولو څخه منع کول دي لکه څرنگه چي په عامه توگه کيږي، چي کله بې فکره خلک په خپلو کي يو ځای کښيني نو آخوا دېخوا خبرو کي اخته سي د خبرو هيڅ مقصد نه وي او نه يې ديني او دنيوي گټه وي، د هغوئ د خبرو موضوع غلطي واقعې بيانول او د دروا‌غ اقوال بيانول وي ، څوک وايي چي فلاني سړي داسي ويلي دي او څوک وايي چي فلاني سړي داسي ويلي دي .

خلاصه دا چي په پالتو او بې گټو خبرو کي په بوختيا سره خپل قيمتي وخت ضائع کوي ، ددې څخه معلومه سوه چي د قيل وقال منع په هغه صورت کي ده کله چي هغه بحث او خبرو مقصد د يو مسئلې او معاملې تحقيق نه وي مگر که چيري د يوې معاملې تحقيق او نورو نيکو مقصدو لپاره په خبرو کي اخته سي او د خلکو اقوال بيان کړل سي نو پر دغه خبرو باندي د ذکر سوي منع اطلا ق نه کيږي، ځينو حضراتو د قيل وقال څخه مراد ډيري زياتي خبري کول ليکلي دي او دا يې څرگنده کړې ده چي ډيري زياتي خبري کول پر زړه غفلت خپروي ، په بې حسی او لا پرواهی کي اخته کول او د وخت ضائع کول دي .

كثرة السوال: يعني د سوال د زياتوب څو معناوي بيان سوي دي ، يوه معنی يې دا ده چي د نورو خلکو د احوالو او معاملو ډېر زيات تجسس وکړل سي، دوهم دا چي د خپل علم غوره والي څرگندولو لپاره يا د يو بې گټي بحث په وجه ډېر زيات علمي سوالونه کول يا پر يو خبره باندي ډېري زياتي پوښتني کول دي، او دريم دا چي ددغه منع مخاطب په خاصه توگه صحابه کرام وه چي هغوئ ته دا هدايت سوی وو چي هغوئ په ديني احکامو او مسائلو کي د رسول الله ﷺ څخه زيات سوالونه نه کوي او نه دي دلته او هلته د معاملاتو په باره کي پوښتني او گرويږني

كوي، ځکه چي د سوالو د زياتوالي په وجه نه يوازي دا چي د رسول الله ﷺ طبيعت ته ناراضګي وي بلکه زياتي پوښتني کول په احکامو او مسائلو کي د سختوالي او زياتو پابنديو سبب هم جوړيداى سي، لکه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (لا تسئلوا عن اشياء ... الخ).

(اضاعة المال): يعني د مال ضائع کولو څخه مراد دادی چي خپل مال او روپۍ په اسراف کي مصرف کړل سي يا په په داسي ځاى کي خرڅ کړل سي چي د هغه کار د الله تعالى د رضا سره هيڅ تعلق نه وي لکه يو سړی خپل ټول مال يا د هغه يوه برخه يو بل چا ته ورکړي مګر د هغه خپلوان او قريبان محروم پاته سي چي نه يوازي د خپل تعلق د وجي بلکه دخپل احتياج او ضرورت په وجه هم د هغه پر مال باندي خپل حق لري، يا يو سړی خپل مال او اسباب او دولت په اوبو کي واچوي يا په اور کي يې وسوځي يا يو داسي فاسق ته يې ورکړي چي هغه يې د ګناه او معصيت په کارو کي مصرفوي.

## د بل مور او پلار ته ښکنځل کول

﴿۴۶۹۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مِنَ الْكَبَائِرِ شَتْمُ الرَّجُلِ وَالِدَيْهِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ وَهَلْ يَشْتِمُ الرَّجُلُ

خپل پلار ته ښکنځل کول د کبيره ګناهو څخه دي، صحابه کرامو وويل: اې دالله رسوله! ايا سړی خپل مور او پلار ته ښکنځل کولاى سي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، څوک چي د بل چا مور او پلار ته ښکنځل کوي او هغه

وَالِدَيْهِ قَالَ نَعَمْ يَسُبُّ أَبَا الرَّجُلِ فَيَسُبُّ أَبَاهُ وَيَسُبُّ أُمَّهُ فَيَسُبُّ أُمَّهُ.

متفق عليه.

دده مور او پلار ته ښکنځل کوي (نو داسي ده لکه خپل مور او پلار ته چي يې په خپله ښکنځل وکړه). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۰۳، رقم: ۵۹۷۳، ومسلم ۱\۹۲، رقم: ۱۴۶-۹۰.

**تشريح**: ددغه حديث څخه دا خبره څرګنده سوه چي خپل مور او پلار ته ښکنځل کول او هغوئ ته بد او رد ويل ګناه کبره ده مګر کوم څوک چي د بل چا مور او پلار ته ښکنځل وکړ

ي نو هغه خپل مور او پلار ته د ښکنځل کولو او هغوئ ته د بد او رد ویلو سبب جوړیږي ، نو هغه هم لویه ګناه ده، ځکه که چیري هغه د هغه مور او پلار ته ښکنځل ونه کړي نو هغه سړی به هم دده مور او پلار ته ښکنځل نه کوي، مور او پلار ته ښکنځل کول په عقوق یعني د مور او پلار په نافرمانۍ او سرکښۍ کي داخل دی چي حرام کار دی .

د ذکر سوي حدیث څخه دا مسئله هم راووتل که چیري یو سړی د یو چا د فسق او ګناه سبب جوړ سي نو د هغه شمېر به هم د هغه په فسق او معصیت کي د کونکي په حیثیت سره وي او هغه به هم ګناه کار وي.

## د پلار د خپلوانو سره ښه کول

﴿۴۷۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَبَرِّ الْبِرِّ صِلَةَ الرَّجُلِ أَهْلَ وُدِّ أَبِيهِ بَعْدَ أَنْ يُوَلِّيَ . رواه مسلم .

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : غوره نیکي د یو سړي د خپل پلار د مرګ څخه وروسته د هغه د قریبانو سره احسان او ښه چلن کول دي . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۹۷۹\۴، رقم: ۱۳– ۲۵۵۲،

**تشریح**: مطلب دادی که چیري پلار مړ سوی وي یا یو ځای ته په سفر تللی وي نو د هغه د ملګرو او قریبانو سره ښه چلن کول ګویا د خپل پلار سره ښه چلن کول دي او د هغه دغه معامله د خپل پلار په نه شتون کي وي ځکه هغه به غوره نیکي کونکی شمېرل کیږي .

په حدیث شریف کي یوازي د پلار د قریبانو ذکر کول دې ته اشاره ده چي د مور د دوستانو سره ښه چلن کول به په درجه اولی غوره نیکي وي .

## د قریبانو سره د صله رحمۍ ګټه

﴿۴۷۰۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحَبَّ أَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَ لَهُ فِي أَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ. متفق علیه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي دا غواړي چي د هغه په روزي کي پراخي راسي او په مرګ کي یې ځنډ راسي نو هغه ته پکار ده چي د خپل قریبانو سره خپلوي پالي (ښه چلن کوي)، بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۱۵، رقم: ۵۹۸۶، ومسلم ۴\۱۹۸۲، رقم: ۲۱- ۲۵۵۷.

**د لغاتو حل**: النسء: التاخیر (مُنجد)

**تشریح**: اثر په اصل کي د پښو هغه نښو ته وایي چي د تللو په وخت کي پر مځکي لګیږي، او هغه نښه د ژوند علامه وي، چي کوم سړی مړ سو نو د هغه د قدم نښي پر مځکه نه پاته کیږي په دې اعتبار سره په عربو کي مدت عمر ته اثر ویل کیږي.

د حدیث دغه جمله چي د هغه په رزق کي پراخي او د هغه په مرګ کي د زنډ کېدو متعلق دا سوال پیدا کیږي چي د اسلامي عقیدې سره سم د رزق تعلق د تقدیر سره دی، د کوم چا په مقدار کي چي څومره رزق لیکل سوی دی هغه ته هغومره ورکول کیږي په هغه کي نه کمي کیږي او نه زیاتوب، همدارنګه د مرګ وخت هم ټاکل سوی دی د کوم چا د مرګ چي کوم وخت ټاکل سوی وي د هغه څخه یوه لحظه مخکي او وروسته نه سي کیدای، لکه څرنګه چي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي: (فاذا جاء اجلهم لا یستاخرون ساعة ولا یستقدمون)، یعني کله چي د هغه وخت ختم سي نو هغه وخت نه یوه لحظه وروسته کیږي او نه مخته کیږي.

ددغه څرګنده عقیدې په رڼا کي د حدیث د ذکر سوي جملې معنی به څه وي؟ ددې جواب دادی چي په رزق کي د پراختیا او دعمر د اوږدوالي څخه مراد په رزق کي برکت محسوس کول، شپې او ورځي په خوشحالي او سکون سره تېرول، د عمر په زیات وخت کي د عبادت او طاعت توفیق تر لاسه کېدل او د زړه نورانیت او د باطن پاکوالي په برخه کېدل دي، یا د عمر د اوږدوالي څخه مراد په دنیا کي د نېک نامه پاته کېدل دي یا دا چي د عمر د اوږدوالي څخه مراد صالح اولاد مراد دی چي د خپل مور او پلار د مرګ څخه وروسته د هغوئ په حق کي د مغفرت دعاء کوي او دهغوئ نیک نامي پاته ساتي ځکه ویل سوي دي چي د اولاد پاته کېدل د مړي لپاره دوهم وار پېدا کېدل دي یعني د اولاد خاوند د مرګ څخه وروسته هم د هغه د اولاد په صورت کي خپل وجود باقي لري.

که چیري په زیاته توجه وکتل سي نو معلومه به سي چي د رزق او عمر په اړه د ذکر سوي عقیدې او حدیث د مفهوم په مینځ کي داسي تضاد نسته چي دهغه د لیري کولو لپاره تاویلات اختیار کړل سي ځکه چي دا یو حقیقت دی چي الله تعالی د قریبانو سره د ښه چلن کول او احسان کول د رزق د پراختیا او د عمر د اوږدوالي سبب ګرځولی دی، کله چي هغه د هر شي لپاره یو سبب پیدا کړی دی نو هغه څوک چي په رزق کي برکت او په عمر کي اوږدوالي غواړي نو هغه

ته د قريبانو د حقوقو د ادا كېدو توفيق وركوي او دا خبره داسي نه ده چي د هغه څخه په تقدير الهي كي د تغير نوم ور كړل سي .

## د صله رحمي اهميت

﴿۴۷۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَلَقَ اللّٰهُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى مخلوقات پيدا

الْخَلْقَ فَلَمَّا فَرَغَ مِنْهُ قَامَتِ الرَّحِمُ فَأَخَذَتْ بِحَقْوِ الرَّحْمٰنِ فَقَالَ لَهُ مَهْ

كړل كله چي ددې څخه فارغ سو نو رَحِم (خپلوي) ودرېدل او د رحمان (الله تعالى) ملا يې ونيول، الله تعالى پوښتنه وكړه قرار (پرځاى) سه څه غواړې ؟

قَالَتْ هٰذَا مَقَامُ الْعَائِذِ بِكَ مِنَ الْقَطِيعَةِ قَالَ أَلَا تَرْضَيْنَ أَنْ أَصِلَ مَنْ وَصَلَكِ وَأَقْطَعَ مَنْ قَطَعَكِ قَالَتْ بَلَى يَا رَبِّ قَالَ فَذَاكِ. متفق عليه.

رحم وويل: دا ځاى د هغه سړي د قراريدو ځاى دئ چي ستا په ذريعه د قطع رحم څخه پناه غواړي (يعني زه ستا په مخكي ولاړ يم او ستا په ذريعه ددې امر څخه پناه غواړم چي څوک ما قطع كړي او د خپلوۍ عزت قائم ونه ساتي) الله تعالى ورته وفرمايل : ايا ته په دې راضي يې چي څوک تا قائم وساتي نو د هغه سره زه احسان او ښه چلن وكړم او پرېږدم هغه چي ته يې پرې ايښې يې ، رحم وويل: هو زه په دې راضي يم، نو الله تعالى ورته وفرمايل : ښه دئ . دا (ستاسره) وعده ده. . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۸/ ۵۸۰، رقم: ۴۸۳۰، ومسلم ۴/ ۱۹۸۰، رقم: ۱۶– ۲۵۵۴.

**د لغاتو حل**: بحقوي الرحمن: المراد الاستغاثة والاستعانة. (فرياد كول او مرسته غوښتل)

**تشريح**: كله چي د هغه څخه فارغ سو :مطلب دادى كله چي هغه مخلوقات پيدا كړل كه څه هم په ظاهري توگه په دغه دواړو جملو كي فرق نسته مگر په دې كي يوه نكته داده چي په لغوي توگه د فراغت حقيقي مفهوم د خپل تحقيق لپاره مخكي د اشتغال متقاضي وي يعني د فراغت مفهوم پر هغه صورت باندي صادقيږي كله چي په يو كار كي بوختيا وي او د هغه كار څخه پرته د نورو كارو څخه يې منع كوي ځكه ويل كيږي چي كله د هغه څخه فارغ سو ، دلته فراغت په خپل حقيقي مفهوم كي استعمال سوى نه دى ځكه چي الله تعالى ددې څخه پاک دى چي هغه يو

كار د بل كار څخه منع كړي لكه څرنګه چي په يوه دعاء كي داسي راغلي دي : سبحان من لا يشغله شان عن شان .

حقو، هغه ځای ته وايي چيري چي پرتوګانښ تړل كيږي او د پرتوګانښ د تړلو صورت داوي چي د هغه د واړو سرونو يو ځای كولو سره تړل كيږي ، په دې اعتبار سره دلته ددغه لفظ د تثنيې په استعمال سره بحقوق الرحمن وفرمايل سول، يعني هغه ځای چيري چي د پرتوګانښ دواړي څوكي تړل كيږي ، د حقو لفظ اطلاق د پرتوګانښ د تړلو پر ځای او د ملا په ډول شيانو څخه پاک دی ځكه دا خبره بايد په ذهن كي وي چي دغه جمله پر حقيقي معنی محمول نه ده بلكه د عربو د يو خاص اداء مظهر دی او دلته چي د كومي خبري بيانول مقصد دي هغه د دوئ د كلام په مثالي صورت كي څرګند سوی دی .

د عربو دا عادت وو چي كله به يې يو سړي ته پناه وركول يا د هغه مرسته به يې كول او د خپلي پناه او مرستي غوښتلو اړتيا به يې په زيات تاكيد او ارزښت سره ظاهرول غوښتل نو د چا مرسته يا پناه چي به پكار وه د هغه د پرتوګانښ پر ځای به يې دواړه لاسونه وهل چي هغه ته متوجه سي او په دې پوښتنه مجبور سي چي ستا مقصد څه دی او زما څخه څه غواړې ، نو د قرابت قطع كولو څخه د الله تعالی د پناه غوښتلو مفهوم د استعارې په توګه د ذكر سوي عبارت په ذريعه بيان سوی دی، كنه نو په لغوي توګه دلته د حقو حقيقي معنی مراد نه ده او نه د هغه د نيولو دغه مفهوم د ی كوم چي د يو انسان د نيولو وي، لكه څرنګه چي د عربو په نزد كله چي د يو چا په اړه ويل كيږي چي يداه مبسوطتان يعني د هغه دواړه لاسونه خلاص دي نو ددې څخه مراد د هغه ډېر سخاوت دی كه څه هم هغه په حقيقت كي د لاسو خاوند وي يا په خلقي توګه د هغه لاسونه نه وي او كه څه هم هغه داسي ذات وي چي د هغه لپاره د لاسونو وجود محال وي لكه د الله تعالی ذات .

خلاصه دا چي دا ډول كلام په عربو كي د محاورې په توګه ډېر استعماليږي چي د هغه الفاظ پر خپل حقيقي مفهوم ادا كولو پر ځای بل مفهوم ته اشاره كوي او د قرآن كريم نزول او د احاديثو صدور د عربو د كلام مطابق سوی دی ځكه قران او حديث په داسي مقام كي چيري چي دا ډول جملې راځي او پر هغه د متشابهاتو اطلاق كيږي د هغه تاويل او وضاحت لپاره دا خبره يو لوی بنيادي حيثيت لري ، دا هم بايد په ذهن كي وي چي رحم يعني قرابت ذات او جسم خو نه دی چي هغه پر خپلو پښو باندي ودريږي او د الله تعالی څخه د پناه طلبګار سي بلكه په حقيقت كي هغه يوه معنی ده نو د هغه لپاره د دريدو او پناه غوښتلو الفاظ استعمالول د تشبيه او

تمثیل په توګه کیدای سي چي د هغه څخه دا خبره څرګندول مراد دي چي رحم د يو داسي ځا په ډول دی چي دريږي او د الله تعالی عزت او عظمت او دهغه د لويي د لمن په نیولو سره د پناه غوښتونکی سي ۔
همدا ډول خبره نووي رحمه الله هم بیان کړې ده، هغه ويلي دي چي رحم ذات یا جسم نه دی بلکه د معاني څخه يوه معنی ده چي د يو ذات او جسم په ډول نه دربدلای سي او نه د هغه څخه کلام صادربدلای سي نو په دې اړه د ذکر سوي ارشاد مراد په اصل کي د رحم یعني قرابت ارزښت ظاهرول ، د قرابت کولو فضیلت بیانول او د قرابت قطع کولو بدي بیانول دي ځکه چي قرابت ساتل في الجمله واجب دی او د هغه ماتول ګناه کبیره ده ۔
که څه هم د صله رحم درجات متعین سوي دي چي په هغو کي ځینو ته زيات ارزښت تر لاسه دی او تر ټولو غوره درجه ترک مهاجرت یعني ملاقات او تعلق اختیارول دي ځکه چي د صله رحم يوه ذريعه کلام او ملاقات هم دی که څه هم محض د سلام تر حد پوري وي ۔
څرګنده دي وي چي د صله رحم د درجو په مینځ کي د تفاوت او اختلاف بنیاد د مواقعو او حالاتو پر مختلف کېدو باندي دی ، ځینو صورتونه داسي وي چي په هغه کي د قرابت د تعلق رعایت او د قریبانو سره د نېک چلن کولو زیات ارزښت او ضرورت وي او په ځینو صورتو کي د هغه ارزښت او ضرورت زیات نه وي ، ددې څخه پرته په ځینو وختو کي د قدرت او توان فقدان وي په دې اعتبار سره د صلې حکم عائد کیږي چي په ځینو صورتو کي زیات اهم وي او په ځینو کي مستحب دي، که يو څوک د قرابت ساتلو حق په جزوي توګه ادا کړي او هغه يې په پوره توګه ادا نه کړلای سي نو هغه ته به د قرابت ماتونکی نه ویل کیږي مګر که يو سړی که د قريبانو په داسي حقوقو پوره کولو کي کوتاهي وکړي چي پر پوره کول يې قادر وي او هغه حق پوره کول د هغه لپاره مناسب هم وي نو هغه سړي ته به د قرابت ساتونکی نه ویل کیږي مګر که چیري يو سړی د قرابت په حقوقو کي د داسي حقوقو په پوره کولو کي کوتاهي وکړي چي د هغه پر پوره کولو قادر وي او هغه حق پوره کول د هغه لپاره مناسب هم وي نو داسي کس ته به د قرابت پالونکی ویل کیږي ۔

### رحم د رحمان څخه دئ

﴿۴۷۰۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الرَّحِمَ شَجْنَةٌ

مِنَ الرَّحْمَنِ فَقَالَ اللهُ مَنْ وَصَلَكِ وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَكِ قَطَعْتُهُ . رواه البخاري

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د رَحِم لفظ د رحمان څخه اخيستل سوى دئ او الله تعالى رحم ته فرمايلي دي څوک چي تا يو ځاى كوي زه به هغه يو ځاى كوم او څوک چي تا پرې كوي زه به هغه پرېكړم . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۱۷، رقم: ۵۹۸۸.

**د لغاتو حل**: الشجنة: عروق الشجر المشتكبة، والمعنى انها اثر من آثار رحمة الله مشتكبة.

**تشريح**: لفظ د رحم د رحمان څخه اخيستل سوى دى ، ددې وضاحت په يو بل حديث كي داسي دى چي الله تعالى وفرمايل: ما رحم يعني قرابت پيدا كړ او د هغه د نامه لفظ يعني رحم مي د خپل نامه يعني رحمان د لفظ څخه را وايست، دا هم كيداى سي چي په حديث كي دغه دواړه لفظونه يعني رحم او رحمان معنى مراد وي ، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي د رحم قرابت چي د هغه د حق لحاظ كول واجب دي د رحمان د رحمت يو ښاخ دى ، ځينو شارحينو د لغت د كتابو په حوالې ليكلي دي چي شُجنَه په اصل كي د درختي هغه رېښو او څانګو ته وايي چي د خپل تني سره پيوست وي ، په حديث كي ددغه لفظ په ذريعه دا ښودل مقصد دي چي رحم د رحمان څخه اخيستل سوى دى يا داسي به ووايو چي د رحم لفظ د رحمت څخه مشتق دى چي د هغه څخه د رحمان لفظ وتلى دى لكه څرنګه چي د درختي رېښې د خپل تنې سره يو ځاى وي همدا رنګه رحم د رحمان سره يو ځاى دى .

ځينو حضراتو د شجنه لفظ په اړه دا ويلي دي چي ددغه لفظ په ذريعه دې ته اشاره كول مقصد دي چي د رحم په لفظ كي چي كوم حروف دي هغه د الله تعالى په اسم رحمان كي هم موجود دي او د رحم او رحمان اصل يو دي، يعني رحمة، ځكه رحم او رحمن د يو بل څخه بېل كېداى نسي لكه څرنګه چي د يوې درختي څانګي د هغه د تني څخه بېلېداى نسي ، په دې توګه د حديث معنى به دا وي چي رحم يعني قرابت په اصل كي د الله تعالى د رحمت د اثارو څخه يو آثر دى او د هغه سره مربوط دى نو د صله رحم حقوق يعني د قريبانو سره ښه چلن كولو ذمه داري د خپل ځان قطع كونكي ، خپل ځان درحمت الهي څخه قطع كونكى دى، او قرابت ساتونكى يعني د قريبانو سره د ښک چلن كونكى د الله تعالى د رحمت سره خپل ځان جوړونكى دى لكه څرنګه چي په حديث كي فرمايل سوي دي .

لَئِنْ كُنْتَ كَمَا قُلْتَ فَكَأَنَّمَا تُسِفُّهُمُ الْمَلَّ وَلَا يَزَالُ مَعَكَ مِنَ اللّٰهِ ظَهِيرٌ عَلَيْهِمْ مَا دُمْتَ عَلَى ذٰلِكَ. رواه مسلم.

ورته وفرمایل: که ته داسي کوې لکه څرنگه چي تا وویل داسي مثال لري لکه ته چي د دوئ په خولو کي تودې ایرې اچوې نو ستا سره به همیشه د الله ﷻ مرسته وي تر څو پوري چي ته پر دې صفت قائم یې د هغوئ تکلیفونه او شر به د ر څخه دفع کوي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۱۹۸۲، رقم: ۲۲ – ۲۵۵۸.

**د لغاتو حل**: العل: ای الرماد الحار الذي يدفن فيه الخبز.

**تشریح**: د ایرو اچولو څخه مراد دادی چي ستا هغه قریب ستا د نیک چلن قدردان نه دی او ستا د نیکۍ شکریه نه ادا کوي ځکه ته چي هغوئ ته څه ورکوې نو هغه د هغوئ په حق کي د حرام مال حکم لري او ستا ورکړل سوي شیان د هغوئ په نس کي د اور په ډول دي، یعني رسول الله ﷺ د هغه قریبانو هغه گناه ته د گرمو ایرو سره تشبیه ورکړه چي د هغه شیانو په خوړلو سره هغوئ ته لاحق کیږي.

ځینو حضراتو دا مراد بیان کړی دی چي ته د هغوئ د خراب چلن د هغوئ سره د احسان او نیک چلن په کولو سره هغوئ خپله د هغوئ د نفس په وړاندي ذلیل او خوار کړې لکه څرنگه چي یو سړی گرمي ایرې په خوله کي واچوي او هغه نس ته دننه کړي نو د هغه نفس پر هغه لعنت وایي، ځینو شارحینو دا بیان کړی دی چي د هغوئ سره ستا احسان د هغوئ په حق کي گرمي ایرې دي چي هغوئ سوځي او هلاکوي یې او ځینو حضراتو دا ویلي دي چي ستا احسان د هغوئ مخ توروي لکه څرنگه چي ایرې د یو چا د مخ په سوځلو سره تور کړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د مور او پلار سره ښه سلوک

﴿۴۷۰۸﴾: عَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزِيدُ فِي الْعُمْرِ إِلَّا الْبِرُّ لَا يَرُدُّ الْقَدَرَ إِلَّا الدُّعَاءُ ولا يزيد في العمر الا البر وَإِنَّ الرَّجُلَ لَيُحْرَمُ الرِّزْقَ بِالذَّنْبِ يُصِيبُهُ. رواه ابن ماجة.

د حضرت ثوبان رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله جل جلاله تقدیر پرته د دعاء څخه بل هیڅ شی نه سي بدلولای او د نیکی څخه پرته بل هیڅ شی عمر نه سی زیاتولای او د ګناه په وجه انسان د روزي څخه محروم کیدلای سي چي د هغه ارتکاب یې وکړ (یعني هغه ګناه یې وکړل). ابن ماجه

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۱\۳۵، رقم: ۹۰.

**تشریح**: د تقدیر څخه مراد تقدیر معلق دی نه قضاء مبرم چي د بدلون وړ نه وي، نو الله تعالی چي دعاء د کوم تقدیر د بدلولو سبب ګرځولې ده هغه تقدیر معلق دی او دا خبره بذات خود تقدیر الهي ده یعني الله تعالی دا مقدر کړی دی که بنده دعاء وغواړي نو د هغه مصیبت به لیري کړل سي نو د عالم ټول اسباب او وسائل د قضاء او قدر الهي سربېره دا حکم لري لکه څرنګه چي د شفاء تر لاسه کولو لپاره علاج او دواء، یا جنت او دوږخ ته د تللو لپاره د بندګانو اعمال او داسي نور، ځینو حضراتو دا تاویل کړی دی چي د بنده په دعاء او تدبیر کي بوخت کېدل د تقدیر فیصله قبلول اسانه کوي او د قسمت په لیک د هغه زړه مطمئن کوي یعني کله چي بنده په یو مشکل کي ولوېږي یا د یو تکلیف سره په مخامخ کېدو سره په دعاء کولو کي بوخت سي او بیا په پای کي ووینې چي اوس دعاء او تدبیر کار نه کوي او دتقدیر لیکل نه بدلیږي نو هغه د قسمت په وړاندي ولوېږي او پر خپل تقدیر راضي سي ، د هغه نتیجه داسي چي د تقدیر هغه فیصله د هغه لپاره اسانه سي او د هغه د زړه څخه بار لیري سي ، د دې پر خلاف د هغه د تقدیر فیصله که ناڅاپه د هغه مخته راسي او کیدونکې خبره ناڅاپه پر هغه نازله سي چي نه خو هغه ته په دعاء کي د بوختیا موقع تر لاسه سي او نه پر تدبیر باندي د عمل کولو مهلت تر لاسه سي نو د تقدیر هغه فیصله ډېره سخته سي ، په دې اعتبار سره وفرمایل سول چي دعاء تقدیر بدلوي.

شیخ عبدالحق محدث دهلوي رحمه الله فرمایي: زما په نزد د دغه ارشاد مطلب دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذریعه د دعاء تاثیر او د دعاء ارزښت او فضیلت د مبالغې په توګه بیان کړی دی او مراد دادی چي قضا او قدر یو شی نسي بدلولای مګر که یو شی د دې درجې وي چي هغه تقدیر بدل کړي نو هغه به دعاء وي ، په دې اعتبار سره ویل کیږي چي دغه ارشاد د هغه حدیث په ډول دی چي په هغه کي فرمایل سوي دي که چیري یو شي پر تقدیر باندي سبقت وړونکی وي نو هغه بد نظر وي.

د عمر د اوږدوالي څخه مراد خیر او برکت دی او د ژوند ښه کارونه، د کامیابۍ پر لاره او د الله تعالی د رضا پر لاره تلل دي لکه څرنګه چې په مخکې فصل کې په وضاحت سره بیان سوی دی.

د حدیث په آخري برخه کې یو سوال پیدا کیږي، هغه دا چې په دنیا کې د داسې خلکو کثرت دی چې د خپل فسق او فجور او تر دې چې د خپل کفر او شرک سربېره د الله تعالی د نېکو بندګانو او کامل مؤمنانو په مقابله کې ښه خوراک او څښناک کوي او د زیات رزق خاوندان وي، نو بیا ددې خبرې معنی به څه وي چې انسان د خپلو ګناهو په وجه د رزق څخه محروم کیږي ؟ نو ددغه سوال د جواب لپاره ځینو حضراتو دا تاویل کړی دی چې په حدیث کې د رزق څخه مراد د آخرت رزق دی یعني ثواب، او په دې کې شک نسته چې د ګناه او معصیت کول په هغه رزق یعني د آخرت په ثواب کې تاوان او د هغه څخه د محرومۍ مطلب د هغه شیانو څخه محروم کېدل دي چې د هغه څخه پرته د مال او شتمنۍ او د رزق د وسعت سربېره انسان ته طمانیت او خوشحالي او روحاني عظمت نه ورکول کیږي لکه د رضاء الهي حصول، د ژوند بې فکري او په سکون سره تېرېدل، د زړه او دماغ اطمینان د وخت په ښه کارونو کې مصرفول، د رزق طیب او پاک کېدل او د روح او باطن د هرډول خیرنتوب او ظلمت څخه پاک کېدل، دا هغه اوصاف دي چې د انسان ژوند ته د حیات طیبه درجه ورکوي لکه څرنګه چې په قرآن کریم کې فرمایل سوي دي : (من عمل صالحا من ذکر او انثی وهو مؤمن فلنحیینه حیوة طیبة) یعني چا چې نیک کار وکړ که سړی وي یا ښځه او هغه ایمان لري نو موږ به هغه ته ښه ژوند ورکړو.

ددې پر خلاف فاسقان او فاجران چې د هغوئ د ژوند شپه او ورځ د دنیا د حرص او هوس او د ګناه او معصیت د ظلمت څخه ډکه وي د هغوئ د وخت زیاته برخه د مال او شتمنۍ په پیدا کولو کې تیریږي د هغوئ زړه د مال د تاوان او بربادۍ په بېره کې هر وخت متفکر او پریشانه وي او مختلفو خطرو او ندېښنو هغوئ د ژوند د سکون او اطمینان څخه محروم کړي وي، ددې څخه پرته د الله جل جلاله د عبادت او طاعت د نورانیت او د هغه د رحمت څخه محرومي هغوئ په داسې تیارو کې اچولي وي چې هغوئ په ظاهره ډېر خوشحال او د اسبابو د مالک کېدو سربېره یو سخت او مشکل ژوند تېروي لکه چې الله پاک فرمایي : (من اعرض عن ذکري فان له معیشة ضنکا) یعني څوک چې زما د ذکر څخه مخ واړوي نو د هغه لپاره به ژوند تنګ کړل سي.

پر دې باندې ګناه کار مؤمن هم قیاس کیدای سي که څه هم هغه په ظاهري توګه مال او شتمني لري مګر په روحاني او باطني توګه د هغه ژوند سخت خو نه وي مګر که چیري په هغه کې د ایمان رڼا په پوره توګه موجود وي نو د ګناه او معصیت بېره د هغه پر زړه په هر حال خپره

وي او د هغه ګناه په وجه په عذاب کي د اخته کېدو په بېره کي يقينا هغه اخته وي او په خپل دنياوي ژوند کي که هر څومره مطمئن وي مګر هغه د اطمينان او سکون څخه محروم وي.

خلاصه دا چي د رزق مطلب محض په نس ډکولو سره د انسان د زړه اطمينان او سکون، روحاني طمانيت او بشاشت او د ژوند د وختونو بامقصد تېرولو سره هم دی او دغه شيان يوازي هغه بندګانو ته په برخه کيږي کوم چي د صالح عقائدو او پاکو اعمالو حامل وي.

ځيني حضرات وايي چي د ذکر سوي ارشاد تعلق محض د هغه مؤمنانو سره دی چي د نفس په فريب کي په راتلو سره په ګناه او معصيت کي اخته کيږي، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي پر کومو بندګانو باندي د الله ﷻ رحمت متوجه کيږي او هغه غواړي چي هغوئ د ګناه او معصيت څخه پاک له دنيا څخه پورته کړي نو هغوئ په فقر او لوږه کي اخته کوي او د هغوئ هغه فقر او لوږه په دنيا کي د هغوئ د ګناهو کفاره کيږي يا هغوئ په يو داسي مصيبت او پريشاني کي اخته وي چي هغوئ ته خبرداري تر لاسه کيږي او هغوئ د توفيق الهي په وجه د خپلو ګناهو څخه د زړه په صدق سره توبه کوي.

خلاصه دا چي کوم مؤمن ګناه وکړي او د الله تعالی له خوا لطف خفي د هغه شامل حال وي نو هغه د فقر او لوږي يا بل تکليف په ذريعه د هغه ګناه څخه پاکيږي او که خدای مه کړه هغه ددې هم مستحق نه سي چي د الله تعالی لطف او کرم د فقر او لوږي يا بل مصيبت په ذريعه د هغه ګناهونه ختم کړي نو بيا هغه پر خپل حال باندي تر پايه پوري په ګناهو کي اخته وي او په دغه حالت کي له دنيا څخه ولاړ سي او په آخرت کي به سزا تر لاسه کړي، نعوذ باالله من ذالک.

### د مور او پلار سره د نيکۍ ثواب

﴿۴۷۰۹﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلْتُ

د حضرت عائشې ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه په جنت کي داخل سوم

الْجَنَّةَ فَسَمِعْتُ فِيهَا قِرَاءَةً فَقُلْتُ مَنْ هٰذَا قَالُوا حَارِثَةُ بْنُ النُّعْمَانِ كَذٰلِكُمُ

نو هلته ما د قرآن ويلو آواز واوريدئ ما پوښتنه وکړه چي دا څوک دئ، ملائکو راته وويل: حارثه بن نعمان دئ. (د دې په اوريدو سره) د صحابه کرامو په زړه کي دا خيال پيدا سو چي حارثه ته دا درجه څنګه په برخه سوه، رسول الله ﷺ د سبب بيانولو سره وفرمايل: دا ثواب دئ

الْبِرُّ كَذٰلِكُمُ الْبِرُّ وَكَانَ أَبَرَّ النَّاسِ بِأُمِّهِ. رواه في شرح السنة والبيهقي في

شعب الإيمان وفي رواية قال نمت فرأيتني في الجنة بدل دخلت الجنة.

(د مور او پلار سره) د نيکۍ کولو ، دا ثواب دئ (د مور او پلار سره) دنيکۍ کولو او حارثه بن نعمان د مور سره ډير ښه چلن کونکی وو . شرح السنه او بيهقي، او دده په يو روايت کي دي چي نبي کريم ﷺ ويلي دي چي زه ېده سوم نو ځان مي په جنت کي وليدی په بدل د داخليدلو جنت ته.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۷، رقم: ۳۴۱۸، والبيهقي في شعب الايمان ۶\۱۸۴، رقم: ۷۸۵۱.

## د پلار رضا او ناراضگي

﴿۴۷۱۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رِضَى الرَّبِّ فِي رِضَى الْوَالِدِ وَسَخَطُ الرَّبِّ فِي سَخَطِ الْوَالِدِ. رواه الترمذي.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله جل جلاله رضا مندي د پلار په رضامندۍ کي ده او د الله جل جلاله ناراضگي د پلار په ناراضگۍ کي ده ، ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۷۴، رقم: ۱۸۹۹.

**تشريح**: دغه حکم د مور هم دی بلکه مور ددې زياته وړ ده ، خلاصه دا که چيري تاسو د خپل خدمت او طاعت او ښه چلن په ذريعه مور او پلار خوشحاله وساتئ نو ستاسو پروردګار به هم ستاسو څخه خوشحاله وي او که تاسو د نافرمانۍ او سرکښۍ په ذريعه مور او پلار ناراضه کړئ نو ستاسو پروردګار به هم ستاسو څخه ناراضه وي .

## پلار د جنت د دروازو څخه دئ

﴿۴۷۱۱﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ أَنَّ رَجُلًا أَتَاهُ فَقَالَ إِنَّ لِيَ امْرَأَةً وَإِنَّ أُمِّي تَأْمُرُنِي

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه ته يو سړی راغلئ او وه يې ويل زما مور غواړي

بِطَلَاقِهَا فقَالَ له أَبُو الدَّرْدَاءِ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

چي زه خپل ښځي ته طلاق ورکړم؟ ابو درداء هغه ته وويل : ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

الْوَالِدُ أَوْسَطُ أَبْوَابِ الْجَنَّةِ فَإِنْ شِئْتَ فَحَافِظْ عَلَى الْبَابِ أَوْ ضَيِّعْ. رواه

الترمذي وابن ماجة.

چي پلار د جنت د غوره دروازو څخه دئ که ته غواړي ددې دروازې ساتنه وکړې او که غواړې دا دروازه ضائع کړې. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۲۷۵، رقم: ۱۹۰۰، وابن ماجه ۱\۶۷۵، رقم: ۲۰۸۹.

**تشريح:** حضرت ابودرداء ﷛ د حديث بيانولو څخه وروسته د خپل دغه قول (نو تاته اختيار دی..الخ) په ذريعه پر هغه سړي څرګنده کړه که چيري ته د خپل مور د خواهش سره سم خپلي ښځي ته طلاق ورکړې نو ددې مطلب به دا وي چي تا دهغې د رضا تر لاسه کولو لپاره په جنت کي د داخلېدو لپاره غوره دروازه اختيار کړې ده کنه نو ته به ددغه دروازې پرېښودونکی ګڼل کېږې.

د رسول الله ﷺ په ارشاد کي که څه هم د پلار ذکر دی مګر ابودرداء ﷛ دا مسئله اخذ کړه چي کله د پلار په حق کي داسي فرمايل سوي دي نو مور خو به په درجه اولی ددغه ارشاد محمول ګرځول کيږي يا دا چي لفظ د والد څخه يوازي پلار مراد نه دی بلکه جنس يعني پيدا کېدونکی مراد دی او دا خبره زياته مناسب ده ځکه چي د پيدا کونکي په مفهوم کي پلار او مور دواړه داخل دي.

## د مور او پلار سره ښه کول

﴿۴۷۱۲﴾: وَعَنْ بَهْزِ بْنِ حَكِيمٍ عَنْ اَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ مَنْ أَبَرُّ قَالَ أُمَّكَ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ أُمَّكَ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ أُمَّكَ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ مَنْ قَالَ ثُمَّ أَبَاكَ ثُمَّ الْأَقْرَبَ فَالْأَقْرَبَ. رواه الترمذي وابوداؤد.

حضرت بهز بن حكيم ﷛ د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي ما وويل: اې دالله رسوله! زه د چا سره نيکي وکړم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د خپلي مور سره، ما وويل: بيا د چا سره؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د خپلي مور سره، ما بيا پوښتنه وکړه بيا د چا سره؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د خپلي مور سره، ما بيا پوښتنه وکړه: بيا د چا سره؟ رسول الله ﷺ وفرمايل د خپل پلار سره، بيا د نژدې خپلوانو سره بيا هغو ته د نژدې خپلوانو سره. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داود ۵\۳۵۱، رقم: ۵۱۳۹، والترمذي ۴\۲۷۳، رقم: ۱۸۹۷.

﴿۴۷۱۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ الرَّحْمَنِ بْنِ عَوْفٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ قَالَ اللهُ تبارك وتعالى انَا اللهُ وَ أَنَا الرَّحْمَنُ خَلَقْتُ الرَّحِمَ وَ شَقَقْتُ لَهَا مِنْ اسْمِي فَمَنْ وَصَلَهَا وَصَلْتُهُ وَمَنْ قَطَعَهَا بَتَتُّهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عبدالرحمن بن عوف رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي الله تعالی فرمايي : زه الله يم ، رحمان يم ما رحم (خپلوي) پيدا کړه او رحم مي د خپل رحمان نوم څخه را وايستئ ، کوم څوک چي خپلوي يو ځای کوي هغه به د خپل رحمت سره يو ځای کړم او څوک چي خپلوي ماتوي هغه به د خپل رحمت څخه ليري کړم . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۲\۳۲۲، رقم: ۱۶۹۴.

**د لغاتو حل**: بتته: ای قطعته من رحمتي الخاصة.

**تشريح**: زه الله يم : يعني زه واجب الوجود يم چي زما ذات د خپل وجود او خپل حکم او فيصلې په نفاذ کي د چا محتاج نه دی ، دغه جمله په اصل کي د مخکي ارشاد د ارزښت څرګندولو لپاره د تمهيد په توګه ده او په هغه تمهيد کي يې مخکي د اسم خاص ذکر وکړ او بيا د خپل صفت رحمان ذکر يې وکړ چي د هغه لفظي ماده اشتقاق هغه ده کوم چي د رحم ده .

﴿۴۷۱۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ أَبِي أَوْفَى قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لاَ تَنْزِلُ الرَّحْمَةَ عَلَى قَوْمٍ فِيهِمْ قَاطِعُ رَحِمٍ .رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عبدالله بن ابي اوفى رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي فرمايل يې : پر هغه قوم د الله تعالی رحمت نه نازليږي چي په هغوئ کي خپلوي ماتونکي وي . بيهقي په شعب الايمان کي .

**تخريج**: لم نجده عند البيهقي.

**تشريح**: د قوم څخه مراد ټول قوم نه دی بلکه محض هغه خلک مراد دي چي د قرابت ماتونکي مرسته او ملګرتيا کوي يا هغوئ د خپلو قريبانو سره د بد چلن او قرابت ماتولو څخه منع نه

کوي . دا هم کیدای سي چي د رحمت څخه باران مراد وي یعني په کومه سیمه کي چي د قرابت ماتونکی وي نو د قرابت ماتولو په وجه هغه قوم یا سیمه د باران څخه محروم کیږي .

## خطرناکه گناه

﴿۴۷۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا مِنْ ذَنْبٍ أَحرى أَنْ يُعَجِّلَ اللّٰهُ لِصَاحِبِهِ الْعُقُوبَةَ فِي الدُّنْيَا مَعَ مَا يَدَّخِرُ لَهُ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْبَغْيِ وَقَطِيعَةِ الرَّحِمِ. رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابوبکرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هیڅ گناه ددې ور نه ده چي الله تعالی د هغه کونکي ته ډیر ژر په دنیا کي د هغه بدله ورکړي او په آخرت کي هم عذاب د هغه لپاره جمع کړي مگر دوه گناهونه ددې ور دي او هغه دادي چي ظلم (بغاوت) کول او دویم د خپلوۍ پریکول . ترمذي او ابوداؤد .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۷۳، رقم: ۲۵۱۱، سنن ابي داود ۵\ ۲۰۸، رقم: ۴۹۰۲.

**تشریح**: ددغه حدیث څخه څرگندیږي چي د خپل هیواد د مشر او حکومت پر خلاف سرکښي کول او د قرابت ماتول یعني د خپلو قریبانو سره بد چلن کول او دهغوئ د حقوقو نه ادا کول ډېره سخته گناه ده ، فرمایل سوي دي چي ددغه دواړو گناهو کونکي ته محض په آخرت کي عذاب نه ورکول کیږي بلکه الله تعالی به هغوئ ته په سزا ورکولو کي تلوار کوي په دې توگه چي هغوئ به په دنیا کي هم د خپلو گناهو سزا خوري ، یعني داسي خلک نه په دنیا کي ارام تر لاسه کولای سي او نه په آخرت کي، دلته به هم سزا تر لاسه کوي که په هر صورت کي وي او هلته به هم په عذاب کي اخته وي ځکه چي دغه دواړي گناوي داسي دي چي د هغو اثرات یوازي دیني ژوند ته تاوان نه رسوي بلکه په دنیا کي هم خراب نتائج مرتب کوي ، د حکومت پر خلاف په سرکښۍ کولو سره د ټول هیواد نظم او نظام بربادیږي ، ټول قوم په مختلفو مصیبتو کي اخته کیږي او تر ټولو لوی تاوان دا وي چي قومي او ملي توانایي د ناڅاپه انتشار ښکار کیږي چي په هغه سره دښمن ته د غالب کېدو موقع تر لاسه کیږي، همدارنگه د قرابت په ماتولو سره په خپلو کي نفرت او عداوت پیدا کیږي او په زړو کي خیرنتوب پیدا کیږي ،

ددې نتیجه به دا وي چي هغه قریبانو چي په خپلو کي د مینې په ذریعه د یو بل په غم او درد کي اخته کېدل نو هغوئ د جگړو او انتشار په وجه په سخت جسماني او روحاني پریشانیو کي

اخته کيږي ، ددغه ګناهو کونکو ته په دنيا کي زيات وخت نه ورکول کيږي بلکه د الله تعالى له خوا د هغوئ د سزا فيصله ژر صادريږي چي هغوئ مخکي خو په دنيا کي د خپلو کړو نو سزا تر لاسه کوي او د نورو لپاره د عبرت سامان جوړيږي او بيا په آخرت کي هم په عذاب کي اخته کيږي او دا خبره څرګنده ده چي په دنيا کي هم سزا تر لاسه کول او په آخرت کي هم په عذاب کي اخته کېدل محض ددغه ګناهو سره خاص نه دي ، کېداى سي چي نور ګناهونه هم داسي وي ، مګر په دې کي شک نسته چي دغه دواړه ګناهونه ډېر سخت دي .

﴿۴۷۱۶﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنَّانٌ وَلَا عَاقٌّ وَلَا مُدْمِنُ خَمْرٍ . رواه النسائي والدارمي.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په جنت کي به هغه څوک نه داخليږي چي زيات احسان اچونکى وي او نه هغه سړى چي د مور او پلار نافرماني کونکى وي او نه شرابي . نسائي او دارمي .

**تخريج**: سنن النسائي ۵\ ۸۰، رقم: ۲۵۶۲، والدارمي ۲\ ۱۵۳، رقم: ۲۰۹۴.

**تشريح**: منان په اصل کي د منة څخه مشتق دى چي معنى يې داده : چا ته چي څه ورکړل سي يا د چا سره چي نيکي وکړل سي او بيا پر هغه احسان واچول سي ، دغه عادت ډېر بد دى ، په قرآن کريم کي راغلي دي: (لا تبطلوا صدقاتكم بالمن والاذى) ، په احسان اچولو او تکليف ورکولو سره خپل خيراتونه مه ضائع کوئ .

ځينو حضراتو د منان لفظ په اړه ويلي دي چي دغه لفظ د من څخه مشتق دى چي د هغه معنى د پرېکولو ده نو دمنان معنى دا سوه چي هغه سړى چي قرابت مات کړي .

د عاق څخه مراد هغه سړى دى چي مور او پلار او نورو قريبانو ته بېله يو شرعي وجه تکليف ورسوي ، يا د عاق اطلاق په خاصه توګه پر هغه چا باندي کيږي چي مور او پلار يا د دواړو څخه يوه ته تکليف ورکړي .

په جنت کي د نه داخلېدو څخه مراد دادى چي داسي خلک به د الله تعالى د هغه نيک او صالحو بندګانو سره په جنت کي نه داخليږي کوم چي د آخرت د حساب او کتاب په ورځ خلاصون تر لاسه کونکي وي او بېله بنديزه به په جنت کي داخل کړل سي، يا دا مراد دى چي دغه خلک به د عذاب څخه پرته په جنت کي نه داخليږي يعني مخکي به د خپلو ګناهو سزا

خوري او بیا به جنت ته داخلیږي مګر که الله تعالی وغواړي نو بیله عذاب به یې په جنت کي داخل کړي ځکه چي هغه دا وعده کړې ده چي : (و یغفر ما دون ذلک لمن یشاء) او ددې څخه پرته چا ته چي وغواړي بخښي یې .

## د خپلوانو سره ښه چلن

﴿۴۷۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعَلَّمُوا

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : خپل نسبونه تاسو یوازي

مِنْ أَنْسَابِكُمْ مَا تَصِلُونَ بِهِ أَرْحَامَكُمْ فَإِنَّ صِلَةَ الرَّحِمِ مَحَبَّةٌ فِي الْأَهْلِ

دومره زده کړئ چي په هغه سره تاسو د خپل خپلوانو سره صله رحمي وکړلای سئ ځکه چي د خپلوانو سره صله رحمي کول په

مَثْرَاةٌ فِي الْمَالِ مَنْسَأَةٌ فِي الْأَثَرِ . رواه الترمذي وقال هَذَا حَدِيثٌ غَرِيبٌ .

خپلوانو کي د مینې باعث، په مال کي د زیاتوب او برکت سبب او د عمر د اوږدوالي سبب دئ . ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ .

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۰۹، رقم: ۱۹۷۹.

**د لغاتو حل**: منساة: ای تاخیر . (مُختلہ)

**تشریح**: مطلب دادی چي تاسو د خپل پلار، نیکونو، میندو، اناګانو او د هغوئ د اولاد او نورو قریبانو سره قرابت کوئ ، دهغوئ په نومو ځان خبر کړئ او دهغوئ د حالاتو څخه خبردار اوسئ ، ذوي الارحام و پیژنئ چي دهغوئ سره ښه چلن کول ستاسو ذمه داري ده او دا پیژندل ضروري او ګټور دي .

## خاله د مور په درجه کي

﴿۴۷۱۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَجُلًا أَتَى النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنِّي أَصَبْتُ ذَنْبًا عَظِيمًا فَهَلْ لِي من تَوْبَةٌ قَالَ هَلْ لَكَ مِنْ أُمٍّ قَالَ لَا قَالَ هَلْ لَكَ مِنْ خَالَةٍ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَبِرَّهَا . رواه الترمذي .

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روایت دئ چي یو سړي د نبي کریم ﷺ په خدمت کي وویل چي اې دالله رسوله ! ما یوه لویه ګناه کړې ده ایا زما توبه قبلیدلای سي ؟ رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه ایا ستا مور ژوندۍ ده ؟ هغه وویل :یا، رسول الله ﷺ بیا پوښتنه وکړه ایا ستا خاله ژوندۍ ده ؟ هغه وویل: هو، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د هغې سره ښه چلن کوه . ترمذي.

**تخریج**: لم نجده عند الترمذي.

**تشریح**: ددغه حدیث څخه څرګنده سوه چي د قریبانو سره ښه چلن د ګناهو د کفارې ذریعه ده که څه هم هغه لوی ګناهونه وي، دا هم کیدای سي چي رسول الله ﷺ ته د وحي په ذریعه ښودل سوي وي چي ښه چلن کول د کبیره ګناهو کفاره کېدل د هغه چا سره خاص دي نو رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل چي ته د خپلي خاله سره ښه چلن کوه نو ستا ګناه به وبخښل سي یا دا چي د هغه سړي څخه کومه ګناه سوې وه هغه کبیره نه وه بلکه په حقیقت کي صغیره ګناه وه مګر د هغه سړي د خپل ټینګ ایمان او احتیاط په وجه هغه ګناه لویه وګڼل ، ددغه حدیث څخه دا هم معلومه سوه چي خاله د مور درجه لري .

## د مور او پلار دوفات وروسته نیکي

﴿۴۷۱۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ اُسَيْدٍ السَّاعِدِيِّ قَالَ بَيْنَا نَحْنُ عِنْدَ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

د حضرت ابو اسید ساعدي ﷺ څخه روایت دئ چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي د

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذْ جَاءَهُ رَجُلٌ مِنْ بَنِي سَلَمَةَ فَقَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ هَلْ بَقِيَ مِنْ بِرِّ

قبیله بنو سلمه یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او عرض یې وکړ اې دالله رسوله ! د مور او پلار سره د ښه چلن کولو زما لپاره څه پاته دي

أَبَوَيَّ شَيْءٌ أَبَرُّهُمَا بِهِ بَعْدَ مَوْتِهِمَا قَالَ نَعَمْ الصَّلَاةُ عَلَيْهِمَا وَالِاسْتِغْفَارُ لَهُمَا

چي زه یې د وفات څخه وروسته د هغوئ سره وکړم ؟ ایا د هغوئ د وفات څخه وروسته یو داسي صورت سته چي د هغوئ سره ښه چلن وکړم ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل هو، د هغوئ لپاره دعاء کوه ، استغفار کوه

وَإِنْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا وَصِلَةُ الرَّحِمِ الَّتِي لَا تُوصَلُ إِلَّا بِهِمَا وَإِكْرَامُ

صَدِيقِهِمَا. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

او د هغوئ وصيت پوره كوه او د هغوئ د خپلوانو سره ښه چلن كوه چي د هغوئ د خپلوانو سره ښه چلن كول د هغوئ د خپلوی په سبب وي او د مور او پلار د دوستانو عزت كوه . ابوداؤد او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۲، رقم: ۵۱۴۲، وابن ماجه ۲\۱۲۰۸، رقم: ۳۶۶۴.

## د رضعي مور بي بي حليمې احترام

﴿۴۷۲۰﴾: وَعَنْ اَبِي الطُّفَيْلِ قَالَ رَأَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقْسِمُ

د حضرت ابو طفيل رضی الله عنه څخه روايت دئ چي په جعرانه نامي ځای كي ما رسول الله ﷺ په

لَحْمًا بِالْجِعِرَّانَةِ إِذْ أَقْبَلَتْ امْرَأَةٌ حَتَّى دَنَتْ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

غوښو ويشلو وليدئ ، ناڅاپه يوه ښځه راغلل او رسول الله ﷺ ته نژدې ورغلل ، رسول الله ﷺ

فَبَسَطَ لَهَا رِدَاءَهُ فَجَلَسَتْ عَلَيْهِ فَقُلْتُ مَنْ هِيَ فَقَالُوا هي أُمُّهُ الَّتِي أَرْضَعَتْهُ.

رواه ابوداؤد

د هغې لپاره څادر وغوړوئ او پر هغه څادر يې كښينول ، ما پوښتنه وكړه : دا څوک ده ؟ خلكو راته وويل : دا د رسول الله ﷺ هغه مور بي بي ده چي رسول الله ﷺ ته يې په وړكتوب كي تی وركړی وو . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۵۳، رقم: ۵۱۴۴.

**تشريح**: په حديث كي چي د كومي ښځي يادونه سوې ده هغه حليمه بي بي ده چي هغې ته د رسول الله ﷺ د رضاعي (تی وركونكي) مور شرف حاصل دی، رسول الله ﷺ ته ددغه بي بي څخه پرته بلي بي بي په پيل كي تر څو ورځو پوري تی وركړی وو چي د هغې نوم ثوبيه وو چي د ابولهب مينځه وه ، د دواړو د اسلام په اړه د علماؤ اختلاف دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### درې كسان په غار كي

﴿۴۷۲۱﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَمَا ثَلَاثَةُ نَفَرٍ

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دري کسان روان وه چي

يَتَمَاشَوْنَ أَخَذَهُمُ الْمَطَرُ فَمَالُوا إِلَى غَارٍ فِي الْجَبَلِ فَانْحَطَّتْ عَلَى فَمِ غَارِهِمْ

باران ونیول ، هغوئ د یو غره په غار ننوتل ، په دغه وخت کي د غار خولې ته

صَخْرَةٌ مِنَ الْجَبَلِ فَأَطْبَقَتْ عَلَيْهِمْ فَقَالَ بَعْضُهُمْ لِبَعْضٍ انْظُرُوا أَعْمَالًا عَمِلْتُمُوهَا

یوه لویه ډبره راغلل چي د غار خوله یې بنده کړه، درې سره کسانو یو بل ته وویل پر خپلو نیکو عملونو نظر واچوئ کوم چي مو کړي وي

لِلَّهِ صَالِحَةً فَادْعُوا اللَّهَ بِهَا لَعَلَّهُ يُفَرِّجُهَا فَقَالَ أَحَدُهُمْ اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَ لِي وَالِدَانِ

خاص د الله جل جلاله لپاره او د هغه عمل په واسطه د الله جل جلاله څخه دعاء وغواړئ، امید دئ چي الله تعالی دا ډبره زموږ څخه لیري کړي نو په هغوئ کي اول نفر وویل : اې الله ! زما مور او پلار

شَيْخَانِ كَبِيرَانِ وَلِي صِبْيَةٌ صِغَارٌ كُنْتُ أَرْعَى عَلَيْهِمْ فَإِذَا رُحْتُ عَلَيْهِمْ فَحَلَبْتُ

ډیر سپین ږیري وه او زما یو څو کوچنیان بچیان وه ما به پسونه پیول چي د هغو شیدې په دوئ تړلو وچښلم کله چي به ماښام سو نو کورته به راغلم شیدې به مي ولوېشلې

بَدَأْتُ بِوَالِدَيَّ أَسْقِيهِمَا قَبْلَ وَلَدِي وَإِنَّهُ قَدْ نَاءَ بِيَ الشَّجَرُ فَمَا أَتَيْتُ حَتَّى

لومړی به مي مور او پلار ته ورکړې بیا خپلو کوچنیانو ته، یوه ورځ داسي وسوه چي د پسو په پیولو پیولو سره زه ډیر لیري ولاړم او پر وخت کورته نه راورسیدم تر څو چي

أَمْسَيْتُ فَوَجَدْتُهُمَا قَدْ نَامَا فَحَلَبْتُ كَمَا كُنْتُ أَحْلُبُ فَجِئْتُ بِالْحِلَابِ فَقُمْتُ

ماښام سو (کله چي کورته راغلم) نو وینم چي مور او پلار مي دواړه بیده سوي دي ما د مخکي په ډول شیدې ولوېشلې بیا د شیدو لوښی مي واخیست

عِنْدَ رُءُوسِهِمَا أَكْرَهُ أَنْ أُوقِظَهُمَا وَأَكْرَهُ أَنْ أَبْدَأَ بِالصِّبْيَةِ قَبْلَهُمَا وَالصِّبْيَةُ

مور او پلار ته ورغلم د هغوئ سرته ودریدم د هغوئ راویښول راته بد معلوم سول او دا هم راته بد ښکاریدل چي کوچنیانو ته د مور او پلار څخه مخکي شیدې ورکړم کوچنیان

يَتَضَاغَوْنَ عِنْدَ قَدَمَيَّ فَلَمْ يَزَلْ ذَلِكَ دَأْبِي وَدَأْبُهُمْ حَتَّى طَلَعَ الْفَجْرُ فَإِنْ كُنْتَ

زما د پښو سره دلوږي څخه لغړېدل او زه شيدې په لاس کي ولاړ وم تر دې چي سهار سو ،

تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا فُرْجَةً نَرَى مِنْهَا السَّمَاءَ فَفَرَجَ

اې الله تا ته معلومه ده که ما دا کار خاص ستا د رضا لپاره کړی وي نو دا ډبره دومره ليري کړې چي موږ آسمان وليدلای سو ، نو الله پاک هغه ډبره د غار د خولې څخه دومره آخوا کړل

اللهُ لَهُمْ فُرْجَةً الله لهم يَرَوْنَ مِنْهَا السَّمَاءَ وَقَالَ الثَّانِي اللَّهُمَّ إِنَّهُ كَانَتْ لِي ابْنَةُ

چي هغوئ اسمان ليدلای سو (۲) : دويم سړي وويل : اې الله ! زما د عمه يوه لور وه

عَمٍّ أُحِبُّهَا كَأَشَدِّ مَا يُحِبُّ الرِّجَالُ النِّسَاءَ فَطَلَبْتُ إِلَيْهَا نَفْسَهَا فَأَبَتْ حَتَّى آتِيَهَا

زما د هغې سره ډېره مينه وه داسي مينه لکه څرنگه چي د سړي د ښځي سره کيدلای سي ما هغې ته د جماع خواهش څرګند کړ هغې وويل تر څو پوري چي

بِمِائَةِ دِينَارٍ فَسَعَيْتُ حَتَّى جَمَعْتُ مِائَةَ دِينَارٍ فَلَقِيتُهَا بِهَا فَلَمَّا قَعَدْتُ بَيْنَ

سل ديناره را نه کړې داسي نه سي کيدلای ، ما کوښښ وکړ سل ديناره مي جمع کړل او د هغو دينارو سره راورسيدم ، کله چي زه کښينستم

رِجْلَيْهَا قَالَتْ يَا عَبْدَ اللهِ اتَّقِ اللهَ وَلَا تَفْتَحْ الْخَاتَمَ فَقُمْتُ عَنْهَا اللَّهُمَّ فَإِنْ

د هغې د دواړو پښو په منځ کي (يعني د جماع لپاره) نو هغې را ته وويل اې د الله ﷻ بنده د الله څخه و بيرېږه او مُهر مه ماتوه (يعني پيغلتوب مي مه ضائع کوه) زه د الله ﷻ د بيري څخه سمدستي ولاړ سوم (يعني د هغې سره مي جماع ونه کړل) اې الله ! که چيري

كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي قَدْ فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ لَنَا مِنْهَا فَفَرَجَ لَهُمْ فُرْجَةً

ستا په نزد زما دا کار خاص ستا د رضا لپاره وو نو دا ډبره يو څه ليري کړې ، نو الله تعالی هغه ډبره لږ نوره هم ليري کړه .

وَقَالَ الْآخَرُ اللَّهُمَّ إِنِّي كُنْتُ اسْتَأْجَرْتُ أَجِيرًا بِفَرَقِ أَرُزٍّ فَلَمَّا قَضَى عَمَلَهُ قَالَ

(۳) دریم کس وویل اې الله! ما یو سړی د یوې پیمانې وریجو په بدله کي په مزدورۍ ولګوئ، کله چي هغه سړي خپل کار ختم کړ ما مزدوري ورکول

أَعْطِنِي حَقِّي فَعَرَضْتُ عَلَيْهِ حَقَّهُ فَتَرَكَهُ وَرَغِبَ عَنْهُ فَلَمْ أَزَلْ أَزْرَعُهُ حَتَّى جَمَعْتُ

خو هغه پرېښودل او بیا هغه د خپل حق اخیستو په لور توجه ونه کړل ما د هغه د مزدورۍ په وریجو سره کښت پیل کړ تر څو چي د هغه د وریجو په قیمت سره

مِنْهُ بَقَرًا وَرَاعِيهَا فَجَاءَنِي فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تَظْلِمْنِي وَأَعْطِنِي حَقِّي فَقُلْتُ اذْهَبْ

ما ډیر غوایان او غوبه (د غوایانو شپانه) جمع کړل ددې څخه وروسته هغه مزدور ما ته راغلئ او وه یې ویل: د الله ﷻ څخه و بیرېږه پر ما ظلم مه کوه زما حق ما ته راکړه ما ورته وویل:

إِلَى ذَلِكَ الْبَقَرِ وَرَاعِيهَا فَقَالَ اتَّقِ اللَّهَ وَلَا تَهْزَأْ بِي فَقُلْتُ إِنِّي لَا أَهْزَأُ بِكَ فَخُذْ

دا غوایان او غوبه (د غوایانو چوپان) بوځه دا ستا حق دئ، هغه راته وویل د الله ﷻ څخه و بیرېږه او مسخرې راسره مه کوه، ما ورته وویل زه مسخرې نه درسره کوم

ذَلِكَ الْبَقَرَ وَرَاعِيهَا فَأَخَذَهُ فَانْطَلَقَ بِهَا فَإِنْ كُنْتَ تَعْلَمُ أَنِّي فَعَلْتُ ذَلِكَ ابْتِغَاءَ وَجْهِكَ فَافْرُجْ مَا بَقِيَ فَفَرَجَ اللَّهُ عَنْهُمْ. متفق عليه.

دا غوایان او غوبه د ځان سره بوځه، هغه ټول یو ځای کړل او د ځان سره یې بوتلل، اې الله ﷻ! زما دا عمل که ستا په نزد ستا د رضا لپاره وو نو دا ډبره لیري کړې نو الله تعالی هغه ډبره لیري کړه او لاره ورته خلاصه سوه. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٠٥-٥٠٦، رقم: ٣٤٦٥، ومسلم ٤\٢٠٩٩، رقم: ١٠٠- ٢٧٤٣.

**د لغاتو حل**: ناي بي الشجر: اى بعد بي طلب المرعى. يتضاغون: اي يضجون ويصيحون من الجوع. الفرق: مكيال يسع ستة عشر رطلا.

**تشريح**: کله چي هغه زوی زما په پښو کي ولغړېدل ...الخ: ددې څخه معلومېږي چي دغه پېښه د کوم قوم سره متعلق وه د هغوئ په شریعت کي د مور او پلار حق د اولاد پر نفقې او حق باندي مقدم وو ځکه نو هغه سړي خپل مور او پلار ته د شیدو ورکولو څخه مخکي خپلو بچیانو ته شیدې ورکول خوښ نه کړل حال دا چي هغوئ د لوږي څخه ژړل مګر د ځینو حضراتو د قول

سره سم کيدای سي چي هغه سړي خپلو کوچنيانو ته د ضرورت په اندازه شيدې ورکړي وي مګر هغوئ په دغه اندازه ښېدو مطمئن سوي نه وي او د نورو ښېدو ښېنلو لپاره يې ژړل.

فرق، په مدينه منوره کي د يو پيمانې نوم دی چي په هغه کي شپاړس رطل يعني تقريبا اته سيره غله راځي، دغه پيمانه به په عامه توګه د غلې او نورو شيانو د اندازه کولو لپاره استعمالېدل، د غويانو د خادمانو څخه مراد هغه غلامان دي چي د کرني، د څارويو د څرولو او ساتني باندي مامور وه، په حديث کي د هغه وريجو د کښت څخه د تر لاسه کيدونکي مال په توګه يوازي د غوايانو او خادمانو ذکر د اکثر او اغلب په توګه دی چي هغه سړي وريجي په خپل کښت کي کرلو سره ډېر څه تر لاسه کړه تر دې چي په هغه سره ډېر مال جمع سو لکه غويان، او ښان، پسونه او داسي نور.

ددغه حديث څخه مختلف مسائل اخذ کيږي، يوه دا خبره معلومه سوه چي د سخت مصيبت په وخت کي د خپل نېک عمل وسيله جوړول او د الله ﷻ څخه غوښتل مستحب دي لکه څرنګه چي الله تعالى دهغه درو کسانو دعاء قبوله کړه او د رسول الله ﷺ دغه پېښه د مدح، تعريف او فضيلت په توګه د صحابه کرامو په مخکي بيانول ددې دليل دی، او که چيري دا مستحب نه وي نو ددې د جائز کېدو هيڅ شکه او شبه نسته.

دوهمه خبره دا معلومه سوه چي د مور او پلار سره ښه چلن کول او هغوئ ته پر اولاد باندي ترجيح ورکول، هغوئ ته د تکليف ورکولو څخه ځان ساتل او په هر صورت کي د هغوئ د ارام او سکون خيال ساتل لويه خبره ده. دريمه خبره دا معلومه سوه چي کوم څوک بېده وي او هغه سړی د احترام او تعظيم وړ وي نو د هغه د خوب څخه راپورته کول مکروه دي، پرته د هغه صورت څخه کله چي هغه لمونځ نه وي کړی او د فرض لمانځه وخت ختميږي.

څلورمه خبره دا معلومه سوه چي د خوب راحت د خوراک او څښاک څخه زيات خوندور دی چي دخوب خوند د لوږي په حالت کي هم غالبه وي.

پنځمه خبره دا معلومه سوه چي عفت او د نفس د حرامو کارو څخه ساتل په خاصه توګه په هغه صورت کي کله چي هيڅ ډول خنډ نه وي ډېره غوره خبره ده او د انساني کردار د عظمت دليل دی، د نفس خواهش په خاصه توګه جنسي خواهش چي د نورو ټولو خواهشاتو په مقابله کي ډېر زيات غالب او سرکښ دی چي انسان د سختو حالاتو سره مخامخ کوي که چيري يو سړی د هغه په مخکي کي بې بسه سي نو عقل او د حرام او حلال په مينځ کي د تميز کولو صلاحيت ختميږي نو دجنسي خواهش دومره سختي غلبې په صورت کي چي د پوره کولو په

لاره كي خندل هم نه وي د يو سړي پر عين موقع باندي نفس وژل او د حرام كار څخه منع كېدل د يو مثالي عظمت مظهر دى .

شپږمه خبره دا معلومه سوه چي د بل چا په مال كي د هغه د اجازې څخه پرته تصرف كول جائز دى ، په شرط ددې چي وروسته هغه ته اجازه وركړل سي لكه څرنګه چي د امام ابو حنيفة رحمة الله عليه مذهب دى چي د فضولي تصرف جائز كيږي او دغه جواز د مالک پر اجازې موقوف دى كه چيري مالک اجازه وركړي نو هغه تصرف نافذ العمل ګرځي .

اوومه خبره دا معلومه سوه چي نېک عهد او اقرار ، د امانت ادا كول او ښه معامله كول نه يوازي دا چي غوره شى دى بلكه د انسان د آفاتو او مصيبتو څخه د خلاصون باعث دى .

اتمه خبره دا معلومه سوه چي كله بنده په يو مصيبت او آفت كي اخته سي نو د هغه لپاره دعاء كول غوره دي ځكه چي هغه دعاء قبليږي او بنده ته د هغه آفت او مصيبت څخه د خلاصون ذريعه جوړيږي .

نهمه خبره دا معلومه سوه چي د الله تعالى د نېكو او صالحو بندګانو په ذريعه د داسي شيانو ظاهرېدل چي د عام انساني عادت خلاف وي و هغه ته كرامات ويل كيږي، پر حق دي او د كراماتو په صداقت كي څه شبه كول نه دي پكار لكه څرنګه چي د اهل سنت والجماعت مذهب دى .

## جنت د مور او پلار تر قدمو لاندي

﴿۴۷۲۲﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ بْنِ جَاهِمَةَ اَنَّ جَاهِمَةَ جَاءَ إِلَى النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د معاويه بن جاهمه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي جاهمه د رسول الله ﷺ په خدمت كي وويل: اې

وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَدْتُ الْغَزْوَ وقد جئت أَسْتَشِيرُكَ فَقَالَ هَلْ لَكَ

دالله رسوله ! زما جهاد ته د تللو اراده ده زه ستاسو څخه د مشورې اخيستلو لپاره راغلى يم ، رسول الله ﷺ پوښتنه وكړه ايا ستا

مِنْ أُمٍّ قَالَ نَعَمْ فَقَالَ الْزَمْهَا فَإِنَّ الْجَنَّةَ عِنْدَ رِجْلِهَا. رواه احمد والنسائي

مور سته ؟ (يعني ژوندى ده) هغه وويل: هو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل د خپل مور خدمت كوه جنت د مور تر قدمو لاندي دئ . احمد ، بيهقي او نسائي .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳\۴۲۹، والنسائي ۶\۱۱، رقم: ۳۱۰۴، والبيهقي في الشعب ۶\۱۷۸،

**تشريح:** جنت د مور په قدمو كي دى: مطلب دادى چي ته جهاد ته د تللو پر ځاى د مور په قدمو كي په پرېوتلو سره د هغې اطاعت او خدمت كول زيات ضروري وګڼه ځكه چي دمور اطاعت او خدمت جنت ته د تللو ذريعه ده ، يعني ددغه جملې په ذريعه د هغه تواضع، انكسارۍ او عاجزۍ بيانول مقصد دي چي د هغه حكم اولاد ته وركړل سوى دى لكه څرنګه چي د الله تعالى ارشاد دى : (وحفض لهما جناح الذل من الرحمة) : او د مور او پلار په مخكي د شفقت څخه په عاجزۍ سر كښته كړه .

## د پلار د حكم احترام كوه

﴿۴۷۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ كَانَتْ تَحْتِي امْرَأَةٌ أُحِبُّهَا وَكَانَ عُمَرُ يَكْرَهُهَا

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زما په نكاح كي يوه ښځه وه چي زما ورسره ډيره مينه وه او زما پلار حضرت عمر رضي الله عنه به د هغې څخه نفرت كوئ ،

فَقَالَ لِي طَلِّقْهَا فَأَبَيْتُ فَأَتَى عُمَرُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَذَكَرَ ذَلِكَ لَهُ فَقَالَ لِي رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ طَلِّقْهَا. رواه الترمذي وابوداؤد.

يوه ورځ زما پلار راته وويل: ته دې ښځي ته طلاق وركړه ، ما انكار وكړ ، حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخكي پېښه بيان كړه ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: دې ښځي ته طلاق وركړه . ترمذي او ابوداؤد

**تخريج:** سنن الترمذي ۳\ ۴۹۴، رقم: ۱۱۸۹، وابوداود ۵\ ۳۵۰، رقم: ۵۱۳۸.

**تشريح:** د رسول الله صلى الله عليه وسلم ، ابن عمر رضي الله عنه ته دا فرمايل چي هغه ښځي ته طلاق وركړه ، دغه وينا يا خو د استحباب په توګه وه يا كيداى سي چي هغه ښځي ته د طلاق وركولو يو بل شرعي عذر هم وو چي د هغه په وجه ابن عمر رضي الله عنه ته د هغه ښځي څخه د بېلوالي اختيارول ضروري سوى وو ، نو بيا به ويل كيږي چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم مذكوره ارشاد د وجوب په توګه وو .

## د مور او پلار اهميت

﴿۴۷۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَا حَقُّ الْوَالِدَيْنِ عَلَى وَلَدِهِمَا قَالَ هُمَا جَنَّتُكَ وَنَارُكَ . رواه ابن ماجة.

د ابو امامه رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړي ووېل: اې د الله رسوله ! د مور او پلار پر اولاد څه حق دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : مور او پلار د اولاد لپاره جنت هم دي او دوزخ هم . ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ٢\١٢٠٨، رقم: ٣٦٦٢.

**تشريح**: د دغه ارشاد په ذریعه په ډېر بلیغ انداز کي د مور او پلار ارزښت او د هغوئ د عظمت شان ظاهر سوی دی چي هغه ستا لپاره د جنت لار هم اسانه کولای سي او تا د دوزخ مستوجب هم جوړولای سي نو وفرمایل سول چي پر اولاد باندي د مور او پلار حق دادی چي د هغوئ د رضا او خوشحالۍ په هر صورت لحاظ وساتل سي چي جنت د تللو ذریعه ده او د هغوئ د نافرمانۍ څخه پرهیز وکړل سي چي دوزخ ته د تللو باعث دی ، خلاصه دا که چیري د اطاعت او خدمت په ذریعه مور او پلار خوشحاله وساتي نو جنت ته به ځي او که د نافرمانۍ او بې پرواهۍ په ذریعه مور او پلار ناراضه سي نو په دوزخ کي به واچول سي .

## د مور او پلار د مرګ وروسته د ثواب رسولو ذریعه

﴿۴۷۲۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ لَيَمُوتُ وَالِدَاهُ أَوْ أَحَدُهُمَا وَإِنَّهُ لَهُمَا لَعَاقٌّ فَلَا يَزَالُ يَدْعُو لَهُمَا وَيَسْتَغْفِرُ لَهُمَا حَتّٰى يَكْتُبُهُ اللّٰهُ بَارًّا. رواه البيهقي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي د یو بنده مور او پلار یا په هغوئ کي یو مړ کیږي په داسي حال کي چي د هغوئ نافرمانه وي او بیا د هغوئ د مرګ څخه وروسته د هغوئ نافرمانه زوی د مور او پلار لپاره دعاء او استغفار کوي نو الله تعالی هغه په نیکو خلکو کي لیکي . بیهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب : ٦\٢٠٢، رقم: ٧٩٠٢.

**تشريح**: د حدیث خلاصه داده چي د مور او پلار د مرګ څخه وروسته د اولاد د هغوئ لپاره دعاء ، استغفار او ایصال ثواب دومره ګټور دی که چیري مور او پلار د اولاد څخه د ناراضګۍ په حالت کي له دنیا څخه رخصت سوي وي نو الله تعالی به د هغوئ ناراضګي ختم کړي او د اولاد نوم به په هغه خلکو وشمېري کوم چي د مور او پلار سره نیکي کوي او د هغوئ د رضا او خوشحالۍ غوښتونکي وي .

## د مور او پلار فرمانبرداري

﴿۴۸۲۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

أَصْبَحَ مطيعا للهِ فِيْ وَالِدَيْهِ أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوْحَانِ مِنَ الْجَنَّةِ وَإِنْ كَانَ

په داسي حال کي سهار کړي چي هغه د مور او پلار په حق کي د الله ﷻ د احکامو اطاعت کوي (يعني د مور او پلار حقوق ادا کوي) نو هغه په داسي حال کي سهار کوي چي د هغه لپاره د جنت دوې دروازې خلاصيږي

وَاحِدًا فَوَاحِدًا وَمَنْ أَمْسٰى عَاصِيًا للهِ فِيْ وَالِدَيْهِ أَصْبَحَ لَهُ بَابَانِ مَفْتُوْحَانِ

او څوک چي په داسي حال کي سهار کړي چي د مور او پلار په حق کي د الله ﷻ نافرمانه وي نو هغه په داسي حال کي سهار کوي چي د هغه لپاره د دوږخ دوې دروازې خلاصيږي

مِنَ النَّارِ وَإِنْ كَانَ وَاحِدًا فَوَاحِدًا قَالَ رَجُلٌ وَإِنْ ظَلَمَاهُ قَالَ وَإِنْ ظَلَمَاهُ وَإِنْ ظَلَمَاهُ وَإِنْ ظَلَمَاهُ. رواه البيهقي.

او که يو وو نو يوه دروازه به ورته خلاصه سي . يو سړي وويل: که څه هم چي مور او پلار ريې ظلم پر کوي ، پر دې خبره رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : که څه هم چي پر هغه ظلم کوي که څه هم چي پر هغه ظلم کوي که څه هم چي پر هغه ظلم کوي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في الشعب: ۲۰۲/۶، رقم: ۷۹۱۶.

**تشريح**: د حديث څخه معلومه سوه چي د مور او پلار اطاعت او فرمانبرداري کول او د هغوئ د نافرمانۍ څخه ځان ساتل د الله تعالى حکم دی ځکه د هغوئ اطاعت او فرمانبرداري يا د هغوئ نافرماني په حقيقت کي د الله تعالى اطاعت او فرمانبرداري د هغه نافرماني کول دي.

که څه هم مور او پلار پر هغه ظلم وکړي: د رسول الله ﷺ دغه جمله درې ځله فرمايل د مور او پلار د اطاعت او فرمانبردارۍ د اهميت ظاهرولو او دهغوئ د حقوقو د ادا کولو تاکيد زيات بيانولو په وجه وو ، بيا هم څرګنده دي وي چي د ظلم څخه مراد هغه ظلم دی چي د هغه تعلق د دنياوي معاملاتو سره وي نه د ديني امورو سره ځکه چي د مور او پلار د داسي اطاعت او

فرمانبرداري جائز نه ده چي په هغه سره د دين مخالفت او د شرعي احكامو خلاف ورزي كيږي.

## مور او پلار ته د رحمت په نظر كتل

﴿٤٢٧﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَامِنْ وَّلَدٍ بَارٍّ يَنْظُرُ إِلَى وَالِدَيْهِ نَظَرَ رَحْمَةٍ إِلاَّ كَتَبَ اللهُ لَهُ بِكُلِّ نَظْرَةٍ حَجَّةً مَّبْرُوْرَةً قَالُوْا وَإِنْ نَظَرَ كُلَّ يَوْمٍ مِائَةَ مَرَّةٍ قَالَ نَعَمْ اَللهُ أَكْبَرُ وَأَطْيَبُ. رواه البيهقي.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كوم زوی چي د مور يا پلار ته د رحمت او شفقت په نظر وګوري الله تعالى د هغه په حساب كي د هر نظر په بدله كي د يو قبول سوي حج ثواب ليكي، صحابه كرامو وويل: كه څه هم چي د ورځي سل واره ورته وګوري؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هو، الله تعالى لوی او پاک دئ. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب: ٦\٢٠٢، رقم: ٧٨٥٩.

## د مور او پلار نافرمان

﴿٤٢٨﴾: وَعَنْ أَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كُلُّ الذُّنُوْبِ يَغْفِرُ اللهُ مِنْهَا مَا شَاءَ إِلاَّ عُقُوْقَ الْوَالِدَيْنِ فَإِنَّهُ يُعَجِّلُ لِصَاحِبِهِ فِي الْحَيَاةِ قَبْلَ الْمَمَاتِ. رواه البيهقي.

د حضرت ابوبكرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هره ګناه الله تعالى بخښي يعني په هغه كي چي څومره الله تعالى غواړي مګر د مور او پلار د نافرمانۍ ګناه نه بخښي بلكه الله تعالى د هغه سزا په دنيا كي د مرګ څخه مخكي هغه ته وركوي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب: ٦\٢٠٢، رقم: ٧٨٩٠.

**تشريح**: مطلب دادی چي كوم څوک د مور او پلار د نافرمانۍ ګناه كوي نو هغه ته به د دغه ګناه سزا د مرګ څخه مخكي په دغه دنيا كي وركول كيږي، او دا هم كيدای سي چي د دغه دنيا د ژوند تعلق د مور او پلار سره وي يعني مور او پلار د خپل اولاد له خوا د نافرمانۍ تكليف زغمي چي هغوئ په خپل ژوند كي هغه اولاد د خپلي ګناه د نافرمانۍ سزا خوړل ويني بيا هم

په دواړو صورتو كي د آخرت عذاب پاته دی چي نافرمانه اولاد به محض په دغه دنيا كي سزا نه تر لاسه كوي بلكه په آخرت كي به هم د عذاب وړ وي.

ددغه حديث په اړه يو بل احتمال هم دی هغه دا چي د مور او پلار د حقوقو په ذكر سوي حكم كي ټول حقوق العباد شامل دي يعني څرنګه چي د مور او پلار د حقوقو نه ادا كونكى اولاد د هغه ګناه سزا په دغه دنيا كي تر لاسه كوي همدارنګه هر هغه څوک هم په دغه دنيا كي سزا تر لاسه كوي كوم چي د بندګانو حقوق تر پښو لاندي كوي، نو د وخت د حكومت پر خلاف بېله يو شرعي او قانوني وجه د بغاوت كونكي او په ناحقه د ظلم كونكي په اړه د ذكر سوي وعيد څخه دا ثابتيږي ، خلاصه دا چي د ذكر سوي ارشاد په ذريعه د مور او پلار د حقوقو ارزښت څرګند سوی دی او د هغوئ د نافرماني كونكي ګناه په سخت انداز كي بيان سوې ده.

## د مشر ورور حق

﴿۴۷۲۹﴾: وَعَنْ سَعِيْدِ بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَقُّ كَبِيْرِ الْإِخْوَةِ عَلٰى صَغِيْرِهِمْ حَقَّ الْوَالِدِ عَلٰى وَلَدِهِ . روى البيهقي الأحاديث الخمسة في شعب الإيمان.

د حضرت سعيد بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مشر ورور حق پر كشر ورور داسي دئ لكه د پلار حق پر زوی باندي . بيهقي دا پنځه تير سوي حديثونه په شعب الايمان كي روايت كړي دي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب: ٦\٢٠٢، رقم: ٧٩٢٩.

==========

# بَابُ الشَّفَقَةِ وَالرَّحْمَةِ عَلَى الْخَلْقِ

## (د الله ﷻ پر مخلوق د شفقت او رحمت بيان)

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### پر مخلوق رحم

﴿۴۷۳۰﴾: عَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَرْحَمُ اللّٰهُ مَنْ لَا يَرْحَمُ النَّاسَ. متفق عليه.

د حضرت جرير بن عبد الله ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى پر هغه چا رحم نه کوي څوک چي پر خلکو رحم نه کوي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\٣٥٨، رقم: ٧٣٧٦، ومسلم ۴\١٨٠٩، رقم: ٦٦- ٢٣١٩.

### کوچنيان مچول

﴿۴۷۳۱﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ جَاءَ اَعْرَابِيٌّ اِلَي النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالُوا أَتُقَبِّلُونَ صِبْيَانَكُمْ فَمَا نُقَبِّلُهُمْ فَقَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَوَ أَمْلِكُ إِنْ نَزَعَ اللّٰهُ مِنْ قَلْبِكَ الرَّحْمَةَ. متفق عليه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي يو صحرائي د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو (او وه يې ليدل چي رسول الله ﷺ به د صحابه کرامو د کوچنيانو سره مينه کول او هغوئ به يې مچول) نو هغه رسول الله ﷺ ته وويل تاسو کوچنيان مچوئ موږ خو کوچنيان نه مچوو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ايا زه پردې قادر يم چي ستا د زړه څخه الله تعالى کوم رحمت ايستلى دئ زه هغه بيرته ستا په زړه کي واچوم؟ بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\۴٢٦، رقم: ٥٩٩٨، ومسلم ۴\١٨٠٨، رقم: ٦۴- ٢٣١٧.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا وو چي کله الله تعالى ستا زړه د رحمت او شفقت څخه خالي کړى دى نو دا زما د وس خبره نه ده چي ستا په زړه کي رحمت او شفقت پيدا کړم ، دا

معنی په هغه صورت کي ده کله چي لفظ د ان په الف سره وي لکه څرنګه چي اکثرو راويانو نقل کړی دی او که چيري الف په زبر سره وي يعني اِن ، نو دا معنی به وي چي زه څه کولای سم که الله تعالی ستا د زړه څخه د رحم جذبه ايستلې ده ، په دواړو صورتو کي د روايت مفهوم يو دی ، فرق محض د اعراب په وجه دی د حديث مقصد د بې رحمۍ او سخت زړه والي خلاف د نفرت اظهار او دا ډول خلک په سختۍ سره خبرداره کول دي، په دغه ارشاد کي دې ته هم اشاره ده چي په زړونو کي د رحم او شفقت جذبه د الله تعالی يو غوره ورکړه ده او د هغه پيدا کړده ده، که هغه د چا د زړه څخه د رحم او شفقت او ميني جذبه وباسي نو بيا د چا د وس خبره نه ده چي هغه سړي ته دغه جذبې دولت ورکړي .

## د لوڼو د روزلو فضيلت

﴿۴۷۳۲﴾: وَعَنْهَا قَالَتْ جَاءَتْنِي اِمْرَأَةٌ مَعَهَا ابْنَتَانِ لها تَسْئَلُنِي فَلَمْ تَجِدْ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت چي يوه ښځه ما ته راغلل چي دهغې سره دوې لوڼي هم وې هغې زما څخه سوال وکړ ،

عِنْدِي غَيْرَ تَمْرَةٍ واحدة فَأَعْطَيْتُهَا إِيَّاهَا فَقَسَمَتْهَا بَيْنَ ابْنَتَيْهَا وَلَمْ تَأْكُلْ

زما سره په دغه وخت کي يوازي يوه خرما وه هغه مې ورکړه ، هغې ښځي خرما نيمه نيمه پر دواړو لوڼو ووېشل او خپله يې هيڅ نه وخوړل ،

مِنْهَا ثُمَّ قَامَتْ فَخَرَجَتْ فَدَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ مَنْ ابْتُلِيَ

بيا هغه ولاړه سوه او د باندي روانه سوه ، دهغه څخه وروسته رسول الله ﷺ تشريف راوړ ما ورته پېښه بيان کړه ، رسول لله ﷺ وفرمايل : څوک چي

مِنْ هَذِهِ الْبَنَاتِ بِشَيْءٍ فَأَحْسَنَ إِلَيْهِنَّ كُنَّ لَهُ سِتْرًا مِنَ النَّارِ. متفق عليه.

په دې انجونو سره په ازموينه کي اخته سي او هغه د دغه لوڼو سره احسان او ښه چلن وکړي نو دا لوڼي به دهغه لپاره د دوږخ اور ته پرده وي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۲۶، رقم: ۵۹۹۵، ومسلم ۴\۲۰۲۷، رقم: ۱۴۷- ۲۶۲۹.

**تشريح**: يعني هغه لوڼي او د هغوئ سره نيکي به د هغه سړي او دوږخ د اور په مينځ کي حائل سي چي هغه سړی به د هغه لوڼو په وجه د دوږخ د اور څخه خوندي سي او د لوڼو سره د ښه چلن

دغه فضيلت په دې وجه دی چې د هلكانو په نسبت انجوني د خپل مور او پلار سره د ميني ، محبت او د هغوئ سره د ښه چلن او احسان زياتي مستحقي وي .

په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چې د ابتلاء او ازمائش محمول محض د انجونو پيدا كېدل دي يا په داسي حالت كي اخته كېدل دي چې د لوڼو په وجه پريشاني او سختي مخته راسي او پر هغه د صبر او تحمل كولو صورت پيښ سي ، په لومړي صورت كي يعني د ابتلاء او ازمائش تعلق د انجونو د پيدائش سره زيات صحيح دی ، په دغه صورت كي به ويل كيږي چې كوم خلك د انجونو په پيدا كېدو كي د زړه په تنگۍ كي اخته كيږئ نو هغوئ ددغه حقيقت څخه بالكل ناخبره دي چې انجوني د الله تعالى يو لوی رحمت دی ، د هغوئ روزنه او د هغوئ سره د ميني چلن كول يو ډېر لوی اخروي سعادت دی ، په دې اړه د علماؤ اختلاف دی چې احسان او ښه چلن څخه مراد هغه نفقه ده كوم چې پر پلار باندي واجب ده يا د واجب نفقې څخه پرته نور ښه چلن كول مراد دي، راجح قول دادی چې دغه دويمه معنی زيات صحيح ده او څرگنده دي وي چې د ذكر سوي احسان او چلن شرط دادی چې د شريعت موافق وي .

علماؤ دا هم ليكلي دي چې صحيح خبره داده چې د لوڼو سره د احسان او ښه چلن ذكر سوی اجر په هغه صورت كي تر لاسه كيږي كله چې د هغه احسان او ښه چلن لړۍ جاري وي تر دې چې هغه لوڼي او خويندي د خپل واده كېدو په وجه يا په يو بل صورت كي د پلار د كفالت او د هغه د احسان څخه بې نيازه سي .

## د لوڼو د روزني ثواب

﴿۴۷۳۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ عَالَ جَارِيَتَيْنِ حَتَّى تَبْلُغَا جَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَنَا وَهُوَ كذا وَضَمَّ أَصَابِعَهُ . رواه مسلم

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چې د دوو لوڼو روزنه وكړي تر څو چې هغه بالغي سي (يعني واده سي او د خپل خاوند كور ته ورسيږي) نو هغه سړی او زه به د قيامت په ورځ داسي يو ځای يو لكه څرنگه چې زما دا گوتي دي (يعني د شهادت او منځنۍ گوته) او دواړي گوتي يې په خپل منځ كي يو ځای كړي وښودلې . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۴\۲۰۲۷، رقم: ۱۴۹- ۲۶۳۱.

**تشريح**: رسول الله ﷺ د خپل او هغه كسانو په مينځ كي د كمال قرب او اتصال څرگندولو

لپاره د شهادت ګوته او منځنۍ ګوتي په يو ځاى کولو سره وښودل چي څرنګه تاسو دغه دوې ګوتي د يو بل سره يو ځاى وينئ همدا رنګه د قيامت په ورځ به زه او هغه سړى يو بل ته نژدې يو او په محشر کي به موږ يو ځاى يو يا هغه به زما سره په جنت کي داخليږي.

## د کونډي او مسکين دخدمت ثواب

﴿۴۷۳۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ السَّاعِي عَلَى الْأَرْمَلَةِ وَالْمِسْكِينِ كَالسَّاعِيْ فِي سَبِيلِ اللَّهِ و احسبه قال كَالْقَائِمِ لاَ يَفْتُرُ وَكَالصَّائِمِ لاَيُفْطِرُ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کونډي او مسکين حال پوښتونکي د الله تعالى په لار کي د کوښښ کونکى په ډول دئ (يعني د هغه ثواب د جهاد او حج برابر دئ) د راوي بيان چي زما خيال دئ چي رسول الله ﷺ دا هم وفرمايل: د کونډي او مسکين خبر اخيستونکى د هغه شپه رښونکى په ډول دئ چي په عبادت او شپې رښولو کي کوتاهي نه کوي او د هغه روژه نيونکي په ډول دئ چي د ورځي روژه نه ماتوي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۳۷، رقم: ۶۰۰۷، ومسلم ۴\۲۲۸۶، رقم: ۴۱- ۲۹۸۲.

**تشريح**: فقير او محتاج هم په دغه حکم کي داخل دى بلکه د ځينو حضراتو په نزد هغه ته پر مسکين باندې ترجيح تر لاسه ده او زما ګمان دى چي هغوئ دا بيان هم وکړ، ددغه الفاظو نسبت حضرت عبدالله ابن سلمه قعنبي رحمة الله عليه ته کيږي چي د بخاري او مسلم شيخ او ددغه حديث راوي دى چي هغه د امام مالک رحمة الله عليه څخه روايت کړى دى، ددې خبري وضاحت امام بخاري رحمة الله عليه کړى دى، په هر حال ددغه الفاظو په ذريعه د عبدالله ابن سلمه رضي الله عنه مطلب دادى چي زما ګمان دى چي ددغه حديث راوي امام مالک رحمة الله عليه دغه الفاظ: کالقائم لا يفتر ..الخ، نقل کړي وه مګر د بخاري مذکوره صراحت که مخته نه وي نو د مصابيح او مشکوة ظاهري الفاظو څخه دا مفهوم کيږي چي دغه جمله: او زما ګمان دى چي ...الخ، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه جمله ده، او د ابوهريره رضي الله عنه ددغه جملې په ذريعه دا بيانول غواړي چي زما د ګمان سره سم د رسول الله ﷺ کالقائم لا ...الخ، الفاظ هم فرمايلي دي، يا دا هم ويل کيداى سي چي په دغه وخت کي حضرت ابوهريره رضي الله عنه خپل دا شک ظاهر کړى وي چي رسول الله ﷺ يا خو: کالساعي في سبيل الله، الفاظ فرمايلي وي او يا: کالقائم لا يفتر ...الخ، الفاظ يې فرمايلي وي، ددې

تائيد د جامع صغير د هغه روايت څخه هم كيږي كوم چي احمد، شيخينو، ترمذي، نسائي او ابن ماجه څخه نقل سوي دي او د هغه الفاظ داسي دي چي: الساعي علي الارملة والمساكين كالمجاهد في سبيل الله او القائم الليل الصائم النهار.

## د يتيم روزنه

﴿۴۷۳۵﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَا وَكَافِلُ الْيَتِيمِ له ولغيره فِي الْجَنَّةِ هٰكَذَا او اشار بِالسَّبَّابَةِ وَالْوُسْطٰى وَفَرَّجَ بَيْنَهُمَا شَيْئًا. رواه البخاري.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه او د يتيم پالونكى كه هغه يتيم يې خپل وي يا پردى په جنت كي به زما سره داسي وي (د دې فرمايلو سره يې د شهادت او منځنۍ ګوته وښودلې) او د دواړو ګوتو په منځ كي يې لږ ډول پراخي وه. بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۴۳۹، رقم: ۵۳۰۴.

**تشريح:** هغه يتيم كه دده وي يا دبل چا وي، يعني دا خبره څرګنده سوې ده چي د مطلق يتيم د كفالت دغه فضيلت دى هغه يتيم كه د هغه خپل قريب وي لكه خور، وراره وغيره، يا بل څوك وي، رسول الله ﷺ د شهادت د ګوتي او درمياني ګوتي په ذريعه په اشاره كولو سره څرګنده كړه چي په جنت كي به زما او د يتيم د روزونكي په مينځ كي دومره نژدې علاقه وي لكه څرنګه چي د دغه دواړو ګوتو په مينځ كي ده او رسول الله ﷺ د دواړو ګوتو د پراختيا په ذريعه دې ته هم اشاره وفرمايل چي مرتبه نبوت چي تر ټولو اعلى درجه ده د هغه او د سخاوت او مروت مرتبې په مينځ كي دومره زياته فاصله نسته.

## مؤمنان د يوه بدن په ډول

﴿۴۷۳۶﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَرَى الْمُؤْمِنِينَ فِي تَرَاحُمِهِمْ وَتَوَادِّهِمْ وَتَعَاطُفِهِمْ كَمَثَلِ الْجَسَدِ الواحد إِذَا اشْتَكَى عُضْوًا تَدَاعَى لَهُ سَائِرُ جَسَدِهِ بِالسَّهَرِ وَالْحُمَّى. متفق عليه.

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ته به مؤمنان په خپل

منځ کي داسي رحم کونکي، محبت کونکي او مهرباني کونکي ويني لکه يو بدن، هر کله چي د بدن يو اندام درد کوي نو د بدن ټول اندامونه په هغه درد کي شريک وي او په بيداري او تبه کي ټول بدن شريک وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۳۸، رقم: ۶۰۱۱، ومسلم ۴\۱۹۹۹، رقم: ۶۶ – ۲۵۸۶.

**تشريح**: ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ د مؤمن صفت اتحاد ته اشاره فرمايلې ده، که چيري يو جذبه او تعلق داسي کيداى سي چي د دنيا ټول انسانان د رنګ، نسل، ژبي او تهذيب اختلاف او تفاوت او ذات و قبائل او د علاقې د بېلوالي څخه په خلاصون سره انساني وروروِلي او اتحاد يوه لړۍ راتلاى سي نو هغه يوازي د ايمان او اسلام تعلق دى، مؤمنان چي چيري هم وي، په کوم رنګ او نسل چي وي د هغوئ په ژبه او ټولنه کي که هر څومره اختلاف وي مګر د انسان او مؤمن کېدو په حيثيت هغوئ يو دي او د يوې وروروِلۍ سره تعلق لري د هغوئ په مينځ کي هيڅ انساني لوړوالى او کښته والى نسته د هيڅ کمي او لوړۍ، نفرت او حقارت نسته، هغوئ چي د کومي عقيدې حامل او د نظريې حيات منونکي دي،

دهغه حقيقت په دغه ارشاد کي ظاهر سوى دى او ټولو مسلمانانو ته د يوه بدن سره تشبيه ورکړل سوې ده چي څرنګه د بدن يو اندام درد کوي نو ټول بدن د هغه درد څخه متاثره کيږي او محض په يوه اندام کي د تکليف په وجه ټول بدن په تکليف کي وي، همدارنګه مسلمانانو ته پکار ده چي يو بدن جوړ سي او ټول ملت اسلامي د يوه بدن په ډول سي که چيري يو مسلمان ته تکليف ورسيږي يا په يو مصيبت کي اخته سي نو ټول مسلمانان د هغه په غم او درد کي شريک وي او ټول په يو ځاى کېدو سره د هغه تکليف او مصيبت ليري کړي، دغه مفهوم شيخ سعد رحمة الله عليه په دغه نظم کي بيا کړى دى:

بني آدم اعضائي يکديگرند — که در آفرينش زيک گوهراند
چو عضوي بدرد آورد روزګار — دګر عضو ها را نماند قرار

﴿۴۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُونَ كَرَجُلٍ وَاحِدٍ إِنْ اشْتَكَى عَيْنُهُ اشْتَكَى كُلُّهُ وَإِنْ اشْتَكَى رَأْسُهُ اشْتَكَى كُلُّهُ. رواه مسلم.

د حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ټول مؤمنان په ډول د يو سړي دي (يعني د يوه سړي د اندامو په ډول دي) هر کله چي د هغه سترګه خوږ سي نو ټول

بدن يې درد كوي او كه پر سريې درد وي نو ټول بدن يې هغه درد محسوس وي . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۰۰۰، رقم: ۶۷ – ۲۵۸۶.

﴿۴۷۳۸﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ لِلْمُؤْمِنِ كَالْبُنْيَانِ يَشُدُّ بَعْضُهُ بَعْضًا ثُمَّ شَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ . متفق عليه.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ و فرمايل : مسلمان د مسلمان لپاره د يو سراى په ډول دي چې د سراى يوه برخه دويمه برخه ټينګوي ، ددې فرمايلو سره رسول الله ﷺ د يوه لاس ګوتې د بل لاس په ګوتو كې دننه كړې او وه يې ښودل چې ټول مسلمانان داسې سره يو ځاى دي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۹، رقم: ۶۰۲۶، ومسلم ۴\۱۹۹۹، رقم: ۶۵ – ۲۵۸۵.

**تشريح**: مخكې خو رسول الله ﷺ مسلمانانو ته د يوه مكان سره تشبيه وركړه چې د هغه ټول اجزاء او ټولې برخې د يو بل سره ټينګې وي او بيا دا حقيقت رسول الله ﷺ په مثالي صورت كې د خپل يوه لاس ګوتې د دوهم لاس په ګوتو كې په اچولو سره وښودل، چې ټول مسلمانان دغه ډول د يو بل سره متحد دي او د يو بل سره د مينې، محبت او موانست او مرستې په زنځير كې منسلک وي نو ټول ملت اسلامي به ټينګ ا و مضبوط وي مګر څرګنده دي وي چې د مسلمانانو هغه اتحاد او يووالى مطلوب او مستحسن دى چې د هغه بنياد د حق او حلال پر معاملاتو باندې وي ، حرام او مكروه او د ګناه موجب اتحاد او اتفاق غير مطلوب دى .

## د اړ كس سفارش كول ښه كار دى

﴿۴۷۳۹﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ إِذَا أَتَاهُ السَّائِلُ أَوْ صَاحِبُ الْحَاجَةِ قَالَ اشْفَعُوا فَلْتُؤْجَرُوا وَيَقْضِي اللّٰهُ عَلَى لِسَانِ رَسُولِهِ مَا شَاءَ . متفق عليه.

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چې نبي كريم ﷺ ته به يو سوال كونكى يا اړ كس راغلئ نو رسول الله ﷺ به صحابه كرامو ته وويل : دده سفارش وكړئ د سفارش ثواب به درته ترلاسه سي او (داسې خو) الله تعالى د خپل رسول د ژبې څخه چې كوم حكم غواړي جاري

کوي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٣\٤٤٨، رقم: ٧٤٧٦، ومسلم ٤\٢٠٢٦، رقم: ١٤٥- ٢٦٢٧.

**تشريح**: د يو چا سفارش کول گويا د هغه سره همدردي کول او دهغه مرسته کول دي ځکه رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته حکم وکړ چي تاسو د خلکو سفارش کوئ که څه هم ستاسو سفارش قبول کړل سي که يا، د يو چا کار کېدل يا نه کېدل د تقدير الهي مطابق دي نو تاسو په دې فکر سره چي کيدای سي زما سفارش قبول نه سي ، د سفارش کولو څخه پرهيز مه کوئ او د هغه ثواب د لاسه مه باسئ.

څرگنده دي وي چي د سفارش حکم د هغه امورو او معاملاتو سره متعلق دی چي پر يو ناجائز او حرام مقصد باندي مبني نه وي او که يو سړی په يوه داسي معامله کي ماخوذ وي چي حد يعني شريعت له خوا ټاکل سوې سزا لازموي نو په دغه صورت کي به سفارش کول جائز نه وي کله چي هغه معامله د وخت امام ته رسيدلې وي او که هغه معامله رسيدلې نه وي نو بيا سفارش کيدای سي ، مگر په تعزيري معاملاتو کي په هر صورت سفارش کول جائز دی او دغه ټول تفصيل د هغه صورت سره متعلق دی کله چي هغه سړی موذي او شرير نه وي ، د چا سفارش کول چي مقصد وي او د شرير سړي سفارش په هيڅ صورت کي جائز نه دی .

## د ظالم او مظلوم مرسته

﴿٤٧٤٠﴾: وَعَنْ أَنَسٍ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ انْصُرْ أَخَاكَ ظَالِمًا أَوْ مَظْلُومًا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ اَنْصُرُهُ مَظْلُومًا فَكَيْفَ انْصُرُهُ ظَالِمًا قَالَ تَمْنَعُهُ مِنَ الظُّلْمِ فذالك نَصْرُ اياه. متفق عليه.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د (خپل) مسلمان ورور مرسته کوه که څه هم هغه ظالم وي يا مظلوم، يو سړي وويل اې د الله رسوله ! د مظلوم خو زه مرسته کوم مگر د ظالم څرنگه مرسته وکړم ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل هغه د ظلم څخه منع کړه ستاد هغه د ظلم څخه منع کول د هغه مرسته کول دي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٢\٣٢٣، رقم: ٦٩٥٢، ومسلم ٤\١٩٩٦، رقم: ٥٨- ٢٥٨٠.

## مسلمان د مسلمان ورور دی

﴿۴۷۴۱﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْلِمُ

د حضرت ابن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : مسلمان

أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يُسْلِمُهُ وَمَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ كَانَ اللّٰهُ فِي

د مسلمان ورور دئ ، نه دي یو پر بل ظلم کوي او نه دي هغه په هلاکت کي غورځوي ، او کوم سړی چي د یو مسلمان ورور په اړتیا کي مرسته وکړي الله تعالی به

حَاجَتِهِ وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً فَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُ كُرْبَةً مِنْ كُرُبَاتِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَمَنْ سَتَرَ مُسْلِمًا سَتَرَهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ . متفق عليه.

د هغه اړتیا پوره کړي او څوک چي د یو مسلمان غم او مصیبت او مشکل لیري کړي الله تعالی به د هغه مصیبت او غم لیري کړي ، او څوک چي د یو مسلمان (ورور) عیب پټ کړي نو د قیامت په ورځ به الله تعالی د هغه پر عیب پرده واچوي . بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۹۷\۵، رقم: ۲۴۴۲، ومسلم ۱۹۹۶\۴، رقم: ۵۸- ۲۵۸۰.

**تشریح**: د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د مسلمان ستر پټونکی یا د هغه عیب پټونکی چي په دنیا کي کوم عیبونه او ګناوي کړي وي د قیامت په ورځ به الله تعالی د هغه د عیبو او ګناهو پرده وکړي په دې توګه چي هغه به د اهل مؤقف په وړاندي ظاهر نه کړي د هغه محاسبه او مؤاخذه به ونه کړي او د عمل نامې د وړاندي کولو په وخت کي به د هغه ذکر په پټه توګه وي.

علماؤ لیکلي دي چي د کومو مسلمانانو د عیبو پټول مستحب او ښه دي هغه دې درجې مسلمانان وي چي هغوئ ته د عزت او حیاء خاوندان ویل کیږي یعني هغه مسلمان چي د هغوئ ظاهري ژوند پاک ګڼل کیږي او د چا عیبونه چي پټ وي که چیري د بشریت په تقاضا د هغوئ څخه یو ګناه وسي نو هغوئ یې د حیاء په پرده کي پټوي ، پاته سو هغه مسلمان چي د حیاء پرده لوڅوي چي د هغه ایذاء رسول او فتنې ښکاره کوي او په ډاګه ګناه کولو کي شرم نه کوي ، د هغوئ معامله بېله ده چي نه یوازي د هغوئ پر ګناه او عیبو باندي رد واجب دی بلکه د ګناه څخه منع کول او خبرداری ورکول هم لازم دی که چیري هغوئ د خبرداري سربېره منع نسي نو د

هغوئ په اړه حاکم ته اطلاع ورکول پکار دي چي هغوئ په دين کي د فتنې څخه منع کړي همدارنګه د حديثو پر راويانو او مؤرخينو باندي جرح او قدح او پر حکومتي چارواکو او شاهدانو د تحقيق او پلټني او د ظالمانو د حالاتو د ظهار لپاره هم جائز بلکه واجب او لازم دی ځکه چي په دغه صورتو کي د دين او علم ساتنه او د خلکو د حقوقو ساتنه مقصد وي ځکه چي د ذکر سوو خلکو حالات او عيبونه بيانول د هغوئ د عيبو په څرګندولو کي داخل نه دي کوم چي منع کړ ځول سوي دي.

## مسلمان ذليل نه ګڼل

﴿۴۷۴۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُسْلِمُ

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسلمان

أَخُو الْمُسْلِمِ لَا يَظْلِمُهُ وَلَا يَخْذُلُهُ وَلَا يَحْقِرُهُ التَّقْوَى هَاهُنَا وَيُشِيرُ إِلَى

د مسلمان ورور دی يو مسلمان دي پر بل مسلمان ظلم نه کوي نه دي هغه رسوا کوي او نه دي يې ذليل او حقير ګڼي، تقوا په دې کي ده، ددې فرمايلو سره رسول الله ﷺ

صَدْرِهِ ثَلَاثَ مِرَارٍ بِحَسْبِ امْرِئٍ مِنْ الشَّرِّ أَنْ يَحْقِرَ أَخَاهُ الْمُسْلِمَ كُلُّ الْمُسْلِمِ عَلَى الْمُسْلِمِ حَرَامٌ دَمُهُ وَمَالُهُ وَعِرْضُهُ. رواه مسلم.

درې واره د خپل سينې په لور اشاره وکړل بيا يې وفرمايل: د انسان لپاره دومره بدي کافي ده چي هغه خپل مسلمان ورور حقير او ذليل وګڼي، د مسلمان ټول ژوند او ټوله شيان پر مسلمان حرام دي يعني د مسلمان وينه، د مسلمان مال، او د مسلمان عزت. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۹۸۶\۴، رقم: ۳۲- ۲۵۶۴.

**تشريح**: هغه دي ذليل او حقير نه ګڼي: مطلب دادی چي هيڅ مسلمان دي د بل مسلمان ورور د عيب په ښکاره کولو سره او د هغه د خرابۍ په بيانولو سره نه رسوا کوي او نه دي د هغه سره سخت کلامي کوي او د هيڅ يو غريب او فقير مسلمان بې ادبي دي نه کوي، چا ته څه معلومه ده چي يو مسلمان که څه هم غريب او محتاج وي د الله ﷻ په وړاندي د هغه مقام څه دی او د انجام په اعتبار هغه د کومي درجې دی دغه حقيقت بايد په هيڅ صورت کي هېر نه کړل سي چي کوم څوک پر لااله الاالله محمد رسول الله، باندي ايمان لري او د الله ﷻ د رسول امتي وي هغه عزت

والا دی او د تکریم وړ دی، ځکه الله تعالی فرمایلي دي : (ولله العزة ولرسوله و للمؤمنین ولکن المنافقین لا یعلمون) ، نو د یو مؤمن عزت ایماني په هیڅ حال کي مجروح کول نه دي پکار او په خاصه توګه هغه مؤمن چي د هغه د مخ څخه د دین علم او د عبادت نور ځلیږي د هغه تعظیم او عزت په طریقه اولی ډېر ضروري دی ، زیات خلک او په خاصه توګه هغه شتمن خلک چي د نفس په ظلمت او غفلت کي اخته وي په عامه توګه د فقیرانو او مسکینانو په وبال کي اخته وي ځکه چي هغوئ کمزوري او ذلیل ګڼي او د هغوئ سره د سپکتیا معامله کوي او د نتیجې په توګه د مؤمن د ذلیل او حقیر کولو عذاب خپل سر اخلي، هغوئ په دې نه پوهېږي چي الله تعالی هغه خلک په دنیا کي هم په ثروت سره نازوي او په آخرت کي هم خلاصون ورکوي کوم چي د داسي مسکینانو او غریبانو سره د میني چلن کوي ، همدا وجه ده چي رسول الله ﷺ به د مسکینانو او غریبانو د میني تر لاسه کولو لپاره دعاء غوښتل او رسول الله ﷺ ته د الله تعالی له خوا دا حکم ورکړل سوی وو چي د فقیرانو او مسکینانو سره دي ناسته ولاړه اختیار کړي لکه څرنګه چي په سورة کهف کي راغلي دي .

پرهیزګاري په دې کي ده: مطلب دادی چي متقي یعني هغه څوک چي د شرک او ګناهو څخه پرهیز کوي هغه په هیڅ حالت کي هم حقیر او سپک ګڼل نه دي پکار ، یا دا مراد دی چي د تقوا مصدر په اصل کي سینه یعني زړه دی او هغه یو داسي صفت دی چي د باطن هدایت او نورانیت څخه پیدا کیږي، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي ددغه الفاظو مقصد د ماقبل جملې تاکید او تقویت دی او مطلب به دا وي چي کوم شی یو انسان معزز او عزتمند کوي هغه تقوا ده او کله چي د تقوا تعلق د باطن سره دی او د هغه ځای زړه دی چي یو پټ شی دی چي انسان یې څرګندولای نسي نو بیا یو مسلمان ته څرنګه حقیر او ذلیل ویل کیدای سي حال دا چي د هغه حقیقت معلوم نه دی ، یوه خبره دا هم ده چي د تقوا په ویلو سره دې ته اشاره سوې ده چي د چا په زړه کي تقوا وي هغه دي هیڅ مسلمان حقیر او ذلیل نه ګڼي ځکه چي هیڅ متقي مسلمان ذلیل کونکی نسي کیدای دغه مراد که څه هم ځینو علماؤ لیکلی دی مګر لومړی معنی زیاته صحیح او مناسب ده .

د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي هیڅ مسلمان دي داسي کار نه کوي او نه دي د خپلي ژبي څخه داسي الفاظ باسي چي په هغه سره د یو مسلمان ورور هلاکول وي یا د هغه مال ضائع سي یا د هغه عزت ته تاوان ورسیږي .

حدیث د خپلو الفاظو د اختصار په وجه لنډ مګر د مفهوم او معنی په توګه جوامع الکلم

دی چي د الله تعالی له خوا رسول الله ﷺ ته خاصه ورکړه ده .

## جنتي او دوږخي

﴿۴۷۴۳﴾: وَعَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عياض بن حمار رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

أَهْلُ الْجَنَّةِ ثَلَاثَةٌ ذُو سُلْطَانٍ مُقْسِطٌ مُتَصَدِّقٌ مُوَفَّقٌ وَرَجُلٌ رَحِيمٌ رَقِيقُ

درې ډوله خلک جنتيان دي : (۱) يو هغه حاکم چي عدل او انصاف کونکی او احسان کونکی وي او هغه ته د ښيګڼو توفيق ورکړل سوی وي (۲) دويم هغه کس چي مهربانه وي

الْقَلْبِ لِكُلِّ ذِي قُرْبَى وَمُسْلِمٍ وَعَفِيفٌ مُتَعَفِّفٌ ذُو عِيَالٍ وَأَهْلُ النَّارِ خَمْسَةٌ

او د خپلوانو او مسلمانانو لپاره نرم دله وي يعني پر خپل او پرديو دواړو باندي مهربانه وي . (۳) دريم هغه کس چي د حرامو شيانو څخه ځان ژغورونکی وي ، د سوال کولو څخه پرهيز کوي د اهل او عيال په اړه پر الله تعالی باور کونکی وي ، او پنځه ډوله خلک دوږخيان دي :

الضَّعِيفُ الَّذِي لَا زَبْرَ لَهُ الَّذِينَ هُمْ فِيكُمْ تَبَعٌ لَا يَبْغُونَ أَهْلًا وَلَا مَالًا

(۱) يو هغه کمزور عقله چي د هغه کمزوري هغه د نامناسبه کارونو څخه منع نه کړي او دا سړي د هغه خلکو څخه دئ کوم چي ستاسو تابع او خادمان دي هغه تابع او خادم چي د ښځي او مال پروا نه لري (يعني د خپلو بدو کارونو په سبب د خپل ښځي څخه بې پروا وي او په حرام کار کي خوشحاله وي او نه يې د مال پروا سته چي حرام او حلال هر څه چي د نس د کولو لپاره ورته تر لاسه سي هغه بس ګڼي ،

وَالْخَائِنُ الَّذِي لَا يَخْفَى لَهُ طَمَعٌ وَإِنْ دَقَّ إِلَّا خَانَهُ وَرَجُلٌ لَا يُصْبِحُ وَلَا يُمْسِي

(۲) : دويم هغه سړی چي خيانت کونکي او بد ديانته وي او د هغه طمع هغه پر آرامه ناستي ته نه پرېږدي او هغه دهر پټ شي په لټه کي وي چي هغه تر لاسه کړي او په هغه کي بد دیانتي وکړي که څه هم چي هغه يو ډير معمولي شی وي . (۳) : دريم هغه کس چي سهار او مابنام ستا

إِلَّا وَهُوَ يُخَادِعُكَ عَنْ أَهْلِكَ وَمَالِكَ وَذَكَرَ الْبُخْلَ أَوِ الْكَذِبَ وَالشِّنْظِيرُ

الْفَحَّاشُ .رواه مسلم.

په كورنۍ او مال كي د چم كولو په فكر كي وي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د بخيل، دروغجن او فحش ويونكي ذكر وكړ يعني پاته دوه كسان دادي چي يو په هغو كي بخيل يا درواغجن وي او دويم بد خلق او بد ويونكى وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۱۹۷\۱۴، رقم: ۶۳ - ۲۸۶۵.

**د لغاتو حل**: زبر: اى لا راى له ولا عقل كاملا يعقله ويمنعه عن ارتكاب مالا ينبغي .

**تشريح**: په (رجل رحيم رقيق القلب ) كي د رحيم څخه مراد صفت فعليه او د رقيق څخه مراد صفت قلبيه دى ، د صفت فعليه مطلب دادى چي هغه صفت خپل خارجي وجود هم ساتي او پر نورو باندي دهغه اثرات هم څرګند سي، حال دا چي د صفت قلبيه تعلق محض د هغه صفت باطني وجود سره وي كه هغه په عملي او خارجي توګه سره د هغه اظهار وي يا نه وي .

لفظ د بخل او كذب د مصدر قائم مقام فاعل دى ، د وذكر البخل والكذب ..الخ، په ذريعه راوي دا بيان كړى دى چي رسول الله ﷺ د دوږخيانو كوم ډولونه بيان كړي دي په هغو كي د بخيل او كاذب ذكر هم وفرمايي او د پوره عبارت مطلب به دا وي چي رسول الله ﷺ د دوږخيانو د ذكر سوو ډولو د بيانولو څخه وروسته وفرمايل چي د دوږخيانو نور ډولونه بخيل او كاذب دي . پاته سوه دا خبره چي راوي د ذكر البخيل والكاذب د ويلو پر ځاى ذكر البخل والكذب ولي ووايه، نو ددې وجه داده چي په دغه ځاى كي رسول الله ﷺ كوم ارشاد فرمايلي وه هغه الفاظ بعينه راوي ته په ياد نه وه مګر په صحيح توګه سره دا ورته ياد وه چي رسول الله ﷺ د پاته دوو ډولو په اړه كوم الفاظ فرمايلي وه په هغو كي د بخل او كذب ذكر ضرور وو كه څه هم رسول الله ﷺ د والبخيل والكاذب فرمايلي وه يا نور الفاظ ، په اكثرو روايتو كي د البخل والكذب په مينځ كي د واو پر ځاى او دى يعني البخل او الكذب دى، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي دلته راوي ته شك واقع سوى دى چي رسول الله ﷺ يا خو البخل وفرمايه او يا الكذب، يعني راوي دا بيانول غواړي چي رسول الله ﷺ د دوږخيانو د درو ډولونو بيانولو څخه وروسته د څلورم ډول په توګه يا خو بخيل بيان كړى دي او يا كاذب، او صحيح خبره همداده چي دلته د او حرف دى چي د راوي شک ظاهروي او په كومو روايتو كي چي واو دى په هغه كي هم واو د حرف او په معنى كي دى او لفظ و الشنظير هم مرفوع ګرځول صحيح دى او د هغه عطف پر رجل باندي كيږي ، او ځينو حضراتو منصوب ګرځولى دى .

## دمؤمن لپاره هغه خوښول چي ځان ته يې خوښوي

﴿۴۷۴۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُؤْمِنُ عَبْدٌ حَتَّى يُحِبَّ لِأَخِيهِ مَا يُحِبُّ لِنَفْسِهِ. متفق عليه.

د حضرت انس ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم په خداى چي د هغه په واک کي زما ساه ده بنده تر هغه وخته پوري پوره مؤمن کيدلاى نه سي تر څو پوري چي د خپل مسلمان ورور لپاره هم هغه شى خوښ نه کړي کوم چي د ځان لپاره خوښوي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱\۵٦، رقم: ۱۳. ومسلم ۱\٦۸، رقم: ۷۲– ۴۵.

**تشريح**: مطلب دادى چي د يو مسلمان ايمان به تر هغه وخته پوري کامل نه وي تر څو چي هغه د خپل مسلمان ورور لپاره هغه شى خوښ نه کړي کوم چي د ځان لپاره خوښوي . د شي څخه مراد د دنيا او آخرت خير دى لکه څرنګه چي په يوه روايت کي من الخير لفظ په صريح توګه منقول سوى دى ، پاته سوه دا خبره چي د دنيا او آخرت د خير او ښېګڼو تعلق د کومو شيانو سره دى نو د اخرت خير دادى چي نيک اعمال او د ښه احوالو سعادت په برخه سي او خاتمه بالخير وي ، د قبر د سختيو ، د قيامت د ورځي د پوښتنو او د دوږخ د عذاب څخه خلاصون تر لاسه سي، د خپلو نيکو اعمالو په سبب او د الله تعالى په فضل سره په جنت کي اعلى درجې تر لاسه کړي او د الله تعالى او د هغه د رسول رضا تر لاسه کړي، همدارنګه د دنيا خير دادى چي د عزت او خوشحالۍ ژوند يې په برخه سي ، مال ، اسباب او راحت تر لاسه کړي ، ښکه ښځه او صالح اولاد يې په برخه سي او دغه ټول شيان د آخرت وسيلي دي چي مسلمان د دنيا او آخرت دغه نعمتونه او خيرونه د ځان لپاره غواړي نو هغه ته پکار دي چي هغه دغه دنياوي او اخروي نعمتونه د ټولو مسلمانانو لپاره هم وغواړي او دا د ايمان کمال هم دى او د ديني اخوت تقاضا هم ده .

که چيري دا وويل سي چي کوم مسلمانان محض د شيطان په فريب او نفساني حرص په وجه د ځان لپاره مال او د دنيا عزت غوښتونکي وي او د هغه مال په نتيجه کي په ګناه ، فتنو ، فساد او ظلم کي اخته سي نو هغه به ددغه مال خواهش د بل لپاره څرنګه کولاى سي ؟ ددې جواب دادى چي کوم مال او عزت د دين تاوان او د آخرت د عذاب باعث وي نو هغه د خير او ښېګڼي په زمره کي شامل نه دى نو هر مسلمان ته پکار ده چي هغه داسي مال او عزت نه د ځان لپاره خوښ کړي او نه د بل مسلمان لپاره، مګر بيا هم دا خيال ساتل پکار دي چي مال او عزت

پر خپل ځاى خراب شي نه دى او نه دا په هر حالت كي خرابى ته د رسيدو سبب جوړيږي بلكه ددې تعلق سره د بدى يا نيكى دار او مدار خپله د انسان ذهن او مزاج او د هغه پر طبعي خاصيت باندي وي ، يو سړى داسي وي چي هغه محض د مال او دولت په وجه د نيكى لوى درجې ته ورسيږي كه د يو سړي لپاره مال او دولت د آخرت د ثواب سبب جوړيږي لكه د مال او دولت په ذريعه حج كول او د فقيرانو مرسته كوي او د عزت او شان په ذريعه عدل او نصاف كول او د امر بالمعروف او نهي عن المنكر ذمه داري پوره كول، ددې پر خلاف دغه مال او دولت كه چيري د بل چا لپاره د دين د كټو پر ځاى د تاوان سبب وي لكه د هغه مال او عزت په ذريعه فسق او فجور كول ، فتنه او فساد كول نو د اول الذكر سړي مال او عزت د خپل ځان لپاره خوښول او د بل چا لپاره نه خوښول به صحيح وي ځكه چي د هغه مال عزت ته به د هغه په حق كي خير نه ويل كيږي .

## همسايه ته تكليف نه وركول

﴿۴۷۴۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ وَاللّٰهِ لَا يُؤْمِنُ قِيلَ مَنْ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الَّذِي لَا يَؤْمن جَارُهُ بَوَائِقَهُ . متفق عليه.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم په خداى هغه سړى ايماندار نه دئ ، قسم په خداى هغه سړى ايماندار نه دئ ، قسم په خداى هغه سړى ايماندار نه دئ ، پوښتنه وسول اې د الله رسوله ! څوک ايماندار نه دئ ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه څوک چي د هغه د شر څخه د هغه همسايګان په آمان كي نه وي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۴۳، رقم: ۶۰۱۶،

**د لغاتو حل**: بوائقه: اى شروره (د هغه د شر څخه)

## د همسايه سره ښه سلوک

﴿۴۷۴۶﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مَنْ لَا يَأْمَنُ جَارُهُ بَوَائِقَهُ. رواه مسلم.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه څوک به جنت ته نه ځي

چي د هغه همسايه د هغه د شر او فساد څخه خوندي نه وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ١\٦٨، رقم: ٧٣- ٤٦.

﴿۴۷۴۷﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ وَابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا زَالَ جِبْرِيلُ يُوصِينِي بِالْجَارِ حَتَّى ظَنَنْتُ أَنَّهُ سَيُوَرِّثُهُ. متفق عليه.

د حضرت عائشې او ابن عمر (رضي الله عنهما) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جبرائيل عليه السلام به همېشه ما ته د همسايګانو د حقوقو ادا کولو هدايت کاوه تر دي چي ما دا خيال وکړ چي جبرائيل عليه السلام به همسايګان وارثان وګرځوي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\٤٤١، رقم: ٦٠١٤، ومسلم ٤\٢٠٢٥، رقم: ١٤٠- ٢٦٢٤.

**تشريح**: ددغه حديث څخه د همسايه حقوق يعني د همسايه سره د احسان، ښه چلن کولو، د هغه سره په غم او درد کي د ګډون کولو او هيڅ ډول تکليف کي نه ورکولو ارزښت څرګندوي، حضرت جبرائيل عليه السلام په دې اړه د الله تعالی له خوا رسول الله ﷺ ته په پابندي سره حکم ورکوی د هغه څخه رسول الله ﷺ ته دا خيال پيدا سو چي جبرائيل عليه السلام کيدای سي د وحي سره نازل سي او خپل همسايګان د يو بل وارث وګرځوي .

## په غوږ کي پټي خبري کول

﴿۴۷۴۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كُنْتُمْ ثَلَاثَةً فَلَا يَتَنَاجَى اثْنَانِ دُونَ الْآخَرِ حَتَّى تَخْتَلِطُوا بِالنَّاسِ مِنْ أَجْلِ أَنْ يُحْزِنَهُ . متفق عليه.

د حضرت عبد الله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: که تاسو درې کسان يو ځای ياست نو دوه کسان دي په خپل منځ کي په غوږ کي (پټي) خبري نه کوي تر څو پوري چي ډير کسان يو ځای نه سئ (يعني هر کله چي ډير کسان يو ځای سي نو بيا د دوو کسانو په خپل منځ کي پټي خبري منع نه دي) او دا له دې کبله چي داسي غوږ کي خبره کولو سره دريم کس خفه نه سي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\٨٢، رقم: ٦٢٩٠، ومسلم ٤\١٧١٨، رقم: ٢٧- ٢١٨٤.

**د لغاتو حل:** يتناجى: لايتكلما بالسر. (پټې خبرې دې نه كوي)

**تشريح:** مطلب دادى كه چيرې درې كسان د مثال په توګه يو ځاى ناست وي نو په هغوئ كې د دوو كسانو لپاره دا جائز نه دې چې هغوئ په غوږ كې خبرې وكړې چې دريم سړى د هغوئ خبره نه اورې مګر كه چيرې څلور كسان يو ځاى ناست وي او په هغوئ كې دوه كسان په خپلو كې پټې خبرې كوي نو د هغوئ دواړو پر پټو خبرو باندې د منع اطلاق نه كيږي.

امام نووي رحمة الله عليه وايي: د دريم سړي په شتون كې د دوو كسانو په خپلو كې پټې خبرې كول او همدارنګه د څلورو كسانو په شتون كې د درو كسانو په خپلو كې پټې خبرو كولو ذكر سوي منع د نهي تحريمي په توګه ده نو كه چيرې دوه كسان وي يا درې او څلور كسان وي يا يوه ډله وي نو د هغوئ لپاره دا حرام دې چې هغوئ د يوه سړي په پرېښودو سره پاته ټول كسان په خپلو كې پټې خبرې كول پيل كړې مګر كه چيرې د هغه يوه سړي د اجازې څخه وروسته پټې خبرې كوي نو څه پرواه نسته ،د حضرت ابن عمر رضي الله عنه، امام مالك رحمة الله عليه ، شوافع او جمهورو علماؤ دا مذهب دى او ددغه حكم تعلق د هر ځاى او هرې زمانې سره دى كه په سفر كې وي او كه په حضر كې وي.

## دين د خير خواهۍ نوم دئ

﴿۴۷۹﴾: وَعَنْ تَمِيمٍ الدَّارِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الدِّينُ النَّصِيحَةُ ثَلاثًا قُلْنَا لِمَنْ قَالَ لِلّٰهِ وَلِكِتَابِهِ وَلِرَسُولِهِ وَلِأَئِمَّةِ الْمُسْلِمِينَ وَعَامَّتِهِمْ . رواه مسلم.

د حضرت تميم داري رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : دين د خير خواهۍ او نصيحت نوم دئ ، رسول الله ﷺ دا الفاظ درې واره وفر مايل ، موږ پوښتنه وكړه (اې دالله رسوله!) دا خيرخواهي او نصيحت د چا لپاره دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله لپاره ، د الله د كتاب لپاره ، د الله د رسول لپاره ، د مسلمانانو د امامانو لپاره او د عامو مسلمانانو لپاره . مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۱\ ۷۴، رقم: ۹۵- ۵۵.

**تشريح:** د الله جل جلاله په حق كې د خيرخواهۍ مطلب دادى چې د الله تعالى پر ذات او صفاتو باندې ايمان راوړې د هغه د وحدانيت او حاكميت اعتقاد ولرې ، په صفاتو كې د بل چا شريكولو څخه پرهيز وكړې د هغه عبادت په اخلاص سره وكړې د هغه د اوامرو او نواهي

اطاعت وکړي د هغه د نعمتونو اقرار او اعتراف وکړي او د هغه د نېکو او فرمانبردارو بندګانو سره مینه ولري او د بدو او سرکښانو بندګانو څخه نفرت کوي.

د الله ﷻ د کتاب په حق کي د خیرخواهۍ مطلب دادی چي په دې خبره عقیده ولري چي دغه کتاب د الله تعالی له خوا نازل سوی دی، په دغه کتاب کي چي څه لیکلي دي په هغه په هر حالت کي عمل وکړي، په تجوید، ترتیل او غور سره یې تلاوت وکړي او د هغه په تعظیم او احترام کي کوتاهي ونه کړي.

د الله د رسول په حق کي د خیرخواهۍ مطلب دادی چي ددې خبري په زړه سره تصدیق وکړي چي هغه رسول او پیغمبر دی، دهغه په نبوت ایمان راوړي چي هغه د الله تعالی له خوا کوم پیغام او احکام راوړي دي هغه قبول کړي او د هغه اطاعت وکړي هغه د خپل ځان، اولاد، مور او پلار او ټولو خلکو څخه زیات محبوب او ګران وګڼي او د کورنۍ او صحابه کرامو سره یې مینه وکړي او په سنتو یې عمل وکړي.

د مسلمانانو د امامانو په حق کي خیرخواهي داده چي کوم څوک د اسلامي حکومت مشر وي د هغه سره وفاداري وکړي، د احکامو او قوانینو په بې ځایه خلاف ورزي کولو سره د حکومت په نظم کي خلل پیدا نه کړي، په ښو خبرو کي د هغوئ پیروي وکړي او په خرابو خبرو کي د اطاعت څخه پرهیز وکړي که هغوئ د اسلام او عوامو د حقوقو په ادا کولو کي د غفلت او کوتاهۍ ښکار وي نو هغوئ دي په مناسب او جائز طریقه سره خبردار کړي او دهغوئ خلاف دي د بغاوت بېرغ نه پورته کوي که څه هم هغوئ ظلم کوي، علماء چي د مسلمانانو دیني او علمي رهنمایان دي دهغوئ عزت او احترام دي کوي، په شرعي احکامو او دیني مسئلو کي چي هغوئ د قرآن او سنت مطابق څه وایي، هغه دي قبول کړي او په هغه دي عمل کوي، د هغوئ د نېکو خبرو او نېکو اعمالو پیروي دي کوي.

د ټولو مسلمانانو په حق کي دخیرخواهۍ مطلب دادی چي د هغوئ دیني او دنیاوي خیر دي غواړي هغوئ ته دي ددین تبلیغ کوي، هغوئ دي د تاوان څخه وساتي او د هر ډول تاوان رسولو څخه دي ځان وساتي، څرګنده دي وي چي دغه حدیث هم د جوامع الکلم څخه دی، ددغه حدیث مختصر الفاظ په حقیقت کي د دین د ټولو خېرو او سعادتو حاوي دی او ټول علوم اولین او اخرین په دغه حدیث کي درج دي.

## د مسلمانانو خیر اخواهي

﴿۴۷۵۰﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بن عبدالله قَالَ بَايَعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى إِقَامِ الصَّلَاةِ وَإِيتَاءِ الزَّكَاةِ وَالنُّصْحِ لِكُلِّ مُسْلِمٍ. متفق عليه.

د حضرت جریر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ پر لاس ددې خبرو بیعت وکړ یعني دلمانځه د ادا کولو ، د زکوة ورکولو او د هر مسلمان د خیر خواهی. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۳۱۲، رقم: ۲۷۱۵، ومسلم ۱۴\۷۵، رقم: ۹۷- ۵۶.

**تشریح**: د الله جل جلاله د ټول عبادت او طاعت تعلق د دوو شیانو سره دی ، یو حقوق الله او بل حقوق العباد ، حضرت جریر رضی الله عنه په حقوق الله کي په خاصه توګه د هغه عبادت ذکر وکړ چي په ټولو بدني عبادتو کي د شهادتینو څخه وروسته تر ټولو غوره دي او د اسلام په ارکانو کي له مهمو رکنو څخه دي یعني لمونځ او زکوة، کوم چي د روژې او حج تعلق دی نو کیدای سي چي کله حضرت جریر رضی الله عنه بیعت کړی وي تر هغه وخته پوري پر مسلمانانو باندي دغه دواړه (روژه او حج) فرض سوي نه وي، همدارنګه د حقوق العباد په اړه یې هغه شی ذکر کړ چي د هغه په دائره کي د بندګانو ټول حقوق راځي یعني خیرخواهي .

د حضرت جریر رضی الله عنه یوه واقعه دلته بیانول ډېر مناسب ده او د هغه څخه د نوموړي د ذکر سوي بیعت یوه عملي نمونه مخته راځي، نقل سوي دي چي یو وار حضرت جریر رضی الله عنه یو آس د درو سوو درهمو په عوض کي رانیوی ، بیا هغه پلورونکي ته وویل: ستا د آس خو درې سوه درهمه څخه زیات قیمت دی ایا ته ددغه قیمت څلور سوه درهمه اخلې؟ هغه وویل: اې ابن عبدالله! دا ستا خوښه ده ، هغه وویل : دغه آس خو د څلور سوه درهمه څخه ډ زیات قیمت معلومیږي ایا ته ددې قیمت پنځه سوه درهمه اخیستل خوښوې ؟ هغه په همدارنګه د سل سل درهمو په زیاتولو سره د هغه آس قیمت اته سوه درهمه ادا کړ ، خلکو د آس د قیمت زیاتولو سبب و پوښتنی نو هغه وفرمایل: اصل خبره داده چي ما د رسول الله ﷺ سره دا بیعت کړی وو چي د هر مسلمان خیرخواهي به کوم کله چي ما ولیدل چي د هغه آس خاوند هغه قیمت نه غواړي چي په حقیقت کي کېدل پکار دي نو ما د خیرخواهی په وجه هغه ته زیات قیمت ورکړ .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د بد بخته زړه د رحم او شفقت څخه خالي

﴿۴۷۵۱﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ سَمِعْتُ أَبَا الْقَاسِمِ الصَّادِقُ الْمَصْدُوقُ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لاَتُنْزَعُ الرَّحْمَةُ اِلاَّ مِنْ شَقِيٍّ.. رواه احمد والترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د حضرت ابو القاسم الصادق المصدوق ﷺ څخه دا واوريدل چي رحمت او رحم د چا د زړه څخه نه سي ايستل كيدلاى مگر د بد بخته د زړه څخه. احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الأمام احمد ۲\۴۴۲، والترمذي ۴\۲۸۵، رقم ۱۹۲۳.

**تشريح**: د صادق معنى د رېښتوني ده او د مصدوق معنى د هغه چا ده چي خلكو رېښتونى منلى وي يا د هغه د رېښتوني خبر الله ﷻ وركړى وي ، دغه دواړه لقبونه د رسول الله ﷺ صفتونه دي ، رسول الله ﷺ نه يوازي دا چي رېښتونى منل سوى دى بلكه الله تعالى د رسول الله ﷺ د ريښتون كېدو خبر وركړى دى چي فرمايي : (وما ينطق عن الهوى) .

د بدبخته څخه مراد كافر يا فاجر دى ، ددغه ارشاد مطلب دادى چي كافر د خپل كفر او فاسق د خپل فسق په وجه په خپل زړه دومره سخت كړى وي چي په هغه كي هغه انساني جذبه هم ختم سي چي يو انسان پر بل انسان باندي رحم او شفقت كولو ته مائل كوي .

### پر ځمكه والا رحم وكړه

﴿۴۷۵۲﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الرَّاحِمُونَ يَرْحَمُهُمُ الرَّحْمٰنُ ارْحَمُوا من في الْأَرْضِ يَرْحَمْكُمْ مَنْ فِي السَّمَاءِ. رواه ابوداؤد والترمذي

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي د الله ﷻ پر مخلوق رحم او شفقت كوي ، رحمان ﷻ به پر هغوئ رحم او شفقت كوي ، تاسو پر ځمكه والا رحم او شفقت كوئ آسمان والا به پر تاسو رحم وكړي . ابوداؤد او ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۳۱، رقم: ۴۹۴۱، والترمذي ۴\۲۸۵، رقم: ۱۹۲۴.

**تشريح**: د مځکي په اوسيدونکو کي ټول ساه لرونکي شيان داخل دي که هغه حيوانان وي يا انسانان، او انسان که نېک وي يا بد وي مګر پر بدو خلکو باندي د رحم او شفقت کولو صورت دادی چي هغوئ د بدی څخه منع کړل سي لکه څرنګه چي د هغه حديث څخه معلومېږي چي د خپل ورور مرسته کوئ که څه هم هغه ظالم وي يا مظلوم، په تشريح کي ښودل سوي دي چي د ظالم مرسته داده چي هغه د ظلم څخه منع کړل سي او پر مځکي والا باندي د رحم او شفقت کولو مراد دادی چي پر هغه خلکو باندي رحم او شفقت کوه کوم چي ددې ور وي.

کوم چي په اسمان کي دي: مراد د الله ﷻ ذات دی چي د هغه کمال قدرت او د هغه پاچاهي په اسمان کي ده يا ددې څخه مراد ملائکي دي، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي تاسو پر مځکه والا باندي رحم او شفقت کوئ چي په اسمان کي اوسيدونکي يعني د ملائکو رحم به پر تاسو باندي وي او ستاسو په حق کي د هغوئ رحم دادی چي هغوئ ستاسو دښمنانو او ضرر رسونکو مخلوق لکه جنات او شياطن او شرير انسانانو څخه ستاسو ساتنه کوي او د الله تعالی په دربار کي ستاسو لپاره دعاء، استغفار او د رحمت طلب کوي.

## پر کشرانو رحم او د مشرانو عزت

﴿۴۷۵۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَمْ يَرْحَمْ صَغِيرَنَا وَلَمْ يُوَقِّرْ كَبِيرَنَا وَيَأْمُرْ بِالْمَعْرُوفِ وَيَنْهَ عَنِ الْمُنْكَرِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوک زموږ څخه نه دئ چي زموږ پر کشرانو رحم ونه کړي او زموږ د مشرانو عزت ونه کړي، د نيکۍ حکم ور نه کړي او د بدی څخه منع ونه کړي. ترمذي ويلي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴ ۲۸۴، رقم: ۱۹۲۱.

﴿۴۷۵۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَكْرَمَ شَابٌّ شَيْخًا من اجل سنه إِلَّا قَيَّضَ اللَّهُ لَهُ عند سنه مَنْ يُكْرِمُهُ. رواه الترمذي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم ځوان چي د يو سپين ږيري

سړي د هغه د سپين ږيرتوب له كبله د هغه عزت وكړي الله تعالى به د هغه د سپين ږيرتوب په وخت كي يو داسي سړي وټاكي چي د هغه عزت به كوي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۲۷، رقم: ۲۰۲۲.

**تشريح**: د دغه حديث په ذريعه دا حقيقت څرګند سوى دى چي كوم څوک د نورو تعظيم او خدمت كوي نو د هغه تعظم او خدمت هم كيږي او كوم خلک چي د خپلو برزګانو تعظيم او خدمت نه كوي او د خپلو سپين ږيرو سپكاوى كوي نو هغوئ به په خپل سپين ږېرتوب كي د خپلو كشرانو له خوا د دغه سپكاوي سره مخامخ كيږي .

په دغه ارشاد كي دې ته هم اشاره ده چي د هغه ځوان عمر اوږديږي چي د خپلو سپين ږېرو تعظيم او خدمت كوي .

نقل سوي دي چي يو بزرګ د مصر په ښار كي اوسېدى ، د هغه يو مريد وو چي په خراسان كي اوسيدى ، يو وار هغه مريد د خپل شيخ سره د اوسېدو لپاره مصر ته راوسېدى او هلته تر زيات وخت پوري د شيخ په خدمت كي وو او په هغه ورځو كي د نورو بزرګانو يو ډله د هغه شيخ زيارت ته راتلل ، نو شيخ هغه مريد ته اشاره وكړه چي د هغه بزرګانو د سپرلۍ حيوانان سنبال كړه هغه د حيوانانو څارني ته ورغلى مګر په زړه كي يې دا وسوسه پيدا سوه چي زه د دومره ليري ځخه په راتلو سره د شيخ خدمت ته راغلى وم د هغه نتيجه دا سوه ، په هر حال كله چي هغه بزرګان د شيخ ځخه رخصت سول او هغه مريد د پير په خدمت كي حاضر سو نو شيخ ورته وويل : اې زويه! هغه وخت چي ما ته د هغه بزرګانو دسپرلۍ د حيوانانو پر ساتني وټاكلې نو دهغه په وجه كيداى سي ستا په زړه كي وسوسه پيدا سوې وي مګر دومره خبره ياد ساته چي ستا ددغه خدمت به تا ته ډېر اجر تر لاسه سي او ډېر ژر به دي الله تعالى دغه درجې ته ورسوي چي ستا خدمت ته به لوى لوى بزرګان راځي او بيا به د الله تعالى له خوا ستا داسي خلک ټاكل كيږي چي دهغه راتلونكو خدمت به كوي، ويل كيږي چي هغه شيخ څه فرمايلي وه هغه صحيح ثابت سول او د هغه سړي ملاقات لپاره به د راتلونكو لوى لوى بزرګانو د زياتوب په وجه تل د هغه پر دروازه د غاترو او اسانو رش وو .

خپله ددغه حديث راوي حضرت انس رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د خدمت په اړه د دين او دنيا په لوى اجر او انعام سره ونازول سو ، كله چي هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوى وو هغه وخت د هغه عمر لس كاله وو او تر څو چي رسول الله ﷺ دغه دنيا ته تشريف راوړى نو دهغه د ژوند ټول وخت د رسول الله ﷺ په خدمت كي صرف كيدى ، الله تعالى هغه ته يو لوى

نعمت دا ورکړی وو چې د هغه عمر ډېر اوږد سو هغه تقريبا تريو سل او درو کالو پوري ژوندی وو ، الله تعالى د مال او شتمنۍ په دولت سره هم نازولی وو او ډېر اولادونه يې هم ورکړی وه ، ويل کيږي چې د هغه سل زامن وه .

## عالم، حافظ او عادل پاچا

﴿۴۷۵۵﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان مِنْ

د حضرت ابو موسى ﷜ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِجْلَالِ اللّٰهِ إِكْرَامَ ذِي الشَّيْبَةِ الْمُسْلِمِ وَحَامِلِ الْقُرْآنِ غَيْرِ الْغَالِي فِيهِ

د سپين ږيري مسلمان عزت کول د قرآن ويونکي حافظ يا مفسر يا قرآن ويونکي عزت کول چې هغه د قرآن په الفاظو او معنى کې زياتي نه کوي

ولاالْجَافِي عَنْهُ وَإِكْرَامَ السُّلْطَانِ الْمُقْسِطِ. رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان.

او د عادل پاچا تعظيم کول هم يو ډول د الله تعالى د تعظيم څخه دئ . ابوداؤد او بيهقي په شعب الايمان کې .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۷۴، رقم: ۴۸۴۳، والبيهقي في شعب الايمان ۷\ ۴۶۰، رقم: ۱۰۹۸۶.

**تشريح**: ددغه حديث په ذريعه د ذکر سوو خلکو د تعظيم او توقير ارزښت ظاهر سوی دی، مطلب دادی چې ددغه خلکو په شان کې بې ادبي کول د الله تعالى د تعظيم خلاف عمل دی ، د حامل قرآن يعني حافظ، مفسر او قرآن ويونکي تعظيم په دې سره مشروط سوی دی چې نه خو غلو کوونکی وي او نه د قرآن ويلو او ښودلو پرېښودونکی وي، بلکه د ميانه روی اختيارونکی وي لکه څرنګه چې په ټولو عباداتو کې د رسول الله ﷺ عادت وو ، د غُلو نه کولو څخه مراد دادی چې د ريا کونکو په ډول د قرآنکريم د الفاظو تجويد او ښه قرائت په صورت کې د حد څخه تجاوز نه کوي ، تلاوت په دومره تيزي سره نه کوي چې نه خو الفاظ صحيح ادا سي او نه معنى په پوهه کې راسي ، د قرآن کريم په الفاظو او حروفو کې د تحريف په ذريعه خيانت ونه کړي او نه غلط تاويلات او د فاسدو عقائدو او نظرياتو په ذريعه د هغه په معنى او مفهوم کې حذف ، اضافه او ترميم و تبديل وکړي لکه څرنګه چې د فاسد ذهن او فکر د خلکو

طريقه ده ، او نه د قرآن كريم او هداياتو په باره كي شكونه، شبهې او وسوسې پيدا كړي، همدارنګه د قرآن كريم څخه وروسته نسي ، ددې مطلب دادی چي د قرآن كريم تلاوت ترک نه كړي او د تجويد او ادابو څخه مخ نه واړوي او قرآن كريم چي كوم احكام او مسائل بيان كړي دي په هغه عمل كولو څخه تېښته ونه كړي .

ځينو حضراتو غالي (په قرآن كي غلوه كونكی) هغه څوک ګرځولی دی چي د تعليم او تدريس، تبليغ او اصلاح، ذكر او فكر او عبادت څخه بالكل په بې پرواه كېدو سره يوازي په تلاوت كي بوخت وي همدارنګه جافي (د قرآن كريم څخه ليري كيدونكی) هغه سړی ګرځول سوی دی چي د تلاوت څخه بالكل بې پروا او تښتېدونكی وي ، د عادل پاچا څخه مراد هغه حاكم او مشر دی چي په حقيقي معنی كي د عدل پيروان وي او پر خپلو عوامو باندي ظلم نه كوي او د هغه هيڅ فيصله او عمل د عدل او انصاف خلاف نه وي او دا د عدل اعلی درجه ده، د عدل ادنا درجه داده چي د هغه عدل د هغه پر ظلم باندي غالب وي ، ددې پر خلاف كه چيري د هغه ظلم د هغه پر عدل باندي غالب وي نو هغه ته به عادل نه وايو او داسي پاچا او حاكم څخه ليري كېدل افضل دي ، څرګنده دي وي چي ددغه وخت د اكثرو حاكمانو او مشرانو احوال د هغوئ د حكومتي كاروايي او نظم په لېدو سره هغوئ ته د ادنا درجې عادل ويل هم ډېر مشكل دي د هغوئ له خوا چي پر خپلو عوامو باندي كوم قوانين نافذ كيږي او په كومه توګه چي د هغوئ كاركونكي د عوامو سره چلن كوي كه هغه د حقيقت په هنداره كي وكتل سي نو عدل او انصاف به نسكور او د ظلم غلبه به معلومه سي، همدا وجه ده چي ځينو علماؤ ويلي دي چي كوم څوک په اوس زمانه كي يو پاچا يا حاكم ته عادل وايي نو هغه به د كفر په حد كي داخل سي كه څه هم هر پاچا او حاكم ته د يو ډول عدل څخه بالكل خالي نسي ويل كيدای، په اصل كي ددغه قول بنياد يوه باريكه نكته ده اوّ هغه دا چي د يو سړي عدل كول او د يو سړي عادل كېدل ددغه دواړو په مينځ كي فرق دی،

كه دا وويل سي چي زيد عدل كوي نو د هغه د وينا مطلب دا نه دی چي زيد عادل دی ځكه چي د عدل كولو اطلاق پر هغه چا باندي هم كيدای سي چي كله نا كله عدل كوي او د عادل اطلاق يوازي پر هغه چا باندي كيږي چي د عدل په صفت سره تل موصوف وي، كه چيري داسي وويل سي چي زيد لمونځ كونكی دی نو ددې مطلب دادی چي زيد په پابندي سره د هر وخت لمونځ كوي او هيڅكله لمونځ نه پرېږدي او كه داسي وويل سي چي زيد لمونځ كوي نو ددې مفهوم بل څه دی او هغه دا چي زيد هم لمونځ كوي كه څه هم په پابندۍ سره يې نه كوي بلكه كله

ناكله يې كوي نو لفظ د عادل چې كوم وسيع او اهم مفهوم ادا كوي د هغه پر بنياد باندې ددغه لفظ اطلاق نه خو ددغه زمانې پر پاچا او حاكم باندې كيداى سي او نه ددغه زمانې پاچا او حاكم ته د عادل ويلو اجازه سته.

په ذكر سوي حديث كي د درو ډولو كسانو د عزت او تعظيم كولو حكم دى او په شرح السنه كي د حضرت طاوس رحمة الله عليه څخه نقل سوي دي چي دا سنت دي چي تاسو د څلورو كسانو تعظيم او احترام وكړئ، يو د عالم، دوهم د سپين ږيري، دريم د پاچا او څلورم د پلار، ملاعلي قاري رحمة الله عليه ددغه وينا څخه وروسته ليكلي دي چي د پلار په حكم كي مور هم داخل ده او د عالم څخه مراد باعمله عالم دي، لكه څرنگه چي په ذكر سوي حديث كي د پلار د نه ذكر كېدو وجه داده چي اول خو د پلار معامله بالكل څرگنده ده او هر څوك پوهيږي چي د پلار تعظيم كول ضروري دي دوهم دا چي د تعظيم او احترام وړ گرځولو زيات ضرورت د هغه چا دى چي پردى وي او د هغوئ سره نږدې تعلق نه وي ځكه چي د قرابت تعلق په خپله يو انسان د بل انسان پر عزت او احترام باندي مائل كوي، كه چيري پلار سپين ږيرى وي د قران كريم حافظ او باعمله عالم هم وي او پاچا هم وي او هغه پاچا او حاكم كېدل كه د خپل ظاهري منصب په اعتبار وي او كه په باطني او روحاني توگه وي نو په دغه صورت كي هغه سړي ته د خپل پلار ډېر عزت كول پكار دي ځكه چي د هغه په ذات كي هغه خصوصيات جمع وي د تعظيم او توقير واجب كړي.

په دغه حديث كي د ذكر سوو كسانو عزت د الله تعالى د تعظيم څخه گرځول سوى دى حال دا چي د يوه روايت سره سم دغه تعظيم او توقير رسول الله ﷺ خپله د خپل تعظيم او توقير برابر گرځولى دى نو خطيب رحمة الله عليه په خپل جامع كي د حضرت انس رضي الله عنه څخه نقل كړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (ان من اجلالي توقير الشيخ من امتي) يعني د هغه سپين ږيرى عزت كول چي زما د امت څخه دى، زما عزت كول دي.

## د يتيم سره ښه چلن كول

﴿۴۷۵۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُحْسَنُ إِلَيْهِ وَشَرُّ بَيْتٍ فِي الْمُسْلِمِينَ بَيْتٌ فِيهِ يَتِيمٌ يُسَاءُ إِلَيْهِ. رواه ابن ماجة.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مسلمانانو په كورونو

کي غوره کور هغه دئ چي په هغه کي یتیم وي او د هغه سره احسان او ښه چلن کیږي او د مسلمانانو په کورونو کي بد ترین کور هغه دئ چي په هغه کي یتیم وي او د هغه سره خراب چلن کیږي . ابن ماجه.

**تخریج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۲۱۲، رقم: ۳۶۷۹

**تشریح**: د یتیم سره د بد چلن کولو مطلب دادی چي د هغه د کور افراد د هغه د ژوند په اړتیاوو کي غفلت او کوتاهي کوي ، د هغه سره داسي چلن کوي چي په هغه سره دده د خپل کمی او بې چارګۍ احساس وي او هغه ناحقه وهل کیږي او تکلیف ورکول کیږي ، مګر د هغه د تعلیم او روزني په توګه وهل او سزا ورکول په خراب چلن کي داخل نه دي بلکه هغه په احسان او ښه چلن کي داخل دی .

﴿۴۷۵۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ أَمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ مَسَحَ

د حضرت ابوامامه ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي

رَأْسَ يَتِيْمٍ لَمْ يَمْسَحْهُ إِلَّا لِلّٰهِ كَانَ لَهُ بِكُلِّ شَعْرَةٍ تَمُرُّ عَلَيْهَا يَدُهُ حَسَنَاتٌ

د الله ﷻ د رضا لپاره د یو یتیم پر سر لاس تېر کړي نو د یتیم پر سر د هر وریښته په عوض کي چي پر هغو د هغه لاس تېر سي نیکي لیکل کیږي

وَمَنْ أَحْسَنَ إِلٰى يَتِيْمَةٍ أَوْ يَتِيْمٍ عِنْدَهُ كُنْتُ أَنَا وَهُوَ فِي الْجَنَّةِ كَهَاتَيْنِ وَقَرَنَ بَيْنَ إِصْبَعَيْهِ . رواه أحمد والترمذي وقال : هذا حديث غريب .

او څوک چي د هغه یتیم کوچنی سره چي د هغه په روزنه کي وي احسان کوي نو هغه به (زما سره) په جنت کي داسي وي لکه څرنګه چي دا (زما) دوې ګوتي یو ځای دي، رسول الله ﷺ خپلي ګوتي مبارکي یو ځای کړي وښودلې . احمد او ترمذي ، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دئ .

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\ ۲۶۵، والترمذي ۴\ ۲۸۳، رقم: ۱۹۱۸.

**تشریح**: لفظ د تمر که چیري د تاء په زور او د میم په پېښ سره وي یعني د مؤنث صیغه وي نو ژباړه یې هغه ده کوم چي پورته نقل سوې ده او که چیري دغه لفظ د یاء په پېښ او د میم په زبر سره وي یعني یمر په صیغه د مذکر نو په دغه صورت کي به معنی دا وي : (د هر وېښته په

عوض کي چي) پر هغه باندي يو سړي خپل لاس راتېر کړي، د مطلب په اعتبار په دواړو کي فرق نسته، د حسناتو په اړه علماؤ ليکلي دي چي نيکي د کميت او کيفيت په اعتبار مختلفي درجې لري او دا فرق د ښه نيت پر مدار مبني دی.

ښه چلن کوئ: مطلب دادی چي د هغه سره د شفقت او مهربانۍ چلن کوئ، د هغه تعليم او روزني ته توجه کوي، کله چي هغه بالغ سي نو د هغه نکاح کوئ او که د هغه مال او نور شيان در سره وي نو د هغه ساتنه کوئ.

په څرګنده دا معلومېږي چي په يتيمة او يتيم کي حرف د او د تنويع لپاره دی مګر صحيح خبره داده چي دغه حرف شک ظاهروي يعني دلته راوي ته دا شک واقع سوی دی چي رسول الله ﷺ د يتيمه لفظ وفرمايه او که د يتيم، په حديث کي د يتيم د روزنې او د هغه سره د ښه چلن کولو په اړه چي د کومو الفاظو په ذريعه تحسين فرمايل سوی دی په هغه کي د يو سړي لپاره د حسن خاتمې زيری دی.

﴿۴۷۵۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي

آوٰى يَتِيمًا إِلٰى طَعَامِهِ وَشَرَابِهِ أَوْجَبَ اللّٰهُ لَهُ الْجَنَّةَ اَلْبَتَّةَ إِلاَّ أَنْ يَّعْمَلَ ذَنْبًا لاَ

په خوراک او څښاک کي يتيم ته برخه ورکړي نو د هغه لپاره الله تعالی جنت واجب کړي، يقينا تر څو پوري چي هغه داسي ګناه ونه کړي

يُغْفَرُ وَمَنْ عَالَ ثَلاَثَ بَنَاتٍ أَوْ مِثْلَهُنَّ مِنَ الْأَخَوَاتِ فَأَدَّبَهُنَّ وَرَحِمَهُنَّ حَتّٰى

چي د بخښلو وړ نه وي او څوک چي درو لوڼو يا درو خويندو روزنه وکړي هغوئ ته ادب وښيي پر هغوئ رحم او شفقت وکړي تر څو چي

يُغْنِيَهُنَّ اللّٰهُ أَوْجَبَ اللّٰهُ لَهُ الْجَنَّةَ فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ او اثْنَتَيْنِ؟ قَالَ

الله تعالی هغوئ بې پروا کړي (يعني هغوئ بالغي سي او نکاح يې وسي او د خاوند کور ته ولاړي سي) نو د داسي کس لپاره الله تعالی جنت واجب کوي، يو سړي وويل: اې د الله رسوله! او د دوو لوڼو يا خويندو د روزني څومره ثواب دئ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

او اثْنَتَيْنِ حَتّٰى لو قَالُوا أَوْ وَاحِدَةً لَقَالَ وَاحِدَةً وَمَنْ أَذْهَبَ اللهُ بِكَرِيْمَتَيْهِ

د دوو هم دغه ثواب دئ . كه صحابه كرامو د يوې لور يا خور د روزني په اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې وای نو د يوې په اړه به يې هم داسي فرمايلي وای ، او رسول الله ﷺ وفرمايل : د چا څخه چي الله تعالى دوه محبوب شيان واخلي (يعني دوې ستر کي)

وَجَبَتْ لَهُ الْجَنَّةَ قِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ وَمَا كَرِيْمَتَاهُ قَالَ عَيْنَاهُ . رواه في شرح السنة.

نو د هغه لپاره جنت واجب سو ، پوښتنه وسول اې دالله رسوله ! دوه محبوب شيان کوم دي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دوې ستر کي . شرح السنه

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\ ۴۴، رقم: ۳۴۵۷.

**تشريح**: کومي ګناوي چي د بخښلو وړ نه وي: ددې څخه مراد شرک او حقوق العباد دي، د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی که چيري يو څوک داسي ګناه وکړي چي د توبې او استغفار څخه پرته نه سي معافېدلای نو هغه د جنت وړ نه سي کيدای ، په دې کي دې ته اشاره ده چي هغه ټول ګناهونه چي د هغو تعلق د الله ﷻ د حق سره وي بخښل کيږي مګر د شرک ګناه نه بخښل کيږي .

که چيري صحابه کرامو د لور يا خور په اړه پوښتنه کړې وای: دغه خبره د راجح او مختار مذهب په رڼا کي بالکل څرګنده ده چي په هغه کي دا منل سوې ده چي د احکام شرعيه نفاذ د رسول الله ﷺ پر صواب ديد باندي دی چي رسول الله ﷺ څرنګه غواړي هغه نافذ کړي او څوک چي غواړي مقيد او مستثنی کړي مګر کوم حضرات چي دا قول نه مني هغوئ د ذکر سوي عبارت دا تاويل کوي چي رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په ذکر سوي جواب کي چي کومه خبره وفرمايل هغه د وحي الهي پر بنياد وه چي پوښتنه کونکو د خپل سوال په ذريعه دا خواهش کړی وو چي کوم ثواب د درو لوڼو يا درو خويندو پر روزنه باندي ورکول کيږي ، کاش چي هغه ثواب د دوو لوڼو يا دوو خويندو د روزني په صورت کي هم تر لاسه کېدای، نو الله تعالى د هغوئ د دغه خواهش سره سم وحي نازل کړې او رسول الله ﷺ هغه بيان کړې، لکه څرنګه چي په نورو ډېرو حديثو کي هم داسي صورت منقول دی .

## د اولاد ښه تربيت

﴿۴۷۵۹﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَأَنْ يُؤَدِّبَ الرَّجُلُ وَلَدَهُ خَيْرٌ له مِنْ أَنْ يَتَصَدَّقَ بِصَاعٍ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وناصح الراوي ليس عند اصحاب الحديث بالقوي.

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د انسان خپل اولاد ته د ادب يوه خبره ښودل د يو ه صاع غلې او خيرات كولو څخه غوره دي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ او ناصح راوي د محدثينو په نزد قوي نه دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۷، رقم: ۱۹۵۱،

**تشريح**: د ادب څخه شرعي روزنه او تاديب مراد دی، ددغه حديث څخه دا معلومه سوه چي د شريعت په نظر كي د كوچنيانو د تعليم او روزنې ډېر زيات ارزښت دی نو دا د مور او پلار ذمه داري ده چي هغوئ خپل اولاد د صحيح تعليم او روزني څخه برخمن كړي او صحيح تعليم او روزنه هغه دي كوم چي ديني تعليم او روزنه ده چي ديني تعليم، اسلامي اخلاق او شرعي ادابو باندي مشتمل دي.

د ترمذي د قول مطلب دادی چي دغه حديث ضعيف دی مګر څرګنده دي وي چي د اعمالو په فضائلو كي پر ضعيف حديث باندي عمل كول جائز دي لكه څرنګه چي د حدثينو متفقه فيصله ده.

﴿۴۷۶۰﴾: وَعَنْ أَيُّوبَ بْنِ مُوسَى عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا نَحَلَ وَالِدٌ وَلَد مِنْ نَحْلٍ أَفْضَلَ مِنْ أَدَبٍ حَسَنٍ. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الايمان وقال الترمذي هذا عندي حديث مرسل.

حضرت ايوب بن موسی رحمه الله د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پلار خپل زوی ته تر نيک ادب ښودلو غوره هيڅ شی نه سي وركولای. ترمذي او بيهقي، د ترمذي په نزد دا حديث مرسل دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۸، رقم: ۱۹۵۲. والبيهقي في شعب الايمان ۶\۳۹۹، رقم: ۸۶۵۲.

**د لغاتو حل**: نحل: ای اعطی (ورکړه)

**تشریح**: مطلب دادی چي د پلار له خوا د خپل زوی لپاره تر ټولو زيات قيمتي او تر ټولو زيات ګټور شی صحيح تعليم او نېک تاديب دی.

﴿۴۷۶۱﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ الْأَشْجَعِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عوف بن مالک اشجعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

وَسَلَّمَ أَنَا وَامْرَأَةٌ سَفْعَاءُ الْخَدَّيْنِ كَهَاتَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَأَوْمَأَ يَزِيدُ بِابن

زه او د تورو پيکيانو والا ښځه به د قيامت په ورځ داسي وي، يزيد بن زريع ددې حديث يو

زريع الوسطى وَالسَّبَّابَةِ امْرَأَةٌ آمَتْ مِنْ زَوْجِهَا ذَاتُ مَنْصِبٍ وَجَمَالٍ حَبَسَتْ نَفْسَهَا عَلَى يَتَامَاهَا حَتَّى بَانُوا أَوْ مَاتُوا. رواه ابوداؤد.

راوي منځنۍ ګوته او د شهادت ګوتي ته اشاره کولو سره وښودل لکه څرنګه چي دا دوې ګوتي نژدې دي، داسي به رسول الله ﷺ او هغه ښځه د قيامت په ورځ نژدې نژدې وي، د تورو پيکيانو والا ښځي تشريح کول يې وښودل چي ددې څخه مراد هغه ښځه ده چي د هغې خاوند مړ سوی وي يا هغه طلاق ورکړی وي هغه منصب او ښکلا ولري مګر هغې د يتيمانو د روزني په خيال دويمه نکاح نه وي کړې او خپل خواهشات يې منع کړي وي تر څو چي د هغې کوچنيان ځوانان سي او دهغې څخه بيل سي (يعني چي ښې حاجته سي ځيني په بلوغ قوت عقل او کاروبار خپل کي). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳۵۶\۵، رقم: ۵۱۴۹.

**د لغاتو حل**: سفعاء: ای متغيرة لون الخدين (د مخ رنګ يې بدل سوی.)

**تشريح**: مطلب دادی چي د کومي ښځي خاوند د کوچنيانو په پرېښودو سره مړ سي، يا کومي ښځي ته چي خاوند طلاق ورکړی وي او هغه ښځه محض د خپل يتيمانو لپاره د بل چا سره نکاح ونه کړي بلکه د خپل حسن، جمال او عزت سربېره د خپلو جذباتو په وژلو سره د ازدواجي ژوند د خوشحاليو څخه ليري سوې وي او د خپلو کوچنيانو په روزنه کي تر هغه وخته پوري خپل ځان زهيروي تر څو چي د هغوئ په روزنه کي د خپلي ځوانۍ ورځي قربان کړي او خپل حسن او جمال د هغوئ لپاره برباد کړي نو رسول الله ﷺ د داسي ښځي په اړه وفرمايل چي هغه به د

قيامت په ورځ ما ته دومره نژدې وي لکه څرنګه چي دغه دوې ګوتي يو بل ته نژدې دي، ددې څخه معلومه سوه چي کومي ښځي د خاوند د وفات يا طلاق په وجه کونډي سوي وي نو هغوئ ته صبر او استقامت اختيارول، د خپلو کوچنيانو د غوره مستقبل لپاره بله نکاح نه کول او د هغه کوچنيانو ښه روزنه کول ډېر فضيلت لري.

《۴۷۶۲》: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ لَهُ أُنْثَى فَلَمْ يَئِدْهَا وَلَمْ يُهِنْهَا وَلَمْ يُؤْثِرْ وَلَدَهُ عَلَيْهَا يَعْنِي الذُّكُورَ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کوم چا چي يوه لور وي او هغه (د جاهليت د زمانې په ډول) ژوندۍ ښخه کړې نه وي نه يې هغه ذليله او خوراه ساتلې وي (د مال او جائيداد په حق کي يې) هلکانو ته پر هغې غوره والی نه وي ورکړی نو الله تعالی به هغه په جنت کي داخل کړي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۵۴، رقم: ۵۱۴۶.

**تشريح**: د ولد اطلاق پر زوی او لور دواړو باندي کيږي ځکه ابن عباس رضي الله عنهما ددغه الفاظو يعني الذكور په ذريعه دا وضاحت وکړ چي په دغه حديث کي د ولد څخه د رسول الله ﷺ مراد زوی دی

## څوک غيبت کولو ته مه پرېږدئ

《۴۷۶۳》: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اغْتِيبَ عِنْدَهُ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا په مخکي چي د يو

أَخُوهُ الْمُسْلِمُ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى نَصْرِهِ فَنَصَرَهُ نَصَرَهُ اللّٰهُ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ فَإِنْ

مسلمان ورور غيبت وکړل سي او هغه د هغه مسلمان ورور په مرسته کولو قادر سو او د هغه مرسته يې هم وکړه (يعني د غيبت څخه يې منع کړی) نو الله تعالی به په دنيا او آخرت دواړو کي د هغه مرسته وکړي،

لَمْ يَنْصُرْهُ وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى نَصْرِهِ أَدْرَكَهُ اللّٰهُ بِهِ فِي الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ . رواه في

شرح السنة.

او که د هغه مرسته يې نه وکړل او د هغه په مرسته کولو قادر هم وو نو الله تعالی به مؤاخذه کوي په دنيا او آخرت کي به بدله ځيني واخلي. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۱۰۷، رقم: ۳۴۳۰.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري د يو چا په مخکي د هغه د مسلمان ورور غيبت کيږي او د هغه د عيبونو په بيانولو سره د هغه عزت ته تاوان رسوي نو که چيري هغه پر دې قادر وي چي دخپل مسلمان ورور حيثيت ته چي کوم تاوان رسيدلی وي د هغه د ختمولو هڅه دي وکړي ځکه چي داسي کول نه يوازي د يو مسلمان ورور مرسته ده بلکه خپل ځان په دنيا او آخرت کي د الله تعالی د مرستي او نصرت مستحق ګرځول دي او که چيري يو څوک ددغه ذمه داری د پوره کولو څخه منع کوي نو هغه دي پوه سي چي د قدرت لاس به د هغه ګرېوان ونسي او هغه به په دنيا کي او آخرت کي د الهي مؤاخذې سره مخامخ کيږي.

﴿۴۷۶۴﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيْدٍ قَالَتْ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ ذَبَّ عَنْ لَحْمِ أَخِيْهِ بِالْمَغِيْبَةِ كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يُّعْتِقَهُ مِنَ النَّارِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د خپل مسلمان ورور غائبانه د غوښو خوړلو څخه يعني غيبت کولو څخه منع کړي نو پر الله ﷻ د هغه دا حق دئ چي هغه د دوږخ د اور څخه آزاد کړي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۶\۱۱۲، رقم: ۷۶۴۳.

**تشريح**: د غيبت کول د کنايې په توګه په غوښو خوړلو سره تعبير سوی دی، يعني کوم څوک چي د چا غيبت کوي نو ګويا د هغه غوښه خوري، په قرآن کريم کي د غيبت خرابي په دغه الفاظو کي بيان سوې ده: (ايحب احدکم ان ياکل لحم اخيه ميتا): ايا په تاسو کي يو څوک د خپل مړه ورور غوښه خوړل خوښوي.

غيبت کولو ته د غوښو د خوړلو سره د تشبيه ورکولو سبب دادی چي غيبت کول په اصل کي د هغه بې عزتي کول دي او عزت تر ځان هم زيات خوږ وي نو کوم څوک چي د خپل مسلمان

ورور د غيبت په ذريعه د هغه بې عزتي وکړه نو هغه گويا هغه هلاک کړ او د هغه غوښه يې وخوړل.

په څرگنده دا خبره صحيح معلوميږي چي د بالمغيبة تعلق د ذبي سره دی او غيبت يعني د عدم موجودگی په مفهوم کي دا هم کيدای سي چي د بالمغيبة تعلق د بلحم اخيه سره وي او د مفهوم په اعتبار غيبت تر شا د يو چا د بد بيانولو په معنی کي دی، په دغه صورت کي به عبارت داسي وي: من ذب عن اكل لحم اخيه بالمغيبة، يعني کوم څوک چي د خپل مسلمان ورور د غيبت په ذريعه د هغه د غوښو خوړلو څخه منعه کړي ...الخ، مگر د حديث خلاصه په دواړو صورتو کي يو ده هغه دا چي خلک د يو بل د غيبت څخه منع کول دي.

د دوږخ د اور څخه ازاد کړي: مطلب دادی چي هغه سړی به په پېل کي د دوږخ د اور څخه خلاصون تر لاسه کړي، يا دا که چيري هغه سړی د خپلو گناهو په سبب په دوږخ کي داخل کړل سي نو د عذاب پوره کولو څخه پرته به را وايستل سي.

﴿۴۷۶۵﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو درداء ﷛ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي کوم

يَقُوْلُ مَا مِنْ مُسْلِمٍ يَرُدُّ عَنْ عِرْضِ أَخِيْهِ إِلاَّ كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ أَنْ يَّرُدَّ عَنْهُ

مسلمان يو څوک د يو مسلمان ورور د بې عزتی څخه منع کړي (يعني چي څوک غيبت د يو مسلمان کوي او دوئ يې ځيني منع کړي) نو پر الله تعالی د هغه حق دئ چي هغه

نَارَ جَهَنَّمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ ثُمَّ تَلاَ هٰذِهِ الْآيَةَ وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِيْنَ.

رواه في شرح السنة.

د دوږخ د اور څخه وساتي يا د قيامت په ورځ د دوږخ اور د هغه څخه منع کړي، نو بيا رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت کړ: (كان حقا علينا..) او پر موږ باندي د مؤمنانو مرسته واجب ده. شرح السنة

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ١٣\١٠٦، رقم: ٣٤٢٨.

﴿۴۷۶۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا مِنْ امْرِئٍ مسلم

د حضرت جابر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم مسلمان چي د خپل

يَخْذُلُ امْرَأً مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ ينتهكُ فِيهِ حُرْمَتُهُ وَيُنْتَقَصُ فِيهِ مِنْ عِرْضِهِ

مسلمان ورور پر هغه موقع مرسته ونه کړي کوم ځای چي د هغه بې عزتي کيږي نو الله تعالی به

إِلَّا خَذَلَهُ اللَّهُ فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فِيهِ نُصْرَتَهُ وَمَا مِنْ امْرِئٍ مسلم يَنْصُرُ

پر هغه موقع د هغه مرسته ونه کړي په کوم ځای کي چي هغه د الله تعالی مرسته خوښوي (يعني په دنيا او آخرت کي)

مُسْلِمًا فِي مَوْضِعٍ يُنْتَقَصُ مِنْ عِرْضِهِ وَيُنْتَهَكُ فِيهِ مِنْ حُرْمَتِهِ إِلَّا نَصَرَهُ اللَّهُ فِي مَوْطِنٍ يُحِبُّ فيه نُصْرَتَهُ. رواه ابوداؤد.

او کوم مسلمان چي د خپل مسلمان ورور پر هغه موقع مرسته وکړي په کوم ځای کي چي د هغه بې حرمتي کيږي نو الله تعالی به پر هغه موقع دهغه مرسته وکړي په کوم ځای کي چي د هغه مرسته خوښوي. (يعني ورته ضرورت يې وي). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۹۷، رقم: ۴۸۸۴.

﴿۴۷۶۷﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَأَى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ أَحْيَا مَوْءُودَةً. رواه احمد والترمذي.

د حضرت عقبة بن عامر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د يو مسلمان يو عيب ووېني او هغه پټ کړي نو د هغه ثواب د هغه سړي برابر وي چي هغه ژوندۍ ښخ کړې انجلۍ وژغوري. احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۱۴۷، رقم: ۱۹۳۰،

**تشريح**: د يو چا عيب پټول د ژوندۍ ښخ سوې انجلۍ د ژغورني سره د تشبيه ورکولو وجه علماؤ دا ليکلې ده چي د يو چا معيوبه خبره ښکاره سي نو د شرم څخه هغه د مړه په ډول سي او دا خواهش کوي چي کاش زه مړ وای خو زما عيب چا ته ښکاره سوی نه وای او دغه رسوايي مي لېدلې نه وای، که يو څوک د يو چا عيب پټوي نو هغه ګويا د هغه شرمندګۍ دفع کوي چي د هغه لپاره د مرګ برابر ده، په دې اعتبار سره د يو چا عيب پټول هغه ته د ژوند بخښلو برابر دی

لکه څرنګه چي ژوندی انجلی ښخ کړل سي او بیا یو سړی هغه انجلۍ په عین وخت کي د قبر څخه راوکاږي کله چي هغه آخري ساه اخلي او بیا ژوند تر لاسه کړي.

## مسلمان د بل مسلمان هنداره ده

﴿۴۷۶۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَحَدَكُمْ مِرْآةُ أَخِيهِ فَإِنْ رَأَى بِهِ أَذًى فَلْيُمِطْ عَنْهُ. رواه الترمذي و ضعفه وفي رواية له ولابي داؤد المؤمن مرآة المؤمن والمؤمن اخو المؤمن يكف عنه ضيعته ويحوطه من ورائه.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي هر څوک د خپل مسلمان ورور هنداره ده، که په هغه کي یو خرابي ویني نو هغه دي ځیني لیري کړي، ترمذي او د ترمذي او ابوداؤد په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي مسلمان د مسلمان هنداره ده او مسلمان د مسلمان ورور دئ د هغه څخه دي هغه شی لیري او دفع کړي چي په هغه کي د هغه هلاکت پټ وي او د هغه حق د هغه په نه شتون کي هم خوندي ساتي.

**تخريج:** سنن الترمذي ۱۴\۲۸۷، رقم: ۱۹۲۹، وابوداود ۵\۲۱۷، رقم: ۴۹۱۸.

**تشريح:** مطلب دادی چي څرنګه هنداري ته کتونکی په هنداره کي خپل عیب او خرابي ویني همدارنګه یو مسلمان د بل مسلمان په حق کي دومره حساس او خیرخواه وي که چیري یو مسلمان په خپل مسلمان ورور کي یو عیب ویني یا هغه مسلمان ورور په یو بدکار کي ویني نو هغه دي سمدستي خبر کړي او د هغه عیب تاوان او هلاکت دي ورته بیان کړي او دغه خبرول دي په پټه کوي چي نور خلک په خبر نسي تر څو چي د خلکو په نظر کي رسوا او ذلیل نسي، لکه څرنګه چي هنداره خپل لیدونکی د هغه د عیب څخه دا خبروي چي بل چا ته نه معلومیږي نو هغه مسلمان ته هم پکار دي چي کله یو مسلمان هغه په یو عیب خبر کړي نو هغه باید سمدستي د هغه عیب څخه خپل ځان پاک کړي لکه څرنګه چي یو څوک په هنداره کي پر خپل مخ باندي د یو داغ په لیدو سره سمدستي هغه پاکوي او د مخ د پاکوالي هڅه کوي، خلاصه دا چي د مسلمانانو د یو بل سره کوم قلبي او روحاني تعلق دی د هغه تقاضا داده چي یو مسلمان بل مسلمان په یو عیب کي ویني نو په دې احساس سره چي زما دغه ورور په تاوان کي دی او دده

تاوان زما تاوان دی نو هغه د تاوان څخه د ژغورلو هڅه وکړي ځکه چي دا خيرخواهي د يو بل سره د همدردۍ او د ايمان او اسلام منشاء ده ، دغه ارشاد چي يو مسلمان د بل مسلمان ورور دی، ددې تقاضا داده چي همدردي د ملت د فلاح او کاميابۍ او ديني او دنياوي سعادتونو چينه ده ، مولانا روم رحمة الله عليه ويلي دي چي صوفيان تر هغه وخته پوري په خير او نيکي وي تر څو چي د يو بل د احوالو د اصلاح هڅه کوي او کله چي هغوئ د يو بل څخه بې پروا سي نو هلاک به سي .

د حديث د آخري الفاظو : (ويحوط من ورائه) مطلب دادی چي دا د ايماني ورورګلوۍ مظهر دی چي يو مسلمان د بل مسلمان په نه شتون کي د هغه د عزت ،ځان او مال ساتنه خپل ذمه داري وګڼي . نو يو مسلمان نه يوازي دا چي خپله د يو مسلمان غيبت نه کوي بلکه که چيري بل څوک د هغه غيبت کوي نو دهغه ترديد کوي او ددې هڅه کوي چي د هغه په وړاندي د يو مسلمان ځاني او مالي حيثيت ته تاوان ونه رسېږي .

## تهمت ويل

﴿۴۷۶۹﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

د حضرت معاذبن انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : څوک چي

حَمَى مُؤْمِنًا مِنْ مُنَافِقٍ بَعَثَ اللهُ مَلَكًا يَحْمِي لَحْمَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنْ نَارِ

يو مسلمان د يو منافق د شر څخه وژغوري الله تعالى به د هغه مرستي ته يوه ملائکه راوليږي چي هغه به د قيامت په ورځ

جَهَنَّمَ وَمَنْ رَمَى مُسْلِمًا بِشَيْءٍ يُرِيدُ بِهِ شَيْنَهُ حَبَسَهُ اللهُ عَلَى جِسْرِ جَهَنَّمَ حَتَّى يَخْرُجَ مِمَّا قَالَ . رواه ابوداؤد.

د دوږخ د اور څخه ساتي او کوم سړی چي پر يو مسلمان داسي تهمت ولګوي چي پر هغه عيب لګوي او عيب لګول د هغه مقصد وي نو الله تعالى به هغه د دوږخ پر پل بندي کړي (يعني پر پل صراط) تر څو چي د هغه سزا پوره سي يا هغه مدعی راضي کړي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۹۶۱۵، رقم: ۴۸۸۳.

**تشريح**: دلته د منافق څخه مراد غيبت کونکی دی، غيبت کونکي ته منافق ځکه ويل سوي دي چي غيبت کونکی هيڅکله يو چا ته مخامخ بد نه وايي که چيري د هغه په مخ کي وي نو په

زړه كي د بدئ ساتلو سربېره د هغه د خيرخواهئ څرګندونه كوي او د هغه تر شا د هغه غيبت كوي چي دا د منافق كار دی چي په ظاهره يو رقم وي او په باطن كي بل رقم وي.

د حديث آخري الفاظ : (حتى يخرج مما قال) مطلب دادی چي تر څو پوري هغه سړی تهمت ويونكی راضي نه كړي يا د شفاعت په ذريعه او يا د ګناه په اندازه د عذاب زغملو په ذريعه د ګناه څخه پاک سي نو تر هغه وخته د هغه خلاصون ممكن نه دی .

## غوره ملګری او همسايه

﴿۴۷۷۰﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللَّهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَيْرُ الْأَصْحَابِ عِنْدَ اللَّهِ خَيْرُهُمْ لِصَاحِبِهِ وَخَيْرُ الْجِيرَانِ عِنْدَ اللَّهِ خَيْرُهُمْ لِجَارِهِ .رواه الترمذي والدارمي وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د الله جل جلاله په نزد په دوستانو كي غوره دوست هغه دئ چي د خپل دوست خير خواه وي او غوره همسايه د الله تعالى په نزد هغه دئ چي د خپل همسايه خير خواه وي . ترمذي، دارمي او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۲۹۴، رقم: ۱۹۴۴، والدارمي ۲\ ۲۸۴، رقم: ۲۴۳۷.

**تشريح**: كوم څوک چي دخپلو قريبانو او همسايګانو سره ښه چلن او احسان كوي او په هر حالت كي د هغوئ خيرخواه وي نو هغه نه يوازي غوره قريب او همسايه ګرځول كيږي بلكه هغه ته د الله تعالى له دربار څخه ډېر ثواب هم وركول كيږي .

## د نيكئ او بدئ معلومول

﴿۴۷۷۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَجُلٌ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي نبي كريم ﷺ ته وويل:

يارسول الله كَيْفَ لِي أَنْ أَعْلَمَ إِذَا أَحْسَنْتُ او اذا أَسَأْتُ فقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

اې دالله رسوله ! زه دا خبره څنګه معلومه كړم چي دا كار ما نيک كړی دئ يا بد ؟ نبي كريم ﷺ

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا سَمِعْتَ جِيرَانَكَ يَقُولُونَ قَدْ أَحْسَنْتَ فَقَدْ أَحْسَنْتَ وَإِذَا

سَمِعْتَهُمْ يَقُولُونَ قَدْ أَسَأْتَ فَقَدْ أَسَأْتَ. رواه ابن ماجة.

ورته وفرمايل: كله چي ته د يو كار په اړه د همسايګانو څخه دا واورې چي تا ښه كار وكړ نو هغه ستا ښه كار دئ او هر كله چي ته د همسايګانو څخه دا واورې چي تا خراب كار وكړ نو هغه ستا خراب كار دئ. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۱۲، رقم: ۴۲۲۳.

**تشريح**: كله چي ته د خپلو همسايګانو څخه دا واورې: دلته د همسايګانو څخه ټول همسايګان مراد دي ځكه چي دوه يا څلور همسايګان پر غلط كار باندي متفق كېداى سي مګر په عامه توګه د ټولو همسايګانو پر يو ناروا فيصله او غلطه خبره باندي متفق كېدل ممكن نه دي، شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه ويلي دي چي ددغه حديث تعلق د هغه صورت سره دى كله چي د هغه همسايګان اهل حق، او انصاف داره او پوهان وي او هغوئ د هغه سړي سره نه زياته مينه او تعلق لري او نه ډېره دښمني ورسره لري. دغه حديث د حضرت علي رضي الله عنه ددغه عارفانه كلام تائيد كوي: (السنة الخلق اقلام الخلق) يعني د مخلوق ژبه د الله تعالى قلم دى يا دغه مفهوم زموږ په سيمه كي ددغه محاورې (د خلكو ژبه د خداى جل جلاله نقاره ده) په ذريعه ادا كيږي، يو شاعر څو مره ښه ويلي دي:

برا كہے جسے عالم اسے برا سمجھو  زبان خلق كو نقارہ خدا سمجھو

ژباړه: كوم چي عالم ورته بد ووايي هغه بد وګڼه، د خلكو ژبه د خداى جل جلاله نغاره وګڼه.

## د مرتبې سره سم چلن كوه

﴿۴۷۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَنْزِلُوا النَّاسَ مَنَازِلَهُمْ. رواه ابوداؤد

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: خلک د هغوئ په مرتبه كي ولرئ. (يعني د كومي مرتبې سړى چي وي د هغه سره هم هغسي چلن كوئ) ابوداؤد..

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۷۳، رقم: ۴۸۴۲.

**تشريح**: د چا چي كوم حيثيت وي او د چا چي كومه مرتبه او درجه وي د هغه سره د هغه د درجې او مرتبې مطابق چلن او تعظيم كوه، دا نه چي د هر چا سره يو ډول چلن وكړل سي، يو

سړی شریف او عزتمند وي او یو سړی ذلیل او بد وي که چیري د دواړو سره یو ډول چلن وکړل سي نو څرګنده ده چي نامناسب به وي، ځکه په تعظیم او تکریم کي د هر چا سره داسي چلن کوه چي نه خو تکلیف رسونکی او د شکایت پیدا کېدو باعث وي او نه د ددرجې او مرتبې نامناسب وي ، ددې څخه معلومه سوه چي د خادم او مخدوم سره د برابری چلن کول نه دی پکار بلکه په دواړو کي هر یوه د هغه درجه ورکول پکار دي او دا خبره د قرآن کریم ددغه آیت څخه هم ثابتیږي چي : (ورفعنا بعضهم درجات) .

په احیاء العلوم کي نقل سوي دي چي یوه ورځ بي بي عائشه رضي الله عنها ناسته وه خوراک یې کوی، یو فقیر د هغې مخته تېر سو ، بي بي عائشې رضي الله عنها د ډوډۍ یوه ټوټه یې ور واستول، ددې څخه وروسته یو سپور سړی هلته تېر سو نو بي بي عائشې رضي الله عنها پیغام ورکړ چي خوراک حاضر دی تشریف راوړئ او ډوډۍ وخورئ . په ناستو کسانو کي یوه سړي د بي بي عائشې ﷺ ددغه مختلف چلن په اړه پوښتنه وکړه ، هغې ورته وفرمایل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي هر چا ته د هغه درجه ورکوئ، هغه فقیر خو د ډوډۍ په یوې ټوټې خوشحاله سو مګر که چیري د هغه سپاره سړي سره مي داسي چلن کړی وای کوم چي د فقیر سره مي وکړ نو هغه به تکلیف محسوس کړی وای او د هغه سپکاوی به سوی وای .

ددغه حدیث څخه معلومه سوه چي علماء د تفاصیل انبیاء او تفصیل خلفاء وغیره قائل دي ، د هغوئ قول صحیح دی او دغه حدیث د هغوئ په اړه د هدایت چینه ده، که ځیني خلک د امیرانو، شتمنو او سردارانو د عزت او اکرام ددغه حدیث په ذریعه ثابتولو هڅه وکړي نو د هغوئ دغه هڅه به د ګمراهی برابر وي ځکه علماء خو د علم او فضل په اعتبار پر یو بل فضیلت ورکوي او په دغه فضیلت کي د یو چا سپکاوی هیڅکله مقصد نه وي، حال دا چي شتمن خلک د غریبو او مسکینانو سره د سپکاوی او نفرت چلن کوي که څه هم یو غریب سړی لوی عالم وي او امیرانو او شتمن کسانو تعظیم او عزت کوي که څه هم هغه لوی فاسق وي . که داسي شتمن خلک ددغه حدیث څخه استدلال کول پیل کړي نو ددې څخه پرته نور څه ویل کیدای سي چي یوې خوا ته هغه علماء دي چي په دغه حدیث کي په استدلال کي الله تعالی کامیاب کړل او بلي خوا ته هغه بدبخته شتمن خلک دي چي هغوئ یې ګمراه کړي دي (کل اناس مشربهم وفهم کل فرق بدینهم یضل به کثیرا و یهدي به کثیرا) .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### رښتيا ويل امانت ادا كول

《۴۷۳》: عَنْ عَبْدِ الرَّحْمٰنِ بْنِ أَبِي قُرَادٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَوَضَّأَ

د حضرت عبدالرحمن بن ابي قراد ﷛ څخه روايت دئ چي يوه ورځ رسول الله ﷺ اودس وكړاو

يَوْمًا فَجَعَلَ أَصْحَابُهُ يَتَمَسَّحُوْنَ بِوَضُوْئِهِ فَقَالَ لَهُمُ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

صحابه كرامو د اوداسه اوبه پر خپل بدن موږلې ، (ددې په ليدو سره) رسول الله ﷺ ورته

وَسَلَّمَ مَا يَحْمِلُكُمْ عَلٰى هٰذَا قَالُوْا حُبُّ اللّٰهِ وَرَسُوْلِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

وفرمايل : كوم شي تاسو پر دې اماده كړي ياست ، صحابه كرامو وويل: الله ﷻ او د الله د رسول ميني، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

وَسَلَّمَ مَنْ سَرَّهُ أَنْ يُّحِبَّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ أَوْيُحِبُّهُ اللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ فَلْيَصْدُقْ حَدِيْثَهُ

د چا چي دا خبره خوښه وي چي هغه الله ﷻ او د الله ﷻ د رسول سره مينه وساتي نو هغه ته پكار

إِذَا حَدَّثَ وَلْيُؤَدِّ أَمَانَتَهُ إِذَا اؤْتُمِنَ وَلْيُحْسِنْ جِوَارَ مَنْ جَاوَرَهُ. رواه البيهقي.

ده چي هغه په خپلو خبرو كي رښتيا وايي ، كه هغه سره امانت كښېښنودل سي نو په سمه طريقه سره امانت ادا كړي او د همسايګانو د همسايتوب ښه حق ادا كړي . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۲\۲۰۲، رقم: ۱۵۳۳.

**تشريح**: د اوداسه د اوبو څخه مراد د اكثرو علماؤ په نزد هغه اوبه دي چي د اوداسه كولو څخه وروسته په لوښي كي پاته سوي وي او ځينو حضراتو ويلي دي چي ددې څخه مراد هغه اوبه دي چي د اوداسه كولو په وخت كي د رسول الله ﷺ د اندامو مباركو څخه توئيدلې .

او يحبه الله ورسوله: دلته د او حرف د تنويع لپاره دى، څرګنده دي وي چي يوه درجه خو د بنده د الله ﷻ او رسول ﷺ سره مينه كول دي ، او دوهمه درجه د الله ﷻ او رسول ﷺ د بنده سره مينه كول دي، څرګنده ده چي دوهمه درجه تر لومړۍ درجې لوړه ده مګر په حقيقت كي دواړي درجې د يوې بلي لپاره لازم او ملزوم دي په دې توګه چي هر يو خپل دوست ګرځول يا دا چي

حرف د او په اصل کي د لفظ بل په معنی کي استعمال سوی وي په دغه صورت کي به معنی دا وي چي کوم څوک دا خوښوي چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول ﷺ سره مینه لري بلکه کوم څوک چي خوښوي چي الله او د هغه رسول سره مینه کوي نو هغه ته پکار دي چي ...الخ. دغه قول زیات صحیح معلومیږي ، دا هم کېدای سي چي د او حرف د راوي شک ظاهروي یعني رسول الله ﷺ یا دا فرمایلي وه چي کوم څوک د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول سره مینه کول غواړي یا یې دا فرمایلي دي چي کوم څوک دا خوښوي نو الله تعالی او د هغه رسول د هغه سره مینه کوي.

په هر حال د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي د الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه د رسول د مینې دعوه د داسي خبرو په ذریعه چي پر نفس باندي سخت نه وي هیڅ حیثیت نه لري بلکه ددغه دعوې د ثبوت لپاره ضروري ده چي الله جَلَّ جَلَالُهُ او د هغه رسول د کومو شیانو اختیارولو حکم کړی دی هغه اختیار کړل سي او دکومو شیانو څخه یې چي منع کړې ده د هغه څخه ځان وساتل سي، په خاصه توګه پر هغه احکامو باندي په زیاته توجه سره عمل وکړل سي چي د هغو تعلق د خلکو د حقوقو او معاملاتو سره وي او حقوقو او معاملات هم هغه چي هغه اکثر واقع کیږي لکه رښتیا ویل، امانت ادا کول، دهمسایګانو سره ښه چلن کول او داسي نور.

احتمال دی چي رسول الله ﷺ کیدای سي هغه صحابه کرام د ذکر سوو شیانو د حقوقو په ادا کولو کي کمزوري لیدلي وي ځکه نو په خاصه توګه رسول الله ﷺ ددغه شیانو ذکر وفرمایه.

## وږی همسایه

﴿۴۷۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَيْسَ الْمُؤْمِنُ بِالَّذِيْ يَشْبَعُ وَجَارُهُ جَائِعٌ إِلَى جَنْبِهِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان

د حضرت ابن عباس رَضِيَ اللهُ عَنْهُ څخه روایت چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل چي هغه څوک پوره مؤمن نه دئ چي خپله په ماړه نس خوراک وکړي او د څنګ همسایه یې وږی وي. بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۳\۲۲۵، رقم: ۳۳۸۹.

**تشريح**: څرګنده ده چي هغه مسلمان د کمال ایمان درجې ته څرنګه رسیدلای سي چي خپله په ماړه نس ښه سي او د هغه همسایه وږی وي، د یو کامل مسلمان په اړه دا تصور هم نسي کیدای چي هغه په دې پوهیږي چي د هغه فلانی همسایه محتاج، مفلس او سخت وږی دی او

هغه په خپل خوراک کي شريک نه کړي.

د هغه د اړخ څخه: د دغه جملې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي کوم څوک د خپل همسايه د حالاتو څخه بې خبره او بې پروا وي نو دهغه څخه لوی غافل او بې پرواه بل څوک کيدای سي.

## جنت او دوږخ ته تلونکي ښځي

﴿۴۷۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنَّ فُلَانَةَ تُذْكَرُ مِنْ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي يو سړي وويل: اې د الله رسوله! فلانۍ ښځه په

كَثْرَةِ صَلَاتِهَا وَصِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا غَيْرَ أَنَّهَا تُؤْذِي جِيرَانَهَا بِلِسَانِهَا قَالَ هِيَ

لمونځ کولو، روژو نيولو او خيرات کولو کي شهرت لري مګر په خپله ژبه سره همسايګانو ته تکليف رسوي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه به

فِي النَّارِ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ فَإِنَّ فُلَانَةَ يذكر قِلَّةِ صِيَامِهَا وَصَدَقَتِهَا وَصَلَاتِهَا

دوږخ ته ځي، هغه سړي وويل: اې د الله رسوله! فلانۍ ښځه د هغې په اړه ويل کيږي چي روژې کمي نيسي، خيرات هم ډير کم کوي او لمونځ هم کم کوي

وَإِنَّهَا تَصَدَّقُ بِالْأَثْوَارِ مِنَ الْأَقِطِ وَلَا تُؤْذِي بِلِسَانِهَا جِيرَانَهَا قَالَ هِيَ فِي الْجَنَّةِ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

او هغه يوازي د پنير يو څو ټوټې د الله ﷻ په لار کي ورکوي مګر په خپله ژبه سره همسايګانو ته تکليف نه ورکوي، رسول الله ﷺ وفرمايل هغه به جنت ته ځي. احمد او بيهقي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۴۴۰، والبيهقي في الشعب ۷\۷۹، رقم: ۹۵۴۶.

**د لغاتو حل**: الاثوار: جمع ثور وهو قطعة من الاقط. الاقط: هو لبن مجفف يابس (وچي شېدې)

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي په اصل کي د دين مدار پر کوم شي دي هغه د فرضو ادا کول او د ګناهو څخه ځان ساتل دي يعني د انسان آخروي کاميابي او خلاصون محض پر دې منحصر دی چي هغه په ديني فرضونو او واجباتو باندي عمل وکړي او د ګناهو څخه ځان وساتي، ګناه او معصيت که د ترک فرض او واجب په صورت کي وي او که د بدو

عملو په شكل كي وي ، ددغه خبري څخه هيڅ نه تر لاسه كيږي چي نفلي عبادات او طاعات اختيار كړل سي او اصول يعني واجبات ضائع كړل سي لكه څرنګه چي اكثر عالمان او صالحان په دغه كمزورۍ كي اخته دي، نو علماء خو هغه شيان ترک کوي چي په هغه عمل كول واجب دی او صالحان د هغه علم نه تر لاسه کوي چي د هغه تر لاسه كول واجب دی ګويا دغه دواړي طبقې د ترک واجب ګناه كار دی ، مګر هغه مشائخ او صوفيان چي د علم او عمل دواړو عامل وي د هغوئ په واجباتو باندي عمل كولو ته چي كومه درجه وركوي هغه درجه د ترک واجباتو د معصيت څخه پرهيز ته هم وركوي بلكه د هغوئ په نزد د پرهيز اهميت مقدم دی او هغوئ د حكماء طب دا اصول اختياروي چي څرنګه طبيبانو مريض ته پرهيز مخكي كوي او دواء وروسته وركوي همدارنګه هغه مشائخ او صوفيان هم لومړی منزل توبه ګرځوي او حقيقت هم دادی چي څرنګه مريض د مضرو شيانو څخه پرهيز نه كوي نو په لكونو دواياني د هغه لپاره بې ګټي دي همدارنګه يو مسلمان چي د ګناه او معصيت څخه ځان نه ساتي نو هغه په لكونو عبادت وكړي او په نفلو او ذكرو كي اخته وي نو هغه ته څه ګټه نه رسيږي ، په كلمه توحيد كي دغه حقيقت ته اشاره ده چي مخكي نفي ده او بيا اثبات دی او دا چي پر صفات ثبوتيه باندي صفات سلبيه مقدم دی ځكه چي د صفات ثبوتيه حصول لازميږي مګر د صفات ثبوتيه څخه مخكي د صفات سلبيه حصول نه لازميږي .

## غوره مسلمان

﴿۴۷۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ اِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَفَ عَلٰى نَاسٍ جُلُوسٍ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي صحابه كرام ناست وه چي رسول الله ﷺ ولاړ سو او

فَقَالَ اَلَا أُخْبِرُكُمْ بِخَيْرِكُمْ مِنْ شَرِّكُمْ قَالَ فَسَكَتُوا فَقَالَ ذٰلِكَ ثَلَاثَ

وه يې فرمايل : ايا زه ستاسو غوره خلک د بدترينو خلكو څخه بيل كړي وښيم، د ابو هريرة رضي الله عنه بيان دئ چي ددې په اوريدو سره ټول صحابه كرام پټه خوله سول او چا هيڅ ونه ويل ، تر دې چي رسول الله ﷺ درې واره دا الفاظ وفرمايل ،

مَرَّاتٍ فَقَالَ رَجُلٌ بَلٰى يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَخْبِرْنَا بِخَيْرِنَا مِنْ شَرِّنَا فَقَالَ خَيْرُكُمْ

بيا يو سړي وويل: هو ، اې د الله رسوله ! زموږ غوره كسان د بدترينو كسانو څخه راته وښياست، رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو كي غوره كسان هغه دي

مَنْ يُرْجَى خَيْرُهُ وَيُؤْمَنُ شَرُّهُ وَشَرُّكُمْ مَنْ لَا يُرْجَى خَيْرُهُ وَلَا يُؤْمَنُ شَرُّهُ .

رواه الترمذي و البيهقي في شعب الايمان وقال الترمذي هذا حديث حسن صحيح.

چي د هغه د نيکۍ خلک اميدوار وي او د هغه د شر څخه خلک په امان وي او بدترين خلک هغه دي چي د هغه د نيکۍ خلک اميدوار نه وي او د هغه د شر څخه خلک په امان نه وي .، ترمذي او بيهقي په شعب الايمان کي او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۵۷، رقم: ۲۲۶۳، والبيهقي في الشعب ۷\۵۳۹، رقم: ۱۱۲۶۸.

**تشريح**: د غوره او بد پېژندنه هغه ده چي په حديث کي وفرمايل سول، پاته سو هغه سړی چي نه خلک د خير اميد ځيني کوي مګر د هغه د شر څخه خوندي نه وي يا هغه سړی چي د هغه د شر څخه خلک خوندي وي مګر د هغه څخه د خير اميد نه لري نو داسي سړی په مينځ کي دی چي نه غوره ورته ويل کيږي او نه بد .

### کامل مؤمن او مسلمان

﴿۴۷۷۷﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى ستاسو په

قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَخْلَاقَكُمْ كَمَا قَسَمَ بَيْنَكُمْ أَرْزَاقَكُمْ إِنَّ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ يُعْطِي

منځ کي اخلاق داسي ويشلي دي لکه څرنګه چي ستاسو په منځ کي رزق ويشلی دئ ، الله تعالى هغه چا ته دنيا ورکوي

الدُّنْيَا مَنْ يُحِبُّ وَمَنْ لَا يُحِبُّ وَلَا يُعْطِي الدِّينَ إِلَّا مَنْ أَحَبَّ فَمَنْ أَعْطَاهُ

څوک چي د خدای جل جلاله خوښ وي او هغه چا ته هم دنيا ورکوي چي د خدای جل جلاله خوښ نه وي (کافر) ، او دين يوازي هغه چا ته ورکوي چي د خدای جل جلاله خوښ وي، چا ته چي الله تعالى دين

اللّٰهُ الدِّينَ فَقَدْ أَحَبَّهُ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَا يُسْلِمُ عَبْدٌ حَتَّى يَسْلَمَ قَلْبُهُ

وَلِسَانُهُ وَلَا يُؤْمِنُ حَتَّى يَأْمَنَ جَارُهُ بَوَائِقَهُ. رواه احمد والبيهقي

ورکړی دئ الله تعالی هغه خوښوي، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په واک کي زما ساه ده بنده تر هغه وخته پوري پوره مسلمان کیدلای نه سي تر څو پوري چي د هغه زړه او ژبه مسلمانه نه وي او بنده تر هغه وخته پوري (پوره) مؤمن کیدلای نه سي تر څو پوري چي د هغه همسایه د هغه د بدو څخه په امان نه وي. احمد او بیهقي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱\۳۸۷، والبيهقي في الشعب ۴\۳۹۵، رقم: ۵۵۲۴.

**تشریح**: د زړه اسلام دادی چي هغه د باطل عقائدو او نظریاتو څخه پاک وساتل سي او د ژبي اسلام دادی چي هغه د بې ګټو خبرو څخه خوندي وساتل سي مګر صحیح خبره داده چي د زړه او ژبي د مسلمانېدو څخه مراد هغه تصدیق او اقرار دی چي پر هغه د ایمان بنیاد دی او د هغه په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د ظاهر او باطن یو کېدل د کمال ایمان او اسلام دلیل دی او د زړه او ژبي د ایمان او اسلام مدار دی ځکه په خاصه توګه د دغه دواړو ذکر وسو.

**د مسلمان سره مینه**

﴿۴۷۷۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُؤْمِنُ مُأْلَفٌ وَلَا خَيْرَ فِيمَنْ لَا يَأْلَفُ وَلَا يُؤْلَفُ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: مسلمان مینه ناک وي او په هغه چا کي خیر نسته چي د مسلمان سره مینه او الفت نه لري او مسلمان د هغه سره مینه او محبت نه لري. احمد او بیهقي په شعب الایمان کي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۴۰۰، والبيهقي في الشعب ۶\۲۷۰، رقم: ۸۱۱۹.

**د لغاتو حل**: مالف: ای یالف ویؤلف.

**تشریح**: لفظ د مالف مصدر میمي دی او د فاعل او مفعول دواړو په معنی کي استعمال سوی دی ګویا د دغه لفظ د مفهوم په اعتبار داسي دی: یالف ویولف، یعني د مؤمن شان دادی چي هغه د نورو سره الفت کوي او نور خلک د هغه سره الفت کوي، په یوه روایت کي داسي نقل سوي دي او د دلته هم د حدیث آخري الفاظ د دې خبري تائید کوي مګر طیبي رحمه الله وایي: کیدای سي چي د دغه لفظ د مالف مصدر د مبالغې په توګه وي لکه چي ویل کیږي رجل عدل، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي مؤمن الفت کونکی دی یا دا چي مالف اسم مکان دی لکه

ځرنګه چي په ژباړه کي دی، په دغه صورت کي دې ته اشاره کول مقصد دي چي مسلمانان په خپلو کي د یو بل سره محبت او الفت کونکي وي که هغوئ په خپلو کي د الفت او محبت روح ختم کړي نو بیا په هغوئ کي به تفرقه ولویږي او هغوئ به د انتشار ښکار سي، الله ﷻ د دغه آیت کریمه (کنتم اعداء فالف بین قلوبکم...) په ذریعه الفت او موانست د مسلمانانو لپاره یو ستر نعمت ګرځولی دی او په قرآن کریم دغه مضمون څو ځایه بیان سوی دی.

## د مسلمان اړتیا پوره کول

﴿۴۷۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ قَضٰى لِأَحَدٍ مِّنْ أُمَّتِيْ حَاجَةً يُرِيْدُ أَنْ يَّسُرَّهُ بِهَا فَقَدْ سَرَّنِيْ وَمَنْ سَرَّنِيْ فَقَدْ سَرَّ اللّٰهَ وَمَنْ سَرَّ اللّٰهَ أَدْخَلَهُ اللّٰهُ الْجَنَّةَ. رواه البیهقي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي زما په امت کي د چا (دیني یا دنیوي) اړتیا پوره کړي او د هغه څخه د هغه مقصد د هغه خوښي وي نو هغه زه خوشحاله کړم او چا چي زه خوشحاله کړم نو هغه الله ﷻ خوشحاله کړي او چا چي الله خوشحاله کړ الله تعالی به هغه په جنت کي داخل کړي. بیهقي.

**تخریج**: البیهقي في الشعب: ۱۱۵/۱٦، رقم: ۷٦۵۲.

**تشریح**: د مسلمان د حاجت پوره کولو فضیلت د جامع صغیر په روایت کي چي خطیب رحمه الله د حضرت انس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی داسي بیان سوی دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: چا چي د خپل مسلمان ورور یو حاجت او ضرورت پوره کړ نو هغه ته د حج او عمره کونکي د ثواب په ډول ثواب ورکول کیږي.

## د مسلمان مرسته کوئ

﴿۴۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَغَاثَ مَلْهُوْفًا كَتَبَ اللّٰهُ ثَلَاثًا وَّسَبْعِيْنَ مَغْفِرَةً وَّاحِدَةً فِيْهَا صَلَاحُ أَمْرِهِ كُلِّهِ وَثِنْتَانِ وَسَبْعُوْنَ لَهُ دَرَجَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه البیهقي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د یو مظلوم فریاد واوري الله تعالی د هغه لپاره دري اویا بخښښونه لیکي په هغو کي یو بخښښ دادئ چي د هغه

د ټولو کارونو د اصلاح ضامن دئ او دواويا بخښښنونه به دقيامت په ورځ د هغه د درجاتو لوړولو سبب وي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۱۱\۱۲۰، رقم: ۷۶۷۰.

## مخلوق د الله ﷻ کورنۍ ده

《۴۷۸۱》: وَعَنْهُ وَعَنْ عَبْدِ اللهِ قَالَا قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْخَلْقُ عِيَالُ اللهِ فَأَحَبُّ الْخَلْقِ إِلَى اللهِ مَنْ أَحْسَنَ إِلٰى عِيَالِهِ . روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان

د حضرت انس او عبدالله (رضي الله عنهما) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مخلوق د الله تعالی کورنۍ ده او په مخلوق کي غوره هغه دئ چي د الله تعالی د کورنۍ سره احسان وکړي. بيهقي پورتني درې حديثونه په شعب الايمان کي روايت کړي دي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۱۱\۴۳، رقم: ۷۴۴۶.

**تشريح**: د عيال معنی د متعلقينو ده او د يو سړي د متعلقينو اطلاق پر هغه افرادو باندي کيږي چي د هغوئ روزنه، خوراک، څښاک او د ژوند نوري اړتياوي د هغه پر ذمه وي، نو په دغه معنی کي د عيال نسبت پرته د الله ﷻ طرف ته مجازي وي، او الله ﷻ ته حقيقي وي ځکه چي رزاق مطلق په حقيقت کي الله ﷻ دی لکه څرنګه چي خلاق مطلق د هغه ذات دی، د الله ﷻ ارشاد دی: (وما من دابة في الارض الا على الله رزقها): په ځمکه کي داسي تلونکی شی نسته چي د هغه رزق د الله ﷻ پر ذمه نه وي.

## د همسايه د حقوقو پوښتنه

《۴۷۸۲》: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوَّلُ خَصْمَيْنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ جَارَانِ. رواه احمد.

د عقبة بن عامر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (د بندګانو په معاملاتو کي) تر ټولو لومړی چي کومه معامله وړاندي کيږي هغه به د دوو همسايګانو جګړه وي. احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱۵۱۱۴.

**تشریح**: مطلب دادی چي د قیامت په ورځ به د اهل دوږخ څخه وروسته د حقوقو د نه ادا کولو په اړه چي کومه معامله تر ټولو مخکي وړاندي کیږي هغه به د دوو همسایګانو وي چي په خپلو کي د یو بل د تکلیف رسولو یا د حقوقو په ادا کولو کي د کوتاهۍ سره مخ سوي وي، ځرګنده دي وي چي په یوه روایت کي داسي فرمایل سوي دي چي د قیامت په ورځ به تر ټولو مخکي د لمانځه په اړه محاسبه کیږي او په یوه روایت کي دا هم نقل سوي دي چي د قیامت په ورځ به تر ټولو مخکي د وژني محاسبه وي ، او د ذکر سوي روایت څخه دا معلومیږي چي د قیامت په ورځ به تر ټولو مخکي د دوو همسایګانو د دښمنۍ معامله وي ، نو په دغه روایتو کي په ښکاره تضاد معلومیږي ځکه علماؤ ددغه ټولو روایتو په مینځ کي دا تطبیق کړی دی چي د حقوقو الله په اړه تر ټولو مخکي د وژني فیصله کیږي ځکه چي د یو چا ناحقه وینه تویول ډېره لویه ګناه ده ، پاته سو ذکر سوی حدیث نو د لفظ خصمین په ذریعه دا خبره ځرګندیږي ،

دغه حدیث د دواړو ډلو د یو بل خلاف دعوې کولو سره مقید دی یعني کوم خلک چي داسي وي چي په هغوئ کي هر یوه د بل د حقوقو په ادا کولو کي کوتاهي کړې وي او د هغه په وجه هر یو ګناه کار سوی وي نو په داسي خلکو کي چي کوم دوه کسان تر ټولو مخکي وړاندي کیږي او د یو بل خلاف دعوه کوي نو هغه به دوه همسایګان وي او دهغوئ فیصله به وسي او که چیري دا فرض کړل سي چي د حقوقو په ادا کولو کي د کوتاهۍ تعلق د دواړو ډلو سره نه وي بلکه د یوه سره وي نو په دغه صورت کي به ویل کیږي چي پر دواړو ډلو باندي د خصمین اطلاق د تقلیب په توګه دی لکه چي د قرآن کریم دغه الفاظ (جزاء سیئة سیئة مثلها) ، ددې مثال دی، خلاصه دا چي په ذکر سوو روایتو کي چي د کومو معاملو ذکر سوی دی په هر یوه کي اولیت اضافي دی چي د هغه په وجه تضاد نه لازمیږي .

## د سخت زړه درملنه

﴿۴۷۸۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَجُلًا شَكَا إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَسْوَةَ قَلْبِهِ فَقَالَ امْسَحْ رَأْسَ الْيَتِيمِ وَأَطْعِمِ الْمِسْكِينَ. رواه احمد.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړي رسول الله ﷺ ته د خپل زړه د سخت والي شکایت وکړ ، رسول الله ﷺ ددې په علاج کي ورته وفرمایل د یتیم پر سر لاس تیروه او په

غريبانو باندي خوراک خوره . احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ٢\٢٦٣.

## د كونډې لور ساتنه

﴿٤٧٨٤﴾: وَعَنْ سُرَاقَةَ بْنِ مَالِكٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَلَا أَدُلُّكُمْ عَلَى أَفْضَلِ الصَّدَقَةِ ابْنَتُكَ مَرْدُودَةً إِلَيْكَ لَيْسَ لَهَا كَاسِبٌ غَيْرُكَ. رواه ابن ماجة.

د حضرت سراقة بن مالک ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا تاسو د غوره صدقې څخه خبر نه کړم؟ (هغه داده چي) د خپلي هغه لور سره ښه چلن کوئ کومه چي ستا په لور بيرته درکړل سوې ده (يعني طلاقه سوې ده يا کونډه سوې ده) او ستا څخه پرته د هغې هيڅ يو ساتونکی نه وي. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ١٢٠٩\٢، رقم: ٢٦٦٧.

=============

# بَابُ الْحُبِّ فِي اللّٰهِ وَمِنَ اللّٰهِ

## (د الله ﷻ سره مينه او د الله ﷻ لپاره د ميني کولو بيان)

د الله ﷻ سره د ميني معنی داده چي د معبود سره د عبوديت کوم تعلق قائم کړل سي او د پروردګار د ذات سره چي کومه مينه وکړل سي په هغه کي رياء او د نفساني خواهشاتو اميزش نه وي بلکه هغه مينه او تعلق محض د الله ﷻ درضا تر لاسه کولو لپاره وي.

د الله ﷻ لپاره د ميني مطلب دادی چي د يو بنده سره د تعلق او ميني کوم تعلق چي قائم کړل سي هغه محض د الله ﷻ لپاره وي او د الله ﷻ په لاره کي يو دنياوي غرض نه وي يعني د يو بنده سره د زړه مينه او دوستي وکړل سي او يوازي دد لپاره وکړل سي چي د هغه بنده سره د ميني او تعلق درلودل يوازي د الله ﷻ درضا تر لاسه کېدل وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### روز ازل

﴿۴۷۸۵﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْأَرْوَاحُ جُنُودٌ مُجَنَّدَةٌ فَمَا تَعَارَفَ مِنْهَا ائْتَلَفَ وَمَا تَنَاكَرَ مِنْهَا اخْتَلَفَ. رواه البخاري و رواه مسلم عن ابي هريرة.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: روحونه (په بدنو كي د ننوتلو څخه مخكي) د يو مجتمع لښكر په ډول وه (بيا هغوئ په بدنونو كي د ننه ايستلو لپاره بيل بيل كړل سول) نو كوم روحونه چي په بدنونو كي د ننه وتلو څخه مخكيپه خپل منځ كي اشنا وه (اوس هم هغه) په خپل منځ كي اشنا دي او په خپل منځ كي مينه لري او كوم روحونه چي هغه وخت په خپل منځ كي نا اشنا وه هغه اوس هم اختلاف لري. بخاري، او د مسلم د ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت كړى دئ.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۳۶۹، رقم: ۳۳۳۶.

**تشريح**: د جمهورو علماؤ قول دادی چي په دنيا كي تر اوسه پوري څومره اجسام پيدا سوي دي يا تر قيامته پوري پيدا كيږي د هغوئ ټول روحونه د خپل بدني وجود څخه ډېر مخكي پيدا سوي دي چي په عالم ارواح كي جمع دي او په دنيا كي چي كله د يو روح جسم پيدا كيږي نو هغه روح هغه بدن ته واستول سي، د خلقت په ابتداء كي او په ازل كي چي الله تعالى د خپل ربوبيت عهد او اقرار كولو لپاره د پوره كائناتو روحونه د مېږيانو په صورت كي جمع كړل نو هغه وخت موجود روحونو په خپلو كي د يو بل سره متعارف كړل سول او د كومو روحونو په مينځ كي چي د صفات مناسبت او موانست او مينه پيدا سول يا كوم روحونه چي په خپلو كي نامانوس پاته سول او د كومو روحونو په مينځ كي چي اختلاف پاته سو نو هغوئ په دنيا كي خپلو بدنو ته د را تلو څخه وروسته په هم هغه مناسبت او ميني او صفاتو سره مناسبت او مشابهت لري لكه كوم خلک چي نېک بخته وي هغوئ نېک او ښه خلكو سره مينه او تعلق لري يا كوم خلک چي په دغه دنيا كي په خپلو كي د يو بل سره اختلاف لري لكه نېک خلک چي د خرابو خلكو څخه پرهيز كوي او خراب خلک د نېكو خلكو سره اختلاف لري نو هغوئ په اصل كي د خپلو روحونو

د ازلي اتحاد او اختلاف مظهر دي چي د ازل په ورځ کي په کومو روحو کي مينه وه د هغوئ په مينځ کي په دغه دنيا کي هم مينه او محبت دی او په کومو روحو کي چي هلته اختلاف او عناد وو هغوئ دلته هم اختلاف او عناد لري.

د روحونو په مينځ کي چي د ازل په ورځ کوم تعارف او تعلق پيدا سوی وو د هغه ظهور په دغه دنيا کي د الهام الهي په سبب کيږي په دې توګه کله چي هغه روحونه په دغه دنيا کي خپلو بدنو ته راسي نو الله تعالی د هغوئ د ازل د ورځي د ميني په سبب دلته په دنيا کي هم دهغوئ په زړونو کي تعلق او مينه اچوي.

## د الله تعالی د بنده سره مينه

﴿۴۷۸۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالی چي د يو بنده

إِذَا أَحَبَّ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَقَالَ إِنِّي أُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبَّهُ قَالَ فَيُحِبُّهُ جِبْرِيلُ

سره مينه کوي نو جبرائيل عليه السلام ته وايي زه د فلاني بنده سره مينه کوم ته هم د هغه سره مينه کوه ويلي دي رسول الله ﷺ نو چي جبرائيل عليه السلام د هغه سره مينه کوي

ثُمَّ يُنَادِي فِي السَّمَاءِ فَيَقُولُ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ فُلَانًا فَأَحِبُّوهُ فَيُحِبُّهُ أَهْلُ السَّمَاءِ

نو په آسمان کي اعلان کوي چي الله تعالی د فلاني بنده سره مينه کوي تاسو هم د هغه سره مينه کوئ نو آسمان والا هم د هغه سره مينه کول راواخلي

ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْقَبُولُ فِي الْأَرْضِ وَإِذَا أَبْغَضَ عَبْدًا دَعَا جِبْرِيلَ فَيَقُولُ إِنِّي

بيا ددغه بنده لپاره په مځکه کي قبوليت کښيښودل سي (يعني د مځکي خلک هم ورسره مينه راواخلي) او هر کله چي د الله تعالی د يو بنده سره بدي سي نو جبرائيل عليه السلام ته وايي

أُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضْهُ قَالَ فَيُبْغِضُهُ جِبْرِيلُ ثُمَّ يُنَادِي فِي أَهْلِ السَّمَاءِ إِنَّ

چي د فلاني بنده سره زه بغض لرم ته هم ورسره بغض ساته، نو جبرائيل عليه السلام هم ورسره بغض ساتي او په آسمان والاوو کي اعلان کوي چي

اللَّهَ يُبْغِضُ فُلَانًا فَأَبْغِضُوهُ قَالَ فَيُبْغِضُونَهُ ثُمَّ يُوضَعُ لَهُ الْبَغْضَاءُ فِي الْأَرْضِ. رواه مسلم.

الله تعالی د فلاني بنده سره بغض لري تاسو هم ورسره بغض ساتئ نو آسمان والا هم ورسره بغض ساتي او بيا د هغه لپاره په مځکه کي هم بغض کښېښودل سي (يعني د مځکي خلک هم د هغه سره بغض ساتي) مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۰۳۰/۴، رقم: ۱۵۷- ۲۶۳۷.

**تشريح**: د الله ﷻ د يو چا سره د ميني مطلب په اصل کي د هغه بنده په حق کي د الله تعالی له لوري د خير، هدايت او کاميابی باران کېدل او پر هغه د رحمت نزول دی، همدارنګه د الله تعالی د يو چا څخه نفرت کول د هغه سړي په عذاب کي د اخته کولو اراده څرګندول دي، ددې څخه د حق هدايت توفيق د يو بنده په حق کي د هغه محبت پر دوو صورتو باندي محمول کيدای سي يو خو دا چي هغوئ د هغه بنده په حق کي استغفار کوي د هغه روح او تعريف کوي او د هغه لپاره د الله تعالی په دربار کي دعاء کوي.

دوهم دا چي د ميني هغه ظاهري معنی مراد وي چي په عامه توګه مفهوم کيږي يعني د هغوئ زړونه هغه بنده ته مائل کيږي او د هغه سره د ليدني شوق لري.

ملا علي قاري رحمه الله وايي: دوهم صورت يعني د ميني پر ظاهري معنی محمول کول زيات صحيح دي، کله چي يو لفظ د هغه پر حقيقي معنی محمول کول صحيح وي نو بيا د مجازي معنی مراد اخيستل نامناسب وي، ددې څخه پرته مينه د هغه پر حقيقي معنی باندي د محمول کولو په صورت کي اوله معنی يعني د هغه بنده په حق کي د جبرائيل علیه السلام او ملائکو دعاء او استغفار په ضمني توګه متحقق کيږي.

## د الله ﷻ د رضا لپاره مينه

﴿۴۷۸۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ يَقُولُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَيْنَ الْمُتَحَابُّونَ بِجَلَالِي الْيَوْمَ أُظِلُّهُمْ فِي ظِلِّي يَوْمَ لَا ظِلَّ إِلَّا ظِلِّي. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى به د قيامت په ورځ وفرمايي : هغه خلک چيري دي چي زما د رضا تر لاسه کولو لپاره به يې په خپل منځ کي مينه کول ، نن ورځ زه د خپل سايې لاندي ځاى ورکوم او نن زما د سايې څخه پرته بله سايه نسته . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۹۸۸، رقم: ۳۷-۲۵۶۶.

**تشريح**: د الله ﷻ د سايې څخه مراد يا خو د عرش سايه ده لکه څرنګه چي په ځينو حديثو کي په څرګنده ذکر سوي دي، په دغه صورت کي به ويل کيږي چي د الله تعالى له خوا د سايې وضاحت د هغه د سايې د عظمت او تکريم څرګندولو لپاره دى ، يا د سايې څخه مراد د الله ﷻ رحمت او حفاظت دى لکه څرنګه چي فرمايل سوي دي : (السلطان ظل الله في الارض) يعني پاچا په مځکه کي د الله ﷻ سايه وي، يا دا چي د سايې په ذريعه د قيامت په ورځ هغه راحتونه او نعمتونه تعبير سوي دي چي پر دغه خلکو باندي به د الله تعالى له خوا څرګند سي ، په عربي کي د ظل لفظ د راحت او نعمت په مفهوم کي هم استعماليږي لکه څرنګه چي خوشحاله او د راحت څخه ډک ژوند ته عيش ظليل ويل کيږي .

## حب في الله

﴿۴۷۸۸﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّ رَجُلًا زَارَ أَخًا لَهُ فِي قَرْيَةٍ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو سړي د خپل (مسلمان) ورور سره چي د يو بل کلي وو د ملاقات اراده وکړل

أُخْرَى فَأَرْصَدَ اللّٰهُ لَهُ عَلَى مَدْرَجَتِهِ مَلَكًا قَالَ أَيْنَ تُرِيدُ قَالَ أُرِيدُ أَخًا لِي فِي

الله تعالى د هغه په لار کي د هغه په انتظار کي يوه ملائکه کښېنول ، ملائکي پوښتنه وکړه چيري دي د تلو اراده ده ؟ هغه ورته وويل :

هٰذِهِ الْقَرْيَةِ قَالَ هَلْ لَكَ عَلَيْهِ مِنْ نِعْمَةٍ تَرُبُّهَا قَالَ لَا غَيْرَ أَنِّي أَحْبَبْتُهُ فِي اللّٰهِ

په هغه کلي کي د خپل ورور د ملاقات اراده لرم، ملائکي ورته وويل ايا ستا پر هغه د نعمت څه حق سته چي د هغه اخيستلو لپاره ورځې ؟ هغه ورته وويل: يا ، زه د هغه سره يوازي د الله ﷻ د

عَزَّ وَجَلَّ قَالَ فَإِنِّي رَسُولُ اللّٰهِ إِلَيْكَ بِأَنَّ اللّٰهَ قَدْ أَحَبَّكَ كَمَا أَحْبَبْتَهُ

فِيهِ .رواه مسلم.

رضا لپاره مینه کوم، ملائکي ورته وويل : زه الله تعالی تا ته رالیږلی یم او تا ته دا زیری دئ چي الله تعالی هم ستا سره داسي مینه لري لکه څرنګه چي ته د الله ﷻ د رضا لپاره د هغه سره مینه لرې . مسلم.

**تخريج**: صحیح مسلم : ۱۹۸۸\۴، رقم: ۳۸- ۲۵۶۷.

**د لغاتو حل**: مدرجته: ای في طريقه. تربها : ای تقوم باصلاحها و اتمامها.

**تشريح**:په دغه حدیث کي د الله ﷻ لپاره دمیني کولو فضیلت څرګندیږي چي دغه خبره د الهي میني د تر لاسه کولو ذریعه ده او ددې څخه د صالحانو د ملاقات لپاره هغوئ ته د ورتللو فضیلت هم څرګندیږي ، ددې څخه پرته دغه حدیث پر دې خبره هم دلالت کوي چي الله تعالی کله خپل نېکو بندګانو ته ملائکي استوي چي د هغوئ سره هم کلامه کیږي مګر زیاته صحیح خبره داده چي دغه شی د مخکنیو امتو سره خاص وو ځکه چي اوس د نبوت دروازه بنده سوې ده او د انسانانو سره د ملائکو د راتګ لړۍ بنده سوې ده .

## څوک چي د چا سره مینه کوي د هغه څخه به وي

﴿۴۷۸۹﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَيْفَ تَقُولُ فِي رَجُلٍ أَحَبَّ قَوْمًا وَلَمْ يَلْحَقْ بِهِمْ فَقَالَ الْمَرْءُ مَعَ مَنْ أَحَبَّ . متفق عليه.

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او وه یې ویل اې دالله رسوله ! د هغه چا په اړه تاسو څه فرمایاست چي د یو قوم (یعني د عالمانو یا صالحانو د ټولی ) سره مینه ساتي مګر د هغه خلکو سره یې ملاقات نه وي کړی ، یا دهغوئ صحبت ورته تر لاسه سوی نه وي ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : هغه به د هغو خلکو سره وي چي د چا سره یې محبت وي (یعني د کومو کسانو سره چي مینه لري په هغوئ کي به شامل وي) بخاري او مسلم .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵۵۷\۱۰، رقم: ۶۱۶۹، ومسلم ۴\ ۲۰۳۴، رقم: ۱۶۵- ۲۶۴۰.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي کوم څوک د یو عالم او بزرګ سره مینه لري

نو هغه په آخرت كي د هغه عالم او بزرگ سره وي ، كه څه هم كامله مينه چي د هغه اعتبار كيږي ، هغه ده چي اتباع او موافقت ته يې ورسوي مگر محض مخلصانه مينه د معيت ذريعه جوړيداى سي ، په دې كي د هغه خلكو لپاره زيرى دى چي د عالمانو او صالحانو سره مينه او دوستي كوي چي هغه خلك به انشاء الله د قيامت په ورځ د هغه عالمانو او بزرگانو سره راپاڅي، او په آخرت كي به د هغوئ د ملكرتيا دولت تر لاسه كوي ، ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي چي د حديث ظاهري مفهوم پر عموميت باندي دلالت كوي يعني په دغه ارشاد كي په عامه توگه دا نكته بيان سوې ده چي كوم څوک د چا سره مينه كوي د هغه حشر به د هغه سره وي، د مولانا علي قاري رحمة الله عليه ددغه خبري تائيد ددغه حديث (المرء على دين خليله) څخه هم كيږي چي مخته به راسي . په دغه صورت كي به ويل كيږي چي كوم خلک د عالمانو او صالحانو سره مينه او دوستي كوي نو د هغوئ لپاره په حديث كي د خاتمې بالخير او اخروي كاميابۍ زيرى دى او كوم خلک چي د بدو خلكو او فاسقانو سره دوستي او مينه كوي نو دهغوئ لپاره په دغه حديث كي سخت وعيد او خبرداري دى .

﴿۴۷۹۰﴾: وَعَنْ اَنَسٍ اَنَّ رَجُلاً قَالَ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَتَى السَّاعَةُ قَالَ وَيْلَكَ وَمَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي وويل : اې دالله رسوله ! قيامت به كله وي ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : پر تا افسوس دئ

أَعْدَدْتَ لَهَا قَالَ مَا أَعْدَدْتُ لَهَا إِلاَّ أَنِّي أُحِبُّ اللّٰهَ وَرَسُوْلَهُ قَالَ أَنْتَ مَعَ مَنْ

تا دقيامت لپاره څه تياري كړې ده ؟ هغه وويل: ما خو څه تياري نه ده كړې مگر د الله جل جلاله او د الله د رسول سره مينه لرم، رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : ته به د هغه چا سره يې د چا سره چي ته

أَحْبَبْتَ قَالَ أَنَسٌ فَمَا رَأَيْتُ الْمُسْلِمِيْنَ فَرِحُوْا بِشَيْءٍ بَعْدَ الْإِسْلاَمِ فَرَحَهُمْ بِهَا . متفق عليه.

مينه لرې ، د انس رضي الله عنه بيان دئ چي د اسلام څخه وروسته ما مسلمانان په هيڅ يو خبره دومره خوشحاله نه دي ليدلي څومره چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم په دغه وينا سره خلک خوشحاله سوي وه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۵۳، رقم: ۶۱۶۷، ومسلم ۴\۲۰۳۲، رقم: ۱۶۱- ۲۶۳۸۹.

**تشريح**: د هغه په تياري، كي يې يوازي د الله ﷻ او د هغه د رسول د ميني ذكر وكړ، ددې څخه پرته نور بدني، قلبي او مالي عبادت يې ذكر نه كړل چي د هغه څخه د هغه ژوند يقينا خالي نه وو، ددې وجه يو خو اظهار عجز او انكساري او د خپلي مرتبې اخفاء وه چي د يو مخلص مؤمن شان دی ، دوهمه وجه داده چي د الله ﷻ او د هغه د رسول سره مينه اصل شی دی او ټول عبادات ددغه محبت څانګي او لازمي اثر دی، د كوم سړي زړه چي د الله ﷻ او د هغه د رسول په مينه اباد وي نو عبادت او طاعت خپله د هغه عادت جوړېږي ، ددې څخه پرته يوازي د ميني ذكر كولو يوه وجه دا هم ده چي مينه بذات خود تر ټولو اعلی مرتبه ده ځكه چي كوم څوک د الله ﷻ سره مينه كوي نو الله ﷻ هم د هغه سره مينه كوي لكه څرنګه چي الله ﷻ فرمايي : (يحبهم ويحبونه) او په بل ځای كي فرمايي : (ان كنتم تحبون الله فاتبعوني يحببكم الله)، نو څرګنده ده چي كوم بنده ته د ميني دولت په برخه سي نو د هغه په دنيوي او اخروي كاميابۍ كي هيڅ شكه نسته.

ته به د هغه چا سره يې د چا سره چي مينه كوې: مطلب دادی چي كوم څوک د يو چا سره دومره تعلق ولري چي د هغه مينه پر نورو ټولو شيانو غالب سي نو هغه د خپل محبوب سره منسلک او ملحق سي او د هغه شمېر د محبوب په خلكو كي كېدل شروع سي او د محبت صادقه يا عشق حقيقي علامه داده چي هغه كار كوي د كوم چي محبوب حكم وركړي يا څه چي د محبوب د رضا باعث وي ، او د هر هغه شي څخه ځان ساتي كوم چي د محبوب د مرضۍ خلاف وي نو كه چيري ته د الله ﷻ دميني دعوه كوې نو په خپل عقيده، قول او فعل سره دا دعوه ثابته كړه په دې توګه چي د فرضونو او واجباتو ادا كول كوه ، الله ﷻ چي په كومو كارو راضي كيږئ هغه تل كوه او هغه چي د كومو شيانو څخه منع كړې ده هغه ته نژدې هم مه ورځه ، دغه خبره مشهوري صوفي بي بي رابعه بصري رحمة الله عليها په دغه الفاظو كي كړې ده :

| | |
|---|---|
| تعصي الاله وانت تظهر حبه | هذا لعمري في القياس بديع |
| لو كان حبک صادقا لاطعته | ان المحب لمن يحب مطيع |

ژباړه : تا د الله ﷻ نافرماني اختيار كړې ده حال دا چي ته د هغه د ميني دعوه كوې ، زما دي په خپل روح يا عمر قسم وي چي دغه شی په قياس كي هم نسي راتلای ، كه ستا مينه ريښتونې وي نو يقينا تا به د هغه اطاعت كوی ځكه چي محبت كونكی د خپل محبوب فرمانبردار وي.

د رسول الله ﷺ د ارشاد په اورېدو سره د مسلمانانو خوشحاله كېدل په دې وجه وه چي مخكي د هغوئ په ذهن كي دا خبره وه چي په جنت كي د رسول الله ﷺ يو ځای والی محض د

رسول الله ﷺ سره د میني او د متابعت په وجه نه تر لاسه کیږي بلکه د دغه سعادت تر لاسه کولو لپاره په زیات عبادت کي بوخت کېدل او مجاهده اختیارول ضروري دي ، کله چي رسول الله ﷺ ذکر سوې خبره وفرمایل نو صحابه کرام ډېر زیات خوشحال سول ، ددې تائید د هغه روایت څخه هم کیږي کوم چي علامه عماد الدین ابن کثیر رحمه الله په خپل تفسیر کي نقل کړي دي ، بي بي عائشه رضي الله عنها بیان کوي چي یوه ورځ د نبي کریم ﷺ په خدمت کي یو صحابي حاضر سو ، هغه وویل: اې د الله رسوله ! تاسو ما ته د خپل ځان، خپل کورنۍ او خپلو بچیانو څخه زیات محبوب یاست ، زه په خپل کور کي یم مګر ستاسو په فکر کي ډوب یم ، کله چي تاسو ډېر را یاد سئ نو ستاسو په خدمت کي حاضر سم او ستاسو په لیدنه سره ډاډ تر لاسه کوم، کله چي ما ته د خپل مرګ خیال راسي او ددې دنیا څخه ستاسو د رخصت کېدو تصور او فکر کوم چي تاسو جنت ته ولاړ سئ نو په جنت کي به په لوړه درجه کي د انبیاؤ سره یاست او که چیري الله ﷻ زه هم په جنت کي داخل کړم نو زما سره بېره ده چي زه به ستاسو د زیارت څخه محروم سم ، رسول الله ﷺ د هغه صحابي دا خبره واورېدل مګر څه جواب یې ورنه کړ چي د غه آیت نازل سو :

وَمَن يُطِعِ اللَّهَ وَالرَّسُولَ فَأُولَٰئِكَ مَعَ الَّذِينَ أَنْعَمَ اللَّهُ عَلَيْهِم مِّنَ النَّبِيِّينَ وَالصِّدِّيقِينَ وَالشُّهَدَاءِ وَالصَّالِحِينَ

ژباړه : څوک چي د الله ﷻ او د هغه د رسول اطاعت وکړي نو هغه به په جنت کي د هغه خلکو سره وي چي پر هغوئ الله ﷻ خپل انعامونه نازل کړي دي یعني انبیاء، صدیقین، شهیدان او صالحین.

پاته سوه دا خبره چي دلته د معیت څخه څه مراد دی ؟ د معیت څخه دا مراد نه دی چي د محبت کونکي او محبوب دواړو په مینځ کي د کیدونکي ملاقات چي کوم کیفیت په یو حدیث کي بیان سوی دی د هغه خلاصه داده چي د لوړ درجو والا به هغه خلکو ته راځي کوم چي په لاندي درجو کي وي او بیا ټول به د جنت په باغو کي یو ځای کیږي او هلته به د یو بل سره لیدنه کوي ، او د لوړو درجو والا به د هغه شیانو ذکر کوي چي هغوئ ته په د انعام په توګه الله ﷻ ورکړي وي او د الله تعالی پر انعامو به د هغه حمد او ثناء وایي، بیا د کښتو درجو والا به د هغوئ خاطر او تواضع کوي او په منډه منډه به هر شی ورته راوړي او هغوئ ته به یې ورکوي د کوم چي هغوئ خواهش او غوښتنه وکړي همدارنګه به هغوئ ټول د جنت په باغو کي خوند اخلي او خوشحاله به وي.

څرګنده دي وي چي د متابعت او ضروري احکامو مختلف مدارج دي نو د کومي درجې

احکام چي ضروري وي د هغه درجو محبت به شمېرل کيږي او د کومي درجې مينه يا د کومي درجې بنه چلن چي وي د هغه درجې معيت او ملاقات به يې په برخه کيږي .

## د نېک او بد ملګري مثال

﴿۴۷۹۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ مُوْسٰى قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَثَلُ الْجَلِيسِ

د حضرت ابو موسی رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل : نيک او بد ملګری د

الصَّالِحِ وَالسَّوْءِ كحامل المسك ونافع الكير فحامل المسك السوء كحامل

مشک خرڅونکي او پښ په ډول دئ ، مشک خرڅونکی به يا مفت مشک در کړي يا به يې ځيني

الْمِسْكِ ونافخ الكِيرِ لَا يَعْدَمُكَ مِنْ صَاحِبِ الْمِسْكِ إِمَّا تَشْتَرِيهِ أَوْ تَجِدُ رِيحَهُ وَكِيرُ الْحَدَّادِ يُحْرِقُ ثَوْبَكَ أَوْ تَجِدُ مِنْهُ رِيحًا خَبِيثَةً. متفق عليه.

رانيسي او که نور هيڅ نه وي نو کم از کم د هغه خوشبوئي به ضرور ستا زړه او دماغ خوشحاله کړي او پښ به يا ستا جامې وسوځي يا د به د هغه څخه بد بوئي تر لاسه کړې . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۹\۶۶۰، رقم: ۵۵۳۴، ومسلم ۴\۲۰۲۶، رقم: ۱۴۶– ۲۶۳۸.

**تشريح**: د نېکو خلکو مينه او ملګرتيا او د خرابو خلکو مينه او ملګرتيا په مينځ کي چي کوم فرق دی هغه د ذکر سوي مثال په ذريعه څرګند سوی دی او څرنګه چي ملا علي قاري رحمه الله ليکلي دي چي د دغه ارشاد مراد ددې خبري تاکيد او خبرداری دی چي د نېکو خلکو سره مينه او تعلق کوه د هغوئ ملګرتيا اختيار کړه او د خرابو خلکو د ميني او ملګرتيا څخه ځان وساته او په دې کي دغه حقيقت ته هم اشاره ده چي د نېکو خلکو يعني عالمانو او صالحانو ملګرتيا په دنيا او آخرت کي د ګټي تر لاسه کولو سبب دی او د خرابو خلکو يعني فاسقانو ملګرتيا او ناسته ولاړه په دنيا او اخرت کي د تاوان ذريعه ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د الله جل جلاله لپاره په خپل منځ کي د ميني کولو فضيلت

﴿۴۷۹۲﴾: عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذ بن جبل ﷺ څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل چي

يَقُولُ قَالَ اللهُ تَبَارَكَ وَتَعَالَى وَجَبَتْ مَحَبَّتِي لِلْمُتَحَابِّينَ فِيَّ وَالْمُتَجَالِسِينَ فِيَّ

الله تعالی فرمایي : کوم کسان چي زما د رضا او خوښۍ لپاره په خپل منځ کي مینه کوي د هغوئ سره زما مینه کول ضروري ده او کوم خلک چي زما د رضا لپاره په خپل منځ کي کښیني

وَالْمُتَزَاوِرِينَ فِيَّ وَالْمُتَبَاذِلِينَ فِيَّ . رواه مالك و في رواية الترمذي قَالَ يَقُولُ

او زما تعریف کوي او د یو بل سره ملاقات کوي او خپل مال مصرف کوي نو د هغوئ سره هم زما مینه کول واجب دي. مالک ، دترمذي په روایت کي دا الفاظ دي چي الله تعالی فرمایي :

اللهُ عَزَّ وَجَلَّ الْمُتَحَابُّونَ فِي جَلَالِي لَهُمْ مَنَابِرُ مِنْ نُورٍ يَغْبِطُهُمُ النَّبِيُّونَ وَالشُّهَدَاءُ.

زما د عظمت او جلال په سبب کوم خلک چي په خپل منځ کي مینه ساتي د هغوئ لپاره به (په آخرت کي) د نور منبر وي او انبیاء او شهداء به یې د هغه منبر ډېر صفت کوي

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\ ۹۵۳، رقم: ۱۶، والترمذي ۴\ ۵۱۵، رقم: ۲۳۹۰.

**تشريح**: چي انبياء او شهيدان به د هغه صفت كوي: دلته دا سوال پیدا کیږي چي دا خبره څرنګه صحیح کیدای سي ځکه چي انبیاء علی الاطلاق تر ټولو خلکو افضل او غوره دي او شهیدان د الله ﷻ په لاره کي د سر او مال په قربانولو سره عظیم فضیلت لري نو د دغه دواړو کسانو د داسي خلکو د اجر او انعام صفت کول څرنګه مناسب کیدای سي چي د هغوئ مذکوره عمل ډېر اسان دي، ددې څخه پرته ددې خبري څخه د انبیاء او شهیدانو په مقابله کي د ذکر سوو خلکو زیات غوره کېدل لازمیږي ځکه قصد د هغه چا کیږي چي مفضول وي او په چا چي قصد کیږي هغه فاضل وي ؟ ددې جواب علماؤ پر اجر او انعام باندي د خوښۍ اظهار کول ورکړی دی دوهم جواب دادی چي د حدیث ذکر سوې جمله په اصل کي پر فرض او تقدیر باندي مبني ده یعني مطلب دادی چي دغه خلکو ته چي کومه مرتبه تر لاسه وي د هغه ارزښت او فضیلت پر دې قیاس کیدای سي، یعني که چیري انبیاء او شهیدانو ته د یو د رتبې صفت کوي نو دا به د هغه خلکو مرتبه وي ،

او دریم جواب چي په داسي ځایو کي په عامه توګه ورکول کیږي دادی چي کله داسي هم

کیږي چي په مفضول کي يو داسي خاص صفت او فضیلت وي چي په فاضل کي نه وي او سره ددې چي فاضل په خپل ځان کي کوم فضائل او صفتونه لري د هغه په مقابله کي د مفضول د هغه صفت او فضیلت اهمیت نه وي مگر د فاضل خواهش وي چي هغه ته هغه صفت او ښه والی تر لاسه سي کوم چي په مفضول کي دی ، د مثال په توګه داسي پوه سئ چي د زید سره زر ښائسته غلامان دي او په هغوئ کي د ښکلا ماسوا نور صفتونه هم وي او دده په مقابله کي د بکر سره یوازي يو غلام وي چي ډېر نیک او هوښیار وي ، څرګنده ده چي زید د خپلو غلامانو د شمېر او اهمیت په اعتبار د بکر په مقابله کي زيات فضیلت لري او هغه ته ددې خبري هیڅ ضرورت نسته چي هغه د بکر په غلام قصد وکړي مگر ددې سربېره د هغه دا خواهش وي چي د بکر سره کوم غلام دی هغه ډول غلام ما ته هم حاصل سي ، همدارنګه نبیان او شهیدان به هم د ذکر سوو خلګو د فضیلت په لیدو سره دا خواهش کوي چي د نورو فضیلتو سره سره دغه فضیلت هم هغوئ ته حاصل وای .

﴿۴۷۹۳﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ عِبَادِ

د حضرت عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د الله جل جلاله په بندګانو کي ځیني

اللّٰهِ لَأُنَاسًا مَا هُمْ بِأَنْبِيَاءَ وَلَا شُهَدَاءَ يَغْبِطُهُمُ الْأَنْبِيَاءُ وَالشُّهَدَاءُ يَوْمَ

خلک داسي دي که څه هم چي هغوئ نبیان او شهیدان نه وي مگر د قیامت په ورځ به د هغوئ په

الْقِيَامَةِ بِمَكَانِهِمْ مِنَ اللّٰهِ تَعَالَى قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ تُخْبِرُنَا مَنْ هُمْ قَالَ هُمْ

مرتبو او درجو لیدو سره ورته انبیاء او شهداء حیرانېږي ، صحابه کرامو وویل: اې دالله رسوله ! هغه به کوم خلک وي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

قَوْمٌ تَحَابُّوا بِرُوحِ اللّٰهِ عَلَى غَيْرِ أَرْحَامٍ بَيْنَهُمْ وَلَا أَمْوَالٍ يَتَعَاطَوْنَهَا فَوَاللّٰهِ

هغه خلک چي صرف د الله جل جلاله د روح (قرآن کریم) په سبب په خپل منځ کي مینه کوي د هغوئ په منځ کي نه خپلوي وي او نه د مالي راکړي ورکړي معامله وي، په الله جل جلاله دي مي قسم وي د

إِنَّ وُجُوهَهُمْ لَنُورٌ وَإِنَّهُمْ لَعَلَى نُورٍ لَا يَخَافُونَ إِذَا خَافَ النَّاسُ وَلَا يَحْزَنُونَ

هغوئ مخونه به نور وي او دوئ به پر منبرونو د نور وي هغوئ به هغه وخت نه غمجن وي او نه

غمزده وي او نه به هغوئ په بيره کي وي

إِذَا حَزِنَ النَّاسُ وَقَرَأَ هَذِهِ الْآيَةَ: أَلَا إِنَّ أَوْلِيَاءَ اللَّهِ لَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ

هغه وخت چي نور خلک په بيره کي وي، ددې څخه وروسته رسول اللهﷺ دا آيت تلاوت کړ:
(الا ان اولياء الله لاخوف عليهم ولا هم

يَحْزَنُونَ. رواه ابوداؤد وفي شرح السنة عن ابي مالك بلفظ المصابيح مع

زوائد وكذا في شعب الايمان.

يحزنون) خبردار سئ! د الله ﷻ پر دوستانو به نه بيره وي او نه به هغوئ غمجن وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۳\۷۹۹، رقم: ۳۵۲۷.

**تشريح**: انبياء او شهيدان به هم ورته حيرانيږي: په دې اړه د مخکني حديث تشريح مخته اېښودل پکار دي، او يوه خاص خبره بايد په ذهن کي وي چي د انبياؤ څخه هغه نبي او پيغمبر مراد دی چي په خپل ژوند کي د يو عذر يا يو بل سبب په وجه په خپلو کي د ليدني موقع نه وي تر لاسه کړې او کوم چي د نفس محبت او ملګرتيا تعلق دی نو داسي هيڅ نبي او پيغمبر نه دی تېر سوی چي د الله ﷻ لپاره د خپل امت د خلکو سره مينه او تعلق نه لري او د ملګرتيا څخه محروم وي.

رُوح، د راء په پېښ سره، دا په صل کي هغه شی ته وايي چي د هغه په ذريعه بدن ژوندی کيږي، يا دا هم ويل کېدای سي چي هغه جوهر ته وايي چي د هغه په سبب ژوند ته بقاء تر لاسه کيږي او دلته د روح څخه مراد قرآن دی، په قرآن کريم کي د روح معنی د قرآن هم راغلې ده لکه چي الله ﷻ فرمايي: (وكذلک اوحينا اليک روحا من امرنا)، او په دې اعتبار سره قرآن کريم ته روح ويل ډېر مناسب دي لکه څرنګه چي د بدن د ژوند دار او مدار پر روح باندي دی همدارنګه د انسان د زړه دار او مدار پر قرآن کريم دی.

قرآن کريم د ميني او محبت سبّ ګرځول يا خو په دې اعتبار سره دی چي قرآن کريم يعني اسلام د انسانانو پيوست کولو، په هغوئ کي د اتحاد او ميني پيدا کولو تر ټولو لويه ذريعه ده، په دې اعتبار سره دی چي قران کريم د ژوند د نظام اساسي قانون دی او په هغه د عمل پيدا کېدو په وجه د ميني او موانست دولت تر لاسه کيږي ځکه چي د قرآن کريم لارښووني د ميني او موانست ذريعه او مؤمنانو ته د اتحاد او تعلق هدايت کونکی دی.

ځینو حضراتو د روح الله څخه مراد محبت اخیستی دی او د هغوئ په نزد پر محبت باندي د روح اطلاق په دې وجه مناسب دی چي محبت هم د انسان د زړه د حیات او د تازګي سبب دی ځکه محبوب ته جان من ویل کیږي .

د مشکوة په ځینو نسخو کي دغه لفظ د راء په زور سره دی یعني رَوح الله، نقل سوی دی چي د هغه معنی د رحمت او رزق ده، په هر حال د مقصد په اعتبار په معنی کي څه فرق نسته ، مطلب د ټولو یو دی او هغه دا چي د الله ﷻ د رضا لپاره د یو بل سره مینه کول .

د مصابیح په الفاظو چي دغه روایت څرنګه نقل سوی دی هغه داسي دی :

عن ابي المالک الاشعري انه قال کنت عند النبي صلی الله علیه وسلم اذ قال ان الله عزوجل عبادا یسؤا بانبیاء ولا شهداء یغبطهم النبیون والشهداء بقربهم و مقعدهم من الله یوم القیامة فقال حدثنا منهم فقال هم عباد الله من بلدان شتی وقبائل شتی لم یکن بینهم ارحام یتواصلون ولا دینارا یتباذلون بما یتحابون بروح الله یجعل وجوههم نورا ویجعل لهم منابر من نور قدام عرش الرحمن

د حضرت ابو مالک اشعري رضی الله عنه څخه روایت دی چي زه یوه ورځ دنبي کریم ﷺ په خدمت کي حاضر وم چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د الله ﷻ ځیني بندګان داسي دي که څه هم انبیاء او شهیدان نه دي مګر د قیامت په ورځ به د الله ﷻ په نزد د هغوئ مرتبه او مقام په لېدو سره انبیاء او شهیدان هم ورته حیرانیږي ، (د دې په اورېدو سره یوه صحرائي وویل) تاسو موږ ته وښیاست چي هغه کوم خلک دي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل : هغوئ د الله ﷻ بندګان وي چي د هغوئ تعلق د مختلفو ښارو او قبیلو څخه وي د هغوئ په مینځ کي هیڅ قرابت نه وي چي د هغه په وجه هغوئ د یو بل سره تعلق او مینه کولو باندي مجبور وي او نه هغوئ پر یو بل باندي خپل مال او روپۍ مصرفوي مګر هغوئ محض د الله ﷻ د روح یعني قرآن کریم په وجه په خپلو کي مینه لري ، (د قیامت په ورځ به) د هغوئ مخونه د نور وي او تر عرش لاندي به د هغوئ لپاره د نور منبر کېښښودل سي (چي پر هغه به ناست وي) .

﴿۴۷۹۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِأَبِيْ ذَرٍ يَا أَبَا ذَرٍ أَيُّ عُرَى الْإِيْمَانِ أَوْثَقُ قَالَ اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ اَلْمَوَالَاةُ فِي اللّٰهِ وَالْحُبُّ فِي اللّٰهِ وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ابوذر رضي الله عنه ته وفرمايل : (اې) ابوذر ! د ايمان کوم يو ښاخ زيات ټينګ دئ ؟ هغه وويل: الله جل جلاله او دهغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل : يو ازي د الله جل جلاله د رضا لپاره په خپل منځ کي دوستي ساتل او يوزي د الله لپاره د خلکو سره مينه او بغض ساتل . بيهقي. په شعب الايمان کي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷\۷۰، رقم: ۹۵۱۳،

## د ناروغ پوښتنه

﴿۴۷۹۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اِذَا عَادَ الْمُسْلِمُ اَخَاهُ أَوْ زَارَهُ قَالَ اللّٰه تعالى طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلًا. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مسلمان چي د مسلمان ورور د ناروغۍ پوښتني يا ليدني ته ورځي نو الله تعالى فرمايي : ستا ژوند پاک سو او ستا تلل ښه سول او په جنت کي تا يو ځاى تر لاسه کړ . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۳۲۰، رقم: ۲۰۰۸.

**تشريح**: په دنيا کي د خوشحالۍ او اطمينان تر لاسه کېدو تعلق چي د کومو شيانو سره دى هغه دادي چي قناعت او توکل په برخه سي، د الهي رضا سعادت تر لاسه سي ، په رزق کي برکته په زړه کي پراختيا راسي ، په عاداتو کي ښکلا او د علم د عمل توفيق په برخه سي .

څرګنده دي وي چي دغه دري سره الفاظ (طيب، طاب او تبوات) د خير په توګه نقل سوي دي ، مطلب دادى چي هغه سړي ته د الله تعالى له خوا د ذکر سوو شيانو د تر لاسه کېدو زيرى ورکول کيږي ، مګر دا هم کيداى سي چي دغه دري الفاظ د دعاء په توګه منقول وي په دغه صورت کي ددغه الفاظو معنى به دا وي چي ستا ژوند ته خوشحالي او راحت تر لاسه سي ستا پر لاره باندي تلل دي مبارک وي او تا ته دي په جنت کي لوړ مقام تر لاسه وي .

## د چا سره چي دي مينه وي هغه ته دي وو ايي

﴿۴۷۹۶﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

قَالَ إِذَا أَحَبَّ الرَّجُلُ أَخَاهُ فَلْيُخْبِرْهُ أَنَّهُ يُحِبُّهُ. رواه ابوداؤد والترمذي.

دحضرت مقدام بن معدي كرب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک چي د یو مسلمان وررور سره مینه کوي نو هغه دي د خپل میني څخه خبر کړي . ابو داؤد او ترمذي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۳۴۳، رقم: ۵۱۲۴، والترمذي ۴\۵۱۷، رقم: ۲۳۹۲.

**تشريح**: دغه حکم ځکه ورکړل سوی دی چي هغه مسلمان ته دا معلومه سي چي فلانی سړی زما سره مینه لري نو هغه به هم مینه ورسره وکړي او د میني او دوستۍ تعلق به ادا کوي او د هغه په حق کي به دعاء کوي .

﴿۴۷۹۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ بِالنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعِنْدَهُ نَاسٌ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي د نبي کریم ﷺ سره ډیر خلک ناست وه چي یو سړی تیر سو

فَقَالَ رَجُلٌ مِمَّنْ عِنْدَهُ إِنِّي لَأُحِبُّ هٰذَا لِلّٰهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د ناستو خلکو څخه یو سړي وویل زه ددغه سړي سره چي روان دئ یوازي د الله جل جلاله لپاره مینه کوم ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل :

أَعْلَمْتَهُ ؟ قَالَ لَا قَالَ قُمْ إِلَيْهِ فَأَعْلِمْهُ فَقَامَ إِلَيْهِ فَأَعْلَمَهُ فَقَالَ أَحَبَّكَ الَّذِي

ایا تا دغه سړی د خپل میني څخه خبر کړی دئ؟ هغه وویل :یا، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل : ورسه او هغه خبر کړه ، هغه ولاړ سو او هغه سړی یې خبر کړ چي هغه ورسره مینه کوي ،

أَحْبَبْتَنِي لَهُ قَالَ ثُمَّ رَجَعَ فَسَأَلَهُ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَخْبَرَهُ بِمَا قَالَ

هغه سړي ورته وویل ستا سره دي هغه ذات مینه وکړي چي د هغه د رضا لپاره تا زما سره مینه کړې ده ، د حضرت انس رضي الله عنه بیان دی کله چي هغه سړی راغلی

فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنْتَ مَعَ مَنْ أَحْبَبْتَ وَلَكَ مَا احْتَسَبْتَ .رواه

نو رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه چي هغه سړي په جواب کي څه وویل ؟ هغه سړي هغه الفاظ تکرار کړل کوم چي هغه ویلي وه ، ددې په اورېدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل : ته به د قیامت په ورځ د هغه چا سره یې چي مینه ورسره لري او تا ته به ستا د نیت بدله درکول کیږي .

البيهقي في شعب الإيمان وفي رواية الترمذي المرء مع من أحب وله ما اكتسب.

بيهقي او د ترمذي په روايت كي دا الفاظ دي چي انسان به د هغه چا سره وي د چا سره چي مينه لري او د هغه شي بدله به ورکول كيږي چي د خپل نيت په ذريعه يې ترلاسه كړی وي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٤٨٩، رقم: ٩٠١١، والترمذي ٤\٥١٤، رقم: ٢٣٨٦.

**تشريح**: د احتساب معنى د الله ﷻ څخه د ثواب اميد درلودل دي او حسبه ددغه لفظ اسم دی او په اصل كي دغه لفظ د حساب څخه اخيستل سوی دی چي معنی يې د شمېرلو ده، مطلب دادی چي د الله ﷻ د رضا لپاره د چا سره مينه كول داسي كار دی كه چيري د ثواب نيت وي نو په هغه حساب كي راځي يعني پر هغه اجر وركول كيږي او الله تعالی محبت كونكو ته د هغوئ د نيت مطابق ثواب وركوي.

## يوازي د مسلمان سره دوستي کوئ

﴿۴۷۹۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَا تُصَاحِبْ إِلَّا مُؤْمِنًا وَلَا يَأْكُلْ طَعَامَكَ إِلَّا تَقِيٌّ. رواه الترمذي وابوداؤد والدارمي

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د نبي كريم ﷺ څخه واوريدل چي فرمايل يې: يوازي مسلمان خپل مصاحب (يعني ملګری) جوړ كړه او خپل خوراک يوازي په پرهيزګارانو باندي خوره. ترمذي، ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داود ٥\١٦٧، رقم: ٤٨٣٢، والترمذي ٤\٥١٩، رقم: ٢٣٩٥.

**تشريح**: د ارشاد د آخري جملې مطلب دا هم دی چي ته بايد خپله روزي په حلال او جائز طريقه سره ترلاسه كړې چي هغه د نېک او پرهيزګاره مسلمانانو د خوراک وړ وي، او دا مطلب هم دی چي ته خپل خوراک يوازي متقي او پرهيزګارو مسلمانانو ته وركوه چي د هغه خوراک په ذريعه هغوئ ته په عبادت او نېكو كارو كي طاقت ترلاسه سي، بدو خلكو ته خپل خوراک مه وركوه چي د هغه په خوړلو سره د ګناه طاقت ترلاسه كړي.

رسول الله ﷺ مسلمانان د دين د دښمنانو او بدكاره خلكو د ملګرتيا او ناستي ولاړي څخه ځكه منع كړل چي د هغوئ سره د الفت او محبت قائمېدو سبب پيدا نسي او د هغوئ

دملگرتیا په وجه د کفر او شرک جراثیم هغوئ ته منتقل نسي .
علماؤ لیکلي دي چي یوازي د متقي او پرهیزگاره خلکو ته د خوراک ورکولو تعلق یوازي د خوراک دبلني سره دی ، د ضرورت او اړتیا صورت ددغه منع څخه مستثنی دی ځکه چي وږي او اړ کس ته د خوراک ورکولو لپاره هیڅ ډول امتیاز روا نه دی ، دا خبره ددغه آیت کریمه (ویطعمون الطعام علی حبه مسکینا و یتیما و اسیرا) څخه هم ثابته ده ، ځکه چي په دغه آیت کي د نورو اړو کسانو سره چي د کوم بندیانو ذکر سوی دی هغوئ به کافران وه نو معلومه سوه چي د اړتیا دفع کولو یعني د لوږي څخه د ساتني لپاره کافر ته خوراک ورکول هم جائز دي .

## انسان د خپل ملگري په دین دئ

﴿۴۷۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمَرْءُ عَلَى دِينِ خَلِيلِهِ فَلْيَنْظُرْ أَحَدُكُمْ مَنْ يُخَالِلُ. رواه احمد والترمذي وابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان وقال الترمذي هذا حديث حسن غريب وقال النووي اسناده صحيح.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : بنده د خپل ملگري پر دین وي، (یعني د خپل ملگري په مذهب یا سیرت باندي وي ) نو انسان ته د ملگري جوړولو په وخت کي ددې خبري خیال ساتل پکا ردي چي هغه څوک خپل ملگری جوړ کړي ؟ . ابوداؤد ، بیهقي او ترمذي ویلي دي دا حدیث حسن غریب دئ، نووي وایي ددې اسناد صحیح دي .

**تخریج** : مسند الامام احمد ۲\۳۰۳، وابوداود ۵\۱۶۸، رقم: ۴۸۳۳، والترمذي ۴\۵۰۹، ...

**تشریح** : په حدیث کي چي د کومي دوستۍ ذکر سوی دی د هغه څخه مراد ریښتونې دوستي ده نه ظاهري دوستي، ځکه چي د ظاهري دوستۍ د ضرورت په وجه د هرچا سره استواء کیدای سي مگر ریښتونې دوستي یوازي د هغه خلکو سره پکار ده چي دهغوئ عقیده او نظر صالح وي او دهغوئ اعمالو او اعادات پاک وي ، په دې اړه د قرآن کریم هدایت هم دادی چي : (یا ایها الذین آمنوا اتقو الله وکونوا مع الصادقین). اې مؤمنانو ! د الله جل جلاله څخه وبېرېږئ او د رېښتونو سره اوسئ . امام غزالي رحمه الله فرمایلي دي: د حریص سره ناسته ولاړه د حرص ذریعه جوړېږي او د زاهد سره ناسته ولاړه له دنیا څخه بې شوقي پیدا کوي ځکه چي د ملگرتیا اثر

قبلول او د خپل ملكري مشابهت اختيارول د انساني طبيعت خاصه ده .

د حديث په آخر كي د مشكوة مؤلف چي كوم اوږد عبارت راوړى دى د هغه مقصد د هغه خلكو د خيال ترديد كول دي كوم چي دغه حديث ته موضوع وايي .

## د ميني كولو طريقه

﴿۴۸۰۰﴾: وَعَنْ يَزِيدَ بْنِ نَعَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا آخَى الرَّجُلُ الرَّجُلَ فَلْيَسْأَلْهُ عَنِ اسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ وَمِمَّنْ هُوَ فَإِنَّهُ أَوْصَلُ لِلْمَوَدَّةِ. رواه الترمذي.

د حضرت يزيد بن نعامه ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي يو انسان د بل انسان سره ورورلي وكړي نو هغه ته پكار ده چي د هغه څخه د هغه نوم د هغه د پلار نوم د هغه د قوم نوم و پوښتي ، ځكه چي دا معلومات مينه ټينګوي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۱۷، رقم: ۲۳۹۲.

# اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

## د خداى ﷻ لپاره مينه يا بغض

﴿۴۸۰۱﴾: عَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابو ذر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ زموږ په لور تشريف راوړ او وه يې

أَتَدْرُونَ أَيُّ الْأَعْمَالِ أَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ قَالَ قَائِلٌ الصَّلَاةُ وَالزَّكَاةُ وَقَالَ

فرمايل : تاسو ته معلومه ده چي د الله په نزد كوم عمل غوره او عزيز دى؟ يوه وويل لمونځ او

قَائِلٌ الْجِهَادُ قَالَ النبي صلى الله عليه وسلم إِنَّ أَحَبَّ الْأَعْمَالِ إِلَى اللّٰهِ عَزَّ

زكوة يوه وويل جهاد ، نبي كريم ﷺ ورته وفرمايل : د الله ﷻ په نزد تر ټولو غوره عمل د

وَجَلَّ الْحُبُّ فِي اللّٰهِ وَالْبُغْضُ فِي اللّٰهِ . رواه احمد وروى ابوداؤد الفصل الاخير

الله ﷻ د رضا لپاره مينه کول او د الله ﷻ لپاره بغض کول دي . احمد او ابوداؤد يوازي د پای فضيلت روايت کړی دئ .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۴۶۱۵، و ابوداود ۶۱۵، رقم: ۴۵۹۹.

**تشريح**: په (والزکوة) د واو حرف د معنی په اعتبار د او پر ځای استعمال سوی دی چي د مفهوم په اعتبار د الصلوة وروسته عبارت داسي دی وقال قائل الزکوة ، په حديث کي چي د رسول الله ﷺ د سوال او د صحابه کرامو جواب او بيا د رسول الله ﷺ د ارشاد جواب چي په کوم انداز کي ذکر سوی دی د هغه څخه په ظاهره دا معلوميږي چي حب في الله او بغض في الله د لمانځه، زکوة او جهاد څخه هم افضل دي حال دا چي حقيقت داسي نه دی ځکه لمونځ، زکوة او جهاد داسي اعمال دي کوم چي بېله شکه تر ټولو اعمالو افضل او غوره دی په دغه صورت کي چي دلته اشکال پيدا کيږي، ددې جواب دادی چي کوم څوک په حقيقي معنی کي د چا سره د الله ﷻ د رضا لپاره مينه او تعلق ساتي نو هغه به يقينا د انبياء کرامو او اولياء الله سره ريښتوني عقيده او مينه لري نو ښکاره خبره ده چي د هغوئ اتباع او پيروي به کوي په دې توګه چي لمونځ به هم کوي او زکوة به هم ورکوي ، همدارنګه څوک چي د الله ﷻ د رضا لپاره د يو چا سره بغض کوي نو هغه به يقينا د دين د دښمنانو سره عداوت او دښمني لري او ښکاره خبره ده چي کله د هغوئ سره دښمني او عداوت کوي نو د هغوئ سره به جهاد في سبيل الله هم کوي ځکه نو د حب في الله او بغض في الله په ضمن کي ټول طاعات راغلل که هغه لمونځ وي، زکوة وي او که جهاد وي ، يو عمل به هم ددغه څخه دباندي نه وي په دې اعتبار سره د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دادی چي د دين اصل مدار پر حب في الله او بغض في الله باندي دی کوم څوک چي دغه درجه تر لاسه کړي نو هغه ته ټول طاعات او عبادات اختيارول هيڅ مشکل نه دي ،

ددغه ارشاد مطلب دادی چي په قلبي اعمالو کي تر ټولو غوره عمل حب في الله او بغض في الله دی او په بدني اعمالو کي تر ټولو غوره عمل لمونځ ، روژه ، زکوة او جهاد دی، په دغه صورت کي هيڅ اشکال نه پيدا کيږي او يا دا مراد دی چي شريعت د کومو امورو اختيارولو حکم کړی دی په هغه باندي د عمل کولو څخه وروسته د کومو کارو څخه چي نفي سوې ده د هغو څخه د اجتناب کولو څخه وروسته حب في الله او بغض في الله تر ټولو غوره عمل دی او تر ټولو کامل طاعت دی ، ددې تائيد ددغه حديث څخه هم کيږي کوم چي طبراني د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما نقل کړی دی چي : (احب الاعمال الي الله بعد الفرائض ادخال السرور في قلب المؤمن) د فرضو څخه وروسته چي کوم د الله ﷻ په نزد ډېر خوښ دی هغه د يو مؤمن د زړه د

خوشحالي څخه د کول دي.

﴿۴۸۰۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا أَحَبَّ عَبْدٌ عَبْدًا لِلَّهِ إِلَّا أَكْرَمَ رَبَّهُ عَزَّ وَجَلَّ. رواه احمد.

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: کوم بنده چي د الله ﷻ د رضا لپاره د يو بنده سره مينه وکړي نو هغه د خپل پروردګار تعظيم او تکريم وکړ. احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۵۹.

## غوره خلک کوم دي

﴿۴۸۰۳﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ أَنَّهَا سَمِعَتْ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخِيَارِكُمْ قَالُوا بَلَى يَا رَسُولَ اللَّهِ قَالَ خِيَارُكُمُ الَّذِينَ إِذَا رُءُوا ذُكِرَ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ. رواه ابن ماجة.

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي هغې د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي زه تاسو ته ونښيم چي په تاسو کي غوره خلک کوم دي؟ صحابه کرامو وويل: هو، نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په تاسو کي غوره خلک هغه دي چي د هغوئ په ليدو سره سړي ته الله ﷻ ياد سي. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۷۹، رقم: ۴۱۱۹.

**تشريح**: د باب حفظ اللسان په دريم فصل کي دغه حديث د معنى او تشريح سره نقل سوى دى.

## يوازي د الله ﷻ لپاره مينه کول

﴿۴۸۰۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ عَبْدَيْنِ تَحَابَّا فِي اللَّهِ عَزَّ وَجَلَّ وَاحِدٌ فِي الْمَشْرِقِ وَآخَرُ فِي الْمَغْرِبِ لَجَمَعَ اللَّهُ بَيْنَهُمَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ يَقُولُ هَذَا الَّذِي كُنْتَ تُحِبُّهُ فِيَّ. رواه البيهقي.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه بندګان چي د الله تعالى لپاره په خپل منځ كي مينه كوي او يو په هغوئ كي په ختيځ كي اوسي او دويم په لويديځ كي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ هغوئ يو ځاى كړي ورته وه به فرمايي : دا هغه بنده دئ چي دده سره تا زما په خاطر مينه كول . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٤٩٢، رقم: ٩٠٢٢.

## د دنيا او آخرت كاميابي

﴿٤٨٠٥﴾: وَعَنْ أَبِي رَزِينٍ أَنَّهُ قَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلاَ أَدُلُّكَ

د حضرت ابو زرين ﷺ څخه روايت دئ چي هغه ته رسول الله ﷺ وفرمايل : زه تا ته د امر دين

عَلَى مِلاَكِ هٰذَا الأَمْرِ الَّذِي تُصِيبُ بِهِ خَيْرَ الدُّنْيَا وَالآخِرَةِ ؟ عَلَيْكَ بِمَجَالِسِ

ريښه ونښيم ، چي ته د هغې په ذريعه د آخرت خير تر لاسه كوې ، ته دا اهل ذكر په مجلسونو كي

أَهْلِ الذِّكْرِ وَإِذَا خَلَوْتَ فَحَرِّكْ لِسَانَكَ مَا اسْتَطَعْتَ بِذِكْرِ اللَّهِ وَأَحِبَّ فِي اللَّهِ

كښينه او هر كله چي يوازي يې نو څومره چي كيدلاى سي د الله ﷻ په ياد كي خپله ژبې ته حركت وركوه يوازي د الله ﷻ د رضا لپاره مينه كوه

وَأَبْغِضْ فِي اللَّهِ يَا أَبَا رَزِينٍ هَلْ شَعَرْتَ أَنَّ الرَّجُلَ إِذَا خَرَجَ مِنْ بَيْتِهِ زَائِرًا

او يوازي د الله ﷻ د رضا لپاره بغض ساته ، اې ابوزرين ! ايا ته پوهيږې چي يو مسلمان د خپل مسلمان ورور د ليدني په اراده د كور څخه وځي (نو څه كيږي)

أَخَاهُ شَيَّعَهُ سَبْعُونَ أَلْفَ مَلَكٍ كُلُّهُمْ يُصَلُّونَ عَلَيْهِ وَيَقُولُونَ رَبَّنَا إِنَّهُ وَصَلَ

په هغه پسې اويا زره ملائكي وي چي د هغه لپاره دعاء او استغفار كوي او وايي اې پروردګاره ! ددغه بنده سره يې يوازي ستا لپاره ليدنه وكړه

فِيكَ فَصِلْهُ فَإِنِ اسْتَطَعْتَ أَنْ تُعْمِلَ جَسَدَكَ فِي ذٰلِكَ فَافْعَلْ . رواه البيهقي.

ته دي په خپل رحمت او شفقت سره يو ځاى كړې ، كه ته دا كولاى سې يعني د خپل مسلمان ورور د ملاقات لپاره نو همداسي كوه . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٦\٤٩٢، رقم: ٩٠٢٤.

**﴿٤٨٠٦﴾**: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ كُنْتُ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ سره وم چي وه يې فرمايل: په

فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فِي الْجَنَّةِ لَعُمُدًا مِّنْ يَاقُوتٍ عَلَيْهَا

جنت کي د ياقوتو ستني دي چي د هغه سربيره د زبرجدو بالاخانې جوړي سوي دي د هغه

غُرَفٌ مِنْ زَبَرْجَدٍ لَهَا أَبْوَابٌ مُفَتَّحَةٌ تَضِيْءُ كَمَا يُضِيْءُ الْكَوْكَبُ الدُّرِّيُّ

بالاخانو دروازې خلاصي دي دا بالاخانې او ددې روښن دان روښانه دي او داسي ځليږي لکه ځرنګه چي ځلانده ستوري ځليږي،

فَقَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَنْ يَّسْكُنُهَا قَالَ الْمُتَحَابُّوْنَ فِي اللّٰهِ وَالْمُتَجَالِسُوْنَ فِي اللّٰهِ وَالْمُتَلَاقُوْنَ فِي اللّٰهِ. روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان.

صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې دالله رسوله! په دې کي به څوک اوسي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه خلک چي د الله ﷻ لپاره مينه کوي د الله لپاره په خپل منځ کي کښيني (او د الله ﷻ ذکر کوي)، او د الله ﷻ د رضا لپاره په خپل منځ کي ليدنه کوي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٦\٤٨٧، رقم: ٩٠٠٢.

==========

# بَابُ مَا يُنْهٰى عَنْهُ مِنَ التَّهَاجُرِ وَالتَّقَاطُعِ وَاتِّبَاعِ الْعَوْرَاتِ

## (د منعه خبرو، تعلق پرېښودلو، دوستي پرېښودلو او عيب ويلو بيان)

د تهاجر معنى ده پرېښودل او پرېکول، او د تقاطع معنى هم دغه ده، په دې اعتبار سره د تقاطع لفظ په معنوي توګه د لفظ تهاجر وضاحت او د هغه د بيان لپاره دى او ددغه دواړو لفظو څخه مراد د يو مسلمان د بل مسلمان سره تر درو ورځو زيات سلام، خبري او راسه درسه

پرېښودل، د صحبت او ناستي ولاړي پرېښودل او اسلامي ورورولي نظر انداز كول ، ددغه امورو منع على الاطلاق نه ده بلكه په ځينو حالاتو كي او په ځينو قيودو سره ددې اختيارول څه ګناه نه لري ځكه په ذكر سوي عنوان كي داسي وويل سول : ما ينهي عنه من التهاجر والتقاطع.

عورات د عورت جمع ده او په لغت كي عورت هغه شي ته وايي چي د شرم متقاضي وي او د هغه ظاهرول ځوک نه خوښوي بلكه دا غواړي چي هغه شی پټ وي لكه څرنګه چي په يو سړي كي يو عيب او تاوان وي ، په دې اعتبار سره د عورت مطلب دی د يو چا عيب بيانول.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### تر درو ورځو زيات ناراضګي جائز نه ده

﴿۴۸۰۷﴾: عَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ لِلرَّجُلِ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثِ لَيَالٍ يَلْتَقِيَانِ فَيُعْرِضُ هَذَا وَيُعْرِضُ هَذَا وَخَيْرُهُمَا الَّذِي يَبْدَأُ بِالسَّلَامِ. متفق عليه

د حضرت ابو ايوب انصاري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د يو مسلمان سړي لپاره دا جائز نه ده چي هغه تر درو شپو زيات (په خفه كېدو سره) يو مسلمان ورور پرېږدي يعني كه هغوئ يو بل ته مخامخ سي نو يو كس خپل مخ آخوا وګرځوي او بل دېخوا ، په دغه دواړو كي غوره هغه ځوک دئ چي اول السلام عليكم ووايي (يعني خفګان لیري كړي) بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۴۹۲، رقم: ۶۰۷۷، ومسلم ۱۴\۱۹۸۴، رقم: ۲۵- ۲۵۶۰.

**تشريح**: د درو ورځو د قيد په وجه دا ښودل مقصد دي چي د خفګان په وجه تر درو ورځو پوري يو ځاى كېدل پرېښودي نو دا حرام نه دي ځكه چي په انسان كي د غيظ ، غضب، غيرت او حميت چي كومه ماده ده هغه په هر حال خپل اثر ظاهروي ځكه دومره وخت معاف سوى دى چي د انسان د هغه جذباتو تسكين وسي او په دغه درو ورځو كي د خفګان او ناراضګۍ او نفرت جذبات هم ختم سي يا كم از كم سپک سي او صلح وسي.

په هرحال د حديث مراد دادى چي په اجتماعي توګه د يو ځاى اوسېدو او ورځني معاملاتو په وجه په خپلو كي جګړه رامنځته كيږي او د يو بل څخه د شكايت پيدا كېدو په وجه

د خفګان او ناراضګۍ صورت پېښیږي د مثال په توګه یو سړی د چا غیبت وکړي او هغه ته بد او رد وواېي یا د هغه څخه د خیرخواهۍ امید وو مګر هغه خیرخواهي ونه کړه نو په داسې صورتو کي که چیري په خپلو کي ناراضګي راسي او د ترک ملاقات نوبت راسي نو داسې خفګان او ترک ملاقات تر درو ورځو زیات نه دی پکار مګر که چیري ترک ملاقات د یو دیني معاملې په وجه وي لکه یو سړی د نفساني خواهشات غلام وي یا یو سړی بدعتي وي نو د هغه سره ترک ملاقات تر هغه وخته جائز دی تر څو چي هغه په توبه کولو سره سیده لار اختیار نه کړي او حق ته رجوع ونه کړي.

سیوطي رحمة الله عليه د مؤطا په حاشیه کي د ابن عبدالبر رحمة الله عليه څخه نقل کړي دي چي هغه وويل: د علماؤ پر دې خبره اتفاق دی که چیري یو سړي ته دا بېره وي که زه فلاني سړي ته سلام ادا کړم او د هغه سره تعلق وساتم نو د هغه په وجه به ما ته دیني یا دنیاوي تاوان پېښ سي او زما قیمتي وخت به په لایعني کارو کي ضائع سي نو هغه دي د هغه څخه بېلوالی اختیار کړي او د هغه څخه د لیري اوسېدو هڅه دي وکړي مګر دغه بېلوالی اختیارول په ښه انداز کي کېدل پکار دي دا نه چي د هغه غیبت دي وکړل سي پر هغه دي عیب وویل سي او د هغه سره دي کینه او عداوت ظاهر کړل سي، د رسول الله ﷺ او صحابه کرامو په زمانه کي داسي ډېري پېښي دي چي په هغو کي مسلمانانو د دیني مصالحو سره سم د یو بل څخه تر درو ورځو زیات ترک ملاقات ثابت دی، په احیاء العلوم کي د صحابه کرامو د یو ډلي په اړه نقل سوي دي چي په هغوئ کي ځیني تر مرګه پوري پر ترک ملاقات باندي قائم وه، د هغه درو صحابه کرامو پېښه ډېره مشهوره ده چي د تبوک غزا ته نه وه تللي او رسول الله ﷺ په هغوئ کي د نفاق پیدا کېدو د بیري څخه د ټولو مسلمانانو څخه بېل کړی وه تر دې چي ټولو صحابه کرامو او د هغه درو کسانو بي بیانو او خپلوانو ته هم د هغوئ سره د ترک ملاقات او ترک سلام حکم ورکړی وو،

په دغه حکم باندي پنځوس ورځي عمل جاري وو خپله د رسول الله ﷺ په اړه منقول دي چي رسول الله ﷺ تر یوې میاشتي پوري د خپلو بیبیانو سره یو ځای کېدل پرې اېښي وه، بي بي عائشې رضي الله عنها تر یو وخت پوري د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه سره ترک ملاقات اختیار کړی وو همدارنګه د حضرت عبدالله ابن عمر رضي الله عنه په اړه منقول دي چي هغه د خپل زوی بلال رحمة الله عليه څخه د یو دیني معاملې په اړه دومره ناراضه سو چي د هغه سره یې خبري کول پرېښودل، خلاصه دا چي داسي ډېري پېښي نقل سوي دي چي د هغو څخه ثابتیږي چي په دیني معاملو کي خفګان او ناراضګي تر درو ورځو یات هم کېدای سي مګر شرط دا دی چي نیت صادق وي او په هغه

كي د څه نفساني خواهشانو او دنياوي غرض دخل نه وي .

بيا د سلام په ذريعه پيل وكړي : مطلب دادی چي په هغه دواړو كي كوم څوک د ناراضګۍ ختمولو لپاره مخكي سلام وكړي د هغه درجه به د دوهم په مقابله كي لويه وي او په دې كي دې ته هم اشاره ده چي په سلام كي مخكي كېدل د ترک ملاقات ګناه زائلوي او كم از كم ترک سلام خو ختمول پكار دي چي د اخوة اسلامي دا بنيادي حق ضائع نسي .

## يو څو منعه خبري

﴿۴۸۰۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكُمْ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خپل ځان وژغورئ

وَالظَّنَّ فَإِنَّ الظَّنَّ أَكْذَبُ الْحَدِيثِ وَلَا تَحَسَّسُوا وَلَا تَجَسَّسُوا وَلاَ تَنَاجَشُوا

دبد ګمانۍ څخه ، ځكه چي بد ګماني بدترين درواغ خبره ده د چا دحال يا د يو خبري معلومولو كوښښ مه كوئ ، جاسوسي مه كوئ او مه جنګول كوئ ،

وَلَا تَحَاسَدُوا وَلَا تَبَاغَضُوا وَلاَ تَدَابَرُوْا وَكُونُوا عِبَادَ اللّٰهِ إِخْوَانًا. وفي رواية ولاتنافسوا. متفق عليه.

په خپل منځ كي حسد مه كوئ ، په خپل منځ كي بغض مه ساتئ، په خپل منځ كي غيبت مه كوئ او د الله جل جلاله ټول مسلمانان بندګان په خپل منځ كي وروڼه جوړ سئ ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي په خپل منځ كي كينه مه كوئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١٠\ ٤٨٤، رقم: ٦٠٦٦، ومسلم ٤\ ١٩٨٥، رقم: ٢٨- ٢٥٦٣.

**د لغاتو حل**: تناجشوا: المراد به طلب الترفع والعلو على الناس. (لوړي تر لاسه كول).

**تشريح**: په دغه حديث كي چي د كومو شيانو څخه منع سوې ده د هغو د ټولني د انفرادي او اجتماعي ژوند سره تعلق دی، كه چيري دهغه خبرو څخه پرهيز وكړل سي نو په ټولنه كي به د خپربدونكو ډېرو خرابيو څخه خلاصون تر لاسه سي .

بدګمانۍ ته د خبرو تر ټولو بد درواغ فرمايل سوي دي ، كله چي يو څوک د يو چا په اړه بد ګماني كوي نو هغه دا فيصله كوي چي هغه سړی داسي او داسي دی او هغه سړی په حقيقت كي هم هغسي نه وي ځكه د هغه فيصلې ته به درواغ ويل كيږي، ځرګنده دي وي چي د خبرو څخه

مراد هغه خبري دي چي نفس يې پيدا کوي او په حقيقت کي د شيطان له خوا په نفس کي اچول کيږي.

په دې اعتبار سره بد گماني ته بد دروغ ويل سوي دي يا دا چي هغه ته د بد دروغو نوم ورکول د هغه خرابۍ زيات بيانول مقصد دي، په قرآن کريم کي داسي فرمايل سوي دي: (ان بعض الظن اثم)، په دغه الفاظو کي چي کوم ظن گناه گرځول سوی دی د هغه څخه د بد گماني مراد ده او څرنگه چي علماؤ وضاحت کړی دی چي د هغه څخه د بد گمانۍ په اړه منع نقل سوې ده د هغه څخه هغه بد گماني مراد ده کوم چي په ذهن کي کښېني او په هغه يقين وکړي، هغه بد گماني مراد نه ده چي محض د خيال په توگه په زړه کي تېره سي او ځينو علماؤ دا ليکلي دي چي بد گماني کونکی سړی هغه وخت گناه کار وي کله چي د هغه ذکر وکړي او هغه په ژبه ادا کړي، په هر صورت د هغه بد گمانۍ په موجب د گناه د کېدو شرط دا هم دي چي د هغه بدگمانۍ قائمولو لپاره يو معقول وجه او دليل نه وي يا د بد گمانۍ معقول وجه او دليل وي نو د بد گمانۍ نه کولو يو معقول وجه او دليل وي او دواړه دليلونه په خپلو کي متعارض وي مگر که چيري د هغه بد گمانۍ صحيح ثابتولو لپاره يو داسي واضحه قرينه او معقول دليل وي چي د هغه د منلو څخه پرته بله چاره نه وي نو پر داسي بد گمانۍ باندي مؤاخذه نه کيږي او نه هغه ته په حقيقي معنی کي بد گماني ويل کيږي.

تحسس او تجسس (يعني پلټنه او جاسوسي)، دغه الفاظ په ظاهره يو مفهوم لري مگر علماؤ د دواړو په مينځ کي فرق ظاهر کړی دی او په دې اړه مختلف اقوال منقول دي، صاحب قاموس د جيم په فصل کي ليکلي دي چي د تجسس معنی د خبرو په پلټنه کي او سيدل او دغه لفظ د وجس څخه مشتق دی چي دهغه معنی ده د داسي پټو خبرو ساتلو والا چي ښه نه وي يا هغوئ د حاء په فصل کي ليکلي دي چي د حاسوس هم هغه معنی ده کوم چي د جاسوس ده، يا دا چي حاسوس په خاصه توگه هغه پټو خبرو لرونکي ته وايي کوم چي ښه وي،

ځينو حضراتو ليکلي دي چي د تجسس معنی ده: ښه خبرونه په هوښيارۍ او نرمۍ سره تر لاسه کول او د تحسس معنی ده هغه خبرونه د قوت حاسه په ذريعه تر لاسه کول لکه يو سړی چي د يو چا خبره په غلا اوري اوويني يې، ځينو حضراتو ويلي دي چي د تجسس معنی ده د نورو لپاره د بديو او عيبونو پلټنه کول او د تحسس معنی ده د نورو لپاره د خبر په لټون کي لگېدل او د تجسس معنی ده د ځان لپاره د يو خبر په پلټنه کي لگېدل، طيبي رحمه الله ويلي دي چي په دغه ارشاد کي تجسس مراد دی په خپل خپل ډول سره يا د يو چا په مرسته سره د نورو خلکو عيبونه او دهغوئ د ذاتي حالاتو او معاملاتو پلټنه کول او د تحسس معنی ده د يو چا د مرستي

څخه پرته په خپله پلټنه کول، په هر حال د حدیث مراد د خلکو د داسي احوالو او معاملاتو پلټنه کول او د داسي خبرو د پلټني څخه منع کول دي چي دهغو تعلق د غیبت، خرابۍ او د کردار او احوالو د کمزورۍ سره وي نو ددغه منع وجه بالکل څرګنده ده او که د ښه خبري پلټني کولو او د ښه احوالو او معاملاتو پلټني کولو څخه هم منع مراد وي نو په دغه صورت کي ددغه منع وجه به دا بیانیږي چي کیدای سي د چا په اړه د ښه خبر تر لاسه کېدو وروسته په ځان کي د حسد جذبه پیدا سي یا طمع او حرص پکښي پیدا سي چي ښه شی نه دی نو احتیاط په دې کي دی چي د یو چا د ښه خبر په پلټنه کي لګېدل هم نه دي پکار.

ولا تناجشوا: دلته اصل لفظ د نجش دی چي د هغه اصل معنی د ښکار د راپارولو ده، ځینو حضراتو دا معنی بیان کړې ده چي یو چا ته د دوکې ورکولو لپاره د پلورنکي شي ډېر زیات تعریف کول یاد مصنوعي رانیونکي په جوړېدو سره د پلورونکي شي قیمت زیاتول چي د بل چا په لېدو سره هغه شی په هغه قیمت رانیسي یا د پلورونکي شي خرابي بیانول چي رانیونکی هغه پرېږدي او بلي خوا ته ولاړ سي، په عامه توګه علماؤ په حدیث کي دغه لفظ پر دغه معنی محمول کړی دی یعني په ذکر سوو طریقو کي په یوه داسي طریقه سره سودا خرابول ، ځینو حضراتو ددغه لفظ د اصل معنی د رعایت څخه په حدیث کي د ولاتناجشوا دا معنی مراد اخیستې ده چي یو څوک د یو چا پر بدۍ او دښمنۍ باندي مه پاروه.

ولا تحاسدوا: یو د بل سره حسد مه کوئ، مطلب دادی چي د بل چا سره د یو نعمت په لېدو سره د هغه د زوال خواهش مه کوه یا دا خواهش مه کوه چي هغه نعمت دده څخه ایسته سي او ما ته راسي.

ولا تباغضو: د یو بل سره د بغض نه کولو مطلب دادی چي د داسي اسبابو پیدا کولو څخه ځان وساتئ چي بغض او نفرت لازموي ، دغه وضاحت په دې وجه دی چي څرنګه محبت یوه داسي جذبه ده چي خپله پیدا کیږي همدارنګه بغض او نفرت هم پیدائشی دی چي په دغه جذبې پیدا کېدو یا نه پیدا کېدو کي د یو سړي اختیار نه وي مګر انسان د خپل ځان د داسي اسبابو څخه پر خوندي ساتلو باندي یقینا قادر کیدای سي چي د هغه څخه یو تر بله بغض او نفرت پیدا کیږي، ځینو حضراتو د ولاتباعضو معنی دا بیان کړې ده چي په شرعي احکامو او مسائلو کي د نفساني خواهشاتو په وجه په خپلو کي اختلاف او انتشار مه پیدا کوئ او خپل فکر او نظر په دین کي مه داخلوئ ځکه چي په دین کي بدعت اختیارول او د سیده لاري څخه ګمراه کېدل هغه اسباب دي چي د مسلمانانو په مینځ کي د یو بل سره بغض او نفرت پیدا کوي، مګر

صحيح خبره داده چي په حديث كي د يو بل سره د بغض كولو د منع اصل مقصد د ميني او محبت مؤكد كوي او دميني او الفت ددغه حكم تعلق على الاطلاق د مسلمانانو د ټول ژوند سره دى مګر كوم محبت او الفت چي په دين كي خلل اچوي په هغه صورت كي محبت جائز نسي كيداى بلكه دين ته تاوان رسونكي سړي سره بغض او نفرت كول به جائز وي .

خلاصه دا چي رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه ټولو مسلمانانو ته هدايت فرمايلى دي چي هغوئ د الله ﷻ د كلمې لوړولو لپاره د محبت او اتحاد په زنځير كي منسلک وي چي د ارشاد الهي تقاضا هم ده لكه چي په قرآن كريم كي فرمايل سوي دي : (واعتصموا بحبل الله جميعا ولا تفرقوا) : او د الله ﷻ رسئ داسي ټينګه ونيسئ چي ټول په خپلو كي متفق ياست او په خپلو كي بې اتفاقي مه كوئ .

په دې كي هيڅ شک نسته چي محبت او الفت د اتحاد بنياد دى او بغض او نفرت د افتراق او انتشار ذريعه ده ، نو وفرمايل سول چي تاسو د يو بل سره بغض او نفرت مه كوئ .

ځينو حضراتو دا ليكلي دي چي د (لاتباعضوا) معنى داده چي تاسو د مسلمانانو په مينځ كي عداوت او دښمني مه پيدا كوئ ، په دغه صورت كي به د ذكر سوي منع تعلق د چغل خوري ښخه وي ځكه چي چغل خوري د فساد بنياد دى او د يو بل سره عداوت او دښمني پيدا كيږي .

ولا تدابروا : مطلب دادى چي په خپلو كي په يو بل پسي بد او رد مه واياست ، طيبي رحمة الله عليه ويلي دي چي د تدابر ښخه مراد تقاطع (ترک ملاقات) دى ، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي د يو بل سره تعلق مه پرېږدئ ، ددغه معنى لفظي مناسبت د ذكر سوي جملې سره په دې توګه دى چي په تعلق قطع كونكو كي هر يو د بل ښخه شا ګرځوي او د اسلام ښودل سوي حقوقو ادا كولو ښخه تښته كوي .

وكونوا عباد الله اخوانا : مطلب دادى چي تاسو ټول د الله ﷻ بندګان ياست او په عبوديت كي برابر ياست ، او تاسو ټول د اخوة په زنځير سره منسلک ياست نو ستاسو ددغه حيثيت تقاضا داده چي د يو بل په مينځ كي حسد ، بغض او غيبت په ډول د بديو په حائل كولو سره په خپلو زړونو كي ښېګڼې او په خپلو صفتو كي انتشار مه پيدا كوئ بلكه پر خپل مرتبه عبوديت باندي په اتحاد او اتفاق سره اوسئ او په خپلو كي وروڼه وروڼه اوسئ .

ولا تنافسوا : يو د بل حرص مه كوئ ، د تنافس لفظ په لغوي توګه د تحاسد معنى ته نژدې دى مګر احتمال دادى چي د تنافس معنى دنيا ته د ميلان او رغبت كول وي ددې تائيد ددغه روايت ښخه هم كيږي چي په هغه كي فرمايل سوي دي : ما ته انديښنه ده چي پر تاسو باندي د دنيا

10

دروازې خلاصي سي او تنافس كول به پېل كړئ يعني تاسو به دنيا ته راغب سئ په دې اعتبار سره په ترجمه كي د تنافس معنى په خپلو كي د حرص كولو نقل سوې ده .

## د عداوت بدي

﴿۴۸۰۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُفْتَحُ أَبْوَابُ الْجَنَّةِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: جنت دروازې خلاصيږي

يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ فَيُغْفَرُ لِكُلِّ عَبْدٍ لَا يُشْرِكُ بِاللّٰهِ شَيْئًا إِلَّا رَجُل

د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ د او د هر بنده بخښنه كيږي په شرط د دې چي هغه د الله جل جلاله سره هيڅ شی نه وي شريک كړی او هغه سړی د دې بخښني څخه محروم وي چي

كَانَتْ بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ فَيُقَالُ أَنْظِرُوا هٰذَيْنِ حَتّٰى يَصْطَلِحَا . رواه مسلم

د يو مسلمان سره كينه او عداوت لري او ملائكو ته وويل سي چي دغه دواړو ته وخت وركړئ چي په خپل منځ كي صلح وكړي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۹۸۷، رقم: ۳۵-۲۵۶۵.

**تشريح**: د جنت دروازې خلاصيږي: مطلب دادی چي د جنت طبقې او درجې او يا د هغه بالاخانې په دغه دوو ورځو كي خلاصيږي ځكه چي په دغه دواړو ورځو كي د الله تعالى رحمت ډېر نازليږي چي د بندګانو د مغفرت باعث كيږي . (ملا علي قاري رحمة الله عليه) .

شيخ عبدالحق رحمة الله عليه ليكلي دي : د دروازو خلاصول په اصل كي د دې څخه كنايه ده چي په دغه دوو ورځو كي بندګان په ډېره بخښنه نازول كيږي د هغوئ ګناهونه او جرمونه معافيږي او هغوئ د ثواب او درجو په سعادت سره نازول كيږي مګر صحيح خبره داده چي د حديث الفاظ د هغه پر ظاهري معنى محمول كړل سي ځكه چي نصوص د هغه پر ظاهريُ معنى محمول كول واجب دي تر څو چي داسي څرګنده دليل موجود نه وي چي د هغه څخه د هغه ظاهري مفهوم پر ځای يو بل مطلب اخيستل كيدای سي .

تر دې چي هغوئ په خپلو كي صلح وكړي: د دې څخه څرګنديږي چي په دواړو كي د هر يوه مغفرت د دوئ پر صلح باندي موقوف دی كه څه هم په دوئ دواړو كي دواړه د يو بل سره عداوت لري يا يو كس عداوت لري او بل د عداوت څخه پاک وي .

﴿۴۸۱۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْرَضُ أَعْمَالُ النَّاسِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په هره هفته كي دوه واره د

فِي كُلِّ جُمُعَةٍ مَرَّتَيْنِ يَوْمَ الِاثْنَيْنِ وَيَوْمَ الْخَمِيسِ فَيُغْفَرُ لِكُلِّ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ

بندګانو عملونه يعني د دوشنبې او پنجشنبې په ورځ الله تعالى ته وړاندي كيږي او دهر مؤمن بنده بخښنه كيږي.

إِلَّا عَبْدًا بَيْنَهُ وَبَيْنَ أَخِيهِ شَحْنَاءُ فَيُقَالُ اتْرُكُوا هٰذَيْنِ حَتَّى يَفِيئَا. رواه مسلم

خو هغه بنده نه بخښل كيږي چي د خپل يو مسلمان ورور سره عداوت لري د هغوئ په اړه ويل كيږي دوئ دواړو ته وخت وركړئ چي په خپل منځ كي صلح وكړي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۱۹۸۷، رقم: ۳۶ - ۲۵۶۵.

## مصلحت آميز درواغ

﴿۴۸۱۱﴾: وَعَنْ أُمِّ كُلْثُومٍ بِنْتَ عُقْبَةَ بْنِ أَبِي مُعَيْطٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ

د حضرت ام كلثوم بنت عقبه بن ابي معيط (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَيْسَ الْكَذَّابُ الَّذِي يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ وَيَقُولُ

دا واوريدل: هغه څوک درواغجن نه دئ چي په خپلو خبرو سره (د خلكو په منځ كي صلح وكړي) دواړو خواوو ته ښه خبره وكړي

خَيْرًا وَيَنْمِي خَيْرًا. متفق عليه. وزاد مسلم قالت وَلَمْ أَسْمَعْهُ تَعْنِي النَّبِيَّ

او ديوه كس څخه بل كس ته ښه خبر ورسوي. بخاري او مسلم، او د مسلم په روايت كي دا الفاظ زيات دي چي (ام كلثوم) وويل چي ما نه دي اوريدلي چي

صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُرَخِّصُ فِي شَيْءٍ مِمَّا يَقُولُ النَّاسُ كَذِبٌ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ

رسول الله ﷺ د درو ډولو درواغو څخه پرته د بل يو درواغو اجازه وركړې وه

الْحَرْبُ وَالْإِصْلَاحُ بَيْنَ النَّاسِ وَحَدِيثُ الرَّجُلِ امْرَأَتَهُ وَحَدِيثُ الْمَرْأَةِ زَوْجَهَا. وذكر حديث جابر ان الشيطان قد ايس في باب الوسوسة.

(۱) په جنګ کي (۲) د مسلمانانو په منځ کي د روغي راوستلو لپاره (۳) او د ښځي او خاوند يو تر بله په خپل منځ کي د ميني زياتولو لپاره ، او د حضرت جابر ﷛ دا حديث ان الشيطان قد ايس ، په باب الوسوسة کي ذکر دئ .

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۲۹۹، رقم: ۲۶۹۲، ومسلم ۴\۲۰۱۱، رقم: ۱۰۱- ۲۶۰۵.

**تشريح**: ښکه خبره رسول: يعني صلح کونکي سړي په دوو ډلو کي د هر يوه له خوا بلي ډلي ته هغه خبره رسوي چي په حقيقت کي هغه ډله نه وي ويلې او هغه خبره داسي وي چي په هغه کي د دواړو په مينځ کي د صلح او دوستي جذبات پيدا کوي د مثال په توګه د واړو ډلو ته ورسي او داسي ورته ووايي چي تاسو د هغه بلي ډلي سره ولي عداوت لرئ حال دا چي هغوئ ستاسو ډېر خير خواه دي او ستاسو په حق کي د ښه خبري څخه پرته بل څه نه وايي ، هغوئ سلام درته ويلی دی او ستاسو سره د دوستۍ د جذباتو اظهار کوي .

د جنګ په حالت کي د درواغو ويلو اجازه ده: ددې تعلق د داسي خبرو سره دی چي د هغه څخه د مسلمانانو د طاقت او قوت اظهار کيږي ، د خپل لښکر د خلکو حوصله لوړيږي او د هغوئ زړونه قوي کيږي که چيري د دښمن د لښکر فريب خوړل ممکن وي که څه هم هغه خبري د حقيقت بالکل خلاف وي د مثال په توګه داسي وويل سي چي زموږ د لښکر شمېر دومره زيات دی چي د هغه په مقابله کي د دښمن د لښکر هيڅ حيثيت نسته او زموږ د لښکر د مرستي لپاره نور زيات کومک را روان دی يا د خپل دښمن په مخکي داسي وويل سي ، خبردار سه چي ستا د ختمولو لپاره ددغه خوا څخه فلاني سړی را روان دی او هر کله چي هغه شا ته وګوري او د هغه فهم د مخ څخه واوړي نو د موقع په تر لاسه کولو سره حمله پر وکړل سي .

د ښځو او خاوند په خبرو کي د درواغو مطلب دادی چي د مثال په توګه خاوند ښځې ته يا ښځه خاوند ته د خپل دومره زياتي ميني اظهار وکړي چي د حقيقت خلاف وي او ددې څخه مقصد دا وي چي په خپلو کي مينه او محبت زيات سي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### درې ځايه درواغ ويل

﴿۴۸۱۲﴾: عَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ يَزِيدَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ الْكَذِبُ إِلَّا فِي ثَلَاثٍ كذب الرَّجُلُ امْرَأَتَهُ لِيُرْضِيَهَا وَالْكَذِبُ فِي الْحَرْبِ وَالْكَذِبُ لِيُصْلِحَ بَيْنَ النَّاسِ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت اسماء بنت يزيد (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يوازي په درو ختونو كي درواغ ويل جائز دي: يو د سړي درواغ ويل د خپلي ښځي د رضا كولو لپاره، دويم په جګړه كي درواغ ويل او دريم د خلكو په منځ كي د صلح كولو لپاره درواغ ويل. احمد او ترمذي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۶\۴۶۱، والترمذي ۴\۲۹۷، رقم: ۱۹۳۹.

**تشريح**: په دغه حديث كي يوازي د خاوند د درواغو ويلو اجازه ده، د ښځي د درواغ ويلو اجازه نسته حال دا چي په مخكني حديث كي د دواړو ذكر دی، ددې وجه يا خو داده چي راوي دلته د اختصار لپاره يوازي د خاوند په اړه ذكر وكړ او د ښځي ذكر يې حذف كړ يا خپله رسول الله ﷺ د اكثر او اغلب په اعتبار سره يوازي د خاوند ذكر فرمايلی وي ځكه چي په عامه توګه ښځي د خپل جهالت په ذريعه زياته بدګمانه وي ځكه د هغوئ د تسلي او خوشحاله كولو لپاره خاوند ته زيات ضرورت پېښيږي.

### تر درو ورځو زيات خفګان مه كوئ

﴿۴۸۱۳﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَكُونُ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ مُسْلِمًا فَوْقَ ثَلَاثَةٍ فَإِذَا لَقِيَهُ سَلَّمَ عَلَيْهِ ثَلَاثَ مِرَاتٍ كُلُّ ذٰلِكَ لَا يَرُدُّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِإِثْمِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هيڅ يو مسلمان لپاره دا روا نه ده چي هغه تر درو ورځو زيات د خپل مسلمان ورور څخه خفه سي او هغه پرېږدي، هر كله چي هغه مسلمان كوم چي دده څخه خفه دئ ورسره يو ځای سي نو هغه ته دي سلام وكړي كه

هغه جواب ورنه کړي نو دويم وار دي ورته سلام وکړي اوس هم که هغه جواب ورنه کړي نو په دريم وار دي ورته سلام وکړي او که په دا وار هم هغه جواب ورنه کړنو دده ګناه د هغه پر ذمه ده. ابوداؤد.

**تخريج:** سنن ابي داود ۵\ ۲۱۵، رقم: ۴۹۱۳.

**تشريح:** مطلب دادی که چيري هغه سلام کونکي د سلام جواب نه ورکوي نو د ترک ملاقات ګناه به د هغه پر سر وي نو هغه به يوازي په خپله ګناه کي اخته وي يا د سلام کونکي ګناه به هم پر هغه وي خلاصه دا چي سلام کونکی خو د ترک ملاقات د ګناه څخه ووتی مګر د سلام جواب نه ورکونکی ير غاړه باندي به وي بلکه د سلام جواب نه ورکولو په وجه د سلام کونکي ګناه به هم پر هغه نويږي.

﴿۴۸۱۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَحِلُّ لِمُسْلِمٍ أَنْ يَهْجُرَ أَخَاهُ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَنْ هَجَرَ فَوْقَ ثَلَاثٍ فَمَاتَ دَخَلَ النَّارَ.

رواه احمد وابوداؤد.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هيڅ يو مسلمان ته دا روا نه ده چي هغه د خپل مسلمان ورور څخه تر درو ورځو زيات ناراضه سي او د هغه سره ليده کاته ونه کړي، ځوک چي تر درو ورځو زيات ناراضه پاته سي او په دغه دوران کي مړ سي نو دوږخ ته به ځي. احمد او ابوداؤد

**تخريج:** مسند الامام احمد ۲\ ۳۹۲، وابوداود ۵\ ۲۱۵، رقم: ۴۹۱۴.

## د کال ناراضګي د قتل په ډول ده

﴿۴۸۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي خِرَاشٍ السُّلَمِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ هَجَرَ أَخَاهُ سَنَةً فَهُوَ كَسَفْكِ دَمِهِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو خراش سلمي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ځوک چي د خپل مسلمان ورور څخه تر يو کال پوري ناراض پاته سو او د هغه سره يې ليدنه ونه کړل نو هغه ګويا د هغه قتل وکړ. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۱۵، رقم: ۴۹۱۵.

## تر درو ورځو وروسته خوشحاله سئ

﴿۴۸۱۶﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَحِلُّ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د هيڅ يو مسلمان لپاره دا

لِمُؤْمِنٍ أَنْ يَهْجُرَ مُؤْمِنًا فَوْقَ ثَلَاثٍ فَإِنْ مَرَّتْ بِهِ ثَلَاثٌ فَلْيَلْقَهُ فَلْيُسَلِّمْ

روا نه ده چي هغه د يو مسلمان ورور څخه تر درو ورځو زيات ناراض وي او د هغه سره ملاقات ونه كړي، يعني د درو ورځو تېرېدو څخه وروسته هغه ته پكار ده چي هغه خپل مسلمان ورور ته ورسي او ورسره يو ځاى سي او هغه ته سلام وكړي

عَلَيْهِ فَإِنْ رَدَّ عَلَيْهِ السَّلَامَ فَقَدِ اشْتَرَكَا فِي الْأَجْرِ وَإِنْ لَمْ يَرُدَّ عَلَيْهِ فَقَدْ بَاءَ بِالْإِثْمِ، وَخَرَجَ الْمُسَلِّمُ مِنَ الْهِجْرَةِ. رواه ابوداؤد

كه هغه د سلام جواب ور كړي نو د صلح په ثواب كي به دواړه شريك وي او كه د سلام جواب ور نه كړي نو جواب نه وركونكى به ګناه كار وي او د سلام كونكى به د ملاقات ترک كولو د ګناه څخه خلاص وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۱۴، رقم: ۴۹۱۲.

## د صلح فضيلت

﴿۴۸۱۷﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تاسو ته هغه عمل

بِأَفْضَلَ مِنْ دَرَجَةِ الصِّيَامِ وَالصَّدَقَةِ وَالصَّلَاةِ قال قلنا قَالَ إِصْلَاحُ ذَاتِ الْبَيْنِ وَفَسَادُ ذَاتِ الْبَيْنِ هِيَ الْحَالِقَةُ. رواه الترمذي وابوداؤد وقال هذا حديث صحيح

ونه بنيم چي د هغه د ثواب درجه د روژې ، صدقې او لمانځه تر ثواب هم زياته ، موږ وويل: هو، اې دالله رسوله ! خامخا يې وښيه، رسول اللهﷺ وفرمايل : هغه د دوو مسلمانانو په منځ كي صلح كول دي ځوک چي د دو مسلمانانو په منځ كي فتنه او فساد پيدا كړي هغه په دين كي خلل پيدا كونكى دئ. ترمذي، او ابوداؤد ، ترمذي ويلي دي د احديث صحيح دي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۱۸، رقم: ۴۹۱۹، والترمذي ۴\۵۷۲، رقم: ۲۵۰۹.

**د لغاتو حل**: الحالقة: اى الماحية والمزيلة للمثوبات والخيرات، والمعنى يمنعه شؤم هذا الفعل عن تحصيل الطاعات والعبادات،

**تشريح**: په ظاهره داسي معلوميږي چي په (الصدقة ....الخ) كي د واو حرف د جمع لپاره دى ، په دغه صورت كي به مطلب داوي چي صلح كول تر دغه ټولو عبادتو افضل دى او دا هم كيداى سي چي حرف د واو د مفهوم په اعتبار د او په معنى كي وي په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي صلح كول د هغه عبادتو څخه افضل ده ، د حديث چي كوم مقصد دى يعني په خپلو كي د دښمني ليري كونكو په مينځ كي د صلح كولو ترغيب كول ددې سره سم اول قول زيات غوره دى.

ملا علي قاري رحمة الله عليه د ځينو حضراتو دا قول نقل كړى دى چي په حديث كي صلح كولو ته تر روژې، صدقې او لمانځه افضل ويل سوي دي نو دلته فرض روژه يا فرض صدقه يا فرض لمونځ مراد نه دى بلكه نفل مراد دي.

ددې څخه وروسته ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي: زما وينا داده چي هسي خو الله جل جلاله ښه پوهيږي چي حقيقي مراد څه دى مګر د دوو ډلو په مينځ كي د دښمنۍ نوعيت كه چيري دا وي چي د هغه په نيتجه كي د خلكو ويني ، مال او سباب ضائع كيږي نو قياس وايي چي داسي دښمني ختمول او د دوو ډلو په مينځ كي صلح كول د ذكر سوو فرضو عباداتو څخه هم غوره دى ځكه چي اول خو دغه عبادت داسي عمل دى كه يو وخت پاته سي نو د هغه قضاء راوړل كېداى سي حال دا چي د عداوت په نتيجه كي هلاكېدونكي ځانونه ، تباه كېدونكي مال او اسباب او د بې عزتۍ او ناموس مكافات ممكن نه دي ، دوهم دا چي ددغه عبادتو تعلق د حقوق الله سره دى او د مذكوره تباهۍ تعلق د حقوقو العباد سره دى او په دې كي شک نسته چي په ځيني اعتبار سره د پروردګار په نزد د حقوق الله څخه زيات د حقوق العباد ارزښت دى ، ددغه حقيقت په وجه دا ويل زيات صحيح كيداى سي چي دغه جنس عمل ته پر هغه عبادتو باندي جزوي فضيلت په هر حال حاصل دى او ددې قرينه داده چي ويل كيږي : البشر خير من الملك والرجل

من المراة، يعني انسان تر ملائكو غوره دی او سړی تر ښځي غوره دی.
ذات البين: هغه حال ته وايي چي په هغه كي خلک يو تر بله سره اخته وي لكه بغض، عداوت، جګړه او داسي نور، او د اصلاح معنی د هغه احوالو درست كول په دې اعتبار سره به د اصلاح ذات البين مطلب دا وي چي كله خلک په خپل منځ كي د خرابو حالاتو ښكار وي د مثال په توګه هغوئ د يو بل سره په بغض او عناد كي په اخته كېدو سره او په خپلو كي په جګړې اخته كېدو سره خپل ځان يې په فتنه او فساد كي اچولی وي نو دهغوئ بغض او عناد دې په مينه او محبت بدل كړل سي او هغوئ ته د فتنې او فساد څخه په را ايستلو سره صلح ته راوستل سي، ددې پر خلاف فساد ذات البين دی چي هغه په حالقه سره تعبير سوی دی، حالقه د حلق څخه دی چي معنی يې د وېښتانو د خريلو ده او حالقه خريونكي ته وايي، دلته ددغه لفظ څخه مراد بربادول او تباه كول دي، مطلب دا چي فساد ذات البين يعني د خلكو په منځ كي د افتراق او انتشار تخم كرل يو داسي عادت دی چي دين بربادوي او د ثواب تر لاسه كول بالكل ختموي، لكه څرنګه چي استره وېښتان له بېخه باسي، په هر حال ددغه ارشاد مقصد د خلكو په منځ كي صلح كول او د فتنې او فساد د ختمولو ترغيب وركول دي او خلک د افتراق او انتشار پيدا كولو څخه متنفر كول دي.

## د حسد او بغض بدوالی

﴿۴۸۱۸﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَبَّ إِلَيْكُمْ دَاءُ الْأُمَمِ قَبْلَكُمُ الْحَسَدُ وَالْبَغْضَاءُ هِيَ الْحَالِقَةُ لَا أَقُولُ تَحْلِقُ الشَّعَرَ وَلٰكِنْ تَحْلِقُ الدِّينَ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت زبير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مخكنيو امتونو ناروغيو په تاسو كي اثر كړی دی هغه ناروغي حسد او بغض دی چي بيخ ايستونكي دي، ددې څخه زما مراد د وريښتانو كښل نه دي بلكه ددين د بيخ كښل دي. احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۱ / ۱۶۷، رقم: ۲۵۱۰.

## حسد نيكي خوري

﴿۴۸۱۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ

وَالْحَسَدَ فَإِنَّ الْحَسَدَ يَأْكُلُ الْحَسَنَاتِ كَمَا تَأْكُلُ النَّارُ الْحَطَبَ . رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ځان د حسد څخه وژغورئ ځکه چي حسد نيکي خوري لکه څرنگه چي اور لرگي خوري. ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۲۰۸، رقم: ۴۹۰۳.

**تشريح**: د حديث ظاهري مطلب دادی چي څرنگه د اور او لرگي معامله چي اور لرگي سوځي او ختموي همدارنگه حسد هغه عادت دی چي انسان په خپل غېږ کي اخيستلو سره د هغه نېکی بربادوي.

معتزله دغه حديث د خپل مذهب دليل گرځوي چي د گناه کول عمل صالح باطل کوي او بدی نيکی ختموي، د دوئ د وينا مطلب دادی که يو مسلمان يو گناه وکړي نو د هغه ښه اعمال محض د هغه گناه په کولو سره بربادېږي او د بدی خاصه داده چي هغه مخکنی نيکی له منځه وړي مگر موږ اهل سنت والجماعت دا خبره غلطه گرځوو ، د دوئ وينا داده چي په بديو سره نيکی نه ختمېږي مگر د نيکی خاصه داده چي هغه بدی ختموي لکه چي فرمايل سوي دي : (ان الحسنات يذهبن السيئات) بيله شکه نيکی بدی رژوي، او کوم چي د دغه حديث څخه د معتزله د استدلال سوال دی نو د اهل سنت والجماعت له خوا ويل کيږي چي په دغه ارشاد کي دا فرمايل سوي دي چي حسد نيکی خوري نو ددې مطلب په اصل کي دادی چي حسد د نيکی حسن او جمال زائل کوي لکه څرنگه چي په حديث کي فرمايل سوي دي : (الحسد يفسد الايمان كما يفسد الصبر العسل) يعني حسد په ايمان کي فتور پيدا کوي لکه څرنگه چي ايلوا (يو تريخ بوټی) شات بې خونده کوي،

ځينو حضراتو دا جواب ورکړی دی چي د حسد د نيکی خوړلو څخه مراد دادی چي حسد د محسود د مال ضائع کولو، د هغه ژوند تباه کولو او د هغه عزت ته پر تاوان رسولو باندي اماده کوي ، که چيري حسد کونکی دغه شيان عملا نه پوره کوي نو هغه ددې خبري اراده خامخا لري ، که نور هيڅ نه وي نو د غيبت په ذريعه د هغه عزت ته يقينا تاوان رسوي نو د حسد سزا به دا وي چي د قيامت په ورځ به د حاسد نيکی محسود ته ورکړل سي او دا به د محسود د هغه حقوقو بدله وي چي حاسد پر خپل غاړه اخيستي دي، لکه څرنگه چي په يو حديث کي فرمايل سوي دي : زما په امت کي حقيقي مفلس هغه سړی دی چي د قيامت په ورځ به په خپله عمل نامه کي لمونځ، روژه، زکوة او دشپې دبيداری د ثواب په اخيستلو سره راسي مگر د هغه حالت به

دا وي چې هغه به په دنيا کې چا ته ښکنځل کړي وي ، پر چا به یې د زنا تهمت لګولی وي ، د چا مال به یې خوړلی وي ، د چا وينه به يې توی کړې وي څوک به يې وهلی وي نو دهغه ټولې نيکۍ به هغه خلکو ته ورکړل سي چې د ښکنځلو، بهتان او نورو په ذريعه يې کړې وي ، نو په ذکر سوي حديث کې د نيکيو د بربادېدو څخه دا مراد دی ، يعني د قيامت په ورځ د خپلو نيکيو څخه محروم کېدل دي ، دا نه دی چې هغه نيکۍ د عمل نامې څخه ختمول مراد دي، دا مراد به داسي هم صحيح نه وي که د چا نيکۍ همدا رنګه ختم کړل سي او د عمل نامه څخه يې محوه کړل سي نو بيا به هغه د قيامت په ورځ چې د کومو اعمالو سره راځي حال دا چې د دغه حديث څخه دا خبره ثابته ده چې کوم څوک په دنيا کې نيک عملونه کړي وي نو هغه به د قيامت په ورځ د هغه اعمالو سره د حشر په ميدان کې حاضرېږي .

يو جواب دا هم ورکول کېږي چې هر بنده د خپل توان او صلاحيت سره سم په خپلو نيکيو کې اضافه کوي او د هغه په عمل نامه کې د ثواب شمېر زياتېږي، څرګنده ده چې کله بنده د نيکيو پر ځای خطاوي کوي نو هغه په عمل نامه کې د نيکيو او ثواب د زياتوب څخه محروم کېږي، په دې اعتبار سره فرمايل سوي دي چې حسد د حاسد د نيکۍ څخه ليرې کولو سره ګويا د هغه نيکيو څخه محروم کوي چې هغه ته به د دغه خراب عادت څخه د پرهيز په صورت کې تر لاسه کېږي .

## فساد مه پیدا کوئ

﴿۴۸۲۰﴾: وَعَنْهُ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِيَّاكُمْ وَسُوءَ ذَاتِ الْبَيْنِ فَإِنَّهَا الْحَالِقَةُ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : خپل ځان د دوو مسلمانانو په منځ کې د فتنې او فساد پيدا کولو څخه وژغورئ ځکه چې دا کار دين تباه کوي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۷۲، رقم: ۲۵۰۸.

## مسلمان ته تاوان مه ورسوئ

﴿۴۸۲۱﴾: وَعَنْ أَبِي صِرْمَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ ضَارَّ ضَارَّ اللّٰهُ بِهِ وَمَنْ شَاقَّ شَاقَّ اللّٰهُ عَلَيْهِ. رواه ابن ماجة والترمذي وقال هذا

حديث غريب.

د حضرت ابو صرمه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي يو مسلمان ته تاوان ورسوي الله تعالى به هغه ته خامخا تاوان ورسوي، او څوک چي يو مسلمان ورور په تكليف كي اخته كړي نو الله تعالى به هغه په تكليف كي اخته كړي. ابن ماجه او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۳، رقم: ۱۹۴۰، وابن ماجه ۲\۷۸۵، رقم: ۲۳۴۲.

**تشريح**: د شاق لفظ معنى دا هم بيان سوې ده چي كوم څوک د يو مسلمان سره عداوت او مخالفت كوي نو الله جل جلاله به د هغه سره عداوت او مخالفت كوي يعني هغه به په عذاب كي اخته كړي.

**مسلمان ته تاوان رسونكى**

﴿۴۸۲۲﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَلْعُونٌ مَنْ ضَارَّ مُؤْمِنًا أَوْ مَكَرَ بِهِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوک لعنتي دی چي يو مسلمان ورور ته تاوان ورسوي يا د يو چا سره چم وكړي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۲۹۳، رقم: ۱۹۴۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي كوم څوک يو مسلمان ته په ظاهري توګه سره تاوان ورسوي او كه په پټه تاوان ورته ورسوي نو د الله جل جلاله د رحمت څخه ليري ګرځول كيږي.

**د مسلمان عيب مه لټوئ**

﴿۴۸۲۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ صَعِدَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمِنْبَرَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر منبر سربيره په لوړ آواز سره

فَنَادَى بِصَوْتٍ رَفِيعٍ فَقَالَ يَا مَعْشَرَ مَنْ أَسْلَمَ بِلِسَانِهِ وَلَمْ يُفْضِ الْإِيمَانُ

وفرمايل: اې مسلمانانو! چي په ژبه سره مو ايمان راوړی دی او په زړه كي د ايمان اثر نه لرئ

إِلَى قَلْبِهِ لَا تُؤْذُوا الْمُسْلِمِينَ وَلَا تُعَيِّرُوهُمْ وَلَا تَتَّبِعُوا عَوْرَاتِهِمْ فَإِنَّهُ مَنْ

تاسو مسلمانانو ته تکلیف مه ورکوئ (هغوئ ته پیغور مه ورکوئ)، دهغوئ عیبونه مه لټوئ

يَتَبَّعَ عَوْرَةَ أَخِيهِ الْمُسْلِمِ تَتَبَّعَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ وَمَنْ يَتَبَّعَ اللَّهُ عَوْرَتَهُ يَفْضَحْهُ وَلَوْ فِي جَوْفِ رَحْلِهِ. رواه الترمذي.

ځکه چي څوک د یو مسلمان عیب لټوي الله تعالی د هغه عیب لټوي او د کوم سړي عیب چي الله تعالی ولټوي د هغه رسوایي څرګندوه ده الله تعالی به هغه رسوا کړي که څه هم چي هغه په خپل کور کي پټ ناست وي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۳۱، رقم: ۲۰۳۲.

**تشریح**: چي په ژبه یې اسلام راوړی وي: په دغه خطاب کي مؤمنان او منافقان دواړه شامل دي او تر دې مخکي یې دا وفرمایل چي د هغوئ زړونو ته ایمان نه دی رسیدلی یعني د هغوئ زړونه د اصل ایمان یا د ایمان د کمال څخه منور نه دي نو ددې په ذریعه په خطاب کي فاسق هم شامل سوی دی، دا خبره ځکه صحیح معلومېږي چي په دغه ارشاد کي مخکي دا فرمایل سوي دي چي کوم څوک دخپل مسلمان ورور عیب لټوي نو ددې څخه دا څرګندېږي چي د رسول الله ﷺ خطاب ټولو مسلمانانو ته وو، که هغه کامل مسلمان وي یا منافق او فاسق وي، که چیري خطاب یوازي منافقانو ته وای نو د مسلمان او منافق په منځ کي ورورولي نسته ځکه په دغه ارشاد کي به د خپل مسلمان ورور لفظ نه استعمالیدای، د طیبي رحمه الله دغه قول اختیارول چي ددغه ارشاد مخاطب یوازي منافقین دي او یوازي پر هغوئ ددغه حدیث اطلاق کېږي دا د ظاهري مفهوم خلاف دی.

پېغور مه ورکوه: مطلب دادی چي یو مسلمان ته د هغه پر ګناه باندي پېغور او خبرداری مه ورکوئ کوم چي د هغه څخه مخکي سوی وي، که څه هم د هغه ګناه څخه توبه کول تاسو ته معلوم وي یا معلوم نه وي، مګر که چیري یو سړی د ګناه کولو په حالت کي وي یا هغه ګناه کړی وي او د هغه څخه د توبې کولو مخکي په علم کي راغلی وي نو په دغه صورت کي هغه ته پر ګناه باندي پېغور او خبرداری ورکول پر هغه چا واجب دی کوم چي پر هغه باندي قادر وي او که هغه ګناه د حد او تعزیر وړ وي نو پر هغه باندي حد او تعیز جاري کول واجب دي، ددغه صورت تعلق د پېغور ورکولو سره نه دی بلکه ددې شمېر به د امر المعروف او نهي عن المنکر څخه وي.

مه د هغه عیب لټوئ: یعني د یو مسلمان کوم عیبونه چي تاسو ته معلوم نه وي د هغه په

لټه کي مه کېږئ او د هغه کوم عیبونه چي ستا په علم کي راغلي دي هغه د نورو په مخکي مه ظاهروه، د دې څخه ثابته سوه چي د یو مسلمان د عیبونو پلټنه کول یا د هغه عیبونه چي په خپل علم کي وي هغه دنورو په مخکي ظاهرولو څخه پرهیز کول واجب دی او کوم څوک چي داسي وکړي یعني د یو مسلمان عیب ښکاره کړي یا د یو مسلمان عیب دنورو په مخکي بیان کړي نو د هغه څخه خپل ځان لیري کول او نور خلک هم د هغه څخه لیري کول واجب دي.

الله ﷻ به د هغه عیب ولټوي: ددغه جملې مقصد ددې خبري خبرداری ورکول دی چي کوم څوک په دنیا کي د یو مسلمان عیب بیانوي یا د یو مسلمان عیبونه دنورو په مخکي په بیانولو سره هغه رسوا کوي نو په آخرت کي د هغه سره همداسي معامله کیږي، په دې توګه چي الله ﷻ به هلته د هغه عیبونه د معافولو پر ځای د هغه یوه یوه بدی ښکاره کړي او د هغه ټول عیبونه به د مخلوق په وړاندي ښکاره کړي، لکه څرنګه چي هغه په دنیا کي یو مسلمان وړور رسوا کړی وو همدارنګه په آخرت کي به هغه خپله رسوا سي، ښکاره ده چي د آخرت رسوایي د دنیا تر رسوایي ډېره زیاته ده، عطا لیکلي دي چي د یو چا د عیبو پلټنه کول په خپله تر ټولو لوی عیب دی.

امام غزالي رحمة الله علیه لیکلي دي: عیب بیانول هغه عادت دی چي د بد ګمانۍ په نتیجه کي پیدا کیږي، کوم څوک چي د یو مسلمان په اړه بدګماني کوي نو هغه ځان په واک کي نسي کولای د هغه خواهش وي چي هغه په عیبو پسي ولګیږي او کله چي د هغه په علم کي یو عیب راسي نو بیا د هغه پرده لوڅوي، نو پکا ردي چي دغه خصلت یعني بدګماني کول ددې څخه خپل ځان وساتي چي د یومسلمان عیب ویل او پرده لوڅول پر خپل غاړه نه واخلي، حقیقت دادی چي شریعت د یو مسلمان کردار د هغه ټولنیز حیثیت، د هغه شخصي وقار او د هغه ژوند په ټولنه کي د ذلت او رسوایي څخه د ساتني ډېر زور ورکړی دی، همدا وجه ده چي ددې خبري په تاکید سره حکم ورکړل سوی دی که چیري تاسو ته د یو مسلمان عیب معلوم سي نو هغه پټ کړئ او د خلکو په مخکي يې مه بیانوئ، او هیچا ته دا اجازه نسته چي د یو مسلمان ذاتي حالاتو ته توجه وکړي او د هغه د کمزورۍ په لټه کي سي،

ددې ارزښت ددې خبري څخه ظاهریږي چي د شریعت د یو مسلمان د عیبو پرده کولو حکم ورکړی دی د هغه حد دادی که چیري د یو چا په همسایه کي داسي ځای وي چي هلته شراب څښنل کیږي او سازونه پکښي وهل کیږي نو هغه باید په خپله د خپل سرای دروازه بنده کړي چي د هغه نظر په بل سرای کي پر غیر شرعي کارو باندي ونه لګیږي او د هغه کور د خلکو

بدکاري د هغه په علم کي راننسي او د هغه سرې د سرای او د مذکوره سرای په منځ کي چي کوم دیوال حائل وي هغه ته په غوږ نیولو سره د هغه اواز اورېدو هڅه کول نه دي پکار چي په هغه سرای کي سروز وي او نه دا جائز دي چي د هغه خرابۍ د لېدو لپاره هغه کور ته ورننوځي، مګر که چیري د هغه سرای اوسیدونکی خپل بد کارونه خپله ظاهروي لکه په لوړ اواز سره سروز وايي یا شرابي خلک د شرابیانو په ډول شور کوي او د هغوئ اواز د هغوئ د شراب څښلو په شکل کي دباندي راوځي نو دا بېله خبره ده، که چیري هغه سړی د هغوئ د پلټني د مقصد څخه پرته همدارنګه د هغه کور ته ورسي او هغه خلک په شراب څښلو او سروز اورېدو سره ووینې او هغه خلک د سروز سامان او د شرابو لوښي پټ کړي نو د هغه سړي لپاره دا جائز نه ده چي د هغوئ د لمني په آخوا کولو سره د هغه شیانو دلېدو هڅه وکړي، همدارنګه د شرابو د څښلو لپاره د هغوئ خوله وغیره بویول هم جائز نه دي او نه دا جائز دي چي د خپلو همسایګانو څخه پوښتنه وکړي چي د هغه په سرای کي څه کیږي.

د حدیث په دغه الفاظو کي (ولم یفض الایمان الی قلبه) یعني د هغوئ زړو ته ایمان نه دی رسیدلی، په دغه جمله کي دې ته اشاره ده چي تر څو پوري د ایمان نور زړه روښانه کړی نه وي نو تر هغه وخته پوري د الله ﷻ معرفت نه تر لاسه کیږي او نه د هغه حقوق ادا کیږي او دا چي د زړه ټول روحاني ناروغیو علاج د الله ﷻ معرفت او د هغه د حقوقو پر ادا کولو باندي موقوف دی، کوم څوک چي د الله ﷻ معرفت تر لاسه کړي او د هغه حقوق ادا کوي نو هغه چا ته تکلیف نه رسوي او نه څوک په تاوان کي اخته کوي او نه چا ته پېغور ورکوي او نه د چا د حالاتو پلټنه کوي.

## په ناحقه د چا بې عزتي

﴿۴۸۲۴﴾: وَعَنْ سَعِيدِ بْنِ زَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ مِنْ أَرْبَى الرِّبَا الِاسْتِطَالَةَ فِي عِرْضِ الْمُسْلِمِ بِغَيْرِ حَقٍّ. رواه ابوداؤد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت سعید بن زید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تر ټولو لوی سود د مسلمان په ناحقه بې عزتي کول دي په ژبه سره. ابوداؤد او بیهقي په شعب الایمان کي

**تخریج**: سنن ابي داود ۵/۱۹۳، رقم: ۴۸۷۶، والبيهقي في شعب الايمان ۵/۲۹۷، رقم: ۶۷۱۰.

**د لغاتو حل**: الاستطالة: ای اطالة اللسان. (اوږد ژبی)

**تشريح**: مطلب دادی چي د يو شرعي حكمت څخه پرته او په ناروا توګه د يو مسلمان په اړه د خپلي ژبي څخه خراب الفاظ ايستل او همدارنګه د هغه عزت تر پښنو لاندي كول يو داسي عادت دی چي د حرام كېدو او ګناه لازمېدو په اعتبار په نسبت د نورو سودو سخت سود دی، څرګنده دي وي چي په لغت كي د ربوا معنی د زياتېدو ده او په اصطلاح كي د ربوا مفهوم دادی چي د رانيولو او پلورلو او په پور كي واجب حق او اصل روپو څخه زيات اخيستل، نو د يو مسلمان په اړه داسي رويه اختيارول يا داسي الفاظ د خپلي خولې څخه ايستل چي د هغه مسلمان په اړه هغه ته هيڅ حق ونه رسيږي او نه د هغه تعلق د يو داسي معاملې سره وي چي په هغه كي داسي رويه اختيار سي يا دداسي الفاظو استعمالول په شرعي توګه اجازه وي يعني د خپل حق څخه زيات او په ظلم سره اخيستل وي په دې اعتبار سره د چا د بې عزتۍ لپاره بد كلامي ته په سود سره تشبيه وركړل سوې ده او بيا دې ته اربی يعني تر ټولو لوی سود ويل سوي دي ځكه چي د يو مسلمان په نزد د هغه عزت او د هغه مال ته زيات حيثيت او قيمت وي او د مال او سامان په نسبت د عزت تاوان زيات تكليف وركونكی او سخت وي.

د حديث شارحينو ليكلي دي چي د ناحق قيد ځكه لګول سوی دی چي په ځينو صورتو كي داسي رويه اختيارول او داسي خبره كول چي په هغه سره عزت مجروح كيږي، مباح ګرځول كيږي د مثال په توګه د يو سړي پر يو چا باندي حق (لكه پور او يا بل څه وي) او هغه يې حق نه ادا كوي نو صاحب حق ته اجازه ده چي هغه سړي ته د ظالم په ډول سخت الفاظ ووايي يا هغه بدنامه او بې عزته كړي، يا يو څوک د چا په حق كي شاهدي وركوي نو پر هغه جرح كول او د هغه شاهد عيب بيانول صحيح دي، د داسي راويانو جرح كول هم دي يعني د محدثينو د راويانو عيبونه ظاهرول هم صحيح دي ځكه چي ددغه مقصد د حديث د صحت خوندي ساتل او د دين ساتنه كول دي همدارنګه خلک د تاوان او فساد څخه د ساتني لپاره د نكاح د پيغام وركونكي صحيح احوال ظاهرول او د بدعتي او فاسق بدي او بې عزتي كول هم صحيح دي.

﴿۴۸۲۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا عرَجَ بِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (په معراج كي) الله تعالى زه

رَبِّي مَرَرْتُ بِقَوْمٍ لَهُمْ أَظْفَارٌ مِنْ نُحَاسٍ يَخْمُشُونَ وُجُوهَهُمْ وَصُدُورَهُمْ

پورته بوتلم هلته ما داسي خلک وليدل چي د هغوئ نو كونه د مسو وه او په هغه نوكونو سره يې

خپل مخونه او سينې كرووليې (ويني كولې)،

فَقُلْتُ مَنْ هٰؤُلَاءِ يَا جِبْرِيلُ قَالَ هٰؤُلَاءِ الَّذِينَ يَأْكُلُونَ لُحُومَ النَّاسِ وَيَقَعُونَ فِي أَعْرَاضِهِمْ. رواه ابوداؤد.

د جبرائيل عليه السلام څخه ما پوښتنه وكړه دا كوم خلك دي؟ هغه راته وويل: دا هغه خلك دي چي د خلكو غوښي خوري (يعني غيبت كوي) او د هغوئ په عزت اخيستو پوري لګيدلي دي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\ ۱۹۴، رقم: ۴۸۷۸.

**تشريح**: د حضرت جبرائيل عليه السلام د وينا مطلب دا وو چي دا هغه خلك دي چي د خلكو غيبت كوي د هغوئ په حق كي ناوړه الفاظ د ژبي څخه باسي او همدارنګه د خلكو عزت تر پښو لاندي كوي ددغه خلكو خپل مخونه او سينې شكول دې ته اشاره ده چي دغه خلكو د خپلو وروڼو په بې عزتۍ كولو سره او په هغه خوشحاله كېدو سره د هغه وروڼو سينې او مخونه مجروح او مغموم كړل نو د دوئ سزا داده چي اوس خپله په خپلو لاسو سره خپل سينې او مخونه زخمي كوي.

﴿۴۸۲۶﴾: وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ أَكَلَ بِرَجُلٍ

د حضرت مستورد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: څوك چي د يو مسلمان

مُسْلِمٍ أَكْلَةً فَإِنَّ اللّٰهَ يُطْعِمُهُ مِثْلَهَا مِنْ جَهَنَّمَ وَمَنْ كُسِيَ ثَوْبًا بِرَجُلٍ

بدي او غيبت سره يوه ګوله وخوري (يعني په دغه ذريعه رزق تر لاسه كړي) الله تعالى به د هغه ګولې په ډول په هغه د دوږخ اور وخوري او څوك چي د يو مسلمان د اهانت او ذلت په بدله كي

مُسْلِمٍ فَإِنَّ اللّٰهَ يَكْسُوهُ مِثْلَهُ مِنْ جَهَنَّمَ وَمَنْ قَامَ بِرَجُلٍ مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ فَإِنَّ اللّٰهَ يَقُومُ له مَقَامَ سُمْعَةٍ وَرِيَاءٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه ابوداؤد.

جامه واغوندي الله تعالى به د دوږخ جامه ور واغوندي، او څوك چي څوك ودروي او يا خپله ودريږي او خلكو ته د ښوونې لپاره خپل ښه والى اوروي د قيامت په ورځ به الله تعالى د هغه خرابي او كمزوري ښودلو او اورولو لپاره ودريږي. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۵\۱۹۵، رقم: ۴۸۸۱.

**تشريح**: د أُكلة معنى د كولې ده، او په يوه نسخه کي دغه لفظ اَكلة (د الف په زور سره) منقول دى چي د هغه معنى په يو وار په ماړه نس خوړل دي، د يو مسلمان دبې عزتى. كولو سره يوه گوله يا يو وار د خوراک مطلب دادى چي د يو سړي د خوشحاله كولو لپاره د هغه په مخكي د يو مسلمان بدي بيانول او د هغه په عوض کي د خوراک او څښناک سامان پيدا كول، د مثال په توګه يو سړى زيد دى چي د يو مسلمان سره عداوت لري او د هغه مسلمان د بدى. په اورېدو سره ډېره خوشحاله کېږي نو يو بل سړى چي بكر دى د هغه د مزاج په پېژندو سره هغه ته ورځي او د هغه د خوشحاله كولو لپاره د هغه په مخكي د هغه مسلمان بد وايي يا د هغه عيبونه بيانوي او زيد د هغه په دغه حركت سره خوشحاله کېږي او هغه ته روپى. يا خوراک و څښناک وركوي نو د داسي سړي په اړه فرمايل سوي دي چي كوم څوک د يو مسلمان بې عزتي د خپل ګټي او روزى. ذريعه وګرځوي نو په آخرت کي به هغه ته د هغه روزى. او ګټي په مثل د دوږخ اور خوړل وي.

لفظ د كسى په معروفه صيغه دى او په ژباړه کي ددې اعتبار سوى دى مګر په يوه نسخه کي دغه لفظ د مفعول په صيغه دى په دغه صورت کي به معنى داسي وي چي كوم چا ته د يو مسلمان د تحقير او سپكاوى په بدله کي جامه ور واغوستل سي، دغه معنى د مخكني عبارت سره زياته مطابق ده، ځينو حضراتو ويلي دي چي دغه لفظ د معرفه صيغې په كېدو سره د مخكني عبارت معنى به داسي وي چي كوم څوک د يو مسلمان د تحقير او سپكاوي كولو په بدله کي ځان ته جامې واغوندي.

ومن قام برجل مقام سمعة ورياء: د برجل په لفظ کي يوازي باء د تعديه لپاره ده او د رجل څخه مراد خپله هغه سړى كيداى سي او د هغه څخه پرته بل څوک هم، مطلب دادى كه چيري يو سړى د خپل ځان د ښوونې لپاره خپل لويي بيان كړي او په خپل تعريف او توصيف کي رطب اللسان وي يا بل څوک په دې ماموره كړي چي هغه د خلكو متاثره كولو لپاره د هغه تعريف او توصيف كوي نو الله ﷻ به د قيامت په ورځ د هغه د بدى. په څرګندولو سره د خلكو په منځ کي د هغه د رسوايي سامان پيدا كړي.

ځينو حضراتو ليكلي دي چي په برجل کي د باء حرف د تعديه لپاره هم كيداى سي او د سببيت لپاره هم كيداى سي، كه چيري د تعديه لپاره وي نو دا مطلب به وي چي كوم څوک د ښوونې او رياء په توګه د هغه د پرهيزګارى. او ديندارى. ډول وهي او د هغه زهد، عبادت او د هغه بزرګى. ته د دراوغو شهرت وركوي او په دې سره د هغه مقصد دا وي چي خلک د هغه

معتقد سي يا د هغه په حلقه کي په ګډون کولو سره د خپل ځان او زړه په ذريعه د هغه خدمت وکړي، او د هغه په پناه کي د خپل ځان او مال ګټه وي لکه څرنګه چي د ځينو بزرګانو طريقه ده چي د هغوئ د شهرت په پناه کي د ځان لپاره ګټه تر لاسه کوي، نو د داسي سړي په اړه فرمايل سوي دي چي الله ﷻ به د قيامت په ورځ هغه سړی د رسوايي پر ځای ودروي او ملائکو ته به حکم وکړي چي د دغه سړي په اړه اعلان وکړئ چي دی درواغجن دی ، ده محض د خپلي ګټي او ذاتي غرض لپاره يو سړي ته ناروا شهرت ورکړی وو ، دديِ څخه وروسته به هغه په عذاب کي اخته کړل سي کوم چي د درواغجنو لپاره به وي.

او که چيري باء د سببيت لپاره وي نو مطلب به دا وي که چيري يو څوک د يو چا توجه تر لاسه کولو لپاره په خپله خپل ځان د سمعه او رياء پر مقام ودروي يعني خپل ځان ډېر زاهد ، متقي او صالح ظاهر کړي چي يو شتمن سړی د هغه معتقد سي او د هغه په ذريعه عزت او مال تر لاسه کړي نو دداسي سړي په اړه فرمايل سوي دي چي د قيامت په ورځ به الله ﷻ هغه په داسي ځای کي ودروي چيري چي به خلک د هغه رسوايي ويني يعني ملائکو ته به حکم ورکړل سي چي دا اعلان وکړئ چي دغه سړی ډېر رياکار وو ، د خلکو ځان ته مائل کولو او د مال تر لاسه کولو لپاره يې ځان متقي او زاهد څرګندوی ، بيا به په هغه عذاب کي اخته کړل سي کوم چي د رياکارو لپاره دی.

## پر الله ﷻ ښه ګمان کوئ

﴿۴۸۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُسْنُ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ الْعِبَادَةِ. رواه احمد وابوداؤد.

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : پر الله تعالى ښه ګمان ساتل د غوره عبادت څخه دی . احمد او ابوداؤد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۴۰۷، وابوداود ۵\۲۶۶، رقم: ۴۹۹۳.

**تشريح**: مطلب دادی چي کومو اعمالو ته عبادات حسنه ويل کيږي په هغو کي يو غوره شی او غوره عبادت دا هم دی چي د الله ﷻ څخه نېک ګمان وساتل سي، نو ضروري ده چي عبادات ترک کړل سي څرګنده دي وي چي جاهل عام خلک دا ګمان کوي چي د الله ﷻ سره د حسن ظن مطلب دادی که چيري عبادتونه پرېښودل کيږي نو هغه دي پرېښودل سي مګر د الله ﷻ په ذات

باور کول پکار دي چي هغه کريم او غفور الرحيم دی چي تارک عبادت هم يقينا بخښي، دغه ګمان ډېر د ګمراهۍ سبب دی او د شيطان په جال کي د لوېدو نتيجه ده، علماوو ليکلي دي چي يو سړی دي عبادت کول پرېږدي او د معبود سره دي د حسن ظن دعوه کوي نو يقينا مغرور او مردود دی.

دا هم کېدای سي چي په حديث کي د نېک ګمان تعلق د الله ﷻ پر ځای د مسلمانانو په اړه د خير د عقيدې درلودل او منجمله د عبادات حسنه څخه وي، يا دا چي د مسلمانانو په اړه نېک ګمان کول يو داسي صفت دی چي په عباداتو کي حسن او کمال پيدا کوي او د ثواب درجه زياتوي، خلاصه دا چي کوم څوک عبادت کونکی او نېک وي نو هغه د نورو په اړه تل نېک ګمان لري او بدګمان کونکی د بدکاره سړي څخه پرته بل څوک نسي کېدای.

بد ګمان باشد همېشه زشت کار نامه خود خواند اندر حق يار

## د يوې زوجه مطهره څخه ناراضه کېدل

﴿۴۸۲۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهَا قَالَتْ اعْتَلَّ بَعِيرٌ لِصَفِيَّةَ بِنْتِ حُيَيٍّ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د بي بي صفيې اوښ ناروغ سو او د بي بي زينب

وَعِنْدَ زَيْنَبَ فَضْلُ ظَهْرٍ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِزَيْنَبَ

سره د ضرورت څخه زيات ه سپرلۍ وه، رسول الله ﷺ بي بي زينب ته وفرمايل چي بي بي صفيې

أَعْطِيهَا بَعِيرًا فَقَالَتْ أَنَا أُعْطِي تِلْكَ الْيَهُودِيَّةَ فَغَضِبَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

ته څپل اوښ ورکړه، بي بي زينب وويل ايا دې يهودۍ ته څپل اوښ ورکړم، رسول الله ﷺ پر

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَهَجَرَهَا ذَا الْحِجَّةِ وَالْمُحَرَّمَ وَبَعْضَ صَفَرٍ .رواه ابوداؤد وذكر حديث معاذ بن انس من حمى مؤمنا في باب الشفقة والرحمة.

دې خبره ناراض سو او د ذي الحجة، محرم، او د صفرې د مياشتي څو ورځي رسول الله ﷺ د هغې څخه بېلوالی غوره کړ. ابوداؤد او د معاذ بن انس حديث من حمى مؤمنا د شفقت او رحمت په باب کي بيان سوی دی.

**تخريج**: سنن ابي داود ۸۱۴/۴-۹، رقم: ۴۶۰۲.

**تشریح**: د بي بي صفيې ﷺ د نسب لړۍ پورته د حضرت هارون علیه السلام سره یو ځای کېدل ځکه نو هغې ته د یو پیغمبر حضرت هارون علیه السلام په اولاد کي د کېدو نسبي شرف هم تر لاسه وو، د بي بي صفيې ﷺ اول واده د یو یهودي ابوالحقیق سره سوی وو، د خیبر په جنګ کي ابوالحقیق ووژل سو او بي بي صفیه ﷺ په بندیانو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي راوستل سول، رسول الله ﷺ هغه ازاده کړه او د هغې سره یې نکاح وکړه، د رسول الله ﷺ ځینو بیبیانو هغه نه خوښول او خپله بي بي عائشه ﷺ هم د هغوي څخه وه، مګر رسول الله ﷺ د نورو بیبیانو په ډول د هغې سره هم برابر تعلق وو او د هغې حمایت او رعایت به یې کوی، یوه ورځ بي بي عائشې ﷺ په یو خبره باندي بي بي صفيې ﷺ ته یهودیه او بد و رد وویل، هغې رسول الله ﷺ ته شکایت وکړ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: ته عائشې ته ووایه چي ته د حضرت ابوبکر ﷺ لور یې او زه د پیغمبر د اولاد څخه یم. بي بي زینب ﷺ هم د رسول الله ﷺ زوجه مطهره وه، مخکي د هغې نوم بره وو او اول واده یې د عبدالله ابن زمعه سره سوی وو، کله چي د رسول الله ﷺ په نکاح کي راغلل نو رسول الله ﷺ د زینب نوم پر کېښښود.

ددغه حدیث څخه یوه خبره دا معلومه سوه چي یو چا ته د مخکني ژوند پېغور ورکول او د هغه سپکاوی کول ډېر نامناسبه خبره ده، دوهمه خبره دا چي د رسول الله ﷺ د بي بي زینب په بد بیني د هغې څخه سخت ناراضه کېدل او تر زیات وخت پوري د هغې سره تعلق ترک کول ددې دلیل دی چي د یو شرعي مصلحت سره سم د یو مسلمان یا مسلماني سره تر درو ورځو زیات هم ترک ملاقات کېدای سي، د مثال په توګه یو سړی یو بد کار وکړي نو دهغه د تادیب او تنبیه لپاره د هغه سره تر درو ورځو زیات تعلق پرېښودل جائز دي لکه څرنګه چي مخکي هم بیان سوی دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### په قسم هر وخت اعتبار کوی

﴿۴۸۲۹﴾: عَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَأَى عِيْسَى ابْنُ مَرْيَمَ رَجُلًا يَسْرِقُ فَقَالَ لَهُ عِيْسَى سَرَقْتَ قَالَ كَلَّا وَالَّذِي لَا إِلٰهَ إِلَّا هُوَ فَقَالَ عِيْسَى آمَنْتُ بِاللّٰهِ وَكَذَّبْتُ نَفْسِي. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د بي بي مريمي زوى حضرت عيسى عليه السلام يو سړى پر غلا كولو وليدى ، حضرت عيسى عليه السلام ورته وويل تا غلا وكړل ، هغه ورته وويل هيڅكله نه ، قسم په هغه ذات چي د هغه پرته بل هيڅوک د عبادت وړ نه سته ، حضرت عيسى عليه السلام وويل ما پر خداى جل جلاله ايمان راوړ او خپل ځان مي دروغجن وګرځوئ . مسلم .

**تخريج:** صحيح مسلم: ۴\۱۸۳۸، رقم: ۱۴۹، ۲۳۶۸.

**تشريح:** ما په الله جل جلاله ايمان راوړ: يعني تا چي په خپل قسم كي د الله جل جلاله وحدانيت ذكر كړ دى زه پر هغه د خپل ايمان او اعتقاد اقرار كوم ، يا دغه جمله د مفهوم په اعتبار داسي ده چي تا د الله جل جلاله كوم قسم كړى دى زه په هغه باور كوم او خپل ځان په دې خبره كي دروغجن ګرځوم چي تا غلا كړې ده كه څه هم زما دغه ويل په ظاهري حالت كي د غمازۍ په وجه وو ، دغه وضاحت ددغه احتمال سره سم دى چي كيداى سي چي هغه سړى يو شى د هغه د مالک څخه په پټه پورته كړى وي په دې توګه حضرت عيسى عليه السلام دا وګڼل چي هغه سړي غلا كړې وه مګر هغه اول خو د الله جل جلاله په قسم كولو سره د غلا څخه انكار وكړ ، دوهم دا چي پر هغه موقع يو داسي شرط تر لاسه نه سو چي د هغه د غلا د ثبوت لپاره او د غلا د سزا يعني حد جاري كولو لپاره په شرعي توګه ضروري وي ځكه حضرت عيسى عليه السلام د هغه سړي قسم ومنى او خپله خبره يې غلطه وګرځول.

شيخ عبدالحق رحمه الله دا مطلب ليكلى دى چي زه تا ستا په قسم كي رېښتونى ګڼم او د خپل هغه ګمان څخه رجوع كوم چي ما ستا په اړه قائم كړى وو او په ذكر سوې خبره كي خپل ځان دروغجن ګرځوم ، ددې څخه معلومه سوه كه چيري يو سړى پر يو خبره د الله قسم وكړي كه څه هم هغه خبره د حقيقت څخه خلاف معلوميږي مګر پكار دي چي خپل ګمان او خپل معلومات غلط وګرځوي او د الله جل جلاله د نامه د تعظيم لپاره د هغه د قسم اعتبار وكړل سي .

## حسد او مفلس

﴿۴۸۳۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَادَ الْفَقْرُ أَنْ يَكُوْنَ كُفْرًا وَكَادَ الْحَسَدُ أَنْ يَغْلِبَ الْقَدَرَ. رواه البيهقي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نژدې ده چي فقر (مفلسي) د كفر حد ته ورسيږي ، او نژدې ده چي حسد پر تقدير الهي غالب راسي . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٥\٢٦٧، رقم: ٦٦١٢.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي فقر، افلاس او غريبي داسي خراب شی دی چي ډېر واره انسان د هغه څخه په مجبوره کېدو سره د کفر حد ته رسيږي، کوم فقير او مفلس چي د صبر او استقامت په ضائع کولو سره په قلبي افلاس کي اخته سي نو هغه د الله ﷻ په ذات د اعتماد او باور لمن د لاسه ورکړي، د هغه نتيجه دا سي وي چي هغه ډېر د مايوسی په عالم کي د الله پر نظام باندي اعتراض کول پيل کړي، د تقدير الهي څخه په شکوه کولو سره د الله ﷻ پر فيصله او حکم باندي په هر حالت کي د راضي کېدو تقاضا شاته وغورځوي، يا د الله ﷻ په مخکي د لاس غزولو پر ځای د غير الله په مخکي د سوال لاس غزول پيل کړي او پرته د الله څخه بل څوک حاجت روا گڼل پيل کړي، يا کله چي هغه ويني چي اکثر کفار شتمن دي او د عيش ژوند تېروي او دهغوئ پر خلاف اکثر مسلمانان د افلاس او تنگدستی په ازمائش کي اخته دي نو هغه کفر ته د مائل کېدو څخه هم منع نه کوي او څرگنده ده چي دغه شيان انسان کفر ته رسوي

مگر حقيقت دادی چي فقر او افلاس په اصل کي د مسلمانانو لپاره د يو امتحان درجه لري، کوم خلک چي په دغه حقيقت پوهيږي او د مال او دولت او دنياوي ژوند په اعتبار د مفلس کېدو سربېره خپل زړه غني لري او پر تقدير الهي باندي صابر او شاکر کېدو سره په امتحان کي کامياب کيږي نو د هغه په حق کي هغه فقر او د ايمان د پرمختگ او د درجاتو ضامن جوړيږي نو کوم مسلمان چي په فقر او مفلسی کي اخته وي او ټول انساني تدابير، محنت او مشقت سربېره د تنگی د حالاتو څخه خلاصون نه تر لاسه کوي نو هغوئ ته پکار دي چي هغوئ خپل هغه حالت د الله ﷻ له خوا يو امتحان وگڼي او دا يقين وکړي چي دغه دنيا او ددنيا ټول تکليفونه او پرېشانی د مؤمن لپاره يو داسي وقفه حيات دی که په هغه کي صبر او استغناء او د الله ﷻ پر ذات باندي توکل په برخه سي نو کله نا کله په دنيا کي هم حالات بدلېدای سي او د آخرت فلاح او کاميابي خو يقينا په برخه کيږي او ددغه ځای ټول تکليفونه او پرېشانی د هغه ځای د بې پايه نعمتونو او لازواله راحتو بدليږي، رسول الله ﷺ فرمايلي دي: (الدنيا سجن المؤمن وجنة الكافر) دغه دنيا د مؤمن لپاره بنديخانه ده او د کافر لپاره جنت دی.

کوم مسلمانان چي ددغه بنديخانې تکليفونه او مصيبتونه په ورين تندي سره زغمي د هغوئ لپاره الله ﷻ په آخرت کي د بې پايه انعامو وعده کړې ده، په قرآن کريم کي الله ﷻ داسي فرمايلي دي:

لاَ يَغُرَّنَّكَ تَقَلُّبُ الَّذِينَ كَفَرُواْ فِي الْبِلاَدِ مَتَاعٌ قَلِيلٌ ثُمَّ مَأْوَاهُمْ جَهَنَّمُ وَبِئْسَ الْمِهَادُ لَكِنِ الَّذِينَ اتَّقَوْاْ رَبَّهُمْ لَهُمْ جَنَّاتٌ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا نُزُلاً مِّنْ عِندِ اللّهِ وَمَا عِندَ اللّهِ خَيْرٌ لِّلأَبْرَارِ .

ژباړه : اې مؤمنه! تا دي د كافرانو په ښارو كي ګرځېدل په مغالطه كي نه واچوي ځكه چي دا د څو ورځو ژوند دی بيا د هغوئ ځای دوږخ دی او هغه ډېر خراب ځای دی مګر كوم خلک چي په هغوئ كي د الله ﷻ څخه بيريږي د هغوئ لپاره باغونه دي چي لاندي يې ويالې بهيږي او هغوئ به په دغه باغو كي همېشه وي . دا به د الله ﷻ له خوا د هغوئ مېلمستيا وي او كوم شيان چي د الله ﷻ سره دي دا د نېكو بندګانو لپاره غوره دي .

نقل سوي دي چي ځينو صحابه كرامو به د كفارو او مشركينو مال او دولت او د هغوئ راحت ليدی نود هغوئ پر ژبه به دغه الفاظ راتلل چي دغه خلک خو دخدای ﷻ دښمنان دي د دوئ حال خو ډېر ښه دی مګر موږ د تكليف، سختی، مفلسی او لوږي وخت تېروو ، پر دې خبره باندي ذكر سوی آيت نازل سو او مسلمانانو ته وښودل سول چي د دنيا دغه آرام او راحت څو ورځي دی چي ژر فناء كېدونكی دی مګر تاسو ته د آخرت آرام او راحت تر لاسه كېدونكی دی چي هغه لازوال دی او هيڅكله نه فناء كيږي، نو تاسو خلک د فناء كېدونكي آرام او د څو ورځو راحت غوښتنه مه كوئ بلكه د هغه نعمتونو اميد كوئ چي د تل لپاره دي .

لكه څرنګه چي فقر او مفلسي په ځيني وختو كي د كفر حد ته رسيږي همدارنګه د مال او دولت زياتوب هم سړی ګمراه كوي، د شتمنی نشه انسان سركښه كوي او د حد څخه زيات راحت يې په ګناه او معصيت كي اخته كوي ځكه ويل كيږي چي شتمني او مفلسي دواړه په معتدله توګه كېدل د انسان ژوند د ګمراهی څخه ساتلای سي ، او فقر او مفلسي يې د مايوسی او كفر حد ته د رسېدو څخه منع كوي او د ضرورت په اندازه مال تر لاسه كېدل يې د شتمنتوب د نشې څخه خوندي كوي چي دهغه په وجه د سركښی او ګناه انديښنه نه پاته كيږي نو دخير الامور اوسطها اصول پر دغه دواړو باندي صادقيږي .

د حديث دوهمه برخه: ( او نژدې ده چي حسد پر تقدير الهي باندي غالب سي) مطلب دادی چي كه چيري يو داسي شی وي چي پر تقدير باندي غالب كيږئ او دهغه د بدل وركولو طاقت لري نو هغه به حسد وي او ځينو حضراتو دا مطلب بيان كړی دی چي حسد حاسد هغه ګمراه كونكي ګمان ته بيايي چي هغه تقدير الهي هم بدلولای سي .

## د عذر منل

﴿۴۸۳۱﴾: وَعَنْ جَابِرٍ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنِ اعْتَذَرَ إِلٰى أَخِيْهِ فَلَمْ يَعْذِرْهُ أَوْ لَمْ يَقْبل عُذْرَهُ كَانَ عَلَيْهِ مِثْلُ خَطِيْئَةِ صَاحِب مَكْسٍ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان وقال المكاس العشار.

د حضرت جابر ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي خپل مسلمان ورور ته (پر يو قصور) باندي عذر وکړي او هغه مسلمان ورور يې عذر نه ومني نو پر هغه به دده دومره ګناه وي څومره چي د عشر اخيستلو والا ګناه ده. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٦\٣٢١، رقم: ٨٣٣٨.

**د لغاتو حل**: مكس: اى صاحب عشر، والمراد اخذ مال الناس بالظلم (په ظلم د چا مال اخيستل.)

**تشريح**: د مکس معنی د محصول اخيستل دي، په دې اعتبار سره عُشر اخيستونکي ته مکاس ويل کيږي او په عامه توګه د صاحب مکس اطلاق پر هغه چا باندي کيږي چي د ظلم له موخي په ناحقه محصول تر لاسه کوي او د شريعت خلاف محصول اخيستل ډېره سخته ګناه ده، په يوه حديث کي فرمايل سوي دي چي صاحب مکس به جنت ته نه ځي، د عذر خواهي نه قبلونکی او د صاحب مکس په منځ کي د مشابهت وجه کيدای سي دا وي چي د مذکوره سړي په ډول صاحب مکس هم د محصول ورکونکي هيڅ عذر او دليل نه قبلوي که يو تجار څو واره ورته ووايي چي پر ما باندي محصول نه عائد کيږي يا زما سره د تجارت مال نسته بلکه دا امانت مال دی او دا چي زه پوروړی يم او محصول نه سم ادا کولای، مګر هغه د هيڅا هيڅ خبره نه مني او د هغه څخه په زور محصول اخلي.

د عذر نه قبلولو بدي او د هغه د ګناه په اړه نور حديثونه هم نقل سوي دي، طبراني په اوسط کي د بي بي عائشي ﷞ روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: (من اعتذر الى اخيه المسلم فلم يقبل عذره لم يرد على الحوض). ژباړه: که يو څوک خپل مسلمان ورور ته عذر وکړي او هغه يې عذر قبول نه کړي نو د هغه حوض کوثر ته راتلل نه په برخه کيږي.

طبراني ﷫ او نورو محدثينو د حضرت ابن عباس ﷠ څخه دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ايا زه تاسو ته وښيم چي په تاسو کي خراب سړی څوک دی؟ صحابه کرامو عرض وکړ چي هو، خامخا يې راوښيه، رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي خراب سړی

هغه څوک دی چي يوازي په يو پړا کي تم سي ، خپل غلام ووهي او محتاج سړی د خپل ورکړي څخه محروم کړي، بيا يې وفرمايل: ايا زه تاسو ته وښيم چي تر دغه سړي هم زيات خراب څوک دی؟ صحابه کرامو وويل: هو ، خامخا يې راوښيه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه څوک چي د قصور کونکي سړي عذر نه مني ، او خطا نه معافوي ، بيا يې وفرمايل: ايا زه تاسو ته وښيم چي تر دغه سړي هم زيات خراب څوک دی؟ صحابهٔ کرامو وويل، هو خامخا يې راوښيه، رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه څوک چي د هغه څخه د خير توقع نه وي او نه د هغه د فتنو څخه خلک خوندي وي.

حاکم رحمة الله عليه د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه دا روايت نقل کړی دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو د بل چا ښځو ته په بد نظر مه ګورئ نو ستاسو ښځي به د نورو خلکو د بد نظر څخه خوندي وي، ته د خپل پلار سره ښهٔ چلن کوه نو ستا زوی به ستا سره ښه چلن کوي او کوم څوک چي خپل مسلمان ورور ته يو عذر وکړي نو پکار دي چي د هغه عذر ومنل سي که څه هم د هغه عذر صحيح وي يا غلط وي، که چيري هغه د خپل مسلمان ورور عذر قبول نه کړي نو هغه دي په ياد ولري چي حوض کوثر ته بهٔ يې راتلل په برخه نسي (حاکم دغه روايت صحيح الاسناد ګرځوليدی)

===========

# بَابُ الْحَذَرِ وَالتَّأَنِّيْ فِي الْأُمُوْرِ

## (په کارونو کي د منعه او زنهٔ کولو بيان)

حَذَر: د حاء او ذال په زور او د راء په جزم سره، معنی يې د ساتني، پرهيز کولو او بېداره اوسيدو ده، او حَذِر: د حاء په زور او د ذال په زېر سره، بيدار او مستعد سړي ته وايي.

د تاني معنی ده په يو کار کي د تلوار کولو پر ځای توقف او زنهٔ کول او په ښه فکر او غور سره کول ، د ذکر سوي عنوان مطلب دادی چي انسان بايد د خلکو دشر او ماحول د فتنو څخه ځان وساتي ، د هغه آفاتو او فتنو تعلق که د نياوي تاوانو سره وي او که د ديني او اخروي تاوانو سره وي، همدارنګه پکار دي چي هغه په خپلو کارو او معاملاتو کي تل هوښيار او بيداره وي ، د تلوار څخه دي ځان وساتي ، حلم او وقار دي اختيار کړي ، په خپل هره اراده او عمل دي په ښه ډول فکر او غور وکړي او د هر کار انجام دي په نظر کي ولري.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### مؤمن دوه واره نه چيچل كيږي

﴿۴۸۳۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يُلْدَغُ الْمُؤْمِنُ مِنْ جُحْرٍ وَاحِدٍ مَرَّتَيْنِ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د يوه غار څخه مؤمن دوه واره نه چيچل كيږي (يعني مسلمان بايد هوښيار وي د يو وار تاوان رسيدو وروسته بايد دويم وار تاوان پورته نه كړي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\ ۵۲۹، رقم: ۶۱۳۳، ومسلم ۴\ ۲۲۹۵، رقم: ۶۳ – ۲۹۹۸.

**تشريح**: دلدغ معنى د چيچلو ده، جُحر: سوري ته ويل كيږي چي د مار، لړم او نورو شيانو د اوسيدو ځای وي.

د حديث مقصد دادی چي مؤمن هوښيار وي، د حق او انصاف غوښتونكی او د دين حامي او محافظ وي، د هغه شان دادی چي هغه عهد ماتونكي، سركښ او ددين دښمن ته معافي ونه كړي، د الله جل جلاله په لاره كي او د الله جل جلاله لپاره د خپل غضب او انتقام څخه منع نسي، په وار وار د حلم او بردباري رويه اختيار نه كړي او د هغه په دوكه كي رانسي، څرګنده دي وي چي په دنياوي معاملاتو كي فريب خوړل زيات ارزښت نه لري مګر ددين په معاملو كي هيڅكله فريب خوړل نه دي پكار.

علماؤ ليكلي دي چي رسول الله ﷺ په ذكر سوي ارشاد كي يو حكيمانه اصل ته اشاره كړې ده، حقيقت دادی چي هغه يو عظيم الشان تعليم دی چي د هغه بنياد د دين رعايت او حمايت او د دين د دښمنانو د شر او فساد بيخ ايستلو باندي دی.

د ذكر سوي ارشاد تعلق دا بيان سوی دی چي د رسالت په زمانه كي د عربو يو ډېر مشهور شاعر ابو غره وو، د هغه تعلق د كفارو د هغه طبقې سره وو چي د اسلام او مسلمانانو خلاف نفرت او عداوت كولو باندي مامور وو، هغه به د خپلو اشعارو په ذريعه د مسلمانانو بدي بيانول او د خپل قوم شرير خلك به يې مسلمانانو ته په تكليف رسولو باندي اماده كول، كله چي د بدر جګړه د حق او باطل په منځ كي لومړی جنګ وسو او الله جل جلاله خپل لږ بندګانو ته د دين د دښمنانو باندي فتح وركړه او د مكې ډېر كفار چي په هغو كي زعماء او سلاطين هم وه په

بندي جوړولو سره مدينې منورې ته راوستل سول نو په هغوئ كي بدبخته شاعر ابوغره هم وو، هغه د رسول الله ﷺ په خدمت كي پر خپلو بدو اعمالو باندي د ندامت اظهار وكړ او په عفوه غوښتني سره يې دا اقرار وكړ چي بيا به داسي بد عمل نه كوم، نو رسول الله ﷺ پر هغه بدبخته رحم وكړ او د عهد په وجه يې ايله كړ، مگر هغه ازلي بدبخته په ارامه نه كښېنست او خپل قوم ته په رسېدو سره يې خپل مخكنۍ رويه اختيار كړل، تر دې چي الله ﷻ هغه دوهم وار د احد په جنگ كي د بندي په حيثيت د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر كړ او هغه بيا هغه حربه استعمال كړل او د عفوي غوښتونكى سو، مگر رسول الله ﷺ هغه معاف نه كړ او قتل كړل سو، هغه وخت ځينو خلكو د هغه سفارش وكړ چي معاف يې كړئ مگر رسول الله ﷺ وفرمايل: مؤمن د يوه سوري څخه دوه واره چيچل كيداى نسي.

## دوې غوره خبري

﴿۴۸۳۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَشَجِّ عَبْدِ الْقَيْسِ إِنَّ فِيكَ لَخَصْلَتَيْنِ يُحِبُّهُمَا اللّٰهُ الْحِلْمُ وَالْأَنَاةُ. رواه مسلم

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د عبدالقيس قبيلې سردار ته وفرمايل: په تا كي دوې خبري دي چي الله تعالى هغه خوښوي: يو بردباري (ښه گزاره) او دويم د فكر څخه وروسته كار كول. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱\۴۸، رقم: ۲۵- ۱۷.

**تشريح**: عبدالقيس د يوې قبيلې نوم دى، كله چي ددغه قبيلې خلك د رسول الله ﷺ د زيارت او ليدني لپاره مدينې ته راغلل او د مسجد نبوي مخته را ورسېدل نو رسول الله ﷺ يې وليدى او د ډېره شوقه يې د اوښانو څخه را وځغستل او په منډه د رسول الله ﷺ په خدمت كي راورسېدل او د رسول الله ﷺ سره يې د ميني او شوق ملاقات په بې قرارۍ سره اظهار وكړ، رسول الله ﷺ د هغوئ د بې قرارۍ په لېدو سره سكوت وفرمايه او هغوئ ته يې هيڅ ونه ويل مگر دا خلك چي د كوم عظيم المرتبت شخصيت او د خپل سردار يعني شيخ زير په قيادت كي د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سوي وه او د هغه اصل نوم منذر وو د هغه كيفيت بالكل بېل وو هغه مخكي په خپل تم ځاى كي پاته سو هلته يې د خپلو ټولو ملگرو سامان جمع كړ او د ټولو شيانو په ترلو سره په اطمينان سره ولمبېدى، غوره جامې يې وا غوستلې او بيا په ډېر وقار سره

مسجد نبوي ته راغلی هلته يې دوه ركعته لمونځ ادا كړ، دعاء يې وكړه او ددې څخه وروسته د رسول الله ﷺ په خدمت كي حاضر سو، رسول الله ﷺ د هغه دغه وضع ډېره خوښه سول او هغه ته يې ذكر سوي الفاظ وفرمايل.

په يوه روايت كي دا هم نقل سوي دي چي كله رسول الله ﷺ د هغوئ په مخكي د هغه دوو ښېګڼو بيان وكړ نو هغه عرض وكړ اې دالله رسوله ! په ما كي دغه دوې ښېګڼي دي ما د تكلف له موخي اختيار كړي دي او زما خود ساخته دي، اې الله ! دغه دواړي ښېګڼي زما په فطرت كي پيدا كړې، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دغه دواړي ښېګڼي الله ﷻ ستا په مزاج او فطرت كي اينبي دي، (د دې په اورېدو سره) هغه وويل: د الله ﷻ شكر او احسان دی چي هغه زه په دغه دوو ښېګڼو سره نازولی يم چي الله ﷻ او د هغه رسول يې خوښوي، يعني كه چيري دغه دوې ښېګڼي زما خپل ساخته او په تكلف سره وای نو د هغه د زائل كېدو يا په دې كي د نقصان پيدا كېدو خدشه به وای مګر دا فطري دي او د الله ﷻ راكړي دي ځكه زه اميد لرم چي دغه دواړي ښېګڼي په ما كي د تل لپاره پاته سي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### په هر كار كي تلوار مه كوئ

﴿۴۸۳۴﴾: عَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ السَّاعِدِيِّ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْاَنَاةُ مِنَ اللّٰهِ وَالْعَجَلَةُ مِنَ الشَّيْطَانِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب وقد تكلم بعض اهل الحديث في عبدالمهيمن بن عباس الراوي من قبل حفظه.

د حضرت سهل بن سعد الساعدي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په كارونو كي كرار والی (يعني د فكر څخه وروسته يو كار كول) د الله تعالى د لوري دي او په كارونو كي تلوار كول د شيطان د لوري دي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۳۲۲، رقم: ۲۰۱۲.

**تشريح**: دغه حديث بيهقي په شعب الايمان كي مرفوع نقل كړی دی چي دهغه الفاظ دادي: (التاني من الله والعجلة من الشيطان).

او تلوار د شيطان عادت دی: مطلب دادی چي په دنياوي کارو کي غور او فکر نه کول د هغه پر انجام باندي د نظر کولو څخه پرته هغه پېل کول او د تلوار رويه اختيارول يو داسي عادت دی چي شيطان يې د وسوسو په ذريعه په انسان کي پيدا کوي چي د هغه څخه د هغه مقصد هغه د هغه کار خرابول او خپله هغه په پريشانيو کي اخته کول دي، ځينو حضراتو دا وضاحت کړی دی چي ددې څخه هغه امور مستثنی دي چي د هغه په خير او برکت کي شک او شبه نه وي يعني په نيکو کارو کي تلوار کول د شيطان عادت نه دی ځکه چي الله ﷻ فرمايلي دي: (يسارعون في الخيرات).

ملا علي قاري رحمه الله وايي: کوم چي د عبادت او طاعت تعلق دی نو هغه دادی چي يو خو عبادت او طاعت ته تلوار اختيارول دي او بل هغه عبادت او طاعت کولو په وخت کي تلوار کول دي، ښکاره ده چي ددغه دواړو په منځ کي فرق دی، اول الذکر يو مطلوب او مستحسن شی دی او ثاني الذکر يو بد خصلت دی، دا خبره د مثال په توګه داسي ده چي يو د لمانځه لپاره تلوار کول دي او يو لمونځ ژر کول دي، د لمانځه لپاره تلوار کول دادی چي کله د لمانځه وخت سي نو د هغه په ادا کولو کي زنډ نه کوي بلکه ژر ژر تياري کوي او لمونځ پيل کوي، دغه کار نه يوازي دا چي په تلوار کي شامل نه دی چي د هغه خرابي بيان سوې ده بلکه دا يو غوره فعل دی او په لمانځه کي تلوار کول دادی چي کله د لمانځه وخت پيل سي نو هغه د لمانځه څخه د ژر فارغه کېدو لپاره د هغه په ارکانو او افعالو کي تلوار کوي، داسي کول يعني يو نېک کار ژر ژر کول بد کار دی، د ملا علي قاري رحمه الله د ذکر سوي الفاظو خلاصه داده چي د شوق په جذبې سره يو کار ته ور مخکي کېدل او د هغه ژر تر ژره کول ښه کار دی مګر په تلوار کول بد کار دی.

**تجربه**

﴿۴۸۳۵﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا حَلِيمَ إِلَّا ذُو عَثْرَةٍ وَلَا حَكِيمَ إِلَّا ذُو تَجْرِبَةٍ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حليم (بردباره) بنده هغه دئ چي لغزش يې خوړلی وي او حکيم هغه دئ چي تجربه يې تر لاسه کړې وه. احمد او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳\۶۹، وسنن الترمذي ۴\۳۳۲، رقم: ۲۰۳۳،

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي حلم او بردباري او د لحاظ جوهر په هر سړي کي وي چي هغه دوکه خوړلې وي، او د خطاو سره مخ سوی وي ګناه او معصيت يې کړی وي او په خپلو معاملو کي خلل او تاوان زغملی وي او د هوښيار کېدو څخه وروسته د ندامت درونډ باريې پر اوږو اخيستی وي، څرګنده ده چي داسي سړی پوهيږي چي د چا د درد او تکليف او ګټي او تاوان څه ارزښت دی د چا عيبونه پټول د چا خطاوي معافول څومره ضروري دي ځکه چي هغه د نورو لپاره حليم او خيرخواه وي د خلکو د عيبو پرده کوي او که د چا څخه خطا وسي نو هغه معافوي.

حکيم هغه سړي ته وايي چي پوه، عقلمند او هوښيار وي، ځکه چي د حکمت معنی ده د هر شي حقيقت او اصليت پېژندل، او دتجربې مطلب دادی چي په کارو کي خبرتيا تر لاسه کول او د يو کار د کولو طريقه پېژندل نو وفرمايل سول چي چا ته د شيانو حقيقت تر لاسه سو د هر شي د ګټي او تاوان څخه خبر سو، د حالاتو او معاملاتو د نيکۍ او بدۍ څخه خبر سو نو هغه ته د حکمت دولت تر لاسه سو او هغه کامل حکيم سو.

او که چيري د حکيم څخه مراد طبيب او علاج کونکی واخيستل سي نو بيا هم مطلب څرګند دی چي يو سړی محض د علم طب په ويلو سره کامل طبيب او معالج نه کيږي بلکه د هغه لپاره تجربه او د علاج کولو تمرين هم ضروري وي.

## د کار پای ته ګوره

﴿۴۸۳۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَجُلاً قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصِنِيْ فَقَالَ خُذِ الْأَمْرَ بِالتَّدْبِيْرِ فَإِنْ رَأَيْتَ فِيْ عَاقِبَتِهِ خَيْرًا فَأَمْضِهِ وَإِنْ خِفْتَ غَيًّا فَأَمْسِكْ. رواه في شرح السنة.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي نبي کريم ﷺ ته وويل چي ما تـه يو څه نصيحت وکړه، رسول الله ﷺ ورتـه وفرمايـل: خپـل کـار پـه تـدبير سره کـوه کـه د هغـه پـای ښـه درتـه معلوميږي کوه يې او که پای يې درته ګمراهي معلوميږي نو بيا يې پريږده. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۳\۱۷۸، رقم: ۳۶۰۰.

## پر ښو تلوار

﴿۴۸۳۷﴾: وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ الْأَعْمَشُ وَلَا أَعْلَمُهُ إِلَّا عَنْ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ التُّؤَدَةُ فِي كُلِّ شَيْءٍ خير إِلَّا فِي عَمَلِ الْآخِرَةِ.

رواه ابوداؤد.

حضرت معصب بن سعد رضي الله عنه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول اللهﷺ وفرمايل: په هر کار کي تاخير او زنډ غوره دئ مګر د آخرت په عمل کي نه، (يعني دنيکی کارونه سمدستي بايد وسي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۵۷، رقم: ۴۸۱۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي د نېکی او خير په کارو کي توقف او زنډ کول نه دی پکار بلکه هغه بايد سمدستي وکړل سي ځکه چي په نېک کار کي د زنډ کولو مطلب د ډېرو افاتو او کوتاهيو خطره اخيستل دي، ددې څخه پرته دنياوي کارونه داسي وي که چيري يو دنياوي کار کوي نو په پيل کي په عامه توګه د هغه انجام نه معلوميږي چي ايا د هغه کار انجام به په يقيني توګه ښه وي چي د هغه په وجه د هغه سمدستي کول به ضروري وي يا ښه به نه وي چي دهغه په باره کي زنډ وکړل سي نو دا تعليم ورکړل سوی دی چي په خپلو دنياوي معاملو کي توقف او زنډ اختيار کړي او د يو کار پيل کولو څخه مخکي په ښه ډول غور او فکر وکړي، ددې پر خلاف د دين د کارو انجام داسي نه دی چي د هغه علم نه وي ځکه نو په هغه کي د زنډ کولو ګنجائش نه وي، ددې څخه پرته په قرآن کريم کي دا حکم ورکړل سوی دی: (فاستبقو الخيرات وسارعوا الى مغفرة من ربكم): د نيکی او خير په کارو کي سبقت او تلوار کوئ او چابکتيا کوئ او بخښني ته چي ستاسو د پروردګار له خوا ده.

امام غزالي رحمة الله عليه د الله جل جلاله د ارشاد: (الشيطان يعدكم الفقر) په تفسير کي ليکلي دي چي د مؤمن لپاره مناسب دي چي څرنګه د هغه په زړه کي د الله په نامه د خپل مال خرڅ کولو داعيه پيدا سي نو هغه په نېک کار کي قطعا توقف او زنډ نه کوي ځکه چي کله يو څوک د الله په لاره کي خپل مال خرڅول غواړي نو شيطان د هغه په زړه کي دا وسوسه پيدا کوي که چيري خپل مال خرڅ کړې نو مفلس به سې همدا رنګه هغه د فقر او مفلسی څخه بېروي او د صدقې او خيرات کولو څخه د منع کولو هڅه يې کوي نو د توقف او زنډ کولو په صورت کي کيدای سي چي په

وخت تېرېدو سره د شیطان په جال کې ولوېږي او د هغه نیکۍ څخه لاس پرېولي.

د یو بزرگ په باره کې نقل سوي دي چې نوموړی یوه ورځ په بیت الخلاء کې وو د هغه ځای څخه یې خپل شاګرد ته اواز وکړ چې زما د بدن قمیص په ایستلو سره فلاني سړي ته ورکړه، شاګرد ددې په اورېدو سره ورته وویل چې دا خبره تاسو د بیت الخلاء څخه د وتلو وروسته هم کولای سئ د دومره بې صبرۍ څه وجه ده، هغه ورته وویل: زما په زړه کې دا خواهش پیدا سو چې زه دغه قمیص فلاني حاجتمند کس ته ورکړم نو ما اراده وکړه چې زه سمدستي دغه نېکي وکړم ځکه چې زه پر خپل نفس باندي باور نسم کولای، معلومه نه ده چې د هغه اراده کله بدله سني او زه د دغه نیکۍ څخه محروم سم.

## میانه روي

**﴿۴۸۳۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ سَرْجِسٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ السَّمْتُ الْحَسَنُ وَالتُّؤَدَةُ وَالِاقْتِصَادُ جُزْءٌ مِنْ أَرْبَعٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنَ النُّبُوَّةِ. رواه الترمذي.**

د عبدالله بن سرجس رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ښه خوی، تاخیر او میانه روي (ځان ساتل د افراط او تفریط څخه) د نبوت د څلیرویشتو اجزاوو څخه دي. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي: ۳۲۱\۴، رقم: ۲۰۱۰.

**تشریح**: د میانه روۍ معنی ده په هر کال او هر حالت کې درمیانه لار اختیارول او د زیاتوب او کمۍ څخه ځان ساتل، لکه په مصرف کولو کې نه اسراف کول او نه بخل کول، بلکه درمیانه طریقه یعني سخاوت اختیارول، یا د همت او حوصلې د اظهار په وخت کې نه ډېر ځان ښودل او نه ډېر بزدله کېدل بلکه درمیانه شجاعت اختیارول، یا په اعتقادي او نظریاتي معاملاتو کې هم میانه روي اختیارولو مطلب دادی چې پر هغه عقیده باندي اعتماد وکړل سي او هغه نظریه خپل کړل سي چې د دین، دیانت او عقل په اعتبار معتدل ګڼل کېږي د مثال په توګه یوه عقیده د جبر ده او یوه عقیده د قدر ده، دغه دواړي عقیدې د افراط او تفریط حامل دي د دغه دواړو پر خلاف درمیانه عقیده هغه ده کوم چې د اهل سنت والجماعت ده،

همدارنګه د میانه روۍ اختیارولو د حکم تعلق د معیشت سره هم دی او ددې درمیانه لاره داده چې د ژوند پر اړتیاوو باندي نه دومره زیات مصرف کړل سي چې د اسراف او عیش تر حده

پوري وي او نه دومره کم مصرف کړل سي چي په تنگۍ او تکليف کي اخته سي، بلکه ددغه دواړو په منځ کي اعتدال پيدا کړل سي لکه څرنگه چي په يوه حديث کي فرمايل سوي دي : (الاقتصاد في النفقة نصف المعيشة) : په مصرف کولو کي ميانه روي اختيارول نيمه سرمايه ده .

خلاصه دا چي د انساني ژوند په هر اړخ کي د ميانه روۍ اختيارولو حکم دی او دا هغه کمال دی چي انسان د هغه مراد او د هغه مقاصدو ته رسوي ځکه چي په منډه تلونکي رالويږي او په سست رفتار سره تلونکي تر شاته پاته کيږي، يوازي د اعتدال پر لاره باندي په تللو سره مقصد ته رسيدلای سي ځکه الله تعالی پر ډېرو مواقعو باندي د اعتدال په لاره کي په اختيارولو سره حکم کړی دی او د ځينو شيانو د نامه په اخيستلو سره يې فرمايلي دي ، لکه چي په يو ځای کي ارشاد دی : (واقصد في مشيک ) يعني په خپل چلن کي ميانه روي اختيار کړه او په يوه ځای کي داسي فرمايي : (کلوا واشربوا ولا تسرفوا ) خوراک کوئ او څښاک کوئ او اسراف مه کوئ.

ځينو عارفينو ويلي دي چي په علم او عمل کي د ميانه روۍ ډېر ارزښت دی او له دې کبله د مختلفو علمي او عملي آفاتو څخه ساتل کيدای سي، په علم تر لاسه کولو کي هم دومره بوختيا غوره ده چي د عمل څخه يې منع نه کړي او په عمل کي هم دومره بوختيا روا ده چي د علم تر لاسه کولو څخه يې منع نه کړي .

د نبوت د څليرويشتو اجزاوو څخه يو جز دی: په دې اړه شارحينو ليکلي دي چي يا خو دغه ټول شيان په يو ځای کيدو سره د يوه جز درجه لري يا په دې کي هر يو شی يو جز دی او دهغه جزء مطلب دادی چي دغه ښېگڼي او صفات د هغه ښېگڼو او صفاتو څخه دي چي په هغو سره انبياء کرام عليهم السلام متصف وه، پاته سوه دا خبره چي د اجزاء نبوت د عدد دتعين څخه څه مراد دی؟ نو حقيقت دادی چي ددې مراد شارع عليه السلام بيانولای سي، او د بيانولو مختلفي خبري کيږي چي د هغو حقيقت ته د نور نبوت څخه پرته هيڅ انساني فهم رسيدلای نسي ځکه په دې باره کي هيڅ ويل کيدای نسي او دغه خبره الله ﷻ او د هغه رسول ته سپارل پکاردي .

﴿۴۸۳۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ نَبِيَّ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْهَدْيَ الصَّالِحَ وَالسَّمْتَ الصَّالِحَ وَالِاقْتِصَادَ جُزْءٌ مِنْ خَمْسٍ وَعِشْرِينَ جُزْءًا مِنْ

النُّبُوَّةِ . رواه ابو داؤد.

د حضرت ابن عباس ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : نیک عادت او طریقه ښه خوی او میانه روي د نبوت د پنځه ویشتو برخو څخه ده . ابو داؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۱۳۶/۵، رقم: ۴۷۷۱.

**تشریح**: د (هدي صالح) او (سمت صالح) په منځ کي فرق دادی چي د هدي تعلق د انسان د باطن سره دی ځکه ددې معنی د نېک سیرت سوې ده چي په نېکي سره هم تعبیر کیدای سي او د سمت تعلق د انسان د ظاهري کردار سره دی ځکه ددې معنی د نېک چلن سره سوې ده ، او دې ته نېک چلن هم ویل کیږي، په چلن او طریقت کي ددغه دواړو هغه درجه ده کوم چي په شریعت کي د ایمان او اسلام ده، په دې اعتبار سره نېک خوی او نېک چلن دواړه په یوه ځای کي چي په کومه معنی کي وي نو نور علی نور دی او د هغه په حقیقت کامل کېدو کي هیڅ شک نسته.

په دغه حدیث کي ښېګڼو ته د نبوت د پنځه ویشت اجزاوو څخه یو جز ویل سوي دی حال دا چي په مخکني حدیث کي د څلېروېشت عدد نقل سوی دی نو په دواړو روایتو کي دغه تفاوت او فرق یا خو د راوي په وهم او خطا کي د اخته کېدو په وجه دی یا په دې کي هم یو راز دی چي رسول الله ﷺ یو وخت د څلېرویشتو شمېر ذکر کړ او بل وخت یې د پنځه ویشت.

دا هم ویل کیږي چي مخکي خو رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي دغه ښېګڼي د نبوت د څلېرویشتو اجزاوو څخه یو جزء دی بیا رسول الله ﷺ د مهرباني له موخي ددغه ښېګڼو یوه درجه نوره زیاته کړه او دا یې وفرمایل چي ښېګڼي د نبوت د پنځه ویشت اجزاوو څخه یو جزء دی یا دا چي په مخکني حدیث کي د درو ښېګڼو ذکر سوی دی او د هغه په یو ځای کېدو سره د څلېرویشتو اجزاوو څخه د یوه جزء درجه تر لاسه کوي او په دغه حدیث کي چي د کومو درو ښېګڼو ذکر سوی دی د هغو په یو ځای کېدو سره د نبوت د پنځه ویشت اجزاوو څخه د یوه جزء درجه تر لاسه کوي، په دغه صورت کي ددې ویلو ضرورت نه پاته کیږي چي دا د راوي په وهم او خطا کي د اخته کېدو نیتجه ده چي د هغه څخه په یوه روایت کي د څلېروشت عدد نقل سوی دی او په بل روایت کي د پنځه ویشت.

## پټه خبره امانت ده

﴿۴۸۴۰﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

إِذَا حَدَّثَ الرَّجُلُ الحديث ثُمَّ الْتَفَتَ فَهِيَ أَمَانَةٌ . رواه الترمذي وابوداؤد.

د حضرت جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي يو څوک يو خبره وكړي او بيا شاوخوا ګوري نو هغه خبره امانت ده . ترمذي او ابوداؤد

**تخريج**: سنن الترمذي ۳۰۱\۴، رقم: ۱۹۵۹، وسنن ابي داود ۱۸۸\۵، رقم: ۴۸۶۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي د هغه ، هغه خبره د اورېدونكو لپاره د يو امانت حكم لري نو هغه ته پكار دي چي هغوئ د هغه په امانت كي خيانت ونه كړي يعني ښكاره يې نه كړي .

## مشوره كوونكى امين وي

﴿۴۸۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لِأَبِي الْهَيْثَمِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د ابو هيثم بن تيهان څخه پوښتنه وكړل

ابْنِ التَّيِّهَانِ هَلْ لَكَ خَادِمٌ قَالَ لَا فَقَالَ فَإِذَا أَتَانَا سَبْيٌ فَأْتِنَا فَأُتِيَ النَّبِيُّ صَلَّى

چي ستاسو سره غلام شته ؟ هغه وويل: يا، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كله چي موږ ته غلامان راسي نو ته راسه، رسول الله ﷺ ته

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِرَأْسَيْنِ فَأَتَاهُ أَبُو الْهَيْثَمِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

دوه غلامان راغلل ، ابو هيثم حاضر سو ، نبي كريم ﷺ هغه ته وفرمايل :

اخْتَرْ مِنْهُمَا فَقَالَ يَا نَبِيَّ اللَّهِ اخْتَرْ لِي فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ

په دغه دواړو كي يو واخله ، هغه وويل: اې د الله جل جلاله نبي! ته يې غوره كړه ، نبي كريم ﷺ ورته

الْمُسْتَشَارَ مُؤْتَمَنٌ خُذْ هَذَا فَإِنِّي رَأَيْتُهُ يُصَلِّي وَاسْتَوْصِ بِهِ مَعْرُوفًا. رواه الترمذي.

وفرمايل : د كوم سړي څخه چي مشوره واخيستل سي هغه ته امين كېدل پكار دي (يعني هغه ته دي صحيح مشوره وركړي) ته دا غلام بوزه ، ما دی پر لمانځه كولو ليدلی دی زه تا ته وصيت كوم چي ته د ده سره ښه چلن كوه . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي: ۵۰۴\۴، رقم: ۲۳۶۹،

**تشریح**: په یوه روایت کي دا هم نقل سوي دي چي کله ابو الهیثم رضی الله عنه هغه غلام کور ته راوست نو خپلي ښځي ته یې وفرمایل چي رسول الله ﷺ ما ته دغه غلام راکړی دی او دده سره د نېک چلن او ښېګڼي وصیت یې کړی دی، نو د هغه ښځي وویل: کیدای سي په دغه وصیت باندي پوره عمل ونه کړلای سو نو دده سره ښه چلن دادی چي هغه ازاد کړه.

## درې مجلسونه ښکاره کړئ

﴿۴۸۴۲﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَجَالِسُ

د حضرت جابر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: مجلسونه

بِالْأَمَانَةِ إِلَّا ثَلَاثَةَ مَجَالِسَ سَفْكُ دَمٍ حَرَامٍ أَوْ فَرْجٌ حَرَامٌ أَوْ اقْتِطَاعُ مَالٍ

د امانت سره تړلي دي (یعني د مجلسونو آخري خبري د امانت په توګه ګڼل پکار دي) مګر درې ډوله مجلسونه (چي د هغه خبري د امانت په توګه نه دي ساتل پکار بلکه څرګندول یې ضروري دي) یو خو د ناجائز جګړې خبري، دویم د زناکارۍ د مشورې خبري او دریم په ناحقه د یو چا

بِغَيْرِ حَقٍّ. رواه ابوداؤد وذكر حديث ابي سعيد ان اعظم الامانة في باب المباشرة في الفصل الاول.

څخه په زور د مال اخیستلو د مشورې خبري. ابوداؤد، د ابو سعید حدیث ان اعظم الامانة په باب المباشرت لومړي فصل کي بیان سوی دئ

**تخریج**: سنن ابي داود ۱۸۹\۵، رقم: ۴۸۶۹.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري د یو چا څخه دا خبره واورې چي زه د فلاني سړي د قتلولو اراده لرم یا د فلانۍ ښځي سره د بدکارۍ اراده لرم، یا د فلاني سړي څخه په زور مال اخلم نو د داسي خبري اورېدونکي ته پکار دي چي دا راز ونه ګڼي چي د هغه د پټ ساتلو حکم سوی دی بلکه هغه دي سمدستي ظاهر کړي یعني د هغه خبري څخه دي اړوند خلک خبر کړي چي هغه هوښیار سي او خپل ځان وساتي، همدارنګه د هغه مجلس د خبرو څرګندول هم جائز دي چي په هغه کي د دین د ملت او قوم ته پر تاوان رسولو باندي خبري او تجویز سوی وي دغه مطلب شیخ عبدالحق رحمة الله علیه لیکلی دی.

ملا علي قاري رحمه الله ددغه حديث په تشريح كي ليكلي دي چي د يوه مؤمن لپاره دا مناسب ده كه چيري هغه په يو مجلس كي خلك پر يو بد كار ووينې نو د هغوئ د بدكارۍ اوازه دي نه خپروي ، مګر درې مجلسونه داسي دي چي په هغو كي د كېدونكو خرابيو اوازه خپرېدای سي ، په هغو كي يو مجلس هغه دی چي په هغه كي د يو چا ناحقه قتل كيږي ، دوهم مجلس هغه دی چي په هغه كي يو پاک لمنه ښځه بې عزته كيږي، او دريم مجلس هغه دی چي په هغه كي د يو سړي پر مال باندي ناحقه قبضه كيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د عقل اهميت

﴿۴۸۴۳﴾: عَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَمَّا خَلَقَ اللهُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : كله چي الله تعالى پيدا كړ

الْعَقْلَ قَالَ لَهُ قُمْ فَقَامَ ثُمَّ قَالَ لَهُ أَدْبِرْ فادبر ثُمَّ قَالَ لَهُ أَقْبِلْ فَأَقْبَلَ ثُمَّ

عقل نو هغه ته يې وويل ولاړ سه ، نو هغه ولاړ سو ، بيا يې ورته وويل شا كړه ، نو هغه شا كړه ، بيا يې ورته وويل زما په لور مخ كړه ، نو هغه د الله جل جلاله په لور مخ كړ ، بيا يې

قَالَ لَهُ اُقْعُدْ فَقَعَدَ ثُمَّ قَالَ له مَا خَلَقْتُ خَلْقًا هُوَ خَيْرٌ مِّنْكَ وَلاَ أَفْضَلَ مِنْكَ

ورته وويل كښينه نو هغه كښېنستی، بيا يې عقل ته وويل ما هيڅ يو مخلوق داسي نه دی پيدا كړی چي ستا څخه افضل

وَلاَ أَحْسَنَ مِنْكَ بِكَ آخُذُ وَبِكَ أُعْطِيْ وَبِكَ أُعْرَفُ وَبِكَ أُعَاتِبُ وَبِكَ الثَّوَابُ وَعَلَيْكَ الْعِقَابُ وَقَدْ تَكَلَّمَ فِيْهِ بَعْضُ الْعُلَمَاءِ. رواه البيهقي.

او غوره وي زه ستا په ذريعه (د بندګانو څخه) عبادت اخلم او ستا په ذريعه (بندګانو ته) ثواب وركوم ، ستا په سبب زه پيژندل كيږم او ستا په سبب عتاب (ملامتيا) كوم ، ستا په ذريعه ثواب وركوم او عذاب وركوم، په دغه حديث كي ځيني عالمانو خبري كړي دي يعني دا يې موضوع (جوړ سوی) او د اعتبار نه وړ ګرځولی دی .بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\ ۱۵۴، رقم: ۴۶۳۲.

**تشريح**: د حديث د ظاهري مفهوم څخه دا معلوميږي چي الله ﷻ عقل د بدن سره پيدا کړی وو لکه څرنګه چي په قيامت کي د حساب او کتاب څخه وروسته مرګ د پسه په صورت کي راوستل کيږي او بيا هغه د جنت او دوږخ تر منځ ذبح کړل سي.

## په قيامت کي د عقل سره سم بدله ورکول کيږي

﴿۴۸۴۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الرَّجُلَ

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يو سړی دی

لَيَكُوْنُ مِنْ أَهْلِ الصَّلاَةِ وَالصَّوْمِ وَالزَّكَاةِ وَالْحَجِّ وَالْعُمْرَةِ حَتّٰى ذَكَرَ سِهَامَ الْخَيْرِ كُلَّهَا وَمَا يُجْزٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلاَّ بِقَدْرِ عَقْلِهِ. رواه البيهقي.

چي هغه لمونځ هم کوي، روژه هم نيسي، زکوة هم ورکوي، حج او عمره هم کوي تر دې چي د ټولو نيکو کارونو ذکر يې وکړ مګر هغه ته به د قيامت په ورځ د هغه د عقل سره سم بدله ورکول کيږي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۴\ ۱۵۵، رقم: ۴۶۳۷.

**تشريح**: په دغه حديثو کي د عقل څخه مراد هغه اعلی جوهر دی چي د هغه په ذريعه انسان د شيانو او اسبابو د حقيقت ادراک کوي، د دنيا او آخرت نيکي او بدي ورته معلومه سي د نيکۍ او بدۍ په منځ کي فرق کوي د نفس د آفاتو او ګمراهيو څخه پرهېز کوي، نېکه لار اختياروي او د الله تعالی قرب او اتصال تر لاسه کوي د ځينو عارفينو په کلام کي چي د کوم عقل معاد ذکر دی د هغه څخه دا عقل مراد دی، دغه اعلی جوهر چي په کوم سړي کي په کوم نوعيت او مقدار وي په هغه کي مذکوره اوصاف هم په هغه تناسب سره وي ځکه فرمايل سوي دي چي په کوم چا کي څومره عقل وي هغه ته به د قيامت په ورځ د هغه مطابق جزاء ورکول کيږي ځکه چي د الله تعالی له خوا د جزاء او انعام دار او مدار به محض د عبادت او طاعت پر مقدار نه وي بلکه د عبادت پر حسن او کمال به وي، او څرګنده ده چي په عبادت او طاعت کي د حسن او کمال کيفيت او کميت د عقل سره متعلق دی.

په دې اړه علماؤ بحث او اختلاف کړی دی چي ايا علم افضل دی که عقل؟ ځينو حضراتو علم افضل ګرځولی دی او ځيني حضرات وايي چي د علم په نسبت عقل افضل دی مګر که

چيري دا وويل سي چي د علم معنوي اطلاق هم پر قوت تميز او معرفت باندي وي چي د عقل څخه ربنا تر لاسه كوي نو په دغه صورت كي د بحث او اختلاف ضرورت نه پاته كيږي ، په دې اعتبار سره دا خبره كيږي چي علم او عقل ته پر عمل او عبادت باندي فضيلت حاصل دی ، علماؤ ليكلي دي چي د صاحب عقل عالم يو ركعت لمونځ د نورو خلكو د زرو ركعتو څخه افضل ګرځول سوی دی .

## د تدبير ښه والی

﴿۴۸۴۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍ قَالَ لِيْ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَا أَبَاذَرٍ لاَ عَقْلَ كَالتَّدْبِيْرِ وَلاَ وَرَعَ كَالْكَفِّ وَلاَحَسَبَ كَحُسْنِ الْخُلُقِ. رواه البيهقي.

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما ته رسول الله ﷺ وفرمايل : اې ابوذره ! د تدبير برابر هيڅ عقل نسته. او پرهيز او احتياط څخه زيات هيڅ تقوا نسته او د خوش اخلاقۍ څخه پرته هيڅ حسب نسته . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۱۵۷\۱۴، رقم: ۴۶۴۶.

**تشريح**: د تدبير معنى ده د هر كار پر انجام باندي په نظر كولو سره د هغه لپاره فكر كول، نو عقل د تدبير په ډول نه دی، مطلب دادی چي هيڅ عقل د تدبير برابر كېدای نه سي ، يعني په ذكر سوې جمله كي د عقل څخه مراد مطلق علم او ادراک دی ، د تدبير څخه مراد عقل تدبير دی ، مطلب دادی چي كوم كار كيږي مخكي دي د هغه پر انجام فكر وكړل سي او په هغه كي چي كومي نيكۍ او بدۍ وي هغه دي و پېژندل سي .

د ورع معنى د پرهېزګارۍ ده چي تقوا هم ورته ويل كيږي، كه څه هم د ځينو حضراتو په نزد د ورع او تقوا په مينځ كي فرق دی هغوئ وايي چي د ورع درجه د تقوا څخه زياته ده په دې توګه چي د تقوا مطلب دی د حرامو شيانو څخه پرهېز كول او د ورع مطلب دی د هغه شيانو څخه هم پرهېز كول چي مكروه او مشتبه وي ، مګر صحيح دادی چي د تقوا او ورع دواړو يوه معنى ده او په عامه توګه ټول خلک دواړه الفاظ په يوه معنى كي استعمالوي ، پاته سوه دا خبره چي په حديث كي كوم دوه الفاظ د ورع او كف نقل سوي دي په هغو كي د ورع معنى د پرهېزګارۍ او د كف معنى د احتياط سوې ده نو ايا د دواړو په مينځ كي څه فرق دی؟ په ظاهره دا معلوميږي چي د دواړو په منځ كي هيڅ فرق نسته ځكه چي د ورع معنى د منع كېدلو او د كف معنى هم د

منع کېدو ده، په دغه صورت کي د حديث پر جمله (لا ورع کالکف) باندي اشکال واقع کېږي ځکه چي ددې لفظي معنی به دا وي چي منع کېدل یا د منع کېدو برابر نه دي، څرگنده ده چي په دغه صورت کي د دغه جملې هيڅ معنی نه راوځي،

نو طيبي رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح کي دا اشکال ظاهر کړی دی او بيا يې دا جواب ورکړی دی چي خلاصه يې داده چي دلته د کف معنی مسلمانانو ته د تکليف رسولو څخه يا په ژبه سره په لايعني خبرو کي د بوختيا څخه پرهېز کول دي او په ديني توگه هم په دغه دواړو شيانو کي د هر يو مفاسد او د هغوئ بدی ډېري زياتي وي ځکه د هغه مفاسد د مبالغې له موخي د بيانولو لپاره يې دا وفرمايل چي ورع يعني د حرامو شيانو څخه منع کېدل يو اعلی وصف دی، ددې څخه پرته دا خبره هم کېږي چي د ورع او تقوا لغوي معنی که څه هم د منع کېدو او پرهېز کولو دي مگر په شرعي توگه په مفهوم کي امتثال او اجتناب دواړه يو ځای داخل دي او که ددې مفهوم يوازي اجتناب يعني پرهېزگاري وي نو د فرمانبرداری د احکامو د ترک کولو څخه پرهېز کول به هم د هغه په مفهوم کي داخل وي ، نو د ورع او تقوا په مفهوم کي امتثال او اجتناب دواړه داخل دي او په دغه صورت کي به خلاصه دا وي چي د ورع او تقوا اصل مفهوم دادی چي کوم احکام ورکړل سوي دي د هغو پيروي دي وکړل سي که هغه د امتثال په توگه وي او که د اجتناب په توگه، کله چي دا خبره څرگنده سوه چي د ورع تعلق د دوو شيانو سره دی يعني د کومو کارو چي د کولو حکم سوی دی هغه اختيارول او د کومو کارو څخه چي منع سوې ده د هغو څخه منع کېدل دي او د کف تعلق يوازي د يوه شي يعني ممنوعاتو څخه منع کېدل دي نو ذکر سوی اشکال رفع سو، ددې څخه وروسته په دې مسئله پوهېدل پکار دي چي د هغه څخه د حديث د ذکر سوې جملې مفهوم نور زيات څرگندېږي چي د جانب اجتناب رعايت د جانب امتثال په نسبت زيات مقدم او زيات ضروري دی يعني شريعت چي د کومو شيانو څخه د منع کېدو حکم کړی دی د هغو څخه منع کېدل زيات مقدم او زيات ضروري دي په نسبت ددې خبري چي د کومو شيانو د اختيارولو حکم ورکړل سوی دی،

علماؤ ليکلي دي که چيري يو سړی په امتثال کي فرض او واجباتو او سنت مؤکده باندي اکتفاء وکړي او نوافل ترک کړي مگر په جانب اجتناب کي ښه پابندي کوي يعني ټول حرام، مکروه او مشتبه شيانو څخه پرهيز کوي نو هغه سړی به منزل مقصود تر لاسه کړي يعني د معرفت، حقيقت او قرب الهي درجه به تر لاسه کړي ، ددې پر خلاف که چيري يو سړی په جانب امتثال کي ښه پابندي کوي يعني فرضونه، واجبات، او سنت مؤکده باندي هم عمل کوي او

تهول نوافل او مستحبات هم ادا ء كوي مگر د جانب اجتناب رعايت نه كوي يعني منع شيان كوي نو داسي سړی منزل مقصود ته نسي رسيدلای، ددې مثال داسي دی لكه يو سړی چي ناروغ وي او هغه پرهېز په پوره توگه كوي مگر دواء نه خوري نو هغه به ښه سي كه څه هم هر ځومره وخت واخلي ، ددې پر خلاف كه چيري هغه دواوي خوري مگر پرهېز بالكل نه كوي نو هغه هيڅكله شفاء نه سي تر لاسه كولای بلكه ورځ په ورځ به ناروغه كيږي .

حسب او فضيلت د ښه اخلاقو برابر نه دي: حسب په اصل كي د ځان، پلار او نيكه فضائل او مناقبو ته وايي او د خپل كو رنۍ فخريه كارنامې بيانولو ته وايي ، نو په دغه جملې كي دا حقيقت څرگند سوی دی چي د انسان ذاتي فضيلت او بزرگي او د انسانيت اصل تقاضا داده چي په هغه كي ښه اخلاق وي او كه چيري يو سړی د ښه اخلاقو د صفت څخه محروم وي كه هغه په لكونو واره خپل مناقب شمېري او په لكونو واره د خپلو كارنامو اظهار كوي نو د هغه هيڅ حقيقت نسته ، څرگنده دي وي كه چيري په ښه اخلاقو كي د خلق څخه مراد تهول باطن اوصاف وي نو څرگنده ده چي حسن اخلاقو ته به تر تهولو غوره او اصل فضيلت ويل كيږي او كه چيري د خلق څخه مراد نرمي ، مهرباني وي لكه څرنگه چي په عامه توگه خوش خلقي دغه صفتو ته ويل كيږي نو په دغه صورت كي دا ويل چي حسب او فضيلت دخوش خلقي برابر نه دی د خوش خلقي فضيلت به د مبالغي په توگه بيانول وي .

د اهل تصوف په نزد د خوش خلقۍ فضيلت په دغه الفاظو كي بيانيږي چي په ورين تندي سره اوسېدل، خلك په وركړي او بخښني سره برخمن كول او د الله مخلوق ته د تاوان رسولو څخه منع كېدل ، دا هغه صفتونه دي چي پر هغو د حسن خلق اطلاق كيږي ، دا د حسن بصري رحمة الله عليه قول دی ، يو لوی بزرگ وايي چي حسن خلق دادی چي د الله تعالی د مخلوق سره عداوت ترك كړل سي او د راحت او تنگۍ په دواړو حالاتو كي خلك خوشحاله وساتل سي ، او د سهل تستري رحمة الله عليه د قول مطابق د حسن خلق تر تهولو كمه درجه داده چي د مخلوق له خوا كومه زياتي او سختي پيښه سي هغه و زغمل سي او د چا څخه بدله نه واخلي ، د ظالم په حق كي هم شفيق او مهربان وي او د هغه د مغفرت غوښتونكی وي .

## په خرڅ كي ميانه روي كول

﴿۴۸۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلاِقْتِصَادُ فِي النَّفَقَةِ نِصْفُ الْمَعِيشَةِ وَالتَّوَدُّدُ إِلَى النَّاسِ نِصْفُ الْعَقْلِ وَحُسْنُ السُّؤَالِ

نِصْفُ الْعِلْمِ .روى البيهقي الأحاديث الأربعة في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مصارف (اخراجات) کي ميانه روي نيم معيشت دی (يعني د ژوند نيمه سرمايه ده) او د انسانانو سره مينه کول نيم عقل دی او په علم تر لاسه کولو کي په ښه ډول سره سوال کول نيم علم دی . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۵\۲۵۴، رقم: ۶۵۴۶ .

**د لغاتو حل**: التودد : اى التحبب الى المؤمنين الصالحين . (د مؤمنانو سره مينه کول)

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي خپل او د کورنۍ د اړتياوو په مصرف کي نه خو اسراف کول او نه تنگي کول بلکه ميانه روي اختيارول د ژوند نيمه سرمايه ده په دې توگه چي د انسان د معاشي ژوند دار او مدار پر دوو شيانو دی يو گټه او دوهم مصرف، او د دواړو په منځ کي توازن د خوشحالۍ علامه ده او د معيشت د مستحکم کېدو ذريعه هم ده لکه څرنگه چي د گټي توازن خرابېدل د خوشحالۍ خلاف او د معيشت د عدم استحکام سبب دی همدارنگه د مصارفو توازن که خراب سي نو نه يوازي دا چي خوشحالي مفقود کيږي بلکه د معيشت ټول غالب خرابيږي ، نو په مصارفو کي اعتدال او ميانه روي اختيارول د معيشت نيمه برخه سوه .

د حديث د دوهمي برخي مطلب دادی چي د نېکو خلکو سره د ميني اظهار کول او د هغوئ مينه په خپلو معاملاتو او احوالو کي د خير او برکت ذريعه گڼل د هغه عقل نيمه برخه ده کوم چي د حسن معاشرت ضامن دی گويا پوره عقلمندي داده چي انسان په يو کسب او محنت سره جائز روزي تر لاسه کوي او ددې سره په خپلو کي د ميني او مروت جذبات هم لري .

د حديث د دريمي برخي مطلب دادی چي په يو علمي مسئله کي په فکر سره او په ښه ډول سوال کول نيم علم دی ، کوم څوک چي په سوال کولو کي پوه وي هغه د هغه شی په اړه سوال کوي چي ډېر زيات ضروري وي او هغه په خپل علم کي د زياتوب خواهش مند وي او په دې سره هغه د پوښتنه کونکو شيانو په منځ کي فرق کولای سي چي د څه شي سوال وسي او دچا څخه سوال وسي، او کله چي هغه د خپل سوال جواب تر لاسه کړي نو د مسئلې په حل کي د هغه علم پوره سي ، په دې اعتبار سره د علم دوه ډوله سي يو سوال او دوهم جواب .

پاته سوه دا خبره چي په ښه ډول د سوال کولو مطلب څه شی دی، د ښه سوال اطلاق پر هغه سوال کيږي چي د هغه د ټولو اړخونو تحقيق او تنقيح سوې وي او په هغه کي چي څومره

احتمالات پیدا کیدای سي د هغو ټولو څخه خبر وي چي شافي او کافي جواب تر لاسه کړي او په جواب کي یو اړخ نیم پاته نسي ، همدارنګه سوال بذات خود د علم یوه ټوټه وي او پر هغه دا اشکال نه وارد کیږي چي سوال پر ناپوهي دلالت کوي نو سوال کولو ته نیم علم څنګه ویل سوي دي، بیا هم د ذکر سوي اشکال سره سم یوه خبره داهم کیږي چي کوم څوک په ښه فکر سره او په صحیح انداز کي سوال کوي د هغه په اړه دا ګڼل کیږي چي هغه یو داسي سړی دی چي د علمي ذوق حامل دی او په علم کي خپل یو برخه خامخا لري او ددې خبري خواهش مند دی چي خپل ناقص علم پوره کړي نو دهغه سوال ته نصف علم ویل به مناسب وي ، ددې پر خلاف کوم څوک چي بې فکر او په خراب انداز کي سوال کوي نو هغه د خپل سوال په ذریعه خپل د عقل پر نقصان او جهالت باندي دلالت کوي ، ددې په مثال کي یوه پېښه بیانیږي چي یو وار امام ابویوسف رحمہ اللہ علیہ په خپل علمي مجلس کي د یو شاګرد په پرله پسي پټه خوله کېدو سره هغه ته وویل که چیر یوه خبره دي په پوهه کي رانسي یا په یوه مسئله کي مشکل وي ځو د هغه په اړه پوښتنه کوه او مه شرمېږه، ځکه چي د یو خبره په پوښتنه کولو کي شرمېدل د علم څخه منع کېدل دي ، هغه وخت امام ابویوسف رحمہ اللہ علیہ د روژې په تعریف کي خبري کولې، کله چي هغه وفرمایل چي روژه د صبح صادق څخه پېل کیږي او تر لمر لوېدو پوري ختمیږي، نو هغه شاګرد سوال وکړ که چیري لمر نه لویږي نو بیا به روژه تر کومه وخته وي، امام ابویوسف رحمہ اللہ علیہ د هغه د جاهلانه سوال په اورېدو سره ورته وویل ، پټه خوله سه ، ستا پټه خوله کېدل تر دې ډېر غوره دي چي خبري وکړې

خلاصه دا چي د سوال نوعیت او د سوال کولو انداز د سوال کونکي پر شخصیت او حالت باندي بذات خود دلالت کوي او دهغه د سوال په رڼا کي دا انداز راایستل مشکل نه وي چي دغه سړی بالکل جاهل دی یا د علم سره کار لري ، چي په کوم چا کي د علم او عقل رڼا وي نو د هغه سوال هم عالمانه او عاقلانه وي او کوم څوک چي بالکل جاهل وي د هغه د نورو خبرو په ډول د هغه سوال هم جاهلانه وي لکه څرنګه چي یو چا ویلي دي : کله چي یو جاهل خبره کوي نو د خره په ډول معلومیږي او کله چي پټه خوله وي نو د دېوال په ډول معلومیږي .

===========

# بَابُ الرِّفْقِ وَالْحَيَاءِ وَحُسْنِ الْخُلُقِ

## (د نرمۍ، حياء او ښه اخلاقو بيان)

رفق د عنف ضد دی او معنی يې د نرمۍ ده او د خپلو ملګرو په حق کي مهربان او نرم کېدل دي او د هغوئ سره په ښه ډول وړاندي کېدل او هر کار په اطمينان او ښه طريقه سره کول.

د حياء څخه مراد شرمنده او محجوب کېدل دي، او حياء په اصل کي د هغه کيفيت نوم دی چي پر يو انسان باندي د عيب او بدۍ د بيري په وجه خپرېږي څکه ويل کيږي چي غوره حياء هغه ده چي نفس په هغه شي کي د اخته کېدو څخه منع کړي کوم چي شريعت خراب ګرځولی دی، د حضرت جنيد رحمه الله قول دادی چي حياء د هغه حالت او کيفيت نوم دی کوم چي الله تعالی د نعمتونو تر لاسه کېدو او د هغه نعمتونو د شکر ادا کولو په وجه په وحشت سره په زړه کي تر لاسه کيږي، او د حضرت رقاق قول دی چي حياء د هغه کيفيت نوم دی چي د بادار په مخکي درخواست او طلب يې منع کوي،

حسن خلق يعني ښه اخلاق، د ښه اخلاقو تر ټولو څرګند مطلب دادی چي د هغه شي اتباع او پيروي وکړل سي چي خاتم النبيين حضرت محمد ﷺ د الله جل جلاله له خوا نړيوالو ته وړاندي کړي دي، يعني شريعت، اداب طريقت او احوال حقيقت او معرفت، کله چي د بي بي عائشې رضي الله عنها څخه پوښتنه وسول چي الله جل جلاله د رسول الله ﷺ په اړه فرمايلي دي چي: (وانک لعلی خلق عظيم) او بېله شکه ته د خلق عظيم پر مرتبه فائز يې، نو د رسول الله ﷺ هغه اخلاق څه وه کوم چي په خلق عظيم سره تعبير سوي دي؟ بي بي عائشې رضي الله عنها جواب ورکړ چي د رسول الله ﷺ اخلاق قرآن کريم دی، يعني په قرآن کريم کي نيک خصلتونه او اعلی اوصاف چي بيان سوي دي که د هغه تعلق د الله جل جلاله د نافرمانۍ وغيره وي يا د مخلوق سره د بدو معاملو په اړه، رسول الله ﷺ به د هغه ټولو څخه پرهېز کوی، پاته سوه دا تباع د درجو خبره، نو څرګنده ده چي اتباع په اندازه د محبت او توفيق تر لاسه کيږئ يعني کوم څوک چي د رسول الله ﷺ په مينه څومره ډک وي او هغه ته د اتباع کولو څومره توفيق په برخه وي هغومره زيا ته اتباع به هم کوي او کوم چا ته چي د رسول الله ﷺ د ميني څومره کمه برخه تر لاسه وي او د اتباع کولو څومره کم توفيق يې په برخه سوی وي نو په هغه اتباع کي به هغومره وروسته وي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د نرمۍ او مهربانۍ فضيلت

﴿۴۸۴۷﴾: عَنْ عَائِشَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ تعالى

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى

رَفِيقٌ يُحِبُّ الرِّفْقَ وَيُعْطِي عَلَى الرِّفْقِ مَا لَا يُعْطِي عَلَى الْعُنْفِ وَمَا لَا يُعْطِي

مهربانه دی او مهرباني خوښوي، او په نرمۍ او مهربانۍ سره هغه شی ورکوي په سختۍ سره يې نه ورکوي ، او نه د نرمۍ او مهربانۍ څخه پرته د يو بلې خبرې

عَلَى مَا سِوَاهُ . رواه مسلم وفي رواية له قال لعائشة عليك بالرفق واياك

والعنف والفحش ان الرفق لا يكون في شئ الا زانه ولا يَنْزع من شئ الا شانه.

په وجه يې ورکوي. مسلم او د مسلم په يو بل روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ بي بي عائشې ؓ ته وفرمايل : نرمي پر ځان لازمه کړه د سختۍ او بي حيايي څخه ځان وساته ځکه چي په کوم شي کي نرمي وي نو هغه نرمي د هغه د ښکلا سبب وي او د کوم شي څخه چي نرمي وايستل سي نو هغه عيب داره سي .

**تخريج** : صحيح مسلم: ۴\۲۰۰۳، رقم: ۷۷- ۲۵۹۳.

**تشريح** : الله ﷻ نرم او مهربان دی او نرمي او مهرباني خوښوي، ددغه ارشاد په ذريعه دې ته اشاره سوې ده چي د الله ﷻ نرمي او مهرباني خوښول خپله د بندګانو د ګټي لپاره وي چي په خپلو کي د نرمۍ او مهربانۍ معامله کول يوه داسي خوبي ده چي دهغه په ذريعه ټولنه مطمئن او د سکون څخه ډک ژوند تېرولای سي ، د کومي ټولني افراد چي په خپلو ټولو چارو کي د يو بل سره د نرمۍ او مهربانۍ چلن کوي ، يو بل د په سختيو او پرېشانيو کي د اخته کولو څخه ځان ساتي او يو تر بله معاملات د اسانۍ پر بنياد کوي او د هغه امورو تعلق د تجارت ، مزدورۍ او نورو شيانو سره وي يا ددې څخه پرته د ټولنيز ژوند سره وي نو دهغه ټولني هر فرد خپل ځان کامياب محسوس کوي او پر ټوله ټولنه باندي د الله تعالى له خوا خير او برکت او د هغه د نعمتو نزول کيږي نو : (و يعطى على الرفق ...الخ) يعني پر هغه نرمۍ او مهربانۍ

باندي هغه شی ورکول کيږي ...الخ، ددغه جملې په ذريعه نه يوازي دا ترغيب ورکول کيږي چي په خپلو امورو او معاملو کي نرمي او مهرباني اختيار کړئ چي مقصد ته ورسيږئ بلکه زيری هم ورکړل سوی دی چي کوم خلک د سختی پر ځای نرمي اختيار وي هغوئ ته الله تعالی اجر او ثواب ورکوي او په مقاصدو کي برياليتوب ورپه برخه کوي.

په نرمی او مهربانی چي کوم شی ورکول کيږي ...الخ: دغه جمله د مخکني عبارت مفهوم په بل انداز کي بيانوي او مخکي خو نرمی او مهربانی ته پر سختی باندي ترجيح ورکړل سوه او دا وفرمايل سول چي د الله تعالی له خوا د اجر او ثواب تر لاسه کولو نعمت چي په نرمی او مهربانی اختيارولو سره تر لاسه کيږي هغه د سختی په صورت کي نه تر لاسه کيږي، بيا مخته ددغه جملې په ذريعه دې ته اشاره وفرمايل سول چي نرمي او مهرباني پر خپل ضد سختی باندي نه بلکه د مقصد تر لاسه کولو او نورو اسبابو باندي هم ترجيح او فضيلت لري مګر که چيري دلته دا اشکال پيدا سي چي هغه اسباب د نرمی او مهربانی څخه وي نو د ترجيح او فضيلت سوال نه پيدا کيږي او که چيري د سختی څخه وي نو د نرمی او مهربانی فضيلت او ترجيح درلودل د ماقبل عبارت څخه څرګند سوي دي ، د هغه څخه وروسته ددغه مفهوم بيا بيانولو څه ضرورت وو؟ ددې جواب دادی چي که څه هم په دواړو جملو کي په ظاهري توګه تفاوت دی مګر په حقيقت کي دغه دوهمه جمله د ماقبل عبارت د مؤکد کولو لپاره استعمال سوې ده او د دواړو جملو مقصد دا خبره په زيات ارزښت سره بيانول دي چي انسان بايد خپل مقاصد لکه د روزی تر لاسه کول او نورو شيانو په طلب او سعي کي داسي رويه اختيار کړي چي نرمي ، مهرباني او د يو بل سره د لحاظ معامله وي ځکه چي انسان ته د هغه مطلوب شي ورکونکي په حقيقت کي الله تعالی دی او نرمي او مهرباني د هغه په نزد غوره شي دی ځکه هغه د نرمی او مهربانی رويه اختيارونکي ته زيات ورکوي په نسبت د هغه چا چي د خپل مقصد په تر لاسه کولو کي د سختی رويه اختياروي.

## د نرمی څخه محروم

﴿۴۸۴۸﴾: وَعَنْ جَرِيرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ يُحْرَمُ الرِّفْقَ يُحْرَمُ الْخَيْرَ. رواه مسلم.

د حضرت جرير رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ وفرمايل: څوک چي د نرمی څخه محروم سو هغه د نيکی څخه محروم سو. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۰۰۳، رقم: ۷۴ - ۲۵۹۲.

**تشریح**: د جامع صغیر په روایت کي د خیر سره د کله لفظ هم دی نو د حدیث مطلب دا سو چي کوم څوک د نرمۍ او مهربانۍ څخه خالي وي نو هغه د ټولو شیانو څخه محروم کیږي، ددغه ارشاد مقصد د نرمۍ او مهربانۍ وصف بیانول او ددغه عظیم وصف د تر لاسه کولو ترغیب ورکول دي، او د سختۍ بدي بیانول او ددې خبره څرګندول دي چي نرمۍ او مهربانۍ د ټولو ښېګڼو د تر لاسه کولو سبب او ذریعه ده.

## د حیاء فضیلت

﴿۴۸۴۹﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ عَلَى رَجُلٍ مِنَ الْأَنْصَارِ وَهُوَ يَعِظُ أَخَاهُ فِي الْحَيَاءِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَعْهُ فَإِنَّ الْحَيَاءَ مِنَ الْإِيْمَانِ. متفق علیه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ د یو انصاري په خوا کي تیر سو چي خپل ورور ته یې د حیاء پر موضوع نصحیت کوی (یعني د ډیري حیا کولو څخه یې منع کوی)، رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: پریږده ځکه چي حیاء د ایمان یوه څانګه ده. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱\ ۷۴، رقم: ۲۴، ومسلم ۱\ ۶۳، رقم: ۵۹ - ۳۶.

**تشریح**: هغه صحابي خپل ورور د زیاتي حیاء کولو څخه منع کوی او دا یې ورته ویل چي کوم څوک زیاته حیاء کوي هغه د رزق او علم څخه محروم کیږي، رسول الله ﷺ چي د هغه څخه دا واوریدل نو هغه یې منع کړ او وه یې فرمایل ته خپل ورور د حیاء کولو څخه مه منع کوه ځکه چي حیاء یو ډېر لوی وصف دی او د ایمان یوه څانګه ده.

طیبي رحمه الله علیه ویلي دي: د یعظ څخه مراد ینذر دی یعني هغه صحابي خپل ورور وبیروی، امام راغب رحمه الله علیه ویلي دي: د وعظ معنی یو چا ته داسي خبرداری ورکول دي چي په هغه کي بېرول هم وي، خلیل رحمه الله علیه دا بیان کړی دی چي وعظ د ښېګڼي داسي نصحت کولو ته وایي چي په هغه سره زړه نرم سي مګر صحیح خبره داده چي دلته په حدیث کي وعظ د عتاب په معنی کي دی لکه څرنګه چي په یوه روایت کي د یعظ پر ځای د یعاتب لفظ نقل سوی دی.

﴿۴۸۵۰﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنَ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

**اَلْحَيَاءُ لَا يَأْتِي إِلَّا بِخَيْرٍ، وفي رواية الحياء خير كله. متفق عليه**

د حضرت عمران بن حصين ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حيا د خير او نيکۍ څخه پرته بله خبره نه پيدا کوي، او په يو بل روايت کي داسي دي چي د حياء ټول شکلونه ښه دي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۲۱، رقم: ۶۱۱۷، ومسلم: ۱\۶۴، رقم: ۶۰ - ۳۷.

**تشريح**: دلته يو سوال پيدا کيږي چي ډېر واره حياء د ځينو حقوقو د ادا کولو لکه امر بالمعروف او نهي عن المنکر کي خلل اچوي نو ددې لحاظ څخه د حياء ټول صورتونه غوره ګرځول څرنګه صحيح کيدای سي؟ ددې جواب دادی چي کومه حياء د اظهار حقيقت او د حق د ادا کولو څخه منع کوي هغه ته حياء نه ويل کيږي بلکه هغه ته به عجز او بزدلي ويل کيږي چي يو ډول خرابي او تاوان دی، او که چيري هغه ته حياء وويل سي نو مجازا ورته ويل کيږئ ځکه چي د شريعت په نظر کي حقيقي حياء هغه ده چي د خرابۍ د ترک کولو باعث جوړ سي، ددې څخه پرته دا خبره هم کيږي چي د حياء زيات صحيح معنی داده چي د نفس د بدۍ څخه منع کېدل که هغه بدي طبعي وي يا شرعي وي او په شريعت کي چي کومه حياء غوره ګرځول سوې ده د هغه صحيح پېژندل دادي چي نفس د هغه شيانو د اختيارولو څخه منع سي کوم چي شريعت بد ګرځولي دي که هغه حرام وي يا مکروه وي او ترک يې غوره وي نو د مذکوره سوال جواب دادی چي دغه کليه: الحياء کله حياء، د هغه صورتو سره خاص دی کوم چي د حق تعالی د رضا مطابق وي.

## حياء د ټولو انبياؤو تعليم دئ

﴿۴۸۵۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِمَّا أَدْرَكَ النَّاسُ مِنْ كَلَامِ النُّبُوَّةِ الاولى إِذَا لَمْ تَسْتَحْيِ فَاصْنَعْ مَا شِئْتَ. رواه البخاري.

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د تيرو پيغمبرانو په کلام کي چي کومه خبره خلکو تر لاسه کړې ده (يعني داسي خبره چي په هغه کي تبديل نه دی سوی يا د هغه حکم چي تر اوسه پاته دئ) هغه دا خبره ده چي هر کله تا شرم او حياء پرېښودل نو

اوس چي دي څه زړه غواړي هغه کوه . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۲۳، رقم: ٦١٢٠.

**تشريح**: (ان مما ادرک الناس ..الخ) مطلب دادی چي ذکر سوې خبره پر مخکنيو انبياؤ باندي د نازلېدونکي کلام څخه ماخوذ ده او د هغه حکم تر اوسه پاته دی ، نه منسوخ سوی دی او نه پکښي تغير او تبديل سوی دی .

څرګنده دي وي چي په ذکر سوې جمله کي د امر صيغه استعمال سوې ده چي فاصنع...الخ، يعني څه چي دي زړه غواړي هغه کوه نو ددې څخه حکم ورکول يا طلب مراد نه دی بلکه دغه امر د خبر په توګه دی ، ددې مطلب دادی چي کوم شی چي د بدو خبرو څخه منع کوي هغه حياء ده او هر کله چي څوک شرم او حياء پرېږدي او بې حيايي اختيار کړي نو بيا چي څه غواړي هغه دي کوي چي هغه ته په ګناه او بدي اختيارولو کي څه باک نه وي يا دا چي د امر صيغه د تهديد او توبيخ په توګه ده او ددې څخه مقصد دا خبرداری ورکول دي چي کله ته بې حيايي پيل کړې نو څه چي دي زړه غواړي هغه کوه مګر په ياد ولره چي هغه وخت ډېر ژر راتلونکی دی چي ته به دخپلو ټولو بدو اعمالو سزا تر لاسه کوې ، يعني دغه جمله داسي ده لکه څرنګه چي د (اعملوا ماشئتم) جمله ده .

## نيکي او ګناه څه شي دي

﴿۴۸۵۲﴾: وَعَنِ النَّوَّاسِ بْنِ سِمْعَانَ قَالَ سَأَلْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنِ الْبِرِّ وَالْإِثْمِ فَقَالَ الْبِرُّ حُسْنُ الْخُلُقِ وَالْإِثْمُ مَا حَاكَ فِي صَدْرِكَ وَكَرِهْتَ أَنْ يَطَّلِعَ عَلَيْهِ النَّاسُ. رواه مسلم.

د نواس بن سمعان رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه د نيکۍ او ګناه په اړه پوښتنه وکړه ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل : نيکي د ښه اخلاقو نوم دی او ګناه هغه شی دی چي ستا په زړه کي خلش (لړزه) پيدا کړي او ته دا بد وګڼې چي خلک ددې څخه خبر سي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۱۹۸۰، رقم: ۱۴- ۲۵۵۳.

**تشريح**: تردد پيدا کړه : مطلب دادی چي کله ته يو داسي کار وکړې چي پر هغه ستا زړه مطمئن نه وي بلکه د هغه په وجه په زړه او دماغ کي يو خند پيدا سي نو پوه سه چي ستا هغه کار غوره نه دی بلکه د ګناه باعث دی مګر څرګنده دي وي چي د هغه خبري تعلق د هغه چا سره دی چي د

هغه سینه الله ﷻ د اسلامي دولت لپاره خلاصه کړې وي او د هغه زړه د تقوا په نور سره ځلانده وي، د كار څخه مراد هغه اعمال او افعال نه دي چي د هغو خرابي شريعت څرګنده کړې ده او د هغه ګناه کېدل د شک څخه لیري دي بلکه ددې څخه مراد داسي فعل او عمل دی چي د هغه منع کېدل د شارع څخه په څرګنده توګه منقول نه وي او د هغه په اړه د علماؤ اختلاف وي او ته دا خبره نه خوښوې، دا د ګناه دوهمه پېژندنه بيان سوې ده مګر ددې تعلق هم د هغه خلکو سره دی چي نېک وي.

## د ښه اخلاقو فضیلت

﴿۴۸۵۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنُ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ أَحَبِّكُمْ إِلَيَّ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا. رواه البخاري

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه څوک زما ډېر خوښ دی چي هغه د ښو اخلاقو خاوند وي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰۲/۷، رقم: ۳۷۵۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي په تاسو کي هغه څوک زما په نزد غوره دی چي نېک عادتونه ولري او د غوره عادتونو حامل وي په دې توګه چي د الله ﷻ حقوق هم ادا کوي او د بندګانو په حقوقو کي هم کوتاهي نه کوي.

﴿۴۸۵۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ مِنْ خِيَارِكُمْ أَحْسَنَكُمْ أَخْلَاقًا. متفق عليه.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي تر ټولو زيات نيک بنده هغه دئ چي د هغه اخلاق ښه وي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵٦٦/٦، رقم: ۲۵۵۹، ومسلم ۱۸۱۰/۴، رقم: ٦۸ – ۲۳۲۱.؟

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د نرمۍ فضيلت او اهميت

﴿٤٨٥٥﴾: عَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أُعْطِيَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ أُعْطِيَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ وَمَنْ حُرِمَ حَظَّهُ مِنَ الرِّفْقِ حُرِمَ حَظَّهُ مِنْ خَيْرِ الدُّنْيَا وَالْآخِرَةِ. رواه في شرح السنة.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا ته چي د نرمۍ څخه برخه ورکړل سوه هغه ته د دنيا او آخرت خير ورکړل سو او څوک چي د نرمۍ څخه محروم کړل سو هغه د دنيا او آخرت د خير څخه محروم کړل سو. شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة: ١٣\٧٤، رقم: ٣٤٩١.

### حياء د ايمان جز دئ

﴿٤٨٥٦﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْحَيَاءُ مِنَ الْإِيمَانِ وَالْإِيمَانُ فِي الْجَنَّةِ وَالْبَذَاءُ مِنَ الْجَفَاءِ وَالْجَفَاءُ فِي النَّارِ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حيا د ايمان يو جز دی او ايماندار به جنت ته ځي، او بي حيائي (پوچ ويل) د بدۍ څخه ده او بد كار به دوږخ ته ځي. احمد او ترمذي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ٣\٥٠١، والترمذي ٤\٣٢١، رقم: ٢٠٠٩.

### خوش خلقي

﴿٤٨٥٧﴾: وَعَنْ رَّجُلٍ مِّنْ مُزَيْنَةَ قَالَ قَالُوا يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ مَا خَيْرُ مَا أُعْطِيَ الْإِنْسَانُ قَالَ اَلْخُلُقُ الْحَسَنُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان. وفي شرح

السنة عن اسامة بن شريك.

د مزينه قبيلې د يو سړي څخه روايت دئ چي صحابه کرامو پوښتنه وکړه اې د الله رسوله! انسان ته چي کوم شيان ورکړل سوي دي په هغو کي غوره کوم شی دی؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ښه اخلاق. بيهقي په شعب الايمان کي او په شرح السنه کي له اسامه بن شريک څخه روايت دی.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۲۸۱، رقم: ۶۶۶۱.

## بد خلقي

﴿۴۸۵۸﴾: وَعَنْ حَارِثَةَ ابْنِ وَهْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا

د حضرت حارثة بن وهب ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظُ وَلَا الْجَعْظَرِيُّ قَالَ وَالْجَوَّاظُ الْغَلِيظُ الْفَظُّ. رواه ابوداؤد

جنت ته به بد اخلاقه، بد خويه او سخت ويونکی بنده نه ځي. ابوداؤد

في سننه والبيهقي في شعب الايمان وصاحب جامع الاصول فيه عن حارثة

او بيهقي په شعب الايمان کي، په جامع الاصول او په شرح السنة کي هم د حارثه څخه روايت

و كذا في شرح السنة عنه وَلَفْظُهُ قَالَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ الْجَوَّاظِ الْجَعْظَرِيِّ

دی چي الفاظ يې دادي: جنت ته به مغرور، سخت او بد خويه بنده نه داخليږي او د مصابيح په

يقال الجعظري اَلْفَظُّ الْغَلِيْظُ وَفِيْ نُسَخِ الْمَصَابِيْحِ عَنْ عِكْرَمَةَ بْنِ وَهْبٍ

وَلَفْظُهُ قَالَ وَالْجَوَّاظُ الَّذِيْ جَمَعَ وَمَنَعَ وَالْجَعْظَرِيُّ الْغَلِيْظُ الْفَظُّ.

نسخو کي د عکرمه بن وهب څخه روايت دی چي جواظ هغه دی چي مال يې يو ځای کړی وي مګر چا ته يې نه ورکوي او جعظري سخت او بد خويه بنده ته ويل کيږي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۵۱، رقم: ۴۸۰۱، والبيهقي في شعب الايمان: ۶\۲۸۵، رقم: ۸۱۷۳، والبغوي في شرح السنة ۱۳\۱۷۰، رقم: ۳۵۹۳، والبغوي في المصابيح ۳\۳۹۷، رقم: ۳۹۵۳.

**تشريح**: لكه څرنگه چي په مخكنيو عبارتو كي څرگنده سوه ، د ځينو روايتو څخه دا معلوميږي چي د جواظ او جعظري دواړو يوه معنى ده او د ځينو روايتو څخه دا مفهوم كيږي چي د جواظ معنى د متكبر ده او د جعظر معنى د بد اخلاقه ده مگر ددغه ټولو روايتو حاصل دادى چي دغه دواړه الفاظ په معنى او مفهوم كي يو بل ته نژدې دي او د دواړو په منځ كي زيات فرق نسته.

ملا علي قاري رحمه الله وايي : دا ويل زيات صحيح دي چي د جواظ او جعظري څخه مراد هغه ځوك دى چي بد اخلاقه او د سخت زړه خاوند وي چي نه پر هغه د نصيحت اثر كيږي او نه يې د خداى جل جلاله بيره د گناهو څخه منع كوي، ځكه نو رسول الله ﷺ د داسي كس په باره كي وفرمايل چي هغه به جنت ته داخل نه سي، ددې قرينه هغه روايت دى چي خطيب رحمه الله د حضرت عائشې رضي الله عنها څخه مرفوع نقل كړى دى چي: رسول الله ﷺ وفرمايل: د هر شي لپاره توبه ده مگر د بداخلاقه لپاره توبه گټوره نه ده ځكه هغه له يوې گناه څخه توبه كوي نو تر هغه په لويه گناه كي اخته كيږي ، (د دې نتيجه دا كيږي چي د هغه بداخلاقي او بد چلن پر خپل ځاى قائم پاته وي) .

لا يدخل الجنة الجواظ ولا الجعظري : ددغه جملې څخه مخكي د لاء زائد راوستل دې ته اشاره كوي چي كوم ځوک په دغه دواړو خصلتو كي په يوه خصلت اخته وي نو هغه به جنت ته ولاړ نسي ، كه هغه سړي د منافقانو څخه وي نو د هغه په جنت كي نه داخلول به پر مطلق معنى باندي محمول وي او كه دهغه سړي تعلق د مؤمنانو سره وي نو بيا به ويل كيږي چي د هغه په حق كي دغه الفاظ چي هغه به په جنت كي نه داخليږي ددې مطلب دادى چي هغه به د خلاصون تر لاسه كونكو خلكو سره په پيل كي په جنت كي نه داخليږي .

## خوش خلقي

﴿۴۸۵۹﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ عَنِ النَّبِيِّ ﷺ قَالَ إِنَّ أَثْقَلَ شَيْئٍ يُوضَعُ فِي مِيزَانِ الْمُؤْمِنِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ خُلُقٌ حَسَنٌ وَإِنَّ اللَّهَ يُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيءَ. رواه الترمذي و قال هذا حديث حسن صحيح. و روى ابوداؤد الفصل الاول.

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم شيان چي به د قيامت په ورځ د مؤمن د اعمالو په تله كي ايښودل كيږي په هغو كي تر ټولو دروند شى به ښه اخلاق

وي ، او الله تعالى فحش ويونكى ، پالتو ويونكى بد ايسي ، ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دئ

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۸، رقم: ۲۰۰۲، وابوداود ۵\۱۴۹، رقم: ۴۷۹۹.

**تشريح**: شيخ عبدالحق رحمه الله د بذي معنى په پالتو سره كړې ده مګر ملا علي قاري رحمه الله د دغه لفظ معنى په بداخلاقه سره كړې ده او ليكلي يې دي چې دغه معنى د موقع مناسب ده ، هغه دا هم ليكلي دي چې په حديث كې د اولې جملې په مقابله كې د دوهمه جمله راوړل سوې ده د هغې څخه دا معلوميږي چې د قيامت په ورځ به د اعمالو په ميزان كې بد اخلاق ډېر بې وزنه شي وي.

《۴۸۶۰》: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ الْمُؤْمِنَ لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ قَائِمِ اللَّيْلِ وَصَائِمِ النَّهَارِ. رواه ابوداؤد

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چې ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چې فرمايل يې : (پوره) مؤمن د خپلو ښه اخلاقو په وجه د شپې د عبادت كونكي او د ورځې د روژه نيونكي درجه تر لاسه كوي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۴۹، رقم: ۴۷۹۸.

**تشريح**: حضرت سهيل رحمه الله وايي: د ښه اخلاقو تر ټولو كمه درجه داده چې د خلكو له خوا رسيدونكى تكليف وزغمل سي، دبدلې اخيستلو څخه پرهېز وكړل سي او نه يوازي دا چې د ظالم ظلم معاف كړل سي بلكه د هغه په حق كې د مغفرت او بخښني دعاء وكړل سي او پر هغه رحم او شفقت وكړل سي .

《۴۸۶۱》: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ لِي رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اتَّقِ اللّٰهَ حَيْثُمَا كُنْتَ وَأَتْبِعْ السَّيِّئَةَ الْحَسَنَةَ تَمْحُهَا وَخَالِقِ النَّاسَ بِخُلُقٍ حَسَنٍ.

رواه احمد والترمذي والدارمي

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ ما ته وفرمايل : د الله جل جلاله څخه بيره كوه هر چيري چې يې، او د بدى څخه وروسته نيكي كوه ددې لپاره چې نيكي بدي ليري كړي ، او د خلكو سره په ښه اخلاقو معامله كوه . احمد، ترمذي او دارمي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱۵۳\۵، والترمذي ۳۱۲\۴، رقم: ۱۹۸۷، والدارمي ۴۱۵\۲، رقم: ۲۷۹۱.

**تشریح**: د الله ﷻ څخه وبېرېږه : مطلب دادی چي الله ﷻ کوم کارونه پر تا واجب کړي دي هغه پر ځای کړه او دهغه فرمانبرداري کوه او د کومو شیانو څخه چي یې منع کړې ده یعني دُ هر ډول بدی څخه ځان ساته، دې ته تقوا ویل کیږي، تقوا ددین بنیاد دی چي د هغه په ذریعه د ایقان او معرفت مراتب او درجې تر لاسه کیږي، د تقوا تر ټولو ادنی درجه داده چي د شرک څخه بېزاري اختیار کړل سي او تر ټولو اعلی درجه داده چي د الله ﷻ څخه ماسوا د بل چا څخه مخ واړول سي، ددغه دواړو درجو په منځ کي د تقوا نور مراتب دي چي په هغو کي ځینو ته پر ځینو غوره والی تر لاسه دی لکه ممنوعات پرېښودل یوه مرتبه ده، تر دې غوره مرتبه داده چي مکروهات هم پرېښودل سي، او تر دې هم غوره مرتبه داده چي کوم شیان مباح وي په هغو کي هغه شیان پرېښودل سي کوم چي غیر ضروري او بې ګټې وي.

ته چي هر ځای یې: مطلب دادی چي د الله ﷻ څخه بېرېدل یعني د الله ﷻ په احکامو باندي عمل کول د یو خاص وخت او خاص ځای سره موقوف کول نه دي پکار بلکه ته چي هر ځای یې که په سفر کي یې او که په حضر کي یې، که دنعمتونو په حالت کي یې او که د مصیبت او تکلیفو په حالت کي یې، غرض دا چي په هر ځای کي او په هر حالت کي یې او هغه وخت او هغه ځای سره متعلق کوم احکام چي وي په هغه کونکي اوسه ځکه چي د الله ﷻ په نزد ستا هیڅ حالت هم پټ نه دی او هغه هیڅ وخت ستا څخه غافل نه دی هغه چي څرنګه ستا په ظاهري حالت خبر دی همدارنګه ستا په باطني حالت هم خبر دی نو ستا لپاره ضروري دي چي د هغه احکام پر ځای کړې او د هغه د معصیت څخه پرهېز وکړې، نقل سوي دي چي یو وار حضرت داؤد طائي رحمة الله علیه د یو قبر سره تېرېدی چي الله ﷻ پر هغه په قبر کي دننه حالات منکشف کړل په دې توګه چي هغه واورېدل د قبر څخه دننه یو آواز راوځي چي په هغه کي مړی وایي اې پروردګاره! ما ستا لمونځونه نه دي ادا کړي؟ ما ستا زکوة نه دی ادا کړی؟ او ایا ما دا نه دي کړي، هغه مي نه دي کړي؟ یعني هغه چي په دنیا کي کوم نېک کارونه کړي وه هغه یې ټول یاد کړل، دهغه ددغه خبري په اورېدو سره ملائکو جواب ورکړ، هو، اې د خدای دښمنه! بېله شکه تا دغه ټول کارونه کړي دي مګر ایا دا حقیقت نه دی چي کله به ته یوازي وې نو هغه وخت به دي د الله ﷻ پر خوف ګناهو ته ترجیح ورکول او تا ددې خبري هیڅ لحاظ نه ساتی چي په دغه حالت کي هم ته د الله ﷻ په نظر کي یې.

که ستا څخه یو بدي وسي : مطلب دادی چي انسان په هر حال انسان دی، دا ضروري ده که

د هغه څخه يو ګناه نسي که د بشريت په تقاضا ستا څخه يو ګناه وسي نو د هغه څخه وروسته سمدستي نېک کار وکړه چي هغه نيکي د هغه ګناه اثرات ختم کړي ، پاته سوه دا خبره چي د نېک کار څخه څه مراد دی ، نو ددې څخه توبه يا مطلق يو نيکي مراد ده ، يا دا چي هغه نيکي مراد ده چي د هغه ګناه او بدی ضد وي ، طيبي رحمه الله ويلي دي: انسان بايد د هغه دنېک کار په ذريعه د بدی اثرات ختمولو سره هيڅ وخت غافل پاته نسي ، د هغه څخه چي کومه بدي سوې وي د هغه په بدله کي د هغه د جنس څخه يو نېک کار ضرور وکړي د مثال په توګه د شراب څښلو ګناه ځيني وسي نو د هغه په بدله کي دي حلال شيان د الله جل جلاله د رضا لپاره په خلکو وڅښي ، که يو وخت په تکبر کي اخته سوی وي نو تواضع او انکساري دي اختيار کړي او که چيري سروزيې اوريدلی وي او د هغه خلکو سره يې ناسته ولاړه کړې وي چي په سروز اخته وي نو د هغه په بدله کي دي د قرآن کريم تلاوت واوري او د ذکر او نصيحت په مجلس کي دي کښيني ، همدارنګه د بخل تدارک دی د الله په لاره کي د خرڅ په ذريعه وکړي .

دا چي فرمايل سوي دي چي هغه نيکي بدي له منځه وړي، ددې څخه مراد دادی چي الله جل جلاله د هغه نيکۍ په ذريعه يا خو د هغه بنده د زړه څخه د بدی اثرات ختموي يا د اعمالو ليکونکو ملائکو د کتاب څخه د هغه بدی محوه کوي او د غه محوه کول په هغه صورت کي کيږي کله چي د هغه بدی تعلق د حقوق العباد سره وي ، په دې توګه چي يو سړی د چا حق تلف کړي يا پر چا باندي ظلم وکړي نو د هغه د حق تلفی يا ظلم تدارک داسي کيږي چي د حق خوړونکي يا ظلم کونکي په عمل نامه کي چي کومي نيکۍ وي د هغه څخه د هغه په اندازه نيکۍ صاحب حق ته ورکول کيږي ، دا بېله خبره ده چي الله جل جلاله په خپل فضل او کرم سره د نور اجر او انعام په ذريعه صاحب حق خوشحاله کړي او د هغه سړي په معافولو يې راضي کړي .

نقل سوي دي چي يو بزرګ وفات سو ، څه وخت وروسته يو بل بزرګ هغه په خوب کي وليدی نو پوښتنه يې ځيني وکړه چي الله جل جلاله ستا سره څرنګه چلن وکړ، هغه جواب ورکړ، په دې کي شک نسته چي الله جل جلاله زه په خپل فضل او انعام سره ونازولم او زه يې و بخښلم مګر حساب او کتاب را سره خامخا وسو ، تر دې چي د هغه ورځۍ په باره کي هم زما څخه مؤاخذه وسوه چي زما روژه وه او د خپل يو دوست پر دوکان ناست وم کله چي د روژه مات وخت سو نو ما د غنمو د يوې ګونی څخه د غنمو يوه دانه راپورته کړه او د هغه خوړل مي وغوښتل چي ناڅاپه احساس را ته پيدا سو چي دغه غنم زما نه دی نو ما سمدستي هغه غنم پر هغه ځای وغورځوی ، او د هغه حساب هم را څخه واخيستل سو چي د هغه غنم ماتولو د تاوان په اندازه زما نيکۍ زما څخه

واخيستل سوي.

بيضاوي رحمة الله عليه ليكلي دي چي نيكى د كوچنيو گناهو كفاره كيږي او په كبائرو كي د هغه گناهو كفاره كيږي كومي چي پټي وي ځكه چي د الله جل جلاله دغه ارشاد (لنكفرن عنكم سياتكم) پر عموم باندي دلالت كوي او ذكر سوى حديث هم مطلق او عام دى، مگر كوم لوى گناهونه چي ظاهر سوي وي او د حاكم او قاضي په نزد ثابت سوي وي پر هغو حد يعني د شرعي سزا نفاذ ساقط سوى نه وي او نه هغه په توبې سره معافيږي.

﴿۴۸۶۲﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَنْ يَحْرُمُ عَلَى النَّارِ وَ بِمَنْ تَحْرُمُ النَّار عَلَيْهِ عَلَى كُلِّ هين لين قريب سهل. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث حسن غريب.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ايا زه تاسو ته ونه ښيم چي دوږخ پر چا حرام دى؟ پر هغه چا چي نرم مزاج، نرم طبع، نزديكت كونكى او نرم خويه وي. احمد او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن غريب دى.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۴۱۵، والترمذي ۴\۵۶۴، رقم: ۲۴۸۸.

**تشريح**: ايا زه درته وښيم ...الخ: دلته د مبالغې او تاكيد له موخي دواړه صورتونه يعني د هغه سړي پر اور باندي حرامېدل او د اور پر هغه سړي حرام كېدل ذكر سوي دي او د دواړو عبارتو خلاصه يوه ده يعني د هغه د دوږخ څخه خوندي كېدل ځكه په جواب كي د دوهم صورت پر بيان اكتفاء وسول، او په عامه توگه هم ويل كيږي چي د دوږخ اور پر فلاني سړي حرام دى.

﴿۴۸۶۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال الْمُؤْمِنُ غِرٌّ كَرِيمٌ وَالْفَاجِرُ خِبٌّ لَئِيمٌ. رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: مؤمن نيكي كونكى، تيروتونكى او بزرگ وي، او فاجر چالاک، بخيل او بد اخلاق وي، احمد، ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۳۹۴، وابوداود ۵\۱۴۴، رقم: ۴۷۹۰، والترمذي ۴\۳۰۳، رقم: ۱۹۶۴،

**د لغاتو حل**: الخِب: اى لخداع (چمباز)

**تشریح**: د غر معنی د دوکه خوړونکي سړي ده، همدارنګه په صراح وغیره کي د غر معنی د بې تجربې زلمي لیکل سوې ده او خب معنی د هغه سړي ده چي دوکه ورکونکی او چالاک وي.

د حدیث مطلب دادی چي نېک سړی طبعا مطیع او فرمانبردار کېدو په وجه نرم مزاجه، شریف النفس او ساده لوح وي ځکه هغه د هر دوکه ورکونکي سړي څخه دوکه خوړلای سي، هغه د خلکو په مکر او فریب خبر نه وي او نه د مکر او فریب د خبرو او دوکو تحقیق کوي، او ددې وجه دا نه ده چي هغه جاهل او ناپوه وي بلکه ددې تر ټولو لویه وجه د هغه د مزاج نرمي، حلم، عفو او ښه اخلاق وي.

ځینو حضراتو د حدیث مطلب داسي بیان کړی دی چي نېک سړی حلیم القلب او ساده لوح وي ځکه هغه د خلکو په اړه تل نېک ګمان لري، د چا په سینه کي چي کینه وي په هغه خبر نه يې چي د هغه نیتجه دا سي چي کوم ځوک د هغه په مخکي څه وایي هغه مني او دوکه خوري، یوه خبره دا هم ده چي د هغه په مخکي د آخرت معاملات او د نفس د اصلاح زیات اهمیت وي او دنیا معاملات د هغه په نظر کي ارزښت نه لري نو هغه د نفس اصلاح او د آخرت په کارو کي بوخت وي او د دنیا کارو ته زیاته توجه نه ورکوي ځکه نو که څه هم هغه په دنیاوي چارو کي دوکه خوري مګر د آخرت په معاملو کي هوښیار او کامل وي، د نېک مؤمن دغه حالت که څه هم دلته د تعریف په توګه بیان سوی دی مګر ددې سربېره رسول الله ﷺ د خپل دغه ارشاد: (لا یلدغ المؤمن من جحر واحد مرتین) په ذریعه خبرداري هم فرمایلي دی چي د مؤمن لپاره مناسب نه دي چي تل غفلت اختیار کړي، پرله پسې دوکه خوري او د هوښیارۍ طریقه بالکل ترک کړي او دا خبره مخکي ښودل سوې ده چي: لا یلدغ المؤمن...الخ، په ذریعه مؤمن ته د کومي هوښیارۍ او بیدارۍ تلقین سوی دی دهغه تعلق د دنیا او آخرت دواړو سره دی که څه هم ځینو حضراتو یوازي د اُخروي معاملاتو سره خاص کړی دی.

د نېک سړي پر خلاف د فاجر یعني منافق خصلت دا بیان سوی دی چي دوکه بازي او مکاري د هغه په فطرت کي داخل وي، فتنه او فساد خپرول د هغه کار وي او د هغه په نزد چشم پوشي یو بې معنی شی دی ځکه هغه ژر دوکه نه خوري مګر دا چي یو سړی تر هغه هم زیات مکار او دوکه ورکونکی وي او هغه ته په دوکه ورکولو کي کامیاب سي، بیا هم که چیري هغه په ناپوهي کي دوکه وخوري نو هغه نه زغمي بلکه دبدلې اخیستلو هڅه کوي.

**(۴۸۶۴)**: وَعَنْ مَكْحُوْلٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلْمُؤْمِنُوْنَ

هَيِّنُوْنَ لَيِّنُوْنَ كَالْجَمَلِ الْآنِفِ إِنْ قِيْدَ انْقَادَ وَإِنْ أُنِيخَ عَلَى صَخْرَةٍ اِسْتَنَاخَ.

رواه الترمذي مرسلا.

د حضرت مكحول رحمه الله څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مؤمن د هغه اوښ په ډول بردباره او نرم خويه وي چي د هغه په پزه كي مهار وي كه هغه راكش كړل سي نو ورسره روان سي او كه پر ډبره كښينول سي نو پر ډبره كښيني. ترمذي دا حديث مرسلا روايت كړی دئ.

**تخريج**: لم نجده عند الترمذي وری ابن ماجه ١\١٦، رقم: ٤٣.

**تشريح**: مطلب دا دی چي مؤمن طبعًا فرمانبردار وي، هغه د شريعت اتباع كوي، د الله ﷻ او د هغه د رسول احكامات څرنگه چي وي هم هغسي يې پر ځای كوي په هغه كي د خپلي خوا هيڅ دخول نه كوي او د هغه احكامو پر ځای راوړلو او د شريعت په اتباع كي چي كوم مشقت پېښيږي هغه په رضا او شوق سره زغمي. دا هم كېدای سي چي په دغه حديث كي د مسلمانانو هغه خاصيت بيانول مقصد وي چي په خپلو كي د يو بل اتباع او فرمانبرداري او د يو بل سره تواضع او انكساري اختيار كړي او د غرور او تكبر څخه ځان وساتي، په حقيقت كي دغه خصوصيت هم د احكام الهي په طاعت كي شامل دي.

## د خلكو سره اوسېدل

﴿۴۸۶۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عن النبي اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الْمُسْلِمُ الَّذِي يُخَالِطُ النَّاسَ وَيَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ أَفْضَلُ مِنَ الَّذِي لَا يُخَالِطُهُمْ وَلَا يَصْبِرُ عَلَى أَذَاهُمْ. رواه الترمذي وابن ماجة.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: مسلمان چي په خلكو كي اوسي او د هغوئ پر تكليفونو صبر كوي تر هغه مسلمان غوره دی چي په خلكو كي نه اوسيږي او د هغوئ پر تكليفونو صبر نه كوي. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۷۲، رقم: ۲۵۰۷، وابن ماجه ۲\۱۳۳۸، رقم: ۴۰۳۲.

**تشريح**: ددغه حديث څخه معلومه سوه چي د خلكو سره راشه درشه كول تر يوازيوالي غوره دي، زيات تابعين په دغه عامل وه او دغه شی د امر بالمعروف او نهي عن المنكر د خپرولو،

يو د بله مرستي او ددين د اشاعت په اعتبار هم زيات كامل او زيات افضل دى ، پاته سوه دا خبره چي د يوازيوالي په اړه هم حديثونه منقول دي ، د يوازيوالي غوره كېدل ثابت دي نو په دې اړه دا حقيقت په ذهن كي كښېښنول پكار دي چي ددغه اختلاف تعلق د زمان او مكان او د خلكو د احوالو سره دى يعني په ځينو وختو كي او په ځينو ځايو كي د حالاتو تقاضا داده چي د هغوئ سره تعلق وساتل سي ، په داسي صورت كي د خلكو سره يو ځاى كېدل تر يوازيوالي افضل دي ، بيا هم په دې اړه چي د كومي درميانه لاري اختيارولو هدايت دى هغه دادى چي په ذهني توګه ضروري حالاتو څخه پرته په نورو وختو كي عوام الناس ددې څخه بېل اوسي مګر د خواصو يعني صالحينو او نيكانو سره دي همېشه تعلق وساتل سي او دهغوئ څخه دي يوازيوالي نه اختيارېږي ، مګر عوام الناس ته يوازيوالى نه اختيارول په هغه صورت كي ګټور دى كله چي باعث عمل علم يې ترلاسه كړى وى او دزهد او توكل هغه درجه يې په برخه سوې وي چي هلته په رسېدو سره انسان د مخلوق څخه بالكل بې نيازه كيږي او هيڅ ډول طمع او خواهش نه لري ځكه ځينو عارفينو ويلي دي چي يوازيوالي بېله علمه ذلت او رسوايي ده او بېله زهد او قناعت علت او خرابي ده ، نو كامل صوفيان لكه نقشبنديه او شاذليه پر دغه طريقه عامل وه چي هغوئ به د خلكو څخه بېل هم اوسېدل او بيا به يې د هغوئ سره تعلق هم ساتى .

## د غصې په واک كي كولو فضيلت

﴿۴۸۶۶﴾ : وَعَنْ سَهْلِ بْنِ مُعَاذٍ عَنْ أَبِيهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

حضرت سهل بن معاذ ﷛ د خپل پلار څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَنْ كَظَمَ غَيْظًا وَهُوَ يَقْدِرُ عَلَى أَنْ يُنَفِّذَهُ دَعَاهُ اللّٰهُ عَلَى رُءُوسِ الْخَلَائِقِ يَوْمَ

څوك چي پر خپله غصه واك تر لاسه كړي په داسي حال كي چي هغه په خپل غصه سره خپل خواهش پوره كولاى سي نو

الْقِيَامَةِ حَتَّى يُخَيِّرَهُ فِي أَيِّ الْحُورِ شَاءَ. رواه الترمذي وابوداؤد وقال الترمذي

د قيامت په ورځ به الله تعالى هغه د مخلوق په مخكي را وغواړي او كومه حوره چي د هغه خوښه وي د هغه د خوښولو اختيار به وركړي ،. ترمذي ،ابوداؤد ، او ترمذي ويلي دي دا حديث

هذا حديث غريب ، وفي رواية لابي داؤد عن سويد بن وهب عن رجل من

غریب دی، او ابوداؤد په یو بل روایت کي چي د سوید بن وهب په ذریعه او هغه د نبي کریم ﷺ

ابناء اصحاب النبي صلى الله عليه وسلم عن ابيه قال ملا الله قلبه امنا و ايمانا و ذكر حديث سويد من ترك لبس ثوب جمال في كتاب اللباس.

د یو صحابي د زوی څخه دا الفاظ نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی د هغه سړي زړه چي غصه په واک کي کړي د امن او ایمان څخه ډک کړي، د سوید حدیث: من ترک لبس ثوب جمال، په کتاب اللباس کي بیان سوی دی.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۱۳۷، رقم: ۴۷۷۷، والترمذي ۴\۳۲۶، رقم: ۲۰۲۱.

**تشریح**: الله ﷻ به هغه د مخلوق په مخکي را وغواړي، مطلب دادی چي الله ﷻ به د قیامت په ورځ د ټول مخلوق په منځ کي هغه سړي ته یو ښه شهرت ورکړي د هغه تعریف او توصیف به وکړي او پر هغه به د فخر اظهار وکړي او د هغه په اړه به اعلان وکړي چي دا هغه سړی دی چي په ده کي دومره لویه ښېګڼه وه.

پر غصې باندي د واک تر لاسه کولو صفت ته د دومره لوړ مقام ورکولو وجه داده چي غصه په اصل کي د نفس اماره د کیفیت نوم دی او چا چي خپل غصه وځپل هغه ګویا خپل نفس ووژی ځکه پر غصه باندي د واک تر لاسه کونکو تعریف الله ﷻ هم په دغه الفاظو کي فرمایلی دی چي: (والكاظمين الغيظ والعافين عن الناس) او کوم څوک چي خپل نفس د هغه خواهش څخه منع کړي د هغه آخري ځای جنت دی او د هغه انعام حور عین دي، څرګنده دي وي چي دومره عظیم اجر محض پر غصې ځپنلو باندي تر لاسه کیږي نو دهغه سړي د مقام او مرتبې به څه اندازه وي چي محض پر غصې ځپنلو باندي اکتفاء ونه کړي بلکه د هغه سړي سره د عفو او احسان چلن هم وکړي، امام ثوري رحمه الله فرمایي: اصل احسان دادی چي ته د هغه سړي سره احسان وکړې کوم چي ستا سره بدي وکړي ځکه چي کوم چا ستا سره احسان کړی دی که چیري ته پر هغه احسان وکړې نو هغه ستا احسان نه دی بلکه بدله ورکول دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د حیاء تعریف

﴿۴۸۶۷﴾: عَنْ زَيْدِ بْنِ طَلْحَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّ

لِكُلِّ دِينٍ خُلُقاً وَخُلُقُ الْإِسْلَامِ الْحَيَاءُ. رواه مالك مرسلا ورواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان عن انس وابن عباس.

د حضرت زيد بن طلحة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په هر دين او مذهب کي يو اخلاق وي او په دين د اسلام کي هغه اخلاق حياء ده ، مالک مرسلا روايت کړی دئ او ابن ماجه او بيهقي د انس او ابن عباس څخه روايت کړی دئ.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹۰۵، رقم: ۹.

**تشريح**: دلته د حياء څخه په هغه شي کي شرم او حياء کول مراد دي چي په هغه کي حياء کول مشروع دي، په کومو شيانو کي چي د حياء کولو اجازه نسته لکه تعليم و تدريس ، امر بالمعروف او نهي عن المنکر ، د حق د ادا کولو حکم ورکول او شاهدي ورکول ،نو په دغه شيانو کي شرم د حياء کولو کي هيڅ فضيلت نسته.

د حديث مفهوم دا معلوميږي چي د هر دين د خلکو يو وصف او خصلت وي او د مسلمانانو طبعي وصف او خصلت حياء گرځول سوې ده ، سره ددې چي حياء هم د هغه اوصافو او خصائلو څخه ده چي د ټولو دينو او مذهبو په خلکو کي په مشترکه توگه تر لاسه کيږي مگر دغه وصف او حياء په خاصه توگه پر مسلمان باندي غالب کړل سوې ده او د نورو مذهبو په خلکو کي دغه جوهر ډېر کم اېښودل سوی دی او ددې وجه داده چي حياء نه يوازي دا چي په طبعي خاصيتونو او خصلتونو کي تر ټولو اعلی درجه لري بلکه دا هغه جوهر دی چي په دې سره د انسان اخلاق او کردار پوره کيږي او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي: بعثت لاتمم مکارم الاخلاق، زه د ښه اخلاقو د پوره کولو لپاره دنيا ته را استول سوی يم، ځکه د دغه جوهر په ذريعه د ملت اسلامي اخلاق او اوصاف د کمال درجې ته رسول سوي دي او حقيقت دا دی چي يوازي په حياء کي منحصره نه ده بلکه زموږ څخه په مخکي امتونو کي به ټول اخلاق او خصائل ناقص وه تر دې چي نبي کريم ﷺ دنيا ته تشريف راوړ او د رسول الله ﷺ په برکت سره په ملت اسلامي کي ټول اخلاق او خصائل کامل او مکمل کړل سول ، ځکه د ملت اسلامي دغه خاصيت الله ﷻ په دغه الفاظو کي بيان کړی دی : (کنتم خير امة اخرجت للناس) تاسو د نړيوالو لپاره تر ټولو غوره امت پيدا کړل سوي ياست.

ابن ماجه او بيهقي ذکر سوی روايت د حضرت انس او حضرت ابن عباس رضي الله عنهما

څخه مرفوع نقل کړی دی لکه څرنګه چي د ظاهري اسلوبو څخه دا ګمان کيدای سي بلکه مرفوعا د رسول الله ﷺ د ارشاد په توګه نقل کړی دی او د ذکر سوي عبارت څخه په ظاهره دا معلوميږي چي په دغه دواړو يعني ابن ماجه او بيهقي کي هر يوه ددغه دواړو صحابه کرامو څخه دا روايت نقل کړی دی ، او دا هم کيدای سي چي په ذکر سوي عبارت کي د دواړو ذکر على الترتيب وي يعني ابن ماجه دغه روايت د حضرت انس رضي الله عنه څخه او بيهقي د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی مګر په جامع صغير کي دغه حديث د ابن ماجه په سند سره په روايت د حضرت انس او حضرت ابن عباس نقل سوی دی ، ددې څخه معلوميږي چي همدارنګه بيهقي هم دغه روايت د دواړو صحابه کرامو څخه نقل کړی دی .

## حياء او ايمان

﴿۴۸۶۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ الْحَيَاءَ وَالْإِيمَانَ قُرَنَاءُ جَمِيعًا فَإِذَا رُفِعَ أَحَدُهُمَا رُفِعَ الْآخَرُ . وفي رواية ابن عباس فإذا سلب أحدهما تبعه الآخر . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : حياء او ايمان يو ځای اينبودل سوي دي يعني دا د يو بل سره تړلي دي په دوئ کي چي يو پورته کړل سي نو بل هم پورته کيږي ، او دابن عباس په يوه روايت کي داسي دي چي يو سلب کړل سي نو دويم هم ولاړ سي . بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ١٦ \ ١٤٠، رقم: ٧٧٢٧.

**تشريح**: لفظ د قُرَناء د قرينې جمع ده ، په دې اعتبار سره دغه لفظ د هغه خلکو دليل دی چي وايي چي د اقل جمع اطلاق پر دوو باندي هم کيږي ، په ځينو نسخو کي دغه لفظ د ماضي مجهول تثنيه په صيغه سره منقول دی .

## د خوش خلقۍ اهميت

﴿۴۸۶۹﴾: وَعَنْ مُعَاذٍ قَالَ كَانَ آخِرُ مَا وَصَّانِي بِهِ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حِيْنَ وَضَعْتُ رِجْلِيْ فِي الْغَرْزِ أَنْ قَالَ يَا مُعَاذُ أَحْسِنْ خُلُقَكَ لِلنَّاسِ .

رواه مالك.

د حضرت معاذ رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله زه یمن ته تللی وم او پر آس سپریدو لپاره مي خپله پښه پر رکاب کښېښودل نو رسول الله ﷺ را ته آخري نصیحت وفرمایه چي اې. معاذه! د خلکو سره ښه خوی (اخلاق) کوه، مالک

**تخریج**: موطا الامام مالک ۲\۹۰۲، رقم: ۱.

**د لغاتو حل**: الغرز: ای موضع رکاب من رحل البغیر کالرکاب للسرج.

**تشریح**: رسول الله ﷺ په خپل ژوند مبارک کي حضرت معاذ رضی الله عنه د یمن قاضي جوړ کړی وو، کله چي حضرت معاذ رضی الله عنه د خپل دندي تر سره کولو لپاره یمن ته روانېدی نو هغه وخت رسول الله ﷺ دغه الفاظ فرمایلي وه چي اې معاذ! کیدای سي ته ما بیا ونه وینې، نو د معاذ رضی الله عنه ته ددې څخه وروسته د رسول الله ﷺ زیارت په برخه نسو، هغه په یمن کي وو چي رسول الله ﷺ له دنیا څخه تشریف یوور، په هر حال حضرت معاذ رضی الله عنه په ذکر سوي روایت کي د رسول الله ﷺ د وصیت ذکر کړی دی هغه په دغه موقع کي د هغه لپاره د رسول الله ﷺ اخري وصیت وو.

سیوطي رحمة الله علیه وایي: دلته د خلکو څخه مراد هغه خلک دي کوم چي د ښه اخلاقو او نرمۍ مستحق وي، او کوم چي د کافرانو، فاسقانو او ظالمانو تعلق دی نو هغوئ د دغه دائرې څخه وتلي دي او د هغوئ سره د سختۍ ظاهرول په ښه اخلاقو کي داخل دي ځکه چي نه یوازي د هغوئ روزنه او تهذیب پر سختۍ باندي منحصر دي بلکه د هغوئ سره اختیارونکی د دغه رویې سره د نورو خلکو د حالاتو غوره والی هم تړلی دی، ددې څخه معلومه سوه چي د سیوطي رحمة الله علیه په نزد په دغه حدیث کي د ښه اخلاقو څخه مراد نرمي او مهرباني او د عفو او بخښني رویه اختیارول دي.

﴿۴۸۷۰﴾: وَعَنْ مَالِكٍ بَلَغَهُ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بُعِثْتُ لِأُتَمِّمَ حُسْنَ الْأَخْلَاقِ. رواه الموطأ. ورواه أحمد عن أبي هريرة.

د حضرت مالک رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زه د ښو اخلاقو د پوره کولو لپاره را استول سوی یم. موطا او احمد.

**تخریج**: موطا الامام مالک ۲\۹۰۴، رقم: ۸.

## د رسول ﷺ حُسن او اخلاق

﴿۴۸۷۱﴾: وَعَنْ جَعْفَرِ بْنِ مُحَمَّدٍ عَنْ أَبِيْهِ قَالَ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَظَرَ فِي الْمِرْآةِ قَالَ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِيْ حَسَّنَ خَلْقِيْ وَخُلُقِيْ وَزَانَ مِنِّيْ مَا شَانَ مِنْ غَيْرِيْ. رواه البيهقي في شعب الإيمان مرسلا.

حضرت جعفر بن محمد رحمه الله د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ به كله په هنداره كي وكتل نو فرمايل به يې: ټول تعريفونه الله ﷻ لره دي هغه الله تعالى چي زما پيدائش يې ښه كړى دى زما اخلاق يې ښه جوړ كړي دي او په ما كي يې هغه شيان سم كړي دي چي زما په پرته كي عيب دار دي.، بيهقي مرسلا

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۱۱۱\۴، رقم: ۴۴۵۹.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مقصد دادى چي څرنګه د ځينو كسانو په بدني تخليق كي يو عيب او نقصان وي، د مثال په توګه يو ګوك د لاس، پښې يا ستر ګي څخه محروم وي، يا د يو چا پښه كږه وي يا يو بل اندام يې ناقص وي، همدارنګه الله ﷻ په ما كي هيڅ عيب او نقصان نه دى اېښى بلكه زه يې د ټولو عيبونو او نقصانو څخه خوندي او سالم وساتلم، د ملا علي قاري رحمه الله د وضاحت څخه دا معلوميږي چي نقصان او عيب عام دى دده تعلق كه د بدني تخليق او زېږېدني سره وي يا د اخلاقو او كردار سره وي،

په هر حال دغه حديث دده خبري څرګند دليل دى چي د هر انسان په مقابله كي د رسول الله ﷺ سيرت او صورت ډېر لوړ او ښه وو او څرنګه چي طيبي رحمه الله ويلي دي چي ذكر سوى حديث د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد: بعثت لاتمم حسن الاخلاق، يعني زه د ښه اخلاقو د پوره والي لپاره را استول سوى يم، وضاحت هم دى، د رسول الله ﷺ خپل حسن صورت او حسن سيرت باندي د الله ﷻ حمد او د هغه شكر ادا كول، د حضرت داؤد عليه السلام او حضرت سليمان عليه السلام د هغه حمد او شكر په ډول دى چي په قرآن كريم كي الله ﷻ داسي فرمايلي دي:

(وَلَقَدْ آتَيْنَا دَاوُودَ وَسُلَيْمَانَ عِلْمًا وَقَالاَ الْحَمْدُ لِلَّهِ الَّذِي فَضَّلَنَا عَلَى كَثِيرٍ مِّنْ عِبَادِهِ الْمُؤْمِنِينَ ...)

او بېله شكه موږ داؤد او سليمان ته علم وركړ او هغه دواړو وويل ټول تعريفونه هغه الله لره دي چي هغه موږ ته پر خپلو مؤمنو بندګانو باندي فضيلت راكړ.

د دغه حديث ځخه دا هم معلومه سوه چي په هنداره کي کتل مستحب دي او پر خپل ښه صورت او ښه سيرت باندي د الله ﷻ ثناء کول هم مستحب دي ځکه دغه دواړه نعمتونه د الله تعالى له خوا ورکول کيږي نو پر دې باندي د الله تعالى شکر ادا کول پکار دي، او پاته سوه دا خبره چي ظاهري حسن او ښکلا يو داسي شی دی چي هغه په هنداره لېدل کيدلای سي نو له دې امله په هنداره کي کتل او پر هغه شکر ادا کول خو په پوهه کي راځي مگر د هغه سره د حسن سيرت يا حسن خلق ذکر په پوهه کي نه راځي ځکه چي هغه يو پټ شی دی چي د هغه په هنداره کي لېدل ممکن نه دي ، ددې په جواب کي دا خبره کېدلای سي چي بېله شکه حسن سيرت يو معلومېدونکی شی نه دی مگر د انسان ظاهري حال په هر حال د هغه د باطن ترجماني کوي او د يو بل چا په اړه ښايي دا خبره صحيح نه وي مگر پر رسول الله ﷺ باندي دا خبره خامخا صادقيږي چي حسن صورت او حسن سيرت يو داسي څرګند عنوان دی چي د هغه په لېدو سره د باطن د احوالو ادراک کيدای سي نو په دغه مناسبت سره رسول الله ﷺ په حسن صورت سره د حسن سيرت ذکر هم وفرمايه، او که چيري دا سوال پيدا سي چي ايا د رسول الله ﷺ څخه پرته نورو خلکو ته هم دا حق رسيږي چي هغوئ د رسول الله ﷺ په پيروي کي په هنداره لېدو سره په ذکر سوې توګه حمد او ثناء وکړي يا داسي حمد او ثناء کول يوازي د رسول الله ﷺ سره خاص وو، او نور خلک دي پر هغه دعاء ويلو اکتفاء وکړي کوم چي په راتلونکي حديث کي نقل سوې ده، ددې جواب دادی چي په دغه حديث کي د حمد او ثناء او شکر کوم الفاظ چي ذکر سوي دي هغه هر مؤمن ويلای سي ځکه چي انسان په دې اعتبار چي هغه په ښه صورت سره پيدا سوی دی او هغه صاحب ايمان دی بېله شکه د الله تعالى د مخلوق په مال، دين ، اخلاقو او اوصافو سره مزين وي بيا هم ځيني حضرات وايي چي رسول الله ﷺ د حمد او ثناء ذکر سوي الفاظ د خپل ذات په اړه فرمايلي وه او څرګنده ده چي د کوم حسن صورت او حسن سيرت وصف چي په کمال او نهايت سره د رسول الله ﷺ په ذات کي وو هغه په بل چا کي نسي کېدای ځکه نو د بل چا لپاره دغه الفاظ استعمالول مناسب نه دي ، کېدای سي د امت د ځينو افرادو له خوا داسي الفاظو استعمالولو ته جائز ونه ويل سي مگر د امت لپاره غوره داده چي هغه دعاء اختيار کړي کوم چي په راتلونکي حديث کي نقل سوې ده .

## د ښه اخلاقو دعاء

﴿۴۸۶۲﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

اَللّٰهُمَّ حَسَّنْتَ خَلْقِيْ فَاحسنْ خُلُقِيْ . رواه أحمد

د حضرت عائشې ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به فرمايل : اې الله ﷻ ! تا زما پيدائش په ښه ډول وکړ زما اخلاق هم ښه کړه . احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ٦\٦٧.

**تشريح**: دغه دعاء يا خو رسول الله ﷺ په مطلق يو وخت کي کول يا په هنداره کي د خپل صورت په لېدو سره به يې کول ، لکه څرنګه چي جزري په حصن حصين کي صراحت کړی دی او د اول حديث مطابق دا زياته مناسبه ده او د رسول الله ﷺ دغه دعاء د امت د تعليم او تلقين دپاره وه چي دامت خلک په خپل حق کي داسي دعاء وغواړي يا ددغه دعاء تعلق خپله د رسول الله ﷺ د ذات سره وو په دغه صورت کي به د رسول الله ﷺ مراد دغه طلب او درخواست وو چي خدايه! خپل دين کامل او خپل نعمتونه پوره کړې ، ددغه مراد قرينه داده چي د رسول الله ﷺ د اخلاقو مهذب کولو ذريعه قرآن کريم وو لکه څرنګه چي بي بي عائشې ﷺ فرمايلي دي چي د رسول الله ﷺ اخلاق قرآن وو ، نو د رسول الله ﷺ د خپل اخلاقو ښه کېدو دعاء کول او حقيقت قرآن نازلولو او دهغه د نزول پوره کولو طلب او خواست وو .

### غوره خلک څوک دي ؟

﴿۴۸۸۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا أُنَبِّئُكُمْ بِخيارِكُمْ قَالُوا بلى، قَالَ خِيَارُكُمْ أَطْوَلُكُمْ أَعْمَارًا وَأَحْسَنُكُمْ أَخْلاَقًا .رواه احمد.

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا زه تاسو ته ونه ښيم چي په تاسو کي غوره کوم خلک دي ؟ صحابه کرامو وويل: ولي نه، رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي غوره هغه خلک دي چي د هغوئ عمرونه اوږده وي او د هغوئ ښه اخلاق وي . احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۴۰۳.

**تشريح**: څرګنده ده چي د کومو خلکو اخلاق او طريقې پاکي او ښه وي او د هغوئ عمر زيات وي نو هغوئ به نيکي او عبادت ډېر زيات کوي چي د هغه په نتيجه کي به هغوئ ته فضائل او کمالات هم زيات تر لاسه کيږي ، ددې څخه معلومه سوه چي د مسلمان عمر اوږدېدل د هغه په

حق کي ډېر مبارک دي او په حقیقت کي د اوږده عمر سړی هغه دی کوم چي په ښکو کارو کي بوخت وي.

﴿۴۸۷۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ إِيمَانًا أَحْسَنُهُمْ خُلُقًا. رواه ابوداؤد والدارمي.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په مؤمنانو کي پوره ايمان والا هغه خلک دي چي د هغوئ اخلاق ښه وي. ابوداؤد او دارمي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۶۰، رقم: ۴۶۸۲، والدرامي ۲\۴۱۵، رقم: ۲۷۹۲.

## دري حق خبري

﴿۴۸۷۵﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَجُلًا شَتَمَ أَبَا بَكْرٍ وَالنَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ جَالِسٌ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي نبي کريم ﷺ ناست وو چي يو سړي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه ته بد او رد ويل پيل کړل،

يَتَعَجَّبُ وَيَتَبَسَّمُ فَلَمَّا أَكْثَرَ رَدَّ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ فَغَضِبَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ

رسول الله ﷺ د هغه بد او رد اوريدل او تعجب يې کوی او تبسم يې کوی، هر کله چي هغه سړي زيات بد او رد وويل نو ابوبکر صديق رضي الله عنه د هغه د ځينو بدو جواب ورکړ، پر دې خبره رسول الله

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَامَ فَلَحِقَهُ أَبُو بَكْرٍ وَ قَالَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ كَانَ يَشْتُمُنِي وَأَنْتَ

ﷺ ته غصه ورغلل نو ولاړ سو، ابوبکر صديق رضي الله عنه هم ورپسې ورغلی او وه يې ويل: اې د الله رسوله! هغه سړي ما ته بد او رد ويل او ته

جَالِسٌ فَلَمَّا رَدَدْتُ عَلَيْهِ بَعْضَ قَوْلِهِ غَضِبْتَ وَقُمْتَ قَالَ كَانَ مَعَكَ مَلَكٌ يَرُدُّ

ناست وې مګر کله چي ما هغه ته د ځينو خبرو جواب ورکړ نو تاسو په غصه سواست او ولاړ سواست، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل (هغه وخت) ستا سره يوه ملائکه وه چي هغه ته يې

عليه فَلَمَّا رَدَدْتَ عَلَيْهِ وَقَعَ الشَّيْطَانُ ثُمَّ قَالَ يَا أَبَا بَكْرٍ ثَلَاثٌ كُلُّهُنَّ حَقٌّ مَا

جواب ورکوئ کله چي تا هغه ته جواب ورکول شروع کړل نو شیطان په منځ کي راولویدی ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمایل : اې ابوبکر ! درې خبري دي او ټولي حق دي

مِنْ عَبْدٍ ظُلِمَ بِمَظْلَمَةٍ فَيُغْضِي عَنْهَا لِلّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ إِلَّا أَعَزَّ اللّٰهُ بِهَا نَصْرَهُ وَمَا

(۱) یو خو دا چي پر کوم بنده ظلم وکړل سي او هغه صرف د الله تعالی د رضا لپاره پټه خوله پاته سي نو الله تعالی د هغه ډیره مرسته کوي

فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ عَطِيَّةٍ يُرِيدُ بِهَا صِلَةً إِلَّا زَادَ اللّٰهُ بِهَا كَثْرَةً وَمَا فَتَحَ رَجُلٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ يُرِيدُ بِهَا كَثْرَةً إِلَّا زَادَ اللّٰهُ بِهَا قِلَّةً. رواه احمد.

(۲) دویم دا چي څوک د خپل طرفه د ورکړي دروازه خلاصه کړي او د هغه په ذریعه د خپلو خپلوانو او مسکینانو سره ښه چلن (بخشش)کوي نو الله تعالی د هغه په سبب د هغه مال زیاتوي ،(۳): دریم دا چي چا د سوال دروازه خلاصه کړه (فقریې پیل کړی) او په دې ذریعه هغه خپل دولت زیاتول وغوښتل نو الله تعالی ددغه سوال کولو په سبب د هغه مال نور هم کموي . احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴۳۶\۲.

**د لغاتو حل**: عطية: ای صدقة. (خيرات)

**تشريح**: حیرانېدی او تبسم یې کوی: دلته د حیرت تعلق یا خو د هغه سړي د بدویني او په هغه کي د شرم او حجاب د کمۍ په وجه وو یا د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه د صبر او تحمل او دهغه د رویې په وجه وو ، او د تبسم تعلق د هغه فرق په وجه وو چي رسول الله ﷺ د هغه دواړو په منځ کي لیدی ، ددې څخه پرته د رسول الله ﷺ نظر د هغو دواړو په حق کي پر پېښېدونکي نتیجې باندي هم وو چي هغه سړی د خپل بد کلامۍ په وجه د عذاب وړ لیدی او ابوبکر صدیق رضی الله عنه د هغه د صبر او تحمل په سبب د رحمت الهي د نزول وه .

حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه هم د هغه د ځینو خبرو جواب ورکړ ، یعني هغه په دغه ځای کي د جواب په ورکولو سره پر رخصت او اجازه باندي عمل وکړ چي د یو عام سړي لپاره مناسب دي او هغه عزیمت یې ترک کړ چي د خاصو خلکو شان وي ، لکه څرنګه چي الله تعالی فرمایي : (جزاء سيئة سيئة مثلها فمن عفا واصلح فاجره علی الله) ، د بدۍ بدله د بدۍ مطابق اخیستل کیږي مګر کوم څوک چي معافي وکړي او اصلاح وکړي نو د هغه اجر پر الله جل جلاله دی ، نو

حضرت ابوبکر صدیق ﷛ که څه هم د هغه سړي د ځينو خبرو په بدله اخيستلو سره او پر ځينو خبرو باندي په صبر کولو سره د دواړو اړخونو رعايت وکړ مګر د نبوت په نظر کي د هغه لپاره هغه مرتبه مطلوب ده کوم چي د هغه د شان صديقت مطابق وه ځکه هغه لره د هغه سړي د ځينو خبرو په جواب ورکولو سره جزوي بدله اخيستل هم رسول الله ﷺ خوښه نه کړل.

او پر رسول الله ﷺ هغه کيفيت خپور سو کوم چي پر ناراضه سړي باندي خپرېږي، نو رسول الله ﷺ د هغه مجلس څخه ولاړ سو چي يوې خوا ته د حضرت ابوبکر ﷛ په رويه د ناخوښۍ اظهار هم وسي او بلي خوا ته د الله تعالى په دغه ارشاد هم عمل وسي چي (واذا سمعوا اللغو اعرضوا عنه)، يعني که چيري هغوئ يو پالتو خبره واوري نو د هغه څخه مخ اړوي.

شيطان په مينځ کي راغلی: يعني رسول الله ﷺ دا څرګنده کړه چي کله تا خپله جواب ورکول پېل کړل نو بيا شيطان ته د دخل کولو موقع تر لاسه سوه او هغه ملائکه چي ستا له خوا يې جواب ورکوی آسمان ته ولاړه او ته په دې پوهيږي چي کله په يوه معامله کي شيطان راسي نو بيا څه نه کيږي، پر بې حيايي او بدۍ باندي د اماده کولو څخه پرته هغه نور څه کولای سي، نو زما سره بېره پيدا سوه چي د شيطان جال پر تا ونه لويږي او ته خپل مخالف څخه د بدلې په اخيستلو کي د حد څخه زيا توب ونه کړې او د هغه نتيجه دا سي چي ته چي مظلوم وې د ظالم پر ځای سې، حال دا چي پکار داده چي ته د الله ﷻ مظلوم بنده جوړ سې او ظالم بنده جوړ نه سې.

## نرمي او مهرباني

﴿۴۸۷۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ يُرِيْدُ اللّٰهُ بِأَهْلِ بَيْتٍ رِفْقًا إِلاَّ نَفَعَهُمْ وَلاَ يُحْرِمُهُمْ إِيَّاهُ إِلاَّ ضَرَّهُمْ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د کومي کورنۍ لپاره چي الله تعالى نرمي خوښه کړي نو د دغه په ذريعه ورته ګټه رسوي او کومه کورنۍ چي د نرمۍ څخه محرومه کړي نو هغه ته د دې په سبب ضرر رسوي. بيهقي په شعب الايمان کي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵/ ۲۵۲، رقم: ۶۵۵۷.

===========

# بَابُ الْغَضَبِ وَالْكِبْرِ

## (د غصې او تکبر بیان)

د غضب معنی د غصې کولو ده، او په حقیقت کي غضب یا غصه هغه طبعي کیفیت او حالت ته وایي چي د طبیعت او مزاج خلاف پیښېدونکې خبره باندي نفس را وپارېږي ، او پر بدله اخیستلو باندي اماده سي او ناخوښه شیان او مغضوب علیه ته میلان کوي چي د هغه څخه بدله واخیستل سي او د طبیعت خلاف راتلونکی صورت حال لیري کړل سي په دې وجه د غصې په حالت کي مخ سور سي او رګونه و پړسېږي همدارنګه د خوشحالۍ په حالت کي هم روح دباندي خوا ته میلان کوي چي د هغه شی مخته راسي کوم چي د خوشحالۍ باعث جوړ سوی وي نو د غصې یا زیاتوب په وخت کي د هلاکت خوف ځکه وي چي پر داسي موقع باندي روح په پوره توګه بالکل راوتل غواړي ، ددې پر خلاف د غم یا خوف په حالت کي روح دننه ځي چي د هغه په وجه مخ ژړ سي او بدن کمزوری سي په دغه حالت کي هم د هلاکت بېره وي ځکه چي روح پوره دننه وي او مطلق یخ سي ددې څخه دا خبره څرګندېږي چي الله تعالی ته د غضب او غصې نسبت کول لکه څرنګه چي په یو ځای کي فرمایل سوي دي : (من لم یسال الله یغضب علیه) یعني کوم څوک چي د الله تعالی په وړاندي سوال نه کوي نو الله تعالی پر هغه په غصه کېږي، دغه ویل مجاز دی ، د الله تعالی د غصه کېدو مطلب دادی چي د هغه بنده څخه ناراض کېږي او د هغه سره هغه معامله کوي لکه څرنګه چي یې یو پاچا د غصې په وخت کي د خپل رعیت سره کوي ، یعني سزا ورکوي او عذاب پر نازلوي ، د غضب ضد حلم دی او حلم په اصل کي د نفس او طبیعت د هغه سکون او استقلال نوم دی چي غوره شی ته نژدې د رسېدو او دغه مقصد او مراد د مخته ایښودو په وخت کي هم انسان نه بې قراره کېږي لکه څرنګه چي د وفد عبدالقیس سردار حضرت منذر رضي الله عنه په اړه دا روایت نقل سوی دی چي کله هغه د خپل وفد سره مدینې منورې ته راورسېدی نو د رسول الله ﷺ په لیدو سره یې د هغه اضطراب او بې قرارۍ اظهار ونه کړ لکه څرنګه چي د هغه د قوم نورو خلکو ظاهر کړه او ځکه نو رسول الله ﷺ هغه د حلم او وقار په ښېګڼو سره موصوف وګرځوی .

څرګنده دي وي چي د غضب او غصې هیڅ داسي خصلت نسته چي هغه ته بذات خود بد وویل سي بلکه په هغه کي خرابي هغه وخت راځي کله چي د هغه په وجه د حق لاره پرېښودل سي

او د شریعت د احکام پابندي ترک کړي نو کوم غضب او غصه چې د حق لپاره وي او دحق په لاره کي هغه ته محمود او مستحسن ویل کیږي، همدا وجه ده چې د طریقت او سلوک په لاره کي د ریاضت او مجاهدې مقصد مطلق غضب او غصه ختمول نه وي بلکه هغه په واک کي ساتل او دحق تابع کول وي، او هسي هم قدرت ، غضب یو داسي قوت جوړ کړی دی چې د بدني نظام برقرار ساتلو ذریعه او د بقاء حیات سبب دی ځکه چې دغه قوت غضبیه وي چې مضرات او موذیات څخه یې ساتي ، نباتات او جمادات نیست و نابود کولو باندي هر څوک ځکه قادر کیږي چې حق تعالی دغه دواړه د قوت غضبیه څخه محروم کړي دي ، ددې پر خلاف حکمت کامله الهي په حیوانانو کي نه یوازي دا چې قوت غضبیه پیدا کړی دی بلکه د هغوئ ځیني بدني برخي یې د داسي آلاتو او وسائلو په توګه جوړ کړه چې په هغه سره تاوان او تکلیف رسونکو څخه د خپل ځانه دفاع وکړل سي لکه ښکر ، غاښ او داسي نور، په انسان کي که څه هم دغه شیان نسته مګر هغه ته یې هغه عقل او تدبیر ښودلی دی چې د هغه په ذریعه هغه د ضرورت او حالت مطابق داسي آلات او سامان جوړولای سي چې هغه د تاوان او تکلیف رسونکو څخه خوندي ساتل کیږي.

ـد کبر اصل معنی د لویي ده مګر دلته هغه کبر مراد دی چې د عجب یعني خود بیني او خود ستایي په نتیجه کي پیدا کیږي او خپل ځان په دې توګه لوی ګڼل او لوی ظاهرول چې دهغه په سبب پر خلکو فوقیت او غوره والی مقصود وي ، د حق قبلولو او د حق فرمانبرداری څخه انکار کول او سرکښي ښکاره کولو ته تکبر او استکبار ویل کیږي، څرګنده دي وي چې کبر او تکبر په هغه صورت کي بد دی کله چې هغه د واقعت خلاف وي یعني که چیري یو څوک په خپل ذات کي د داسي اوصافو ، فضائلو او کمالاتو دعوه وکړي چې د هغه څخه په حقیقت کي هغه خالي وي او په مصنوعي توګه خپل ځان په هغه فضائلو او کمالاتو سره متصف ظاهروي نو داسي کول به بد وي او که د یو سړي په ذات کي په حقیقت کي داسي فضائل او کمالات وي چې د هغه په وجه هغه خپل ځان د نورو څخه غوره او لوړ ګڼي نو دا به بد نه وي او دا خبره هم باید په ذهن کي وي چې د تکبر په مقابله کي تواضع ده چې د کبر او صغر په منځ کي د توسط او اعتدال لار ده ، کبر دادی چې یو سړی د هغه اوصافو او فضائلو څخه هم زیاته دعوه وکړي کوم چې په ځان کي یې لري او صغر دادی چې د خپل اصل مقام څخه هم لاندي ولویږي او هغه چې د کوم شي دعوه په حقیقت کي لري هغه هم ترک کړي او ددغه دواړو په منځ کي تواضع ده چې د توسط او اعتدال مقام دی یعني نه خو ځان د هغه څخه زیات لوی ګڼي او نه د حد څخه لاندي

يې غورځوي بلکه په منځ کي يې ساتي ځکه چي د هر شي او هر حالت په ډول په دغه معامله کي هم اصل کمال توسط او اعتدال دی که څه هم د مشائخو او صوفيانو معمول دا راغلی دی چي کله به هغوئ په خپل نفس کي د تکبر غلبه ولېدل نو دهغه په زائلولو کي به يې دومره مبالغه کول چي دتواضع پر ځای به يې د صغر مقام اختيارولو هڅه کول چي نفس آخر الامر د تواضع پر مقام ودرېږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د غصې څخه پرهېز

﴿۴۸۸﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ رَجُلًا قَالَ لِلنَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْصِنِي قَالَ لَا تَغْضَبْ فَرَدَّدَ ذالك مِرَارًا قَالَ لَا تَغْضَبْ. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړي نبي کريم ﷺ ته وويل: چي ما ته يو څه نصيحت وکړه، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: غصه مه کوه، هغه څو واره دغه وويل او رسول الله ﷺ هر وار په جواب کي دغه ويل چي غصه مه کوه. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱؍۵۱۹، رقم: ۶۱۱۶.

**تشريح**: په هغه سړي کي د غصې ماده زياته وه، ځکه هغه چي څومره واره خواست وکړ چي ما ته نصيحت وفرمايه نو رسول الله ﷺ دغه جواب ورکړ چي غصه مه کوه، د رسول الله ﷺ معمول دا وو چي سوال کونکی به د کوم حالت او کيفيت حامل وو هغه ته به يې جواب د هغه حالت او کيفيت مطابق ورکوی او د هري ناروغۍ علاج به يې د هغه د احوالو په مناسبت سره کوی ځکه رسول الله ﷺ د هغه سړي په حق کي د غصې څخه د پرهېز حکم په وار وار ظاهرول مناسب وګڼل.

ځيني محققين وايي چي دغضب او غصې کيفيت په اصل کي د شيطاني وسوسو څخه پيدا کيږي چي د هغه په سبب انسان په ظاهر کي هم او په باطن کي هم د اعتدال د لاري څخه تيريږي او د شيطان په جال کي موښلي، په دغه حالت کي هغه يوازي دا نه چي پالتو ويل پيل کړي او داسي افعال او حرکات کوي چي په شرعي توګه هم او په اخلاقي توګه هم ډېر خراب او نامناسب وي، بلکه په زړه کي کينه او بغض هم لري، ددې څخه پرته داسي نور ډېر شيان هم د هغه څخه صادريږي چي د بدو اخلاقو نښي وي او ډېر واره غصه کونکی سړی تر دغه درجې پوري مغلوب الغضب کيږي چي د هغه څخه کفر کيږي، د دغه حقيقت څخه دا خبره هم څرګنده

سوه چي غضب او غصه انسان د دين او دنيا په سخت تاوان کي اخته کوي ځکه رسول الله ﷺ د ذکر سوي سړي په وار وار عرض کولو سربېره يو نصيحت ورته وکړ چي غصه مه کوه او هر وار يې ددې تاکيد وفرمايه، رسول الله ﷺ هغه ته دغه تعليم وفرمايه چي د غصې تعلق د بدو اخلاقو سره دی او بد اخلاقي محض يوه خرابي نه ده بلکه ددې په وجه نوري ډېري خرابۍ پيدا کيږي او ډېر تاوانونه رامنځته کوي نو د غصې څخه په پرهېز کولو سره ښه اخلاق اختيار کړئ چي د دين او دنيا د سعادتونو ضامن دي.

په دې خبره هم بايد پوه سو چي شريعت د غصې علاج هم تجويز کړی دی چي د علم او عمل يا ظاهر او باطن مرکب دی که چيري داسي صورت رامنځته سي چي د غصې سبب وي نو په دغه صورت کي علمي يا باطني او قلبي علاج دادی چي په زړه کي دا تصور وکړي او په دې يقين ولري چي هيڅ کار د الله تعالی د ارادې او تقدير څخه پرته نه کيږي، هر څه چي کيږي د الله تعالی له خوا کيږي، ګټه او تاوان ټول د هغه په اختيار کي دي، انسان خو په ظاهره يوه آله ده نو د چا له لوري چي يو تاوان او تکليف ورسيږي پر هغه غصه کېدل داسي دي لکه يو څوک چي پر چاقو يا چاړه باندي غصه کوي چي هغه ولي پرېکړ، ددې څخه پرته خپل نفس دي په دې پوه کړي چي الله تعالی څومره قادر دی د هغه غضب څومره سخت دی مګر ددې سربېره هغه معافي کوي، بندګان د هغه څومره مخالفت کوي او د هغه د احکامو څومره سرکښي اختياروي مګر پر هغوئ خپل غضب نه نازلوي نو بيا ته د کوم ځای څخه راغلی يې چي پر پزه مچ هم نه پرېږدې، دوهم علاج چي علمي يا ظاهري دی هغه دادی چي سمدستي اودس وکړي او اعوذ بالله ويل پيل کړي چي د اوبو يخوالی د غصې حرارت دفع کوي او نفس بلي خوا ته بوخت سي.

**﴿۴۸۷۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الشَّدِيدُ بِالصُّرَعَةِ إِنَّمَا الشَّدِيدُ الَّذِي يَمْلِكُ نَفْسَهُ عِنْدَ الْغَضَبِ. متفق عليه**

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: پهلوان او طاقتور هغه کس نه دئ چي خلک راغوزار کړي بلکه قوي او پهلوان هغه دئ چي د غصې په وخت کي پر خپل ځان واک تر لاسه کړي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱۰\۱۰ ۵۱۸، رقم: ۶۱۱۴، ومسلم ۴\ ۲۰۱۴، رقم: ۱۰۷- ۲۶۰۹.

**تشريح**: ددغه ارشاد بنياد پر دا حقيقت دی که چيري په اصل کي يو شی د انسان تر ټولو لوی

دښمن او د هغه په مقابله كي تر ټولو زيات طاقتور وي نو هغه خپله د هغه نفس دی، که چيري يو سړی لوی لوی پهلوانان راغوزاروي او خپل طاقتور دښمن لاندي كوي مګر پر خپل نفس باندي غالب كيدای نسي نو دا هيڅ کمال نه دی ، اصل کمال دادی چي انسان خپل نفس لاندي کړي چي دهغه اصل دښمن دی لکه چي فرمايل سوي دي : (اعدى عدوک التي بين جنبيک) ستا په دښمنانو كي تر ټولو لوی دښمن هغه دی كوم چي ستا د دوو اړخونو په منځ كي دی .

څرګنده دي وي چي د بدن قوت ظاهري او جسماني دی چي زوال کېدونکی او فنا کېدونکی دی ددې پر خلاف چي كوم قوت نفس لاندي كوي هغه ديني او روحاني دی چي د الله تعالى له لوري ورکول کيږي او تل باقي وي نو نفس وژل د وصف او کمال خبره ده حال دا چي د انسان لاندي کول هيڅ حقيقت نه لري .

مردي نه بقوت بازدست و زور کتف      بانفس اكر برائي دانم كه شاطري

## جنتي او دوږخي خلک څوک دي؟

﴿۴۸۷۹﴾: وَعَنْ حَارِثَةَ بْنِ وَهْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَلَا

د حضرت حارثة بن وهب ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا زه

أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ الْجَنَّةِ كُلُّ ضَعِيفٍ مُتَضَعِّفٍ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ أَلَا

تا سو ته هغه خلک ونه ښيم چي جنتي دي ؟ هر هغه کس چي ضعيف او کمزوری دئ او خلک يې ضعيف او کمزوری ګڼي (او پر هغه جبر او زياتي کوي) که هغه په الله ﷻ قسم وخوري نو الله تعالى د هغه ريښتني کوي ، او رسول الله ﷺ وفرمايل :

أُخْبِرُكُمْ بِأَهْلِ النَّارِ كُلُّ عُتُلٍّ جَوَّاظٍ مُسْتَكْبِرٍ. متفق عليه و في رواية لمسلم كل جواظ زنيم متكبر.

زه تاسو ته هغه خلک وښيم چي دوږخيان دي، هر هغه کس چي په درواغ او پالتو خبره باندي سخته جګړه کوي ، سخت مزاج، مال جمع کونکی، بخيل او تکبر کونکی وي، بخاري او مسلم، او د مسلم په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي دوږخي دئ هر هغه څوک چي مال جمع کونکی حرام زاده او تکبر کونکی وي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۶۶۲، رقم: ۴۹۱۸، ومسلم ۱۴\۲۱۹۰، رقم: ۴۶- ۲۸۵۳

**د لغاتو حل**: جواظ: قيل السمين من التنعم وقيل الفاجر.

**تشريح**: په حديث کي د ضعيف څخه مراد هغه سړی دی چي نه خو متکبر وي او نه پر خلکو زور کونکی وي،

د متضعف په لفظ کي د عين زور مشهور دی او په ترجمه کي همدغه ملحوظ سوی دی، مګر ځيني حضرات يې د عين په زبر سره وايي په دغه صورت کي به ددغه لفظ معنی د متواضع، کمترا و نوم ورکي وي.

هر ضعيف جنتي دی: مطلب دا دی چي په جنت کي د کومو خلکو اکثريت وي هغه به دغه خلک وي ، همدا رنګه د بل ډول خلکو يعني چي هغوئ ته دوږخيان ويل سوي دي د هغو څخه هم دا مراد دی چي د دوږخيانو اکثريت به دغه خلک وي .

علماؤ د : (لو اقسم على الله) دا معنی بيان کړې ده چي که چيري هغه سړی د الله تعالی په لطف او کرم باندي په باور کولو سره د يو کار کولو يا نه کولو قسم وکړي نو الله تعالی هغه رښتونی کوي او د هغه باور پوره کوي يعني دهغه قسم نه ماتيږي بلکه پوره کيږي، دوهم دا که چيري هغه سړی د خپل پروردګار څخه د يو شي غوښتونکی وي او هغه ته په قسم ورکولو سره د خپل مراد پوره کولو دعاء کوي نو پروردګار د هغه د قسم لحاظ ساتي او دهغه مراد پوره کوي ، دريم دا که چيري يو سړی د يو کار په باره کي په قسم کولو سره ووايي چي الله تعالی به دا کار وکړي يا دا به کار ونه کړي نو الله تعالی د هغه قسم رښتيا کوي يعني داسي کوي چي دهغه د قسم مطابق وي .

(زنيم) : معنی بد ، د زنيم اطلاق پر هغه چا کيږي چي خپل ځان يو داسي قوم يا ډلي ته منسوب کړي چي په حقيقت کي د هغه سره تعلق نه لري ځکه د زنيم معنی د ارموني کيږي، د عُتل او زنيم الفاظ په قرآن کريم کي هم راغلي دي او په ذکر سوې معنی کي ددغه الفاظو اطلاق پر ولېد بن مغيره سوی دی چي د مکې په کفارو کي ډېر بد او د اسلام او پيغمبر سخت دښمن وو.

**متکبر به دوږخ ته ځي**

﴿۴۸۸۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ النَّارَ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ من خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ وَلَا يَدْخُلُ

الْجَنَّةَ أَحَدٌ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ من خَرْدَلٍ مِنْ كِبْرٍ. رواه مسلم.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا په زړه كي چي يوه ذره ايمان هم وي نو هغه به د همېشه لپاره په دوږخ كي نه وي او د چا په زړه كي چي يوه ذره تكبر وي هغه به جنت ته نه ځي. مسلم

**تخريج:** صحيح مسلم: ۱۱/۹۳، رقم: ۱۴۸– ۹۱.

**تشريح:** د ايمان څخه مراد اصل ايمان نه دی بلكه د ايمان ثمرات مراد دي چي په فضائلو او اخلاقو سره تعبير كيږي، كه د هغه تعلق د ظاهر سره وي يا د باطن سره وي چي د نور ايمان او ظهور ايقان څخه صادريږي، او كوم چي د اصلي ايمان تعلق دی هغه د تصديق قلبي نوم دی ځكه په هغه كي نه زياتوب كيدای سي او نه كمي، په دې اعتبار هغه په اجزاوو كي ويشل كيدای نسي مگر د هغه شعبې او ښاخونه ډېر دي چي د اصل ايمان حقيقت او ماهيت څخه خارج دی لكه لمونځ، روژه، زكوة او داسي نور د اسلام ټول ظاهري احكام، لكه تواضع، ترحم او همدارنگه هغه ټول شيان چي د باطني اوصافو او خصائلو درجه لري. نو په دغه حديث كي فرمايل سوي دي چي: الايمان بضع و سبعون شعبة: يعني د ايمان څه باندي اوويا څانگي دي، ظاهره ده چي د ښاخونو او د هغه د اصل په منځ كي دومره ژور او نژدې تعلق دی چي د دواړو لپاره د لازم او ملزوم درجه لري مگر د دې سربېره د حقيقت او ماهيت په اعتبار هيڅ ښاخ د خپل اصل برابر كېدای نسي، همدارنگه اصل ايمان يو بېل شی دی او د اسلام ټول ظاهري احكام او باطني اخلاق او خصائل نېل حيثيت لري چي هغه د اصل ايمان حقيقت او ماهيت كي شامليدای نسي ، د رسول الله ﷺ دغه ارشاد : الحياء شعبة من الايمان: حياء د ايمان يو ښاخ دی، د ذكر سوي قول دليل دی ځكه چي د ټولو علماؤ پر دې اتفاق دی چي حياء د ايمان په مفهوم كي داخله نه ده.

د حديث د دوهمي برخي مطلب دادی چي يو سړي به تر هغه وخته پوري په جنت كي نه داخليږي تر څو چي د هغه په عمل نامه كي د تكبر گناه موجود وي مگر كله چي هغه د تكبر او نورو خرابو خصلتونو څخه پاک سي نو هغه وخت به په جنت كي داخل كړل سي او دغه پاكي يا خو په هغه صورت كي تر لاسه كيږي چي الله تعالی هغه په عذاب كي اخته كړي او هغه عذاب د هغه گناه پرېولي، يا الله تعالی په خپل رحمت سره هغه معاف كړي او هغه معافي د هغه گناه ختم كړي، خطابي رحمه الله ليكلي دي: د حديث د دغه برخي دوه تاويلونه دي ، يو دا چي د كبر څخه

کفر او شرک مراد دی او څرګنده ده چي د کفر او شرک پر کونکي باندي د جنت دروازې د تل لپاره بندي وي، دوهم تاويل دادی چي د کبر څخه مراد خپله معنی وي يعني خپل ځان د نورو خلکو څخه غوره او لوړ ګڼل او په غرور کي اخته کېدل، مګر د حديث مطلب دادی چي متکبر سړی به تر هغه وخته پوري په جنت کي نه داخلېږي تر څو چي د الله تعالی رحمت ورته متوجه نسي کله چي الله تعالی يې په جنت کي داخلول وغواړي نو د هغه د زړه څخه به کبر ليري کړي يا هغه د کبر او د هغه د خير نتوب څخه په پاکولو سره به يې په جنت کي داخل کړي.

## د تکبر حقيقت

﴿۴۸۸۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَدْخُلُ الْجَنَّةَ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا په زړه کي چي د

مَنْ كَانَ فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ ذَرَّةٍ مِنْ كِبْرٍ فَقَالَ رَجُلٌ إِنَّ الرَّجُلَ يُحِبُّ أَنْ يَكُونَ

ذرې برابر تکبر وي هغه به جنت ته نه ځي، يو سړي وويل: هر څوک دا خوښوي چي د هغه ښه

ثَوْبُهُ حَسَنًا وَنَعْلُهُ حَسَنًا قَالَ إِنَّ اللّٰهَ جَمِيلٌ يُحِبُّ الْجَمَالَ الْكِبْرُ بَطَرُ الْحَقِّ وَغَمْطُ النَّاسِ. رواه مسلم.

جامه وي، ښه څپلې وي (ايا دا هم تکبر دئ) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل الله تعالی جميل (ښکلی) دئ او ښکلا خوښوي او تکبر حق باطل کولو او خلک ذليل او حقير ګڼلو ته وايي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱/۹۳، رقم: ۱۴۷- ۹۱.

**د لغاتو حل**: غمط: ای استحقار الخلق.

**تشريح**: د ذرې څخه يا خو کوچنی مېږی مراد دی چي د هغه په باره کي ويل کيږي چي دا سي سل مېږيان په يو ځای کېدو سره د يوې اوربشي د وزن برابر وي، يا هغه رېزه او غبار مراد دی چي په هواء کي باريک معلومېږي او د رڼا په وخت کي ځلېږي.

يو سړي وويل: په دې اړه مختلف قولونه دي چي د يو سړي څخه کوم صحابي مراد دی، ځيني حضرات وايي چي هغه وخت کوم صحابي خبره کړې وه هغه حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه وو، ځيني حضرات عبد الله بن عمرو بن عاص رضي الله عنه او ځيني حضراتو د ربيعه بن عامر رضي الله عنه نوم ذکر

کړي دي .

يو څوک دا خوښوي ...الخ: هغه صحابي چي دا سوال وکړ نو د هغه يو مطلب وو، هغه دا کتل چي کوم خلک غرور او تکبر کوي او د ځان څخه پرته هر څوک ذليل او سپک ګڼي د هغه پر بدن غوره جامه وي د هغه په پښو کي غوره څپلۍ وي او د هغه جامې او نور شيان د اعلی درجې وي، کله چي هغه د رسول الله ﷺ ذکر سوی ارشاد واورېدی نو هغه ته ګمان وسو چي دغه شيانو خو دتکبر د نښو څخه نه دي په اعلی درجه جامو او څپليو خو تکبر نه پيدا کيږي ،

نو هغه پوښتنه وکړه که چيري يو سړی محض د خپل ذاتي خواهش او خوښي په وجه او د استطاعت پر بنا ښه ښه کالي اغوندي او اعلی درجه څپلۍ په پښو کوي او دده په خيال کي دا نه وي چي پر نورو باندي د خپل امارت او لوړوالي رعب واچوي ، خلک ذليل او سپک ګڼي او کبر کوي او د هغه سړي ددغه نيت علامه دا وي چي هغه څرنګه د خلکو په مخکي ښه جامې او نور شيان استعمالول خوښوي همدارنګه يوازي هم دغه شيان خوښوي نو ايا پر داسي سړي باندي هم د تکبر اطلاق کيږي؟ رسول الله ﷺ د خپل ذکر سوي جواب په ذريعه څرګنده کړه چي پر داسي سړي باندي د تکبر اطلاق نه کيږي بلکه د هغه ښه جامه اغوستل او ښه څپلۍ په پښو کول د هغه د تهذيب او ښکلا او د هغه د خوښي علامه ده چي د هغه څخه شريعت منع نه ده کړې، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ د کبر حقيقت بيان کړ چي کوم کبر بد ګرځول سوی دی هغه په اصل کي د هغه کيفيت او حالت نوم دی چي انسان د حق لاري څخه واړوي يعني د توحيد او عبادت الهي څخه يې بې پروا کړي د حق او صداقت څخه يې سرکښه کړي ، حقيقت ته د رسېدو څخه يې منع کړي او د رېښتيا قبلولو څخه يې منع کړي او مخلوق ذليل ګڼي ، ځينو حضراتو د بطر الحق معنی د جمال حق ليکلې ده .

الله ﷻ جميل دی: مطلب دادی چي هغه په خپل ذات او صفاتو کي او په خپل افعالو او قدرت کي په اوصاف کامله سره موصوف دی او ټول ظاهري او باطني حسن د جمال د هغه د جمال عکس دی او جمال او جلال د هغه د پاک ذات خاصه ده ، ځينو حضراتو د جميل معنی د جمال بخښونکي بيان کړې ده ، ځينو ويلي دي چي د جميل معنی په اصل کي د جليل ده ، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي هغه د ټول نور مالک دی او ځينو حضراتو دا معنی هم بيان کړې ده چي هغه دخپلو بندګانو ښه کارساز دی .

## درې لوي دوږخيان

﴿۴۸۸۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثَلَاثَةٌ لَا

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: درې کسان دي چي د

يُكَلِّمُهُمُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَلَا يُزَكِّيهِمْ وفي رواية وَلَا يَنْظُرُ إِلَيْهِمْ وَلَهُمْ عَذَابٌ أَلِيمٌ شَيْخٌ زَانٍ وَمَلِكٌ كَذَّابٌ وَعَائِلٌ مُسْتَكْبِرٌ. رواه مسلم.

هغوئ سره به الله تعالى د قيامت په ورځ نه خبره وکړي او نه به يې د ګناهونو څخه پاک کړي، او په يوه روايت کي دا الفاظ هم دي چي نه به هغوئ ته وګوري او د هغوئ لپاره به دردناک عذاب وي: يو زنا کونکی سپين ږيری، دويم دروغجن پاچا او دريم غريب کبرجن. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۰۲/۱، رقم: ۱۷۲– ۱۰۷.

**تشريح**: د قيامت د ورځي څخه مراد د حشر ميدان دی، کله چي د الله تعالى د فضل، عدل، غضب، ناراضګی او رضا ظهور وي او د جنتيانو او دوږخيانو په اړه فيصلې کيږي.

(ولا يزكيهم) ددې يوه معنى هغه ده چي په ژباړه کي بيان سوې ده، کله چي الله تعالى د حشر په ميدان کي د خپل ټول مخلوقاتو په مخکي د خپل مؤمن او نېکو بندګانو تعريف کوي نو هغه وخت به دغه درې ډوله خلک د هغه تعريف څخه خارج کړل سي، او يوه معنى داده چي الله تعالى به دغه درې ډوله خلک د خپلي عفوي او بخښني په ذريعه د ګناهو څخه پاک نه کړي، (ولهم عذاب اليم) په دې اړه دوه احتماله دي، يا خو دغه جمله د دوهم روايت تتمه ده يا ددې تعلق د اصل حديث سره دی، او دغه دوهم احتمال زيات قوي او د باور وړ دی، خلاصه دا چي ذکر سوې خبري په اصل کي د الله تعالى د غضب او کبر او د هغه د ناراضګی څخه کنايه دي څوک چي د يو سړي څخه ناراض او خفه وي نو هغه ته نه نظر کوي او نه د هغه تعريف کوي بلکه هغه په سزا او تنګي کي اخته کوي.

په حديث کي چي د کومو درو خرابيو په اړه وعيد بيان سوی دی هغه په هر حال کي بد او د عذاب وړ دي، که د دغه خرابيو کونکی د کومي درجي او د کوم حيثيت او د کوم عمر سړی وي مګر دلته د دغه خرابيو تعلق چي د کومو کسانو سره ذکر سوی دی د هغه په اعتبار د دغه خرابيو سختوالی زيات دی د مثال په توګه زنا يو ډېر خراب کار دی او کله چي دغه کار د هغوئ په حق کي هم ډېره لويه ګناه ده چي په طبعي توګه سره معذور هم وي نو د سپين ږيري په حق کي دغه

فعل زيات خراب دی ځکه چي هغه نه خو په طبعي توګه سره ددې احتياج لري او نه د هغه په طبيعت جنسي خواهش او د قوت مردي هغه غلبه وي چي ډېر واره ئې د عقل او شعور څخه بېګانه او د الله تعالی د بيري څخه غافل کوي، نو کوم سپين ږيری چي زنا کوي هغه ګويا پر خپلي زياتي بې حيايي او خبث طبيعت باندي دلالت کوي،

همدارنګه درواغ ويل د هر چا په اړه بد دي مګر د پاچا په حق کي ډېر زيات بد دي ځکه چي پر هغه د هيواد د انتظام او د رعيت د مصالحو او ساتني ذمه داري وي د هغه يو ادنی حکم د ټول هيواد پر نظم باندي اثر کوي که هغه درواغ وايي نو د هغه ددغه خرابۍ په وجه به ټول هيواد او د هيواد ټول خلک په مختلف ډول خرابيو او پرېشانيو کي اخته کېږي ، ددې څخه پرته کوم خلک چي درواغ وايي هغوئ په عامه توګه ددغه خرابۍ کول د خپلي يو ګټي تر لاسه کولو يا د يو تاوان د دفع لپاره کوي حال دا چي يو پاچا يا حاکم دغه مقصد په تر لاسه کولو بېله درواغ ويلو هم قادر دی نو دهغه درواغ ويل نه يوازي بې ګټي بلکه ډېر بد دي ، پر دې باندي تکبر هم قياس کيدای سي چي کوم شيان په عامه توګه انسان په غرور او تکبر کي اخته کوي لکه مال او دولت او داسي نور نو که هغه په يو سړي کي تر لاسه سي او هغه د هغه شيانو په وجه تکبر کوي که څه هم هغه سړي ته به هم بد وايو مګر د هغه تکبر کول به يو ډول په پوهه او فکر کي راتلونکې خبره وي ددې پر خلاف که چيري يو فقير او مفلس سړی تکبر کوي چي نه مال او دولت لري او نه عزت وغيره لري نو دهغه دغه فعل به ډېر خراب وي او دهغه په اړه ددې څخه پرته نور څه ويل کيدای سي چي هغه خبث باطن او د طبيعت په خرابۍ کي اخته دی.

ځينو حضراتو په (عائل مستکبر) کي د عائل لفظ څخه عيالدار مراد اخيستی دی يعني کوم خلک چي کوچنيان لري او دخپل خراب حالۍ په وجه د خپل متعلقينو د ژوند اړتياوو پر پوره کولو باندي قادر نه وي مګر ددې سربېره د تکبر له موخي د صدقې او زکوة مال قبلولو ته نه تياريږي ، د خلکو تواضع او مرسته نه قبلوي او همدارنګه هغه د خپل بچيانو د اړتياوو څخه په بې پرواه کېدو هغوئ په تکليف او هلاکت کي اچوي، نو داسي خلک په حديث کي د مذکوره وعيد مورد دي ، ځرګنده دي وي چي د الله تعالی پر ذات باندي توکل او باور او د غيرت سره سم خپل حالت پټول او دخلکو په مخکي د لاس غزولو څخه شرم او حياء کول يو بېل شی دی مګر د سختي اړتيا او احتياج سربېره کبر اختيارول او دتکبر له موخي د خلکو احسان نه قبلول يو داسي کار دی چي ډېر بد ګرځول سوی دی.

د شيخ زان په باره کي هم ځينو حضراتو ويلي دي چي دلته د شيخ څخه مراد محض واده

سوی سړی هم کیدای سي ، که هغه سپین ږیری وي او که ځوان وي، لکه څرنګه چي په دغه منسوخ التلاوت آیت : (الشیخ والشیخة اذا زنیا فارجموهما نکالا من الله والله عزیز حکیم) کي د شیخ څخه مراد واده سوی سړی دی نو د داسي سړي په حق کي د زنا زیات بد کېدل شرعا هم او عرفا هم بالکل څرګنده خبره ده ځکه د داسي سړي په ډېرو وېشتلو سره وژل واجب دي، همدارنګه د ملک کذاب په باره کي هم ویل کیږي چي دلته د ملک څخه مراد غني او شتمن سړی هم کیدای سي نو د یو مفلس او غریب سړي د دروغ ویل خو په یوه درجه کي معلومه خبره ده ځکه چي هغه د خپل مفلسۍ په وجه ډېر واره پر دروغ ویلو مجبور کیږي مګر غني او شتمن سړی د خپل مال او دولت په وجه داسي هیڅ اړتیا نه لري او هغه دروغ ویلو پرته هم خپل مقصد پوره کولای سي نو دروغ ویل د هغه په حق کي زیات خراب دي ،

د عائل مستکبر په باره کي هم یو قول دی چي دلته د عائل څخه یعني مفلس څخه مراد هغه سړی دی چي د فقیرانو او مسکینانو سره تکبر کوي نو د فقیرانو او مسکینانو سره تکبر کول ډېره بده خبره ده حال دا چي د مغرور شتمن سره په تکبر کولو کي څه حرج نسته ، د دغه جملې په باره کي هم صحیح خبره داده چي دلته د مفلس څخه مراد هغه سړی دی چي په کسب او مشقت کولو سره د خپل ځان او کورنۍ پر نس مړولو باندي قادر وي مګر د دې سربېره هغه د کبر او غرور له موخي کسب او ګټې د خپل شان بې عزتي ګڼي لکه څرنګه چي نن سبا په عامه توګه لیدل کیږي چي ښه تکړه او تېښک خلک په کار کولو او مزدوري کولو کي د ځان سپکتیا ګڼي، په دې کي شک نسته چي د داسي خلکو دغه طریقه یقینا د تکبر په معنی کي ده او دغه تکبر د شمتنو د تکبر څخه ډېر زیات خراب دی ځکه چي د دې بنیاد کبر، غرور او بې ځایه شان ښودل دي او د خپلي کورنۍ په تکلیف کي اخته کول دي ، په خاصه توګه په هغه صورت کي د دغه تکبر خرابي ډېره زیاته ده کله چي داسي سړی د خپل لاس په ذریعه خپل او د خپلي کورنۍ د رزق تر لاسه کولو پر ځای د پور جامې اغوندي او خپل ځان د دیندراه او بزرګانو په شان جوړولو سره د ګوډ او شل په ډول کښیني او په ساده مسلمانانو باندي د خپل مصنوعي بزرګۍ رعب څرګندوي او د هغوئ پر اوږو بار ګرځي .

## تکبر کول لکه شرک

﴿۴۸۸۳﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ اللّٰهُ تَعَالَى الْكِبْرِيَاءُ رِدَائِيْ وَالْعَظَمَةُ إِزَارِيْ فَمَنْ نَازَعَنِيْ وَاحِدًا مِّنْهُمَا أَدْخَلْتُهُ النَّارَ . وفي

روایة قَذَفْتُهُ فِي النَّارِ . رواه مسلم.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی فرمایي : بزرګي زما څادر دی او عظمت زما ازار دئ نو څوک چي په دغه دوو کي یو شی زما څخه اخلي (یعني د ذات او صفات په اعتبار تکبر وکړي) زه به هغه د دوږخ په اور کي وغورځوم او په یوه روایت کي دا الفاظ دي چي زه به هغه د دوږخ اور ته وغورځوم . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۴\۲۰۲۳، رقم: ۱۳۶- ۲۶۲۰.

**تشریح**: زما څادر او لونګ، دغه ډول الفاظ الله تعالی د مثال په توګه فرمایلي دي او د دغه مثال مقصد دا څرګندول دي دغه دواړه صفتونه یعني لویي او عظمت یوازي زما د ذات سره تعلق لري چي په هغه کي هیڅوک زما برابر او شریک نسي کیدای لکه څرنګه چي د چا په جامه کي بل څوک نسي شریک کېدای، د الله تعالی ځیني صفات داسي دي چي په هغو کي څه برخه بندګانو ته هم ورکړل سوي ده او بنده مجازا په هغه صفاتو سره موصوف کیږي لکه جود، کرم، مهرباني او داسي نور، مګر ځیني صفات دي چي هغه یوازي د الله تعالی د ذات لپاره مخصوص دي او په هغه سره هیڅ یو بنده خپل ځان مجازا هم نسي موصوف کولای، دغه حقیقت د مثال په توګه بیان سوی دی لکه څرنګه چي یو سړی هغه جامې نسي اغوستلای کوم چي د بل چا پر بدن وي همدارنګه د کبریایي او حقیقي عظمت هیڅ بنده دعوه نسي کولای ځکه چي دغه دواړه صفتونه یوازي زما د ذات لپاره مناسب او مخصوص دي .

کبریاء او عظمت: دغه دواړه الفاظ په لغت کي یوه معنی لري یعني برزګي او لویي، مګر د حدیث د ظاهري طرز څخه د دغه دواړو په منځ کي فرق معلومیږي چي یوه ته د څادر سره تشبیه ورکړل سوې ده او بل ته د لونګ سره، نو د دغه فرق مخته په اېښودو سره ځینو حضراتو ویلي دي چي کبریاء صفت ذاتي دی یعني د الله تعالی ذات کبیر او متکبر دی که څه هم بل څوک دغه حقیقت و پېژني یا یې نه و پېژني، او د عظمت لفظ د الله تعالی هغه لویي بیانوي چي د هغه ظهور د هغه پر غیر هم کیږي چي ټول مخلوق یې پیژني چي هغه داسي لوی دی نو دغه عظمت د الله تعالی صفت اضافي سو او د دغه ذاتي صفت د اضافي صفت څخه اعلی کېدل ضروري وي نو کبریاء ته په څادر سره تشبیه ورکړل سوه ځکه چي څادر تر لونګ اعلی وي او عظمت ته په لونګ سره تشبیه ورکړل سوې ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### تکبر نفس ته دوکه

﴿۴۸۸۴﴾: عَنْ سَلَمَةَ بْنِ الْأَكْوَعِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا يَزَالُ الرَّجُلُ يَذْهَبُ بِنَفْسِهِ حَتَّى يُكْتَبَ فِي الْجَبَّارِينَ فَيُصِيبُهُ مَا أَصَابَهُمْ.

رواه الترمذي.

د حضرت سلمه بن اکوع رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : يو کس چي همېشه ځان بزرګ او برتر ګڼي او د خلکو څخه لیري اوسي تر څو چي د هغه نوم په متکبرانو او سرکښانو کي ليکل کيږي او بيا (په نيا او آخرت کي) کوم مصيبت چي پر سرکښانو باندي راځي هغه ورته رسيږي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۱۸، رقم: ۲۰۰۰

**تشريح**: په (بنفسه) کي که چيري د باء حرف د تعديه لپاره وي نو معنى به دا وي چي هغه خپل نفس پورته کوي او د ځان په لوړ مرتبه ګڼلو سره د خلکو څخه ليري او سيږي او خپل ځان د بل چا په مقابله کي بزرګ او لوړ ګڼي او که چيري د باء حرف د مصاحبت لپاره وي نو دا معنى به وي چي هغه د خپل نفس په دوکه کي په اخته کېدو سره کبر او غرور ته ور مخته کيږي ، هغه ته عزت ورکوي او د هغه تعظيم کوي لکه څرنګه چي يو دوست د دوست تعظيم کوي تر دې چي هغه متکبر او مغرور سي .

د حديث خلاصه داده چي کله يو څوک د خپل نفس په دوکه کي په لوېدو سره د خودبيني ښکار سي نو خپل ځان د خپلي اصلي مرتبې او مقام څخه په پورته کولو سره لوی مرتبې او مقام ته د رسېدو هڅه کوي، تر دې چي په تکبر او سرکښی کي په پوره توګه اخته سي او د هغه لپاره د دنيا او آخرت عذاب مقدر کيږي کوم چي د سرکښانو لپاره مخصوص دی .

### د متکبر انجام

﴿۴۸۸۵﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د پلار څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ

وَسَلَّمَ قَالَ يُحْشَرُ الْمُتَكَبِّرُونَ أَمْثَالَ الذَّرِّ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فِي صُوَرِ الرِّجَالِ يَغْشَاهُمُ

وفرمایل : د قیامت په ورځ به تکبر کونکي د خلکو په صورت کي د کوچني میږیانو په ډول راجمع کړل سي (یعني د هغوئ شکل به د خلکو په ډول مګر په بدن کي به د میږیانو په ډول وي)

الذُّلُّ مِنْ كُلِّ مَكَانٍ فَيُسَاقُونَ إِلَى سِجْنٍ فِي جَهَنَّمَ يُسَمَّى بُولَسَ تَعْلُوهُمْ نَارُ

او ذلت او خواري به د څلورو خواوو څخه را ګیر کړي وي او هغوئ به د جهنم د یوې بندي خانې په لور چي د هغې نوم بولس دي وشړل سي د هغوئ سربیره به د اورونو

الْأَنْيَارِ يُسْقَوْنَ مِنْ عُصَارَةِ أَهْلِ النَّارِ طِينَةَ الْخَبَالِ . رواه الترمذي.

اور وي او پر هغوئ به د دوږخیانو وینه او نو وڅښل سي چي د هغه نوم طینة الخبال دئ. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۶۵، رقم: ۲۴۹۲.

**د لغاتو حل**: الذر: ای في الصغر والحقارة (سپکاوی). الانیار: ای نار النیران. الخبال: الفساد.

**تشریح**:د کوچنیو میږیانو په ډول: د اصل مفهوم په اړه د علماؤ اختلاف دی، ځیني حضرات وایي چي د میږیانو تشبیه ورکول په اصل کي کنایه ده چي تکبر کونکي خلک به د قیامت په ورځ د حشر په میدان کي د ډېر ذلت او خوارۍ په حالت کي وي او ګویا هغوئ به د خلکو تر پښو لاندي داسي وي لکه څرنګه چي میږیان مېده کیږي،

ددغه حضراتو یو دلیل خو دادی چي د قیامت په ورځ به د مخلوق پاڅېدل او دهغوئ د اجسامو دوهم وار جوړېدل د هغه اجزاء اصل سره وي کوم چي هغوئ په دنیا کي درلوده، لکه څرنګه چي دا ثابته ده چي هغه سړی به د حشر په میدان کي د خپلو اجزاوو او اندامو په پاڅېدو سره راځي چي پر هغه په دنیا کي د هغه بدن مشتمل وو او ظاهره ده چي د مېږي صورت او دهغه بدن د هغه بدن د اجزاوو اصلي حامل کیدای نسي ځکه په حدیث کي في الصور الرجال ، یعني د سړو په صورت کي الفاظ هم فرمایل سوي دي چي څرګنده سي چي دهغوئ شکل او صورت به د خلکو په ډول وي نه دمېږیانو په ډول او نه یوازي د حدیث سیاق پر دې دلالت کوي بلکه یغشاهم الذل الفاظ هم ددې قرینه دي چي د مېږیانو په ډول ، څخه مراد ذلت او خواري ده نه دا مراد دی چي د هغوئ بدن به دمېږیانو په ډول وي مګر څرنګه چي شیخ عبد الحق محدث دهلوي رحمه الله لیکلي دي : صحیح خبره داده چي حدیث پر خپل ظاهري مفهوم باندي محمول دی یعني

تکبر کونکي به په حقیقت کي د مېږیانو په ډول را پورته کېږي مګر د هغوئ شکل او صورت به د سړو په ډول وي او د غه شی قطعاً د قیاس څخه لیري نه دی ځکه چي الله تعالی ته پر دې باندي پوره قدرت حاصل دی چي هغه په قیامت کي هغه اجزاء اصلي چي په هغه سره راپاڅي د یو میږي په صورت کي جمع کړي او هغه ته د میږي د جسم په ورکولو سره د پوره مخلوق په مخکي یې ذلیل او خوار کړي.

ملا علي قاري رحمه الله هم په دې اړه څو قولونه نقل کړي دي او بیا یې تورپشتي رحمه الله ته په منسوب کولو سره دا بیان کړی دی چي موږ د دغه حدیث ظاهري معنی ځکه مراد نه اخلو چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي: کله چي خلک د قیامت په ورځ په بیا را پاڅېدو سره د حشر میدان ته راسي نو د هغوئ جسم او بدن به د هغوئ پر اجزاوو مشتمل وي کوم چي په دنیا کي د هغوئ جسم وو، تر دې چي د هغوئ خاص اندام (ذکر) د پوست هغه برخه به هم ورسره لګېدلې وي کوم چي د سنت کېدو پر وخت پرې کېږي، یعني ټول خلک ناسنته راپاڅي، نو دا څرنګه ممکن ده چي د یو انسان د بدن ټولي برخي دي تر دې چي نوکان او وېښتان هم د یو میږي په جسد کي جمع سي.

په پای کي ملا علي قاري رحمه الله د تورپشتي رحمه الله د ذکر سوي قول د مخالفینو په جواب کي نقل کړي دي او پر هغوئ د شک اظهار کولو سره خپل تحقیق یې دا لیکلی دی چي په دې کي هیڅ شک نسته چي کله خلک د خپلو قبرو څخه راپاڅي او د حشر میدان ته راسي نو هغه وخت به الله تعالی د نورو خلکو په ډول د تکبر کونکو بدن هم دوهم وار جوړ کړي هغوئ به هم خپل ټول اجزاء معدومه سره په خپل پوره بدن کي په را پاڅېدو سره راسي چي د هر یوه دوهم وار جسماني تخلیق قدرت په پوره توګه ثابت سي مګر بیا به دا خلک د حشر په میدان کي په ذکر سوي جسم او صورت بدل کړي یعني د هغوئ بدن بهٔ د مېږیانو په ډول سي او د هغوئ شکل او صورت به د خلکو په ډول ي او د بدن دغه تبدیلي به ځکه وي چي د هغوئ ذلت او هانت د پوره مخلوق په مخکي ظاهر سي، یا دا هم ویل کېږي چي کله مذکوره خلک د حساب کتاب ځای ته راسي او د هغوئ په مخکي د عذاب الهي نښې څرګندي سي نو هغه وخت به د هیبت او دهشت په سبب دومره کم سي چي د هغوئ بدن به د مېږیانو په ډول معلوم سي، او د دوږخیانو د خپل خپل حالاتو او ګناهو په اعتبار به مختلف صورتونه لکه سپیان، خنزیران، خرو او د نورو په شکلو کي تبدېل کېدل د مختلفو منقولاتو څخه ثابت دي.

بَولس: د باء په زور، د واو په جزم او د لام په زور سره دی، په قاموس کي لیکلي دي چي

دغه لفظ د باء په پېښ ، د لام په زبر سره دی چي د بلس څخه مشتق دی او د هغه معنی د تحیر او نا امیدی وي ، د شیطان نوم ابلیس هم له دغه لفظ څخه مشتق دی .

د اورونو په او رکي: اور ته د اور نسبت داسي دی لکه د اور نسبت یو داسي شي ته چي اور یې سوځي، مطلب دادی چي اور به داسي وي چي هغه به خپله اور د لرګي په ډول سوځي .

په طينة الخبال کي د خبال لفظ د خاء په زور سره دی او لغوي معنی یې د فساد او خرابی ده او څرنګه چي د حدیث څخه څرګندېږي چي طينة الخبال د دوږخیانو د عصارې نوم دی او عصاره هغه نو او ويني ته وايي چي د دوږخیانو د زخمو څخه بهیږي .

## ناحقه غصه شيطاني اثر دی

﴿۴۸۸۶﴾: وَعَنْ عَطِيَّةَ بْنِ عُرْوَةَ السَّعْدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْغَضَبَ مِنَ الشَّيْطَانِ وَإِنَّ الشَّيْطَانَ خُلِقَ مِنَ النَّارِ وَإِنَّمَا يُطْفَأُ النَّارُ بِالْمَاءِ فَإِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ فَلْيَتَوَضَّأْ. رواه ابوداؤد.

د حضرت عطية بن عروة سعدي رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : غصه د شیطان د لوري ده او شیطان د اور څخه پیدا کړل سوی دئ او اور په اوبو سره وژل کیږي هر کله چي په تاسو کي چا ته غصه ورسي نو هغه دي اودس وکړي . ابو داؤد .

**تخريج**: سنن ابي داود ۵\۱۴۱، رقم: ۴۷۸۴.

**تشريح**: د یخو اوبو استعمالولو خاصیت دادی چي هغه غصه یخوي ، لکه څرنګه چي د عامي تجربې څخه ثابته ده او د یخو اوبو د استعمالولو غوره صورت اودس کول دي مګر په یخو اوبو څښلو کي هم دا خاصیت دی ، په دغه حدیث کي خو یوازي د اوداسه کولو ذکر دی مګر پکار دي چي کله غصه راسي نو اعوذبالله من الشيطان الرجيم دي ووايي (په یوه حدیث کي دا منقول دي چي په اعوذ بالله ویلو سره غصه ځي) ، بیا چي وګوري چي غصه ختمه سوې نه ده نو ولاړ دي سي او اودس دي وکړي او د الله تعالی لپاره دي دوه رکعته نفل ادا کړي .

## د غصې علاج

﴿۴۸۸۷﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا غَضِبَ أَحَدُكُمْ وَهُوَ قَائِمٌ فَلْيَجْلِسْ فَإِنْ ذَهَبَ عَنْهُ الْغَضَبُ وَإِلَّا فَلْيَضْطَجِعْ. رواه

احمد والترمذي.

د حضرت ابو ذر ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په تاسو کي يو چا ته غصه ورسي نو که هغه ولاړ وي نو کښيني دي که غصه يې ولاړه سي نو خير دئ کنه نو بيا دي پريوځي. احمد او ترمذي.

**تخريج:** مسند الامام احمد ۱۵۲\۴، رقم: ۴۷۸۲.

**تشريح:** په شرح السنه کي ليکلي دي چي په داسي حالت کي د دريدو پر ځاى په ناسته کي دا حکمت دى چي په عامه توګه د غصې په وخت کي انسان بې واکه کيږي او که چيري د غصې په وخت کي ولاړ وي نو ددې خبري زياته بيره وي چي هغه به يو داسي حرکت وکړي چي د هغه څخه وروسته پښيمانه وي او ظاهره ده چي د ناستي په صورت کي د يو حرکت صادريدل دومره په تيزي او اساني سره نه کيږي لکه څومره چي د ولاړي په صورت کي کيږي او د پروتي په صورت کي په دومره تيزي او اساني سره نه کيږي لکه څومره چي د ناستي په صورت کي کيږي مګر په دې اړه زياته صحيح خبره داده چي د غصې په وخت کي د خپل حالت داسي بدلول چي په هغه سره بدن او ذهن ته سکون تر لاسه سي، که چيري ولاړ وي نو کښيني دي او که ناست وي نو بيا دي پريوځي، داسي کول د غصې او اشتعال د دفع لپاره غوره تاثير لري.

**خراب بنده څوک دئ؟**

﴿۴۸۸۸﴾: وَعَنْ أَسْمَاءَ بِنْتِ عُمَيْسٍ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت اسماء بنت عميس ﷞ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوريدل چي

وَسَلَّمَ يَقُولُ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ تَخَيَّلَ وَاخْتَالَ وَنَسِيَ الْكَبِيرَ الْمُتَعَالِ بِئْسَ

خراب بنده هغه دئ چي ځان يې د نورو څخه غوره وګڼئ او تکبر يې وکړ او الله تعالى بزرګ او برتر يې هير کړ، او خراب

الْعَبْدُ عَبْدٌ تَجَبَّرَ وَاعْتَدَى وَنَسِيَ الْجَبَّارَ الْأَعْلَى بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ سَهَا وَلَهَا

بنده هغه دئ چي پر خلکو يې جبر او قهر وکړ او الله تعالى جبار او قهار يې هير کړ او خراب بنده هغه دى چي د دين کارونه يې هير کړل او يوازي د دنيا په کارونو کي بوخت سو او خراب بنده

وَنَسِيَ الْمَقَابِرَ وَالْبِلَى بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ عَتَا وَطَغَى وَنَسِيَ الْمُبْتَدَا وَالْمُنْتَهَى

هغه دئ چي هديرو او د بدن د وروستوالي خيال يې هير كړ او خراب بنده هغه دی چي هغه فساد پيدا كړ د حد څخه يې تجاوز وكړ او خپله ابتداء او انتهاء يې هير كړل

بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدُّنْيَا بِالدِّينِ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ يَخْتِلُ الدِّينَ

او خراب بنده هغه دی چي دنيا والا وو ته په دين سره دوكه وركړي، او خراب بنده هغه دی چي دين په شبهاتو سره خرابوي او خراب بنده هغه دی چي حرص او طمعه يې د دنيا په لور راوكاږي

بِالشُّبُهَاتِ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ طَمَعٌ يَقُودُهُ بِئْسَ الْعَبْدُ عَبْدٌ هَوًى يُضِلُّهُ بِئْسَ

،او خراب بنده هغه دی چي د نفس خواهش يې گمراه كوي او خراب بنده هغه دئ چي د دنيا

الْعَبْدُ عَبْدٌ رَغَبٌ يُذِلُّهُ. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الايمان وقال ليس اسناده بالقوي وقال الترمذي ايضا هذا حديث غريب.

حرص او رغبت يې خوار او ذليل كړي، ترمذي او بيهقي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۴۵، رقم: ۲۴۴۸، والبيهقي في شعب الايمان ۱\ ۲۸۷، رقم: ۸۱۸۱.

**د لغاتو حل**: تخيل: ای تكبر و تجبر (لويي او ظلم)

**تشريح**: دغه حديث محض د ترمذي او بيهقي په ذكر سوو اسنادو منقول نه دی بلكه طبراني هم نقل كړی دی او په يو بل ځای كي بيهقي د نعيم ابن هماز څخه نقل كړی دی او حاكم هم په خپل مستدرك كي نقل كړی دی ، په دې كي شک نسته چي د طريقو زياتوب ضعيف حديث قوي كوي او هغه د حسن لغيره درجې ته رسوي چي په هغه سره د روايت مقصد پوره كيږي، تر څو چي د ترمذي سره تعلق دی چي دا حديث غريب دی نو ځرګنده دي وي چي اول خو غرابت د صحت او حسن خلاف نه دی دوهم دا چي د ټولو محدثينو په نزد د اعمالو په فضائلو كي پر ضعيف حديث باندي هم عمل كيږي نو د وعظ او نصيحت پر موقع باندي دغه حديث ذكر كول او خلكو ته د دې څخه سبق تر لاسه كول په طريقه اعلى مناسب دي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د غصې زغمل

﴿۴۸۸۹﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا تَجَرَّعَ عَبْدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللّٰهِ عَزَّ وَجَلَّ مِنْ جَرْعَةِ غَيْظٍ يَكْظِمُهَا ابْتِغَاءَ وَجْهِ اللّٰهِ تَعَالَى. رواه احمد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: بنده (د یو شي) غړپ نه چیښني چي د الله جل جلاله په نزد د غصې د غړپ څخه غوره وي چي څوک یې د الله د رضا لپاره وچیښني (یعني که څوک غصه په قابو کي راولي دا د الله جل جلاله په نزد ډېر زیات ثواب لري او ښه عبادت دی). احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱۳۸۱۲.

﴿۴۸۹۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ فِي قَوْلِهِ تَعَالَى ادْفَعْ بِالَّتِي هِيَ أَحْسَنُ قَالَ الصَّبْرُ عِنْدَ الْغَضَبِ وَالْعَفْوُ عِنْدَ الْإِسَاءَةِ فَإِذَا فَعَلُوهُ عَصَمَهُمُ اللّٰهُ وَخَضَعَ لَهُمْ عَدُوُّهُمْ كَأَنَّهُ وَلِيٌّ حَمِيمٌ قَرِيبٌ. رواه البخاري تعليقا.

حضرت ابن عباس رضي الله عنه د الله تعالی ددغه ارشاد (ادفع بالتي هي احسن) په بدۍ سره نیکي دفع کړه، په تفسیر کي فرمایي چي ددې څخه مراد د غصې په وخت کي صبر کول دي او د بدۍ په وخت کي معاف کول دي، بیا هر کله چي د غصې او بدۍ په وخت کي خلک صبر کوي او معافي کوي نو الله تعالی د هغه نفس د آفتونو څخه خوندي ساتي او د دوئ دښمنان به دوئ ته عاجز سي (داسي ګذاره به ورسره کوي) لکه د یو قریب. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵۵۶۱۸، تعلیقا.

**تشریح**: په روایت کي د آیت کریمه دغه ټوټه نقل سوې ده چي هغه په خپل سیاق او سباق سره داسي ده: (ولا تستوي الحسنة ولا السيئة ادفع بالتي هي احسن السيئة)، یعني د آیت تعلیم

دادی چي د بدی بدله بدي نه ده بلکه د بدئ بدله نیکي ده ، که یو څوک ستا سره بدي وکړي نو ته د هغه سره نیکي وکړه ، ددغه آیت په تفسیر کي ابن عباس رضي الله عنه فرمايي چي بدي د نیکي په ذریعه دفع کړه ، ددې څخه مراد دادی چي کله غصه درسي نو صبر او تحمل اختیار کړه او که د چا څخه بدي او تکلیف در ورسیږي نو د هغه سره د عفو او معافي چلن کوه .

د قریب لفظ په اصل کي د حمیم تفسیر دی ، او دغه جمله د ذکر سوي آیت ددغه اخري برخي تفسیر دی : (فاذ الذي بینک وبینه عداوة کانه ولي حمیم) بیا به ناڅاپه ته ووینې چي ستا او د کوم سړي په منځ کي عداوت وو هغه به داسي وي لکه یو نژدې ملګری چي وي .

## غصه ایمان خرابوي

《۴۸۹۱》: وَعَنْ بَهْزِبْنِ حَكِيْمٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْغَضَبَ لَيُفْسِدُ الْإِيْمَانَ كَمَا يُفْسِدُ الصَّبْرُ الْعَسَلَ. رواه البيهقي.

حضرت بهز بن حکیم رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روایت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمایل : غصه ایمان خرابوي لکه څرنګه چي صَبِر (یو تریخ بوټی) شات خرابوي. بیهقي.

**تخریج**: البیهقي في الشعب ۳۱۱\۶، رقم: ۸۲۹۴.

**تشریح**: د ایمان څخه کمال ایمان مرا ددی یا نور ایمان مرا ددی، او په دې کي هم څه شک نسته چي دېر واره د غصې سختوالی اصل ایمان هم ختموي ، نعوذ باالله من ذلک .

## تواضع اختیار کړئ

《۴۸۹۲》: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ وَهُوَ عَلَى الْمِنْبَرِ يَا أَيُّهَا النَّاسُ تَوَاضَعُوْا فَإِنِّي سَمِعْتُ

حضرت عمر رضي الله عنه پر منبر وفرمایل : اې خلکو ! تواضع او عاجزي اختیار کړئ ، ما اوریدلي دي

رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ تَوَاضَعَ لِلّٰهِ رَفَعَهُ اللهُ فَهُوَ فِيْ نَفْسِهِ

د رسول الله ﷺ څخه څوک چي د الله جل جلاله د رضا تر لاسه کولو لپاره د تواضع څخه کار واخلي نو الله تعالی د هغه مرتبه لوړوي نو دی به په خپل زړه کي

صَغِيْرٌ وَّفِيْ أَعْيُنِ النَّاسِ عَظِيْمٌ وَمَنْ تَكَبَّرَ وَضَعَهُ اللهُ فَهُوَ فِيْ أَعْيُنِ النَّاسِ

کوچنی وي خو د خلکو په سترګو (نظر) کي به لوی وي او څوک چي تکبر او غرور کوي الله تعالی هغه ذلیل کوي بیا د خلکو په نظر کي هغه حقیر او ذلیل سي

صَغِيْرٌ وَفِيْ نَفْسِهِ كَبِيْرٌ حَتّٰى لَهُوَ أَهْوَنُ عَلَيْهِمْ مِنْ كَلْبٍ أَوْ خَنْزِيْرٍ. رواه البيهقي

که څه هم چي هغه په خپل نظر ځان لوی ګڼي تر دې چي بیا هغه د خلکو په نظر کي د سپي او خنزیز څخه هم زیات بدتر وي. بیهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۲۷۶\۶، رقم: ۸۱۴۰.

**تشريح**: مطلب دادی چي متکبر او مغرور سړی که څه هم خپل ځان لوی او عزتمند ګڼي او نورو ته هم خپله مصنوعي لويي او عزت ښيي مګر هغه د الله ﷻ په نزد ذليل او حقير وي او د خلکو په نظر کي هم ډېر بې حيثيته وي، ددې پر خلاف کوم څوک چي تواضع اختيار روي که څه هم هغه خپل ځان حقير ګڼي او د خلکو په وړاندي هم خپل ځان بې حيثيته ظاهروي مګر د الله تعالى په نزد د هغه مرتبه ډېره لوړه ده او د خلکو په نظر کي هم د هغه ډېر عزت او وقعت دی.

### خلک معافول

﴿۴۸۹۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مُوْسَى بْنُ عِمْرَانَ عَلَيْهِ السَّلَامُ يَا رَبِّ مَنْ أَعَزُّ عِبَادِكَ عِنْدَكَ؟ قَالَ مَنْ إِذَا قَدَرَ غَفَرَ. رواه البيهقي.

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: حضرت موسى بن عمران عليه السلام وويل: اې پروردګاره! ستا په بندګانو کي څوک ستا په نزد ډېر عزت ناک دی؟ الله تعالى ورته وفرمايل: هغه څوک چي د بدلې اخيستلو د قدرت سره خلک معاف کړي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۳۱۹\۶، رقم: ۸۳۲۷.

**تشريح**: يعني که چيري پر هغه يو څوک ظلم وکړي او هغه يې په تکليف کي اخته کړ او هغه د بدلې اخيستلو توان درلودی مګر هغه يې معاف کړ، د حضرت موسى عليه السلام پر طبيعت باندي جلالي کيفيت غالب وو ځکه الله تعالى ددغه جواب په ذريعه هغه ته تلقين وکړ چي د عفو رويه اختيار کړه. د جامع صغير په يوه روايت کي نقل سوي دي چي کوم څوک د بدلې اخيستلو توان لري او بيا هم د عفو لار اختيار کړي نو الله تعالى به د قيامت په ورځ هغه ته عفوه وکړي.

﴿۴۸۹۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ خَزَنَ لِسَانَهُ سَتَرَ اللهُ عَوْرَتَهُ وَمَنْ كَفَّ غَضَبَهُ كَفَّ اللهُ عَنْهُ عَذَابَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَمَنِ اعْتَذَرَ إِلَى اللهِ قَبِلَ اللهُ عُذْرَهُ. رواه البيهقي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: چا چي خپله ژبه بنده وساتل الله تعالى به د هغه عيب پټ وساتي او چا چي خپله غصه بنده کړه الله تعالى به يې د قيامت په ورځ د خپل عذاب څخه وساتي او څوک چي د الله تعالى څخه د خپل ګناه معافي او بخښنه وغواړي الله تعالى د هغه عذر قبلوي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٦\٣١٥١، رقم: ٨٣١١٨٢٩٤.

## درې شيان د نجات او درې شيان د هلاکت

﴿۴۸۹۵﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ثَلَاثٌ مُنْجِيَاتٌ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: درې شيان خلاصون

وَثَلَاثٌ مُهْلِكَاتٌ فَأَمَّا الْمُنْجِيَاتُ فَتَقْوَى اللهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ وَالْقَوْلُ

ورکونکي دي او درې شيان هلاکونکي دي، خلاصون ورکونکي شيان يو خو په ظاهر او باطن کي د الله تعالى څخه ببيره ده، دويم د حق خبره کول

بِالْحَقِّ فِي الرِّضٰى وَالسَّخَطِ وَالْقَصْدُ فِي الْغِنٰى وَالْفَقْرِ وَأَمَّا الْمُهْلِكَاتُ فَهَوًى

په خوښي او ناخوښۍ دواړو حالتونو کي او دريم په شتمنتوب او فقر دواړو حالتونو کي ميانه روي اختيارول، او هلاکونکي شيان دادي: د نفس هغه خواهش

مُتَّبَعٌ وَشُحٌّ مُطَاعٌ وَإِعْجَابُ الْمَرْءِ بِنَفْسِهِ وَهِيَ أَشَدُّهُنَّ. روى البيهقي الأحاديث الخمسة في شعب الإيمان.

چي د هغه پيروي وکړل سي يعني هغه نفساني خواهش چي هغه پوره کړل سي، دويم هغه حرص

او بخل چي انسان د هغه غلام جوړ سي او دريم د سړي خپل ځان تر نورو خلكو بزرگ او ښه گڼل او دا ډير بد عادت دئ. بيهقي په شعب الايمان كي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ٦\٤٥٢، رقم: ٧٢٥٢.

**تشريح**: په خوښي او ناخوښي كي د حق خبري كولو مطلب دادی چي حقيقت بيانول او حق ويل د يو حكمت، گڼي، خوښۍ او ناخوښي د جذباتو پابندول نه دي پكار بلكه كه چيري د چا څخه راضي او خوشحاله وي نو د هغه په مخكي دي هم هغه خبره كوي كوم چي حق وي او كه د هغه څخه ناراضه وي نو په دغه صورت كي هم حق خبره كول پكار دي د مثال په توگه كه چيري د يو چا څخه يو گټه تر لاسه كول وي چي د نورو خلكو سره د هغه ظلم او فسق ثابت وي نو د هغه ناحق تعريف او د حقيقت خلاف خبره محض دده لپاره دي نه كوي چي د ذاتي گټي تر لاسه كولو په وجه هغه ځيني خوشحاله وي، همدارنگه كه يو صالح او بزرگ كس سره په يوه معامله كي اختلاف او د ناراضۍ صورت پيدا سي نو محض د خپل ذاتي ناراضي په وجه دي د هغه بدي نه بيانوي، خلاصه دا چي د چا څخه خوشحاله وي يا ناراضه وي په دواړو صورتو كي د استقامت پر لاره تلل پكار دي او د حق ويني فريضه دي په هيڅ حال كي تر شا نه غورځوي.

د ميانه روي اختيارولو مطلب دادی چي په مصرف كي دي نه دومره پراختيا كوي چي پر هغه د اسراف اطلاق وسي او نه دي دومره تنگي اختياروي چي فقر او مفلسي څرگندېدل پيل سي، يا دا مراد دی چي د فقر او غناء په منځ كي اعتدال دي قائم كړي او د ميانه روۍ لار دي اختيار كړي لكه څرنگه چي علماء كرامو ويلي دي چي د حصول معاش په هڅه كي پر هغه حد باندي اكتفاء كول چي په هغه د ژوند اړتياوي تر لاسه كيږي، د غناء او فقر دواړو افضل دي.

د نفس خواهش چي د هغه پيروي وكړل سي: مطلب دادی چي خپل ځان د نفس د خواهشاتو داسي تابع كول چي د هغه هر خواهش پوره كول پيل كړي او هغه چي څه وايي او كومي خوا ته يې بيايي هغه خوا ته ځي نو دا يو داسي خصلت دی چي په هلاكت كي يې اچوي، ددې پر خلاف د ايمان كامل كېدل پر دې خبره منحصر دی چي خپل نفس د فرمان حق او شريعت مصطفوي تابع جوړ كړي.

د بخل او حرص د غلام كېدو مطلب دادی كه څه هم بخل او حرص د انسان په طبيعت كي داخل دی او په دې وجه دا ممكن نه ده چي انسان د بخل او حرص د مادې څخه بالكل خالي وي مگر خپل ځان د بخل او حرص دومره غلام كول چي په هيڅ صورت كي هم د دغه شيانو څخه خوندي كېدل ممكن نه وي نو دا يو داسي خصلت دی چي انسان په اخروي تباهۍ كي اچوي.

د حديث د اخري الفاظو مطلب دادى چي په هلاكت كي د اچونكو كومو درو شيانو ذكر سوى دى په هغو كي د ګناه او تاوان له موخي تر ټولو بد خصلت خودبيني ده چي د هغه په وجه انسان په تكبر او غرور كي اخته كيږي ځكه چي د نفس پيروي او د بخل او حرص غلامي دغه دواړه داسي خرابۍ دي كه چيري يو څوك په دغه خرابيو كي اخته سي نو دهغه د جال څخه خپل ځان ايستل او د توبې لار اختيارول زيات نه مشكل كيږي مګر خود بيني يو داسي ناروغي ده كه چيري يو چا ته لاحقه سي نو هغه د خپل بد كار او ښه كار احساس هم نسي كولاى او نتيجه دا سي چي هغه پر خپل خراب كار باندي نه پښېمانه كيږي او د توبې د لاري څخه ډېر ليري سي لكه څرنګه چي بدعتي د بدعت په جال كي داسي وموښلي چي د هغه څخه وتل اسانه نه وي نو بدعتي ته ډېر كم د توبې توفيق تر لاسه كيږي .

===========

# بَابُ الظُّـلْمِ (د ظلم بيان)

د ظلم لغوي معنى ده د يو شي بې موقع او بې محله ساتل يعني د كوم شي چي كوم ځاى او كوم محل وي هغه د خپل محل پر ځاى په بل محل كي ايښودل او دغه مفهوم هر هغه شي ته شامل دى چي د خپل د حد څخه تجاوز وكړي او هغه چي څرنګه واقع كيږي د هغه پر ځاى تاوان بې ځايه او بې وخته واقع سي نو كوم شي ته چي په عامه اصطلاح كي زور او زياتي ويل كيږي د هغه هم دغه معنى ده او په شريعت كي د ظلم دا معنى مراد ده ، مګر دا ويل كيږي چي د موقع او محل څخه شرعي موقع او محل مراد واخستل سي يعني په شرعي توګه د ظلم اطلاق پر هغه شي كيږي چي د خپل شرعي موقع او محل څخه بېله وجه شرعي تجاوز وكړي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### ظالم د قيامت په ورځ

﴿۴۸۹۶﴾: عَنِ بْنِ عُمَرَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الظُّلْمُ ظُلُمَاتٌ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ظلم به د قيامت په ورځ د تاريكو سبب وي . بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۰۰، رقم: ۲۴۴۷، ومسلم ۴\۱۹۹۶، رقم: ۵۷- ۲۵۷۹.

**تشریح**: مطلب دادی چي ظالم به د قیامت په ورځ د حشر په میدان کي داسي راګیر سوی وي چي د هغه نور څخه به محروم وي کوم چي مؤمن ته ورکول کیږي او دهغه په اړه الله تعالی په قرآن کریم کي داسي فرمایلي دي : (نورهم یسعی بین ایدیهم و بایمانهم) یعني د قیامت په ورځ به د مؤمنانو نور د هغوئ په مخکي او راسته خوا ته ځغلي چي د هغه په رڼا کي به هغوئ خپل منزل تر لاسه کوي .

ځیني حضرات وایي چي د ظلمات (تیارو) څخه د آخرت هغه تکلیفونه او عذابونه مراد دي چي د قیامت په ورځ به دوږخیان په هغه کي اخته وي، په قرآن کریم کي هم په ځینو ځایو کي د ظلمات معنی په سختیو سره اخیستل سوې ده لکه په دغه آیت کي چي فرمایل سوي دي : (قل من ینجیکم من ظلمات البر والبحر) ، ته ووایه چي تاسو ته د ځنګل او دریاب د تکلیفو او سختیو څخه څوک خلاصون درکوي .

## ظالم ته وخت ورکول

﴿۴۸۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ لَيُمْلِي الظَالم حَتَّى إِذَا أَخَذَهُ لَمْ يُفْلِتْهُ ثُمَّ قَرَأَ وَكَذٰلِكَ أَخْذُ رَبِّكَ إِذَا أَخَذَ الْقُرَى وَهِيَ ظَالِمَةٌ...الاية. متفق علیه.

د حضرت ابوموسی رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی ظالم ته وخت ورکوي (یعني د هغه عمر اوږدوي چي دظلم پیمانه یې ډکه سي) بیا هغه داسي ونیسي چي نه یې پریږدي ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ (وکذالک اخذربک.....) او ستا د پروردګار نیول داسي دي کله چي هغه کلي والا چي ظالم وي وه یې نیسي.... بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۸\۳۵۴، رقم: ۴۶۸۶، ومسلم ۴\۱۹۹۷، رقم: ۶۱- ۲۵۸۳.

**تشریح**: په دغه حدیث کي مظلومانو ته ډاډ ورکړل سوی دی چي هغوئ پر کېدونکي ظلم باندي صبر او استقامت اختیار کړي او دهغه ورځي انتظار دي وکړي کله چي د قانون قدرت ټېنګ لاس د ظالم پر غاړه وي او هغه ته د خپل ظلم سخته سزا ورکوي او په دغه ارشاد کي د ظالمانو لپاره سخت وعید او خبرداری دی چي هغوئ د الله تعالی له خوا پر دغه مهلت مغرور نسي بلکه یقین دي وکړي چي په پای کي هغوئ ته د الله تعالی د سختي مؤاخذې سره مخامخ

کېدل دي او د خپل ظلم سزا به يقينا تر لاسه کوي، لکه څرنگه چي الله تعالى فرمايلي دي : (ولا تحسبن الله غافلا عما يعملون الظالمون ...) او تاسو الله تعالى د هغه شي څخه غافل مه گڼئ کوم چي ظالم يې اختياروي.

## د قوم ثمود كلى

﴿۴۸۹۸﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ ان النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لما مر بِالْحِجْرِ قَالَ

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي كله به رسول الله ﷺ د حجر (د قوم ثمود ځاى) سره تيريدئ نو خلكو ته يې وفرمايل :

لَا تَدْخُلُوا مَسَاكِنَ الَّذِينَ ظَلَمُوا أَنْفُسَهُمْ أَنْ يُصِيبَكُمْ مَا أَصَابَهُمْ إِلَّا أَنْ

ددغه خلكو ځايونو ته مه ورځئ چي پر خپلو ځانونو يې ظلم كړى دى (او خپل پيغمبر حضرت صالح عليه السلام يې درواغجن گڼلى دى) خو تاسو ددغه كنډوالو څخه عبرت تر لاسه كړئ

تَكُونُوا بَاكِينَ ثُمَّ قَنَّعَ رَأْسَهُ وَأَسْرَعَ السَّيْرَ حَتَّى أَجْتَازَ الْوَادِيَ. متفق عليه.

په ژړا ځيني وځئ داسي نه چي پر تاسو باندي هم باندي هغه مصيبت نازل سي كوم چي پر هغوئ نازل سوى وو، بيا رسول الله ﷺ په خپل ځادر سره خپل سر مبارك پټ كړ او په تيزي سره ولاړئ تر څو چي د هغه شېلې څخه ووتئ. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۱۲۵، رقم: ۴۴۱۹، ومسلم ۴\۲۲۸۶، رقم: ۳۹- ۲۹۸۰.

**د لغاتو حل**: الحجر: اى ديار ثمود قوم صالح. قنع: اى اطرق راسه ولم يلتفت يمينا ولا شمالا.

**تشريح**: حجر د هغه ځاى نوم دى چيري چي د مشهور پيغمبر حضرت صالح عليه السلام قوم ثمود اوسيدى، د حجاز په شمالي سيمه كي چي د هغه نوم مدين دى يوه تاريخي شېله ده چي د هغې نوم وادي القرى دى، په دغه شېله كي د تبوك څخه تقريبا پر څلور ميله فاصله باندي دغه ځاى واقع دى، په دغه شېله كي د ثمود قوم اوسيدى، دغه قوم په سركښي كي د حد څخه تجاوز وكړ او د خپل پيغمبر حضرت صالح عليه السلام پر شرعي لار باندي د تللو پر ځاى هغه يې درواغجن وگڼى، سخت تكليفونه يې ور ورسول او د الله تعالى د حكم منلو څخه يې انكار وكړ نو پر هغه قوم باندي عذاب الهي نازل سو نو د هغه ټول كلي خلك تباه كړل سول چي د هغه تباهى اثار اوس هم موجود دي، كله چي رسول الله ﷺ د غزا لپاره د تبوك څخه تللى يا د غزا څخه په فارغه

کېدو سره بېرته راتلی نو په لاره کي رسول الله ﷺ پر هغه شپله تېر سو ، نو ددغه حدیث تعلق دهغه وخت سره دی .

د رسول الله ﷺ پر خپل سر مبارک څادر اچول او د هغه ځای څخه په تلواره تېرېدل لکه څرنگه چي د یو ځای څخه یو بېرېدلی سړی په تلواره تېرېږي دا په دې وجه وو چي د رسول الله ﷺ نظر مبارک د هغوئ پر تباه سوو ځایو باندي ونه لوېږي او په حقیقت کي د رسول الله ﷺ دغه عمل د مسلمانانو د تعلیم لپاره وو چي هغوئ د رسول الله ﷺ پیروي وکړي نو رسول الله ﷺ مخکي د قول په ذریعه خلک دې ته متوجه کړه او بیا یې د تاکید په توگه د خپل فعل په ذریعه هم توجه ورکړه ، دا هم ویل کیدای سي چي د رسول الله ﷺ د هغه ځای څخه په تلوار تربېدل ددې لپاره وو چي خپله پر رسول الله ﷺ باندي د الله تعالی د خوف غلبه ډېره وي او د عذاب الهي اثار د رسول الله ﷺ تر ټولو زیات لړزان کوی لکه څرنگه چي په یو ارشاد کي فرمایي : (انا اعلمکم بالله واخشاکم) یعني زه تر تاسو ټولو زیات د الله تعالی علم لرم او تر ټولو زیات د الله تعالی څخه بېرېږم .

په یوه روایت کي دا هم نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته په هغه ځای کي دا حکم ورکړی وو چي هغوئ دي ددغه ځای څخه خوراک او څښناک نه کوي .

په هر حال د حدیث څخه دا ثابته سوه چي د الله تعالی د سرکښو بندگانو او ظالمانو په ځایو کي دي هستوگنه نه کیږئ او نه دي د هغوئ سیمه خپل هستوگن ځای جوړوي .

## د ظالم څخه د نیکی اخیستل

﴿۴۸۹۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ

د حضرت ابوهریرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د چا چي

لَهُ مَظْلَمَةٌ لِأَخِيهِ مِنْ عِرْضِهِ أَوْ شَيْءٍ فَلْيَتَحَلَّلْهُ مِنْهُ الْيَوْمَ قَبْلَ أَنْ لَا يَكُونَ

پر یو مسلمان ورور څه حق وي نو پکار ده چي هغه مسلمان د هغه څخه هغه حق په دنیا کي معاف کړي ددې څخه مخکي چي هغه ورځ راسي چي په هغه کي به نه درهم څه پکار راځي او نه

دِينَارٌ وَلَا دِرْهَمٌ إِنْ كَانَ لَهُ عَمَلٌ صَالِحٌ أُخِذَ مِنْهُ بِقَدْرِ مَظْلَمَتِهِ وَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ حَسَنَاتٌ أُخِذَ مِنْ سَيِّئَاتِ صَاحِبِهِ فعمل عليه. رواه البخاري .

دينار، كه هغه ورته خپل حق معاف كړنو غوره سوه كنه بيا د قيامت په ورځ كه د ظالم په اعمالو كي څه نيكي وي نو د هغه د نيكيو څخه به د هغه د ظلم برابر نيكي واخيستل سي او مظلوم ته به وركړل سي او كه نيكي يې نه وي نو د مظلوم د بديو څخه به هغه اندازه بدي واخيستل سي او د ظالم په حساب كي به واچول سي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۰۱، رقم: ۲۴۴۹.

**تشريح**: په آخرت كي د ظالم څخه د هغه گناه به داسي اخيستل كيږي كه چيري د هغه په عمل نامه كي يو نيكي وي نو هغه به مظلوم ته وركړل سي او كه نيكي نه وي نو په دغه صورت كي به د مظلوم گناه چي هغه په دنيا كي كړې وي پر هغه ظالم واچول سي نو دخپلي گناه سزا به هم خوري او د مظلوم د گناه په عذاب كي به هم اخته وي او مظلوم ته به د هغه گناه څخه خلاصون وركړل سي چي د هغه په وجه هغه د سزا مستحق وو .

د حديث دغه الفاظ چي هغه به نه درهم لري او نه دينار : دغه الفاظ دې ته اشاره كوي چي كوم څوک پر چا باندي ظلم وكړي نو پر هغه واجب دي چي په هر حالت كي د هغه مظلوم يا حقدار هغه ظلم يا حق خامخا معاف كړي كه څه هم د هغه معافي په عوض كي روپۍ خرڅ كړل سي او په دنيا كي د معافۍ تلافي كېدل تر دې ډېر زيات غوره او اسان دي چي د عدم معافي په صورت كي د هغه نيكۍ واخلي يا دخپلو گناهونو بار پر هغه واچوي .

د هغه د ظلم يا واجب حق پر حقدار : په دې اړه صحيح خبره داده چي د كميت او كيفيت په اعتبار د هغه د نيكيو او گناهو د مقدار تعين علم الهي ته حواله دى يعني هغه ښه پوهيږي چي د هغه نيكيو او گناهو اخيستل او وركول به څرنگه او په كوم اعتبار وي بيا هم ابن ملک رحمه الله عليه ليكلي دي چي دكومو نېكيو او بديو اخيستل او وركول وي ، كيداى سي چي هغه نفس عمل وي چي هغه به د جواهرو په ډول په مجسم كولو سره وړاندي كړل سي او دا هم كيداى سي چي يو بل ته هغه نعمتونه يا عذاب وركړل سي چي د هغه نيكيو او بديو د جزا او سزا په توگه د الله تعالى له خوا ټاكل سوي وي .

## حقيقي مفلس څوک دئ؟

**(۴۹۰۰)**: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَتَدْرُونَ مَا الْمُفْلِسُ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : تاسو ته معلومه ده چي مفلس څوک دى ؟

قَالُوا الْمُفْلِسُ فِينَا مَنْ لَا دِرْهَمَ لَهُ وَلَا مَتَاعَ فَقَالَ إِنَّ الْمُفْلِسَ مِنْ أُمَّتِي

صحابه کرامو وویل: په موږ کي خو مفلس هغه څوک دی چي نه ورسره درهم وي او نه سامان او اسباب، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: زما په امت کي مفلس هغه څوک دی

من يَأْتِي يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِصَلَاةٍ وَصِيَامٍ وَزَكَاةٍ وَيَأْتِي قَدْ شَتَمَ هَذَا وَقَذَفَ هَذَا

چي د قیامت په ورځ یې د دنیا څخه یې د ځان سره لمونځ، روژه، زکوة وغیره هر ډول عبادتونه راوړي وي او په دې سره چا ته د ښکنځلو کولو، پر چا د تهمت لګولو،

وَأَكَلَ مَالَ هَذَا وَسَفَكَ دَمَ هَذَا وَضَرَبَ هَذَا فَيُعْطَى هَذَا مِنْ حَسَنَاتِهِ وَهَذَا

د چا د مال خوړلو، د چا په ناحقه وژلو او د چا په ناحقه وهلو ګناه هم راوړي وي نو هر مظلوم ته به د ظالم د نیکیو څخه نیکي ورکول کیږي

مِنْ حَسَنَاتِهِ فَإِنْ فَنِيَتْ حَسَنَاتُهُ قَبْلَ أَنْ يُقْضَى مَا عَلَيْهِ أُخِذَ مِنْ خَطَايَاهُمْ فَطُرِحَتْ عَلَيْهِ ثُمَّ طُرِحَ فِي النَّارِ. رواه مسلم.

او هر کله چي د هغه نیکۍ ختمي سي او د خلکو حقونه پاته سي نو د هغه حقدارانو بدۍ او ګناه به د هغه په حساب کي جمع کړل سي او بیا به هغه په دوږخ کي واچول سي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۹۹۷\۴، رقم: ۵۹- ۲۵۸۱.

**تشریح**: په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي د بندګانو حقوق تر ټینو لاندي کونکي ته به په آخرت کي نه معافي کیږي او نه به د هغه په حق کي شفاعت په کار راځي، مګر که الله تعالی د چا لپاره وغواړي نو هغه صاحب حق ته به د هغه د غوښتني سره سم خپل نعمتونه ورکړي او هغه به راضي کړي.

نووي رحمه الله وايي: د رسول الله ﷺ د ارشاد مبارک خلاصه داده چي په عامه توګه خلک مفلس هغه چا ته وايي چي هغه مال او روپۍ نه لري یا ډېري کمي وي مګر په حقیقت کي مفلس هغه څوک دی چي د هغه په اړه ذکر سوی دی نو په دنیاوي مال او دولت څخه خالي سړي ته حقیقي مفلس نه ویل کیږي ځکه چي د مال او دولت افلاس عارضي دی چي په مرګ سره ختمیږي بلکه ډېر واره په ژوند کي هغه افلاس په شتمنۍ بدل سي، ددې پر خلاف په حدیث کي

چي د کوم افلاس ذکر سوی دی هغه تعلق د همېشه ژوند سره دی او په دغه افلاس کي اخته کېدونکی سړی به په پوره توګه هلاکېږي.

## د قیامت په ورځ پوره حساب اخیستل کیږي

﴿۴۹۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتُؤَدُّنَّ الْحُقُوقَ إِلَى أَهْلِهَا يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُقَادَ لِلشَّاةِ الْجَلْحَاءِ مِنَ الشَّاةِ الْقَرْنَاءِ. رواه مسلم وذكر حديث جابر اتقوا الظلم في باب الانفاق.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ به د حقدارانو حقوق ادا کړل سي تر دې چي د بې ښکرو پسو لپاره به د ښکرورو پسو څخه بدله واخیستل سي. مسلم او د جابر حدیث اتقوا الظلم په باب الانفاق کي تیر سوی دی.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۹۹۷\۱۴، رقم: ۶۰– ۲۵۸۲.

**د لغاتو حل**: الجلحاء: التي لاقرن لها.

**تشریح**: مطلب دادی چي د حشر په میدان کښ به د الله تعالی عدل او انصاف تر دې حده وي چي د انسانانو د حقوقو بدله به اخیستل کیږي مګر حیوانان چي د انسان په ډول مکلف نه دي ګرځول سوي د هغوئ څخه به هم د حق تلفی بدله واخیستل سي، ځینو علماؤ لیکلي دي چي دغه قصاص یعني بدله داسي قصاص نه دی کوم چي د مکلف څخه اخیستل کیږي بلکه ددې څخه د مقابلې قصاص مراد دی.

مګر ملا علي قاري رحمه الله لیکلي دي چي دا د مقابلې قصاص ګرځول محل نظر دی او دا صحیح خبره نه ده، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي ددغه قصاص څخه هم هغه قصاص مراد دی کوم چي د مکلف څخه اخیستل کیږي، مګر دلته دا سوال پیدا کیږي چي حیوان مکلف نه دی نو د هغه څخه به قصاص څرنګه اخیستل کیږي؟ ددې مختصر جواب دادی چي اول خو الله تعالی فعال لما یرید دی په دې اعتبار سره هغه دخپل مرضی مالک او پر خپل هر فعل باندي قادر او مختار دی نو: ولا یسال عما یفعل، یعني هغه چي څه کوي او څرنګه یې کوي د هغه څخه هیڅوک سوال کونکی نسته، دوهم دا چي دلته د پسه څخه د قصاص اخیستلو ذکر د بندګانو د خبرداري لپاره دی چي د هیچا حق به ضائع نسي بلکه کوم څوک چي د چا حق خوري او د هغه سره ظلم وکړي نو د هغه څخه په د هغه حق او ظلم بدله حقدار او مظلوم ته ضرور

ورکول کیږي، دغه دوهم تاویل زیات ښه او زیات قابل فهم دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### که څوک بد درسره وکړي ظلم مه پر کوئ

﴿۴۹۰۲﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَكُونُوا إِمَّعَةً تَقُولُونَ إِنْ أَحْسَنَ النَّاسُ أَحْسَنَّا وَإِنْ ظَلَمُوا ظَلَمْنَا وَلَكِنْ وَطِّنُوا أَنْفُسَكُمْ إِنْ أَحْسَنَ النَّاسُ أَنْ تُحْسِنُوا وَإِنْ أَسَاءُوا فَلَا تَظْلِمُوا. رواه الترمذي.

د حضرت حذيفة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو (امعه) مه جوړیږئ چي داسي ووایاست که خلک زموږ سره نیکي کوي نو موږ به هم ورسره نیکي کوو او که ظلم کوي نو موږ به هم ورسره ظلم کوو بلکه د ځان لپاره دا لازم کړئ که څوک درسره نیکي وکړي نو هم به ورسره نیکي کوئ او که درسره بدي وکړي نو تاسو ظلم مه کوئ. ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۳۲۰، رقم: ۲۰۰۷.

**تشریح**: اِمَّعَة په اصل کي هغه چا ته وایي چي خپله رایه او عقل نه لري او بې فکره د نورو پر رایه او وینا باندي ځي، دلته په حدیث کي د دغه لفظ څخه هغه څوک مراد دی چي دا وایي چي خلک څرنګه چلن زما سره کوي هم هغسي چلن به زه هم د هغوئ سره کوم که هغوئ زما سره نیکي کوي نو زه به هم نیکي ورسره کوم او که هغوئ زما سره بدي کوي نو زه به هم د هغوئ سره بدي کوم، رسول الله ﷺ وفرمایل: تاسو داسي مه جوړیږئ ځکه چي دا د دین او پوهي خلاف خبره ده د نیکۍ بدله نیکي ده مګر د بدۍ بدله هم نیکي ده، کوم څوک چي ستاسو سره بدي وکړي نو تاسو د هغه سره نیکي کوئ یعني د هغه سره د احسان چلن کوئ ځکه چي د انتقام لپاره د ظلم او بدۍ لار پرېښودل احسان دی مګر دا هم کیدای سي که چیري خلک در سره بدي وکړي نو ته د هغوئ سره ظلم مه کوه، ددې څخه دا مراد دی که چیري یو څوک بدي درسره وکړي نو ته د هغه سره په مقابله کي د حد څخه تجاوز مه کوه بلکه د اعتدال په حد کي په اوسېدو سره د هغه څخه بدله واخله لکه څرنګه چي مشروع دي، یا د بدي کونکي څخه پر بدله اخیستلو باندي خپل ځان پابند مه جوړوه بلکه د هغوئ عفوه هم کوه یا د بدۍ بدله په نیکي ګرځولو سره د بدي کونکي سره احسان وکړه، څرګنده دي وي چي په دغه درو صورتو کي لومړی صورت هغه دی

چي هغه د عامو مسلمانانو مطابق قرار کړځول کيږي، د دوهم صورت تعلق د هغه مسلمانانو سره دی چي د هغوئ شمېر په خواصو کي کيږي او دريم صورت چي تر ټولو اعلی درجه ده د هغه مسلمانانو سره متعلق دی چي هغوئ ته اخص الخواص ويل کيږي.

شيخ علي متقي رحمه الله په يوه رساله کي ډېره عارفانه خبره کړې ده، هغه فرمايي د دنيا او آخرت د ميني پېژندلو معيار دغه څلور شيان دي: ۱: پر کوم چا چي د دنيا محبت غالب سي نو هغه خلکو ته بېله وجه تکليف رسوي او پر ناحقه د هغوئ سره بدي کوي، ۲: کوم څوک چي د دنيا په محبت کي تر دغه درجې پوري اخته نه وي نو هغه چا ته په تکليف رسولو کي پېل نه کوي مګر کوم څوک چي هغه ته تکليف رسوي نو هغه د حد څخه د تجاوز کولو پرته هغه ته دومره تکليف رسوي کوم چي شريعت د بدلې په توګه جائز کړی دی، ۳: د چا چي د آخرت محبت قوي وي او دنيوي محبت يې ضعيف وي نو هغه د هغه چا سره د عفوي معامله کوي چي څوک پر ده ظلم کوي، ۴: د چا چي د آخرت محبت ډېر زيات وي هغه د ظلم په مقابله کي احسان کوي او دا هغه درجه ده چي صديقانو او مقربينو ته تر لاسه ده.

## د الله تعالی رضا تر لاسه کړئ

﴿۴۹۰۳﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ أَنَّهُ كَتَبَ إِلَى عَائِشَةَ أَنْ اكْتُبِي إِلَيَّ كِتَابًا تُوصِينِي فِيهِ

د حضرت معاوية رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه بي بي عائشې رضي الله عنها ته وليکل چي ما ته يو خط راوليږه او په هغه کي ما ته نصيحتونه وليکه

وَلَا تُكْثِرِي فَكَتَبَتْ سَلَامٌ عَلَيْكَ أَمَّا بَعْدُ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

چي زيات اوږده نه وي، بي بي عائشې رضي الله عنها په جواب کي وليکل پر تا دي سلام وي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ الْتَمَسَ رِضَا اللَّهِ بِسَخَطِ النَّاسِ كَفَاهُ اللَّهُ مُؤْنَةَ النَّاسِ

څوک چي د الله تعالی رضا ولټوي او د خلکو د غضب او ناراضګی خيال نه ساتي نو الله تعالی يې د مرستي لپاره کافي دئ چي د خلکو د ضرر څخه يې ساتي، (يعني خلک هم د هغه څخه

وَمَنْ الْتَمَسَ رِضَا النَّاسِ بِسَخَطِ اللَّهِ وَكَلَهُ اللَّهُ إِلَى النَّاسِ وَالسَّلَامُ عَلَيْكَ.

رواه الترمذي.

راضي کوي) او څوک چې د خلکو رضا لټوي او د الله تعالى د غضب او ناراضګی پروا نه ساتي نو الله تعالى به دا سړی خلکو ته حواله کړي او پرتا دي سلام وي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۷، رقم: ۲۴۱۴.

**تشريح**: هغه خلکو ته سپاري: مطلب دادی چې کوم څوک د الله تعالى د خفګان څخه په بې پرواه کېدو سره د خلکو رضا او خوشحالی ته ترجیح ورکوي نو الله تعالى هم د هغه څخه بې پروا کیږي او د هغه چاري خلکو ته سپاري یعني نه یوازي دا چې د هغه په دغه چارو کي مرسته نه کوي او د نورو د شر او فتنې څخه یې خوندي نه ساتي بلکه خلک پر هغه مسلط کوي چې هغه ته تکلیف رسوي او پر هغه ظلم کوي، خلاصه دا چې د بندګانو په حق کي اصل شی د الله تعالى رضا ده که الله تعالى راضي او خوشحاله وي نو مخلوق هم راضي او خوشحاله کیږي او که د الله تعالى رضا په نظر کي نه وي نو بیا به نه الله تعالى راضي او خوشحاله وي او نه مخلوق.

ددغه روایت څخه دا معلومه سوه چې د خط په پیل کي هم سلام لیکل پکار دي او په پای کي هم، په پیل کي سلام د ملاقات د سلام درجه لري او په پای کي د رخصت د سلام قائم مقام دی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د ظلم څخه مراد شرک هم دئ

﴿۴۹۰۴﴾: عَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ الَّذِينَ آمَنُوا وَلَمْ يَلْبِسُوا إِيمَانَهُمْ

د حضرت ابن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چې کله دا آیت نازل سو (الذین آمنوا ولم یلبسوا....) کومو خلکو چې ایمان راوړ او خپل په ایمان کي یې ظلم ګډ نه کړ نو

بِظُلْمٍ شَقَّ ذَلِكَ عَلَى أَصْحَابِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَقَالُوا يَا رَسُولَ

دا هغه خلک دي چې د دوئ لپاره امن دی او دوئ سیده لاره پیدا کونکي دي، صحابه کرامو ته دا خبره ګرانه ښکاره سوه، وه یې ویل: اې د الله رسوله!

اللَّهِ أَيُّنَا لَم يَظْلِمُ نَفْسَهُ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ ذَاكَ

په موږ کي به داسي څوک وي چې پر ځان به یې ظلم نه وي کړی، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل: د ظلم څخه دا مراد نه دی

انما هو الشرك اَلَمْ تَسْمَعُوْا قَوْلَ لُقْمَانَ لِابْنِهٖ يَا بُنَيَّ لَا تُشْرِكْ بِاللّٰهِ إِنَّ

بلکه شرک څيني مراد دئ ، ايا تاسو د لقمان حکيم هغه نصيحت نه دئ اوريدلی چي هغه خپل زوی ته کړی وو (يعني دا چي اې بچيه ! د الله تعالی سره څوک شريک مه جوړوه) ځکه چي

الشِّرْكَ لَظُلْمٌ عَظِيمٌ، وفي رواية لَيْسَ هُوَ كَمَا تَظُنُّونَ إِنَّمَا هُوَ كَمَا قَالَ لُقْمَانُ لِابْنِهٖ. متفق عليه.

شرک ډير لوی ظلم دی ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دا خبره نه ده چي تاسو ګمان کړی دی بلکه د ظلم څخه مراد هغه دی چي لقمان خپل زوی ته ويلي وه . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\ ۵۱۳، رقم: ۴۷۷۶، ومسلم ۱\ ۱۱۴، رقم: ۱۹۷- ۱۲۴.

**تشريح**: کله چي ذکر سوی آيت نازل سو نو صحابه کرامو ظلم پر ګناه حمل کړ يعني هغوئ دا وګڼل چي په دغه آيت کي مؤمنان مامون او هدايت يافته ګرځول سوي دي ددې څخه هغه مؤمنان مراد دي چي د هغوئ اعمال او ګناه د آميزش څخه بالکل پاک وي نو هغوئ د خپل ګمان مطابق د دغه آيت کريمه په نزول سره ډېر پرېشانه سول او رسول الله ﷺ ته يې وويل چي د دغه آيت په رڼا کي خو کېدای سي چي په موږ کي څوک مؤمن هدايت يافته او مامون وګرځول سي ځکه چي په موږ کي داسي کوم څوک دی چي د هغه څخه معصيت او ګناه نه وي سوې ، بيا رسول الله ﷺ د صحابه کرامو په مخکي څرګنده کړه چي په دغه آيت کي د ظلم څخه مراد ګناه نه ده لکه څرنګه چي تاسو ګمان کړی دی بلکه شرک مرا د دی .

که چيري دلته دا سوال پيدا سي چي د ايمان سره د شرک مخلوط کېدل څرنګه ممکن دي ځکه چي ايمان د شرک ضد دی مګر د ايمان سره د ګناه مخلوط کېدل معلومه خبره ده ، او له دې کبله د صحابه کرامو ذهن دې خوا ته تللی وو چي د ظلم څخه مراد ګناه ده ، نو ددې جواب دادی چي د ايمان سره د شرک مخلوط کېدل د واقع په اعتبار صحيح دي ، ددې مثال د مکې مشرکين وه ، هغوئ که څه هم پر الله تعالی باندي ايمان درلودی مګر ددې سره يې بت پرستي هم کول، څرګنده دي وي چي د شرک دوه ډولونه دي يو شرک في الربوبية يعني په عبادت او تعظيم کي نور څوک هم خدايان ګرځول ، دغه ډول شرک په دنيا کي کم دی، دوهم شرک في الالوهية يعني

په عبادت او تعظم او د الله تعالی په خاصو صفاتو لکه خالقیت، رازقیت، او داسي نورو کي د الله تعالی سره بل څوک شریکول، دغه ډول شرک په دنیا کي ډېر دی، ځیني په نامه مسلمانان هم په دغه شرک کي اخته دي، په حدیث کي چي کوم شرک پر ظلم محول سوی دی د هغه څخه هغه شرک مراد دی چي د هغه تعلق د دوهم ډول سره دی، ددې خبري دلیل د قرآن کریم دغه آیت دی: (ومایؤمن اکثرهم باالله الا وهم مشرکون) او په هغوئ کي زیات داسي هم دي چي الله مني او شرک هم کوي.

ددې څخه پرته دا هم ویل کیږي چي د ایمان سره ظلم یعني شرک یو ځای کولو دا مراد دی چي په ژبه سره د ایمان اقرار وکړل سي او په زړه کي د شرک تیاره وي لکه څرنګه چي د منافقانو حال دی چي د هغوئ د ظاهري ایمان سره باطني شرک هم مخلوط کوي په دې توګه چي په ژبه سره خو د ایمان اقرار کوي او په ظاهر کي خپل ځان ته مسلمان وایي مګر په زړه کي ایمان نه قبلوي بلکه په هغه کي د هغه شرک او د اسلامي د دښمني جذبات وي.

ملا علي قاري رحمة الله علیه ددغه حدیث په تشریح کي دا لیکلي دي چي: (ان الشرک لظلم عظیم) ځکه چي شرک یقینا ډېر لوی ظلم دی، دا استیناف تعلیل دی چي د هغه مراد دا څرګندوي چي شرک داسي ګناه ده چي ایمان بالکل ختموي، یعني ایمان او شرک په هیڅ حال کي یو ځای کېدا سي نسي لکه چي الله تعالی فرمایي: (ومن یکفر بالایمان فقد حبط عمله) ددې پر خلاف نور ټول ګناهونه داسي دي چي هغه دایمان خلاف وي، د ټول اهل سنت والجماعت دا مذهب دی چي د کفر او شرک څخه پرته هیڅ ګناه داسي نسته چي ایمان بالکل ختموي، حال دا چي معتزله، خوارج او نور اهل بدعت هره کبیره ګناه د ایمان خلاف ګڼي، کله چي ذکر سوی آیت نازل سو نو صحابه کرامو دا ګڼلې وه چي په دغه آیت کي کوم خلک مؤمن او هدایت یافته ګرځول سوي دي د هغو څخه هغه خلک مراد دي چي هغوئ خپل ایمان په ګناه سره ملوث کړی نه دی ځکه چي د شرک د ایمان سره مخلوط کېدل په پوهه کي راتلونکې خبره نه ده نو رسول الله ﷺ هغوئ ته څرګنده کړه چي په ځینو صورتو کي د ایمان سره د شرک یو ځای کېدل ممکن دي لکه یو څوک چي پر الله باندي ایمان راوړي او د هغه په عبادت کي غیر الله شریک کړي، ددې څخه دا خبره څرګندیږي چي په آیت کي د ایمان باالله مفهوم هغه وخت پوره کیږي چي ددې څخه د هغه لغوي معنی مراد دوي نه شرعي معنی ځکه چي په شرعي نقطه نظر سره ایمان د ټولو کمالیه صفاتو د الله تعالی لپاره ثابتولو او د هغه ذات د ټولو عیبو او نقصانو څخه پر پاکولو باندي مشتمل دی که نه نو په آیت کي ایمان پر معنی لغوي د محمول کولو په

صورت کي دا لازميږي چي د حقيقت په اعتبار تول مشركين او كفار ايمان لرونكي دي لكه څرنګه چي الله تعالى فرمايي: (ولئن سالتهم من خلقهم ليقولن الله...) مګر څرګنده ده چي په شريعت کي د داسي ايمان هيڅ اعتبار نسته ، اصل ايمان هغه دی چي د الله تعالى د ذات اعتراف او د هغه په صفاتو کي هيڅوک شريک نه ګرځولو باندي مشتمل وي نو الله تعالى د داسي فعل او عمل هم اجازه نه ده ورکړې چي د هغه څخه ظاهرا او صورتا د شرک ارتكاب کيږي لكه څرنګه چي په يو حديث قدسي کي د الله تعالى ارشاد دی .

## اخيرت د دنيا لپاره مه خرابوئ

﴿۴۹۰۵﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مِنْ شَرِّ النَّاسِ مَنْزِلَةً عِنْدَ اللَّهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عَبْدٌ أَذْهَبَ آخِرَتَهُ بِدُنْيَا غَيْرِهِ . رواه ابن ماجة.

د ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به د مرتبې په لحاظ بدترين هغه څوک وي چي هغه خپل آخرت د بل د دنيا لپاره ضائع کړی وي . ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۱۲، رقم: ۳۹۶۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي د آخرت پر مفادو باندي د دنيا مفادو ته ترجيح ورکول ډېره غټه خرابي ده مګر دغه خرابي هغه وخت نوره زياته سخته سي کله چي د بل چا لپاره دنيا تر لاسه کړي او د هغه په وجه پر خلکو باندي په ظلم کولو سره خپل آخرت ضائع کړي لكه څرنګه چي ځيني مفاد پرسته خلک د ظالمانو مرسته او اعانت کوي .

## شرک نه بخښل کيږي

﴿۴۹۰۶﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلدَّوَاوِيْنَ

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :عمل نامې پر

ثَلَاثَةٌ دِيْوَانٌ لَا يَغْفِرُ اللَّهُ الْإِشْرَاكُ بِاللَّهِ يَقُوْلُ اللَّهُ عَزَّ وَجَلَّ إِنَّ اللَّهَ لَا يَغْفِرُ

درې ډوله دي : يو هغه عمل نامه چي هغه الله تعالى نه بخښي او هغه عمل نامه هغه ده چي په هغه کي د الله تعالى سره څوک شريک کړل سوی وي لكه چي الله تعالى فرمايي : (ان الله لا

أَنْ يُّشْرَكَ بِهِ وَدِيْوَانٌ لاَّ يَتْرُكُهُ اللهُ ظُلْمُ الْعِبَادِ فِيْمَا بَيْنَهُمْ حَتّٰى يَقْتَصَّ

يغفر ان يشرک به) الله تعالى شرک نه بخښي، دويم ډول عمل نامه هغه ده چي په هغه کي د انسانانو په خپل منځ کي ظلمونه درج دي، دا عمل نامه به الله تعالى همداسي پرېږدي په دې کي به يو د بل څخه قصاص واخلي او

بَعْضُهُمْ مِنْ بَعْضٍ وَدِيْوَانٌ لاَّ يَعْبَأُ اللهُ بِهِ ظُلْمُ الْعِبَادِ فِيْمَا بَيْنَهُمْ وَبَيْنَ اللهِ فَذَاكَ إِلَى اللهِ إِنْ شَاءَ عَذَّبَهُ وَإِنْ شَاءَ تَجَاوَزَ عَنْهُ. رواه البيهقي.

دريم ډول عمل نامه هغه ده چي د هغې الله تعالى ته څه پروا نه سته (يعني خوښه يې خپله ده که يې بخښي او که بدله ځيني اخلي) په دې کي هغه مظالم او ګناهونه دي چي د الله او بندګانو تر منځ دي دا عمل نامه د الله تعالى په خوښه ده که يې خوښه وي عذاب ورکړي او که يې خوښه وي وه به يې بخښي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦/٥٢، رقم: ٧٤٧٢.

**د لغاتو حل**: الدواوين: اى صحائف الاعمال.

**تشريح**: ددغه حديث څخه دا څرګنده سوه چي په دنيا کي بندګان کومي بدۍ او ګناهونه کوي په هغو کي چي دکومو تعلق د حقوق العباد سره وي لکه پر چا يې ظلم کړی وي د چا حق يې خوړلی وي د چا عزت ته يې تاوان رسولی وي او داسي نور، نو په آخرت کي به پر هغه ګناهو باندي په هر حالت کي مؤاخذه وي او ددغه مؤاخذې څخه هيچا ته خلاصون نه تر لاسه کيږي همدارنګه د کومو بديو او ګناهو تعلق چي د حقوق الله سره وي په هغه کي د شرک ګناه د بخښني وړ نه وي مګر د شرک څخه پرته نور ټول ګناهونه د الله تعالى پر مشيت باندي موقوف وي که هغه وغواړي نو پر ګناهو به عذاب ورکړي او که وغواړي په خپل فضل او کرم سره به يې وبخښي.

## د مظلوم د ښيرا څخه ځان وساته

﴿٤٩٠٧﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِيَّاكَ وَدَعْوَةَ الْمَظْلُوْمِ فَإِنَّمَا يَسْأَلُ اللهُ تَعَالٰى حَقَّهُ وَإِنَّ اللهَ لاَ يَمْنَعُ ذَا حَقٍّ حَقَّهُ. رواه البيهقي

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د مظلوم د ښيراوو څخه ځان وساتئ ځکه چي هغه د الله تعالى څخه يوازي خپل حق غواړي او الله تعالى د حقدار حق نه منع كوي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٤٩، رقم: ٧٤٦٤.

## د ظالم مرسته

﴿٤٩٠٨﴾: وَعَنْ أَوْسِ بْنِ شُرَحْبِيْلٍ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ مَشٰى مَعَ ظَالِمٍ لِيُقَوِّيَهُ وَهُوَ يَعْلَمُ أَنَّهُ ظَالِمٌ فَقَدْ خَرَجَ مِنَ الْإِسْلَامِ. رواه البيهقي.

د حضرت اوس بن شرحبيل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي څوک چي د ظالم ملگرتيا كوي ددې لپاره چي هغه ته قوت حاصل سي او هغه په دې پوهيږي چي هغه ظالم دئ نو هغه د اسلام څخه وځي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ٦\١٢٢، رقم: ٧٦٧٥.

## د ظالم انجام

﴿٤٩٠٩﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ أَنَّهُ سَمِعَ رَجُلاً يَّقُوْلُ إِنَّ الظَّالِمَ لَا يَضُرُّ إِلَّا نَفْسَهُ فَقَالَ أَبُوْ هُرَيْرَةَ بَلٰى وَاللهُ حَتّٰى الْحُبَارٰى لَتَمُوْتُ فِيْ وَكْرِهَا هَزْلاً لِظُلْمِ الظَّالِمِ. روى البيهقي الأحاديث الأربعة في شعب الإيمان.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د يو سړي څخه دا واوريدل چي ظالم چا ته تاوان نه سي رسولای بلکه خپل ځان ته تاوان رسوي ، ددې اوريدو سره ابو هريرة رضي الله عنه ورته وويل هو ، قسم په خدای هم داسي ده تر دې چي حباري (مرغه) په خپل ځاله کي د ظالم د ظلم په سبب دنگر سي مړ سي . بيهقي په شعب الايمان کي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ٦\٥٤، رقم: ٧٤٧٩.

**د لغاتو حل**: الحباری: طیر مشهور (یو ډول مرغه)

**تشریح**: حباری د یو مرغه نوم دی چي سرخاب ورته وايي، ویل کیږي چي دغه مرغه د خپلي دانې او اوبو په پلټنه کي تر ډیره لیري پوري ځي، په عامه توګه د دغه مرغه ځاله په داسي ځای کي وي چي هغه د اوبو څخه د څو څو ورځو پر فاصله وي او هغه د خپلي ځالي څخه په دومره اوږده فاصله باندي ځي او په اوبو ښېښلو سره خپلي ځالي ته راځي، یو محقق لیکلي دي چي یو وار په بصره کي د سرخاب د نس څخه حبه الخضراء تر لاسه سوه چي هغه دانه یوازي په یوه سیمه کي تر لاسه کیږي او هغه سیمه د بصرې څخه د څو ورځو پر فاصله واقع ده.

د حضرت ابو هریره رضی الله عنه د ارشاد مطلب دادی چي د ظالم د ظلم آثرات پر نورو خلکو تر دې حده لویږي چي الله تعالی د هغه د نحوست څخه باران اورول بندوي او د اوبو د قلت څخه د خوراک او ښېښاک شیان نه تر لاسه کیږي نو انسان او حیوان د خوراک او اوبو نه تر لاسه کېدو په وجه مړه کېدل پیل سي تر دې چي د سرخاب په ډول مرغه هم په خپل ځاله کي په وچېدو وچېدو سره مړ سي چي د خپلي دانې او اوبو تر لاسه کولو لپاره تر لیري لیري سیمو پوري ځي، ددې څخه معلومه سوه چي د سرخاب په خپله ځاله کي په وچېدو سره مړ کېدل د وچ کالۍ علامه ده او ځکه د ظلم د نحوست اثراتو لپاره په خاصه توګه د سرخاب ذکر وسو، کوم سړي چي دا ویلي وه چي ظالم په حقیقت کي خپل ځان ته تاوان رسوي نو د هغه مراد دا وو چي ظالم که څه هم په ظاهره مظلوم ته تاوان رسوي مګر په حقیقت کي د هغه تاوان هغه خپله ښکار کیږي ځکه چي د مظلوم تاوان خو داسي تاوان دی چي د هغه په بدله کي هغه ته الله تعالی د صبر مېوه ورکوي او ظالم څخه د هغه ظلم بدله اخلي حال دا چي د ظالم په برخه کي اخر الامر د خسران او تباهۍ څخه پر ته هیڅ نسته، نو حضرت ابو هریره رضی الله عنه هغه وخت د پېښېدونکي یو قرینې په وجه دا خبره په عمومیت سره بیان کړه چي ظالم د خپل ظلم په نتیجه کي په تاوان کي اخته کیږي، مګر د هغه د ظلم نحوست په یو صورت کي پر نورو خلکو هم اثر کوي، اغلب داده چي حضرت ابو هریره رضی الله عنه کومه خبره بیان کړې ده هغه خپله د هغه قول نه دی بلکه دغه مضمون د یو حدیث دی چي حضرت ابو هریره رضی الله عنه به د رسول الله ﷺ څخه اوریدلی وي یا دا چي په یوه حدیث کي دا نقل سوي دي چي د باران نه کېدل د ظلم د نحوست اثر وي چي په باران نه کېدو سره حیوانانو ته خامخا تاوان رسیږي ځکه هغوئ د هغه حدیث څخه په استنباط کولو سره ذکر سوې خبره وفرمایل.

=========

# بَابُ الْاَمْرِ بِالْمَعْرُوْفِ

## (د نیکۍ حکم کولو بیان)

معروف په اصل کي د معرفت څخه مشتق دی، چي معنی یې د پېژندني او حقیقت تر لاسه کولو ده، او ددې څخه مراد دادی چي هغه شیان چي د شریعت په ذریعه پېژندل سوي دي او د هغه اختیارولو حکم شریعت ورکړی دی، د معروف په مقابله کي منکر دی یعني هغه شیان چي د هغه شریعت سره تعلق نه وي او د هغه اختیارولو څخه شریعت منع کړې وي.

ځرگنده دي وي چي امر باالمعروف او نهي عن المنکر د تعلیمات اسلامي یو خاص اصطلاح ده چي د هغه معنی ده خلکو ته د نیکیو حکم ورکول او د بدیو څخه منع کول، په دغه باب کي د دغه مضمون حدیثونه نقل کیږي.

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د امر باالمعروف طریقه

﴿۴۹۱۰﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ عَنْ رَّسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ رَأَى مِنْكُمْ مُنْكَرًا فَلْيُغَيِّرْهُ بِيَدِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِلِسَانِهِ فَإِنْ لَمْ يَسْتَطِعْ فَبِقَلْبِهِ وَذٰلِكَ أَضْعَفُ الْإِيمَانِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي چي یو څوک د شریعت خلاف یو کار وویني نو هغه دي په خپلو لاسونو سره بدل کړي که په لاسونو سره یې توان نه وو نو په ژبه سره دي یې منع کړي او که په ژبه سره یې هم د منع کولو توان نه وي نو په زړه سره دي یې بد وگڼي او دا تر ټولو کمزوری ایمان دئ. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۱\۶۹، رقم: ۷۸ - ۴۹.

**تشریح**: د خرابیو د خپرېدو څخه د منع کولو او د هغه د بېخ کښلو ذمه داري چي پر اهل ایمان عائد کیږي د هغه پوره کولو لپاره درې درجې بیان سوي دي: لومړۍ درجه داده چي هره بدي دي د طاقت په ذریعه ختمه کړل سي په شرط ددې چي داسي طاقت ورته تر لاسه وي او که طاقت تر لاسه نه وي نو دوهمه درجه داده چي د هغه بدۍ فریضه دي په ژبه ادا کړل سي او

دریمه درجه داده که چیري د ژبې په ذریعه هم د بدی د بد ویلو او د هغه د ختمولو همت نه وي نو بیا په زړه سره دي هغه فریضه تر سره کړي یعني د شریعت خلاف یو کار په لېدو سره هغه دي په زړه سره بد وګڼي او د هغه د کونکي خلاف دي په زړه کي د عداوت او نفرت جذبات وساتي دغه درجه د ایمان تر ټولو کمزوري درجه ګرځول سوې ده ، ددې مطلب دادی چي کله اهل ایمان تر دغه درجې پوري کمزوري سي چي هغوئ د یوې بدی د دفع کولو لپاره د لاس او ژبې د طاقت څخه محروم وي نو پوه دي سي چي د ایمان لپاره تر ټولو کمزورې زمانه ده.

او که چیري اهل ایمان طاقتور وي نو هغوئ به یوه بدي د خپل قولي او فعلي طاقت په ذریعه محض په قلبي نفرت او انکار باندي اکتفاء نه کولای او یا د (ذلک اضعف الایمان) مطلب دادی چي کوم څوک یوه بدي محض په زړه سره پر بد ګڼلو باندي اکتفاء کوي نو پوه سئ چي هغه په اهل ایمان کي تر ټولو کمزوری کس دی ځکه که چیري هغه د دین په باره کي طاقتور او قوي وای نو یوازي د زړه پر نفرت به یې اکتفاء نه کولای بلکه د لاس او ژبي په ذریعه بهٔ یې د هغه بدی د ختمولو هڅه کولای، ددې تائید د حدیث څخه هم کیږي چي په هغه کي فرمایل سوي دي چي غوره جهاد د ظالم پاچا په مخکي د حق خبره کول دي او الله تعالی فرمایي : (ولا یخافون لومة لائم) او هغوئ د ملامتیا کونکو د ملامتیا څخه نه بیریږي .

ځینو علماؤ فرمایلي دي چي په حدیث کي مخکنی حکم (یعني د بدی په لاس سره ختمولو) تعلق د هغه اهل ایمان سره دی چي الله تعالی په طاقت او حکمراني سره نازولي وي یعني پاچا ، حاکم او داسي نورو ته د طاقت او حکمرانی لرونکو مسلمانانو دا ذمه داري ده چي هغوئ په خپل سیمه کي د خرابیو په سخته منع وکړي، دوهم حکم یعني د بدی په ژبه سره بدي بیانول او د نصیحت په ذریعه د ختمولو تعلق د علماؤ سره دی یعني دا د اهل علم او واعظینو فریضه ده چي هغوئ کومي خرابی وویني د خپل وعظ او نصیحت په ذریعه د هغه بدي بیان کړي او عوام د تلقین او نصیحت په ذریعه د هغه بدیو څخه منع کړي، او دریم حکم یعني د خرابیو او د هغوئ د کونکو پر خلاف په زړه کي د نفرت جذبه درلودل، نو ددې تعلق د عامو مسلمانانو سره دی ، پر عامو مسلمانانو واجب ده چي هغوئ د شریعت خلاف یو کار په لېدو سره محض د بې پروایي رویه اختیار نه کړي بلکه هغه کار په زړه سره بد وګڼي او د هغه د کونکي پر خلاف په زړه کي نفرت ولري .

ځیني حضراتو د حدیث د آخري برخي مطلب دا بیان کړی دی چي دغه شی یعني د یوې بدی په لېدو سره محض په زړه کي د هغه پر بد ګڼلو باندي اکتفاء کول د ایمان په مراتبو کي تر

ټولو کمزورې مرتبه ده، که چيرې مسلمانان داسې شی ويني چې د هغه په ديني نقطه نظر سره بد کېدل په قطعي توګه ثابت او ظاهر وي او هغوئ هغه شی بد ونه ګڼي بلکه پر هغه د خپل اطمينان اظهار وکړي او هغه ښه وګڼي نو هغه مسلمان نه پاته کيږي بلکه کافر کيږي.

دلته په دې خبره پوهېدل هم ضروري دي چې د امر باالمعروف او نهي عن المنکر حکم د نيکيو يا بديو د حيثيت تابع وي يعني که يو شی دده درجې وي چې د هغه اختيارول واجب وي نو د هغه د اختيارولو حکم ورکول هم واجب دی او که هغه شی مستحب وي نو امر باالمعروف به يې هم مستحب وي، همدارنګه که چيرې د شريعت خلاف يو کار د حرامو درجه ولري نو د هغه څخه منع کېدل يعني نهي عن المنکر واجبيږي او که هغه شی د مکروه درجه ولري نو په دغه صورت کې به عن المنکر مستحب وي، همدارنګه د امر باالمعروف او نهي عن المنکر د فريضې ادا کول په دې خبره مشروط دي چې د هغه په وجه د يو فتنې او فساد پيدا کېدو بېره نه نه وي د مثال په توګه دا څرګنده وي چې فلاني سړي ته د يو نېک کار د تلقين کولو په وجه فتنه را پورته کيږي يا يو سړی د خراب کار کونکی دی که چيرې هغه د بدۍ څخه منع کړل سي نو د هغه نتيجه به د فتنې او فساد په صورت کې څرګنده سي نو په دغه صورت کې د هغه فريضې ادا کول قطعاً ضروري نه دي.

همدارنګه يو شرط دا هم دی چې د امر باالمعروف او نهي عن المنکر د قبلولو ګمان هم وي که دا ګمان وي چې کوم سړي ته د نيک کار کولو تلقين وکړل سي يا هغه د يو بد کار څخه منع کړل سي نو هغه به خبره ونه مني نو هغه ته د نيک کار حکم کول او يا د بد کار څخه منع کول به واجب نه وي مګر مستحسن دی چې د شعار اسلام اظهار وسي، امام نووي رحمة الله عليه دده د دې خلاف نقل کړی دی لکه چې مخته به راسي.

د حديث په الفاظو : (من رای منکم منکرا) کې د من لفظ په ذريعه د مذکوره حکم مخاطب چې کوم خلک ګرځول سوي دي په دې کې د ملت هر کس شامل دی، يعني د امر باالمعروف او نهي عن المنکر فريضه هر مسلمان ته ادا کول پکار دي که هغه سړی وي يا ښځه وياو که ازاد وي که غلام وي، تر دې چې فاسق هم دده امر ذمه دار دی، دده څخه دا خبره هم څرګنده سوه چې د امر باالمعروف لپاره شرط نسته چې کوم څوک د يو نېک کار حکم کونکی وي هغه بايد اول خپله هم پر هغه نيکۍ باندې عمل کونکی وي او پرته د خپل عمل څخه د امر المعروف فريضه سرته رسول د هغه لپاره صحيح نه دي لکه څرنګه چې خپله خپل ځان ته پر نيکۍ باندې د عمل کولو تلقين وکړل سي که په هغه کې يو واجب ترک وو نو د هغه په وجه بل

واجب ترک کول قطعا جائز نه دی دا بېله خبره ده چي کوم واجب ترک کیږي د هغه ګناه په هر صورت لازمیږي،

په قرآن کریم چي دا فرمایل سوي دي : (لم تقولون ما لاتفعلون) یعني تاسو هغه خبره ولي کوئ چي خپله عمل نه په کوئ، نو ددغه آیت کریمه محمول امر باالمعروف او نهي عن المنکر منلو په صورت کي به دا ویل کیږي چي ددغه آیت مراد د ترک عمل څخه منع کول او پر هغه زجر او خبرداری دی نه دا چي نور خلک د نیکۍ د تلقین څخه منع کول مراد دي ، په دې خبره په نور زیات تفصیل سره داسي پوه سئ چي کوم څوک د نېکیو تلقین کوي او نورو ته د نېک عمل اختیارولو وایي مګر هغه خپله هغه نیکي او نیک عمل نه اختیاروي نو دغه آیت کریمه داسي سړي خبرداری کوي چي دا خو صحیح ده چي ته نورو ته د نیکۍ او نیک عمل کولو نصیحت کوې مګر دا ډېره نامناسب خبره ده چي ته خپله هغه نیکي او نیک عمل نه اختیاروې نو آیت کریمه دا خبره قطعا نه ثابتوي چي کوم څوک خپله نیک عمل نه اختیاروي نو هغه نورو ته د نېک عمل اختیارولو تلقین نسي کولای په دې کي شک نسته چي د نیکۍ تلقین کونکی که خپله هم نیکي اختیار کړي نو تر دې به ښه خبره بله څه وي ځکه چي کوم عمل عمل نه کوي نو د هغه تلقین او نصیحت پر نورو باندي اثر نسي کولای .

امام نووي رحمه الله په شرح مسلم کي ددغه حدیث په وضاحت کولو سره لیکلي دي چي په حدیث کي د امر باالمعروف او نهي عن المنکر د فریضې د ادا کولو چي کوم ترتیب ذکر سوی دی هغه د قرآن، سنت او اجماع په ذریعه واجب دی ، په دې اړه د یو مسئلې اختلاف نسته مګر د ځینو روافضو سره اختلاف دی چي د هغو هیڅ اعتبار نسته ، کوم څوک چي د مذکوره ترتیب سره سم دغه فریضه تر لاسه کړي او مخاطب هغه قبوله کړي نو سبحان الله ، او که یې قبوله نه کړي نو هغه سړی به په هر حال د خپلي ذمه دارۍ څخه خلاص وي، ددې څخه وروسته پر هغه یو بل شی واجب نه دی ، علماؤ ویلي دي چي ددغه امر (امر بالمعروف او نهي عن المنکر) فرضیت د کفایه په توګه دی او کوم څوک چي ددغه فریضې د ادا کولو طاقت درلودلو سربېره دغه ذمه داري پرته د یو عذر څخه پوره نه کړي نو هغه ګناه کار کیږي، مګر په ځینو صورتو کي دغه امر فرض وي د مثال په توګه یوه بدي په یو داسي ځای کي ظاهرېږي چي د یو سړي څخه پرته بل څوک نه په پوهیږي یا د هغه د ازالې قدرت د هغه څخه پرته بل څوک نه لري لکه خپله ښځه، یا لور یې یوه بدي کوي نو دهغه بدۍ د ختمولو ذمه داري په خاصه توګه پر هغه سړي باندي عائد کیږي .

امام نووي رحمه الله دا هم ليكلي دي چي د عدم قبوليت گمان د امربالمعروف او نهي عن المنكر واجب کېدل نه ساقط کوي، که د چا دا گمان وي چي د فلاني سړي په مخکي د نيکی تلقين کول يا هغه د بد کار څخه منع ښکاره دی ځکه چي هغه امر بالمعروف او نهي عن المنكر نه قبلوي، نو په دغه صورت کي هم پر هغه واجب دي چي هغه سړي ته د نېک کار کولو حکم کوي او د بدی څخه يې منع کوي او ددې خبري قطعا پروا نه کوي چي د هغه خبره ومنل سي يا ونه منل سي، ځکه چي موعظت او نصيحت اول خو بذات خود ډيري گټي لري او په يو صورت کي کله نا کله اثر هم کوي لکه څرنگه چي په قرآن کريم کې فرمايل سوي دي: (فان الذكرى تنفع المؤمنين) ، دوهم دا چي محض ددغه گمان په وجه چي مخاطب د تلقين او نصيحت څخه اثر نه اخلي د خپلي ذمه داری څخه مخ اړول نه دي پکار بلکه دا حقيقت مخته ايښودلو سره د نېکيو خپرولو او بديو ختمولو په هڅه کي بوخت کېدل پکار دي چي خلکو خو رسولان هم درواغجن گرځولي دي او دهغوئ موظعت او نصيحت قبلولو څخه يې انکار کړی دی نو ايا هغه پيغمبرانو او رسولانو د حقي خبري د پېژندني فريضه پرې ايښې وه ، قرآن کريم چي کومه خبره د رسول او پيغمبر په اړه فرمايلې ده هغه پر هر چا باندي صادقيږي چي د امر بالمعروف او نهي عن المنكر ذمه دار گرځول سوي دي يعني : (وما على الرسول الاالبلاغ المبين)، يعني د رسولانو کار دادی چي د الله احکام ورسوي منل او نه منل يې د نورو کار دی .

څرگنده دي وي چي دامر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه يوازي پر حاکم او مقتدر مسلمان باندي نه عائد کيږي او نه دا ضروري ده چي ددغه کار تر سره کولو لپاره حاکم دخپلي خوا احکام جاري کړي بلکه ددغه حق عامو خلکو ته هم رسيږي چي هغوئ د امربالمعروف او نهي عن المنكر کار سرته ورسوي ، او په داسي زمانه کي طاقت او حکومت لرونکي مسلمانان ددغه فريضې څخه بالکل بې پرواهي کوي ، په خاصه توگه د عامو مسلمانانو ذمه داري ده چي هغوئ دغه کار سرته ورسوي او په ټولو مسلمانانو کي زياته ذمه داري پر علماؤ او مشائخو باندي عائد کيږي ،

همدارنگه ددغه فريضې په ادا کولو کي خپل مخاطب يوازي عام مسلمانان نه دي گڼل پکار بلکه د خاصو په ډول حاکمانو او نورو ته هم په مناسب انداز کي د نېکيو تلقين کول پکار دي او هغوئ چي په کومو بديو کي اخته دي د هغوئ څخه منع کول پکار دي ، د پخوانی زمانې بزرگانو به يوازي عوامو خلکو ته د نېکيو تلقين نه کوی بلکه د پاچاهانو ، حاکمانو په مخکي به يې هم د امر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه سرته رسول، دا خبره هم بايد په ذهن کي

وي چي امر باالمعروف او نهي عن المنکر هغه چا ته کول پکا ردي چي دا علم لري چي هغه د کوم شي حکم ورکوي يا د کوم شي څخه منع کوي د شريعت په اعتبار د هغه يو حيثيت او ارزښت وي تر څو چي د هغه شيانو تعلق دی چي د هغه فرض يا واجب کېدل يا د هغه حرام کېدل داسي ظاهر دي چي ټول مسلمانان هغه پېژني لکه لمونځ، روژه او داسي نور يا زنا، شراب او داسي نور، نو ددغه شيانو په اړه امر باالمعروف او نهي عن المنکر عام مسلمانان هم کولای سي مګر کوم شيان چي داسي وي چي د هغو په اړه عام مسلمانان علم نه لري او کوم چي د اجتهاد سره تعلق لري نو عامو خلکو ته په هغه کي مداخلت کول نه دی پکار ځکه چي د يو داسي شي څخه د منع کولو يا د هغه د ناجائز ګرځولو حق يوازي علماؤ ته تر لاسه دی، که څه هم علماؤ ته په داسي شيانو کي يوازي د هغه شي د اختيارولو څخه منع کول پکار دي چي د هغه منع متفق عليه وي، په مختلف فيه مسئلو کي بايد منع ونه کړل سي په خاصه توګه د هغه حضراتو د مذهب مطابق چي وايي چي هر مجتهد مصيب (ښه پوهېدونکی) وي، په پای کي دا بيانول ضروري دي چي کوم خلک د امر باالمعروف او نهي عن المنکر ذمه داري تر سره کوي نو هغوئ بايد ددغه فريضې په ترسره کولو کي د ښه اخلاقو، نرمۍ او تهذيب لار اختيار کړي او هغوئ دغه امر يوازي الله تعالی د رضا لپاره وکړي نه د يو دنياوي غرض او مقصد لپاره، په دغه صورت کي پر مخاطب باندي خبره اثر هم کوي او الله تعالی ثواب هم ورکوي، همدارنګه کله چي يو سړي ته نصيحت کول وي نو د خلکو په شتون کي دي هغه ته نصيحت نه کوي بلکه په يوازيوالي او په پټه دي هغه ته نصيحت وکړي ځکه چي د خلکو په شتون کي چا ته نصيحت کول نصيحت نه دی بلکه د هغه سپکاوی دی.

## د الله ﷻ په حدودو کي سستي

﴿۴۹۱۱﴾: وَعَنِ النُّعْمَانِ بْنَ بَشِيرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت نعمان بن بشير ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَثَلُ الْمُدْهِنِ فِي حُدُودِ اللَّهِ وَالْوَاقِعِ فِيهَا مَثَلُ قَوْمٍ اسْتَهَمُوا سَفِينَةً فَصَارَ

د الله تعالی په ټاکل سوو حدونو کي سستي کونکي يا په دغه حدودو کي غورځيدلي کسان د هغه خلکو په ډول دي چي د ځای تر لاسه کولو لپاره قرعه اندازي وکړي ځيني خلک د کښتۍ

بَعْضُهُمْ فِي أَسْفَلِهَا وَصَارَ بَعْضُهُمْ فِي أَعْلَاهَا فَكَانَ الَّذِي فِي أَسْفَلِهَا يَمُرُّ بِالْمَاءِ

په لاندي برخه کي سي او ځيني په سربيره برخه کي، بيا کوم خلک چي د کښتئ په پورته برخه

عَلَى الَّذِينَ فِي أَعْلَاهَا فَتَأَذَّوْا بِهِ فَأَخَذَ فَأْسًا فَجَعَلَ يَنْقُرُ أَسْفَلَ السَّفِينَةِ

کي وي هغوئ ته د لاندي خلکو څخه تکليف وي ځکه چي هغوئ د اوبو اخيستلو لپاره لوړ ځي ، پورته خلک د دغه څخه تنګ سي او لاندي خلک د تلو راتلو څخه منع کړي نو د لاندي خلکو څخه يو سړي يوه ورڅ تبر پورته کړي او د غواړي چي د کښتئ بيخ سوری کړي

فَأَتَوْهُ فَقَالُوا مَا لَكَ قَالَ تَأَذَّيْتُمْ بِي وَلَا بُدَّ لِي مِنَ الْمَاءِ فَإِنْ أَخَذُوا عَلَى يَدَيْهِ

د نوري برخي خلک هغه ته راسي او ورته وه وايي دا ته څه کوې ؟ هغه وايي تاسو ته زما د تلو راتلو څخه تکليف وو او زه د اوبو تر لاسه کولو لپاره مجبور يم (په دې وجه د اوبو لپاره ما ته يو صورت پيدا کول پکار دي په داسي حالت کي دوه صورتونه کيدلای سي) چي يا خو دي خلک

أَنْجَوْهُ وَنَجَّوْا أَنْفُسَهُمْ وَإِنْ تَرَكُوهُ أَهْلَكُوهُ وَأَهْلَكُوا أَنْفُسَهُمْ . رواه البخاري.

دغه ماتونکی د کښتئ ماتولو څخه منع کړي او د هغه سړي سره دي خپل ځان د ډوبيدو څخه وژغوري يا دي هغه پر خپل حال پرېږدي چي هغه هم هلاک سي او دوئ هم هلاک سي . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\ ۲۹۲، رقم: ۲۶۸۶.

**د لغاتو حل**: المدهن: ای المتساهل. (سستی کوونکی)

**تشريح** : په حديث کي د مُدهِن لفظ ذکر سوی دی، چي معنی يې د مداهنت کونکي ده، او د مداهنت مفهوم دادی چي يو څوک د طاقت او قدرت درلودلو سربېره د شريعت خلاف کار په لېدو سره د هغه د ختمولو او امر بالمعروف او نهي عن المنکر فريضې تر سره کولو څخه منع سي، او دغه منع کېدل د شرم په وجه وي يا د دين د بې پرواهئ په وجه وي يا د يو بل غرض په وجه وي ، څرګنده دي وي چي په لغت کي د مداهنت او مدارت يوه معنی ده مګر په شريعت کي د مدارت اجازه ده بلکه په ځينو وختو کي دا مستحسن ګرځول سوی دی حال دا چي د مداهنت صريح منع ده ، په شرعي نقطه نظر سره د مدارت او مداهنت په منځ کي فرق دادی چي د مدارت بنياد د دين حفاظت ، د وخت رعايت او د ظالمانو د ظلم پر ليري کولو باندي وي او د مداهنت بنياد د خپل ځان پر ساتني او د هغه د خواهشاتو پوره کول، د خلکو څخه د منافعت او ګټي تر

لاسه کولو او د دین څخه د بې پرواهۍ وي.

د الله ﷻ په حدودو کي د غفلت او سستۍ کولو مطلب دادی چي الله تعالی د ګناهونو کومي سزاوي ټاکلي دي د هغه سزاوو د طاقت او قدرت درلودلو سربېره په قائم او جاري کولو کي بې پرواهي او غفلت کول یا الله ﷻ چي کوم ګناهونه د حد موجب ګرځولي دي (لکه زنا او شراب څښنل او داسي نور) نو ددغه شیانو کونکي ددغه ګناهو څخه په منع کولو کي غفلت کول او امر باالمعروف او نهي عن المنکر فریضې ادا کولو څخه منع کېدل، نو رسول الله ﷺ وفرمایل: لکه څرنګه چي په کښتۍ کي سپور یو سړی د کښتۍ ماتول پېل کړي او په کښتۍ کي سپاره نور خلک هغه دداسي کولو څخه منع کړي نو کښتۍ به د غرقېدو څخه وژغورل سي او ټول مسافر به خوندي او سلامت سي، او که چیري نور مسافر هغه سړی د هغه عمل څخه منع نه کړي نو ددې نتیجه به دا وي چي نه یوازي هغه سړی بلکه هغه نور ټول مسافر به هم د هغه سړي د هغه حرکت په وجه غرق او هلاک سي، همدارنګه که خلک یو فاسق او بدکاره سړی د هغه د فسق او بدکارۍ د لاري څخه منع کړي نو هغوئ به د هغه فاسق او بدکار د نجات او فلاح باعث هم سي او خپل ځان به هم د عذاب الهي څخه خوندي کړي.

او که خلک هغه فاسق او بدکار پر خپل حال پرېږدي چي هغه همدارنګه په فسق او بدکارۍ کي اخته وي نو بیا نه یوازي دا چي هغه فاسق او بدکاره به تباه او هلاک سي بلکه هغه خلک به هم د خپل ځان په هلاکت او تباهۍ کي اخته کړي، کله چي د نړېوالو د بدو اعمالو او بدوکارو په وجه د الله تعالی عذاب نازلیږي نو د هغه په تباهیو کي به څه ناڅه ټول خلک اخته کیږي، لکه چي الله تعالی فرمایلي دي: (واتقوا فتنة لا تصيبن الذين ظلموا منكم خاصة)، تاسو ځان د هغه فتنې څخه وساتئ چي په خاصه توګه به هغه خلک اخته نه کړي چي هغوئ ظلم کړی دی، بلکه ستاسو د سستۍ په وجه به تاسو هم اخته کړل سئ.

چي په قرعه اچولو سره په کښتۍ کي ناست دی...الخ: مطلب دادی چي هغه خلکو په کښتۍ په درجو کي ویشلې وي چي په هغه کي یوه درجه د کښتۍ په سربېره برخه کي واقع وي او دوهمه درجه د کښتۍ په لاندي برخه کي وي او په هغه دواړو درجو کي د ناستي لپاره د قرعه اندازۍ (پچه اچولو) طریقه اختیار کړې وي چي د کوم چا نوم په قرعه کي د کومي درجې لپاره راووځي هغه سړی په هغه درجه کي کښېني، څرګنده دي وي چي دغه قرعه محض د یو اتفاقي قید په توګه ده کنه نو په عامه توګه په کښتۍ کي د ناستي دغه طریقه رواج نه ده بلکه د ناستي او د درجو وېش د کښتۍ د مالک او ناظم کار دی چي هغه د کرایې او ټکټ په حیثیت او ترتیب

سره کوم څوک چي چیري غواړي هلته ځای ورکوي ، یا کوم چا ته چي چیري ځای تر لاسه سي هلته کښېني، مګر که چیري کښتۍ د یوه سړي د ملکیت پر ځای په مشترکه توګه د څو اشخاصو ملکیت وي او هغه اشخاص په هغه کښتۍ کي غواړي نو په دغه صورت کي دا کیدای سي چي هغوئ ټول د خپلي خپلي ناستي لپاره قرعه واچوي او د کوم چا نوم چي د کومي درجي او کوم ځای لپاره ووځي هغه هلته کښېني .

فکان الذي في اسفلها....الخ: دلته د الذي لفظ استعمالول د مخکني لفظ بعض په مناسبت سره دی او په دې کي دې ته اشاره ده که چیري په هغه برخه کي په ناستو ټولو کي یوازي یو سړي هم داسي وکړي نو د هغه په اړه هم دا حکم دی . هغوئ چي د اوبو اخیستلو لپاره پورتنۍ برخي ته راسي: دلته د اوبو څخه مراد د اکثرو شارحینو په نزد هغه عامي اوبه دي چي د څښلو لپاره استعمالیږي او ځیني شارحین وایي چي دلته د اوبو څخه مراد تشي یا ډکي بولي دي چي په لاندي برخه کي یې یو څوک په لوښي یا بل څه کي وکړي او بیا یې په دریاب کي د غورځولو لپاره سرېره برخي ته راسي او هلته د خلکو د منځ څخه تیریږي ، په دغه صورت کي د هغه سړي په وجه سرېره برخي والا ته تکلیف او ناخوښي محسوس کول یقیني خبره ده، په هر صورت خلاصه داده چي د لاندي برخي والا د اوبو راوړلو لپاره یا بولو غورځولو لپاره سرېره برخي ته راسي او د هغه په وجه هلته ناست خلک تکلیف محسوس کړي او بیا د لاندي برخي څخه یو سړی د هغوئ تکلیف او ناخوښي په لېدو سره د کښتي لاندي برخه ماتول پېل کړي چي د هغه ځای څخه اوبهٔ تر لاسه کړي یا بولي او داسي نور شیان وغورځوي .

یو شارح د حدیث تشریح دا بیان کړې ده چي نبي کریم ﷺ ددغه ارشاد په ذریعه د الله تعالی په حدودو کي غفلت او سستي کونکي ته د هغه چا سره تشبېه ورکړې ده چي هغه د کښتۍ په سرېرنه برخه کي وي او په ګناه کي اخته سړي ته یې د هغه چا سره تشبېه ورکړې ده کوم چي د کښتۍ په لاندي برخه کي وي او هغه په ګناهو کي په مستغرق کېدو سره او د هغه نه پرېښودو ته د کښتۍ د لاندي سطحي د ماتولو په عمل سره تشبېه ورکړه او د ګناهو کونکی د هغه ګناهو څخه په منع کېدو د کښتۍ سطح ماتونکي لاس نیولو او هغه کښتۍ د ماتولو څخه په منع کولو تعبیر وړکړ او د ګناهو څخه د منع کولو فائده یې د هغه ټولو خلکو فلاح او کامیابي سره تعبیر کړ چي د اوبو اخیستلو لپاره پورته راتلونکي منع کړي، یا څوک چي د اوبو لپاره پورته راسي او هغوئ د پورته راتلو څخه منع کړل سي او د ګناهونو څخه نه منع کونکی یې په هغه خلکو سره تعبیر کړ چي ماتونکی پر خپل حال پرېږدي یعني هغه کښتۍ د ماتولو

څخه منع نه کړي او سستي کونکي یعني خلک د ګناهو څخه نه منع کونکو ګناه او د ګناهو کونکو انجام یې په دې سره تعبیر کړ که چیري د کښتۍ سربېره خلک کښتۍ ماتونکی منع نه کړي نو هغه به خپل ځان هم او د کښتۍ ماتونکي هم په هلاکت کي واچوي او اسلام یې ګویا په کښتۍ سره تعبیر کړ چي دواړه ډوله خلک یې په خپل لمن کي اخیستي دي.

په پای کي دا څرګندول ضروري دي چي په حدیث کي منع کونکې ډله یې د جمعي په صیغه سره ذکر کړه چي د هغه په ذریعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د ټولو مسلمانانو لپاره ضروري ده چي د هغه سړي د توان سره سم مرسته وکړي کوم چي خلک د ګناهو او بدیو څخه منع کولو فریضه سرته رسوي او همدارنګه د ګناه کونکي ذکر د مفرد په صیغې سره سوی دی دې ته اشاره کوي چي د ګناه کونکی د خپل حیثیت په اعتبار ناقص دی که څه هم هغوئ په شمېر کي زیات وي.

## بې عمله واعظ

﴿۴۹۱۲﴾: وَعَنْ اُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

يُجَاءُ بِالرَّجُلِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيُلْقَى فِي النَّارِ فَتَنْدَلِقُ أَقْتَابُهُ فِي النَّارِ فَيطحن

د قیامت په ورځ به یو سړی راوستل سي او هغه به په اور کي وغورځول سي د هغه کولمې به او ر ته د ورتلو سره سمدستي د هغه د نس څخه د باندي راووځي او هغه پر خپلو کولمو داسي

فيها كَطحن الْحِمَارُ بِرَحَاهُ فَيَجْتَمِعُ أَهْلُ النَّارِ عَلَيْهِ فَيَقُولُونَ أَيْ فُلَانُ مَا

شاوخوا راګرځي لکه خر چي پر ژرنده راګرځي ، ددې په لیدو سره به دوږخیان پر هغه را ټول سي او ورته وه به یې وایي اې فلانی سړیه!

شَأْنُكَ أَلَيْسَ كُنْتَ تَأْمُرُنَا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنْهَانَا عَنِ الْمُنْكَرِ قَالَ كُنْتُ آمُرُكُمْ بِالْمَعْرُوفِ وَلَا آتِيهِ وَأَنْهَاكُمْ عَنِ الْمُنْكَرِ وَآتِيهِ. متفق عليه.

دا ستا څه حال دئ؟ تا خو به موږ ته د نیکی حکم راکوئ او د بدیو څخه دي منع کولو، اوس دي په خپله دا حال دئ، هغه به ورته په جواب کي وایي هو، ما به تاسو ته د نیکی امر کوئ مګر

خپله به مي په هغه عمل نه کوئ او تاسو به مي د بدو کارو څخه منع کولاست خو خپله به مي کول. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳۱۱٦ ۲، رقم: ۲۲٦۷ و مسلم ۲۲۹۰۱۴، رقم: ۵۱ - ۲۹۸۹.

**د لغاتو حل**: اقتابه: اى امعاوه (کولمې يې)

**تشريح**: لکه څرنگه چې مخکې ښودل سوي دي چې هغه سړي ته به دغه سزا د عمل نه کولو په وجه ورکول کيږي نه په دې وجه چې کله هغه خپله عمل نه کوی نو دامر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه يې ولي سرته رسول ، که چيري هغه دغه فرض پرې ايښی وای نو د مذکوره عذاب څخه به هم زيات سخت عذاب ورکول کيدای ځکه چې په دغه صورت کي به پر هغه د دوو واجبو د ترک کولو گناه وای.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### امر بالمعروف او نهي عن المنكر

﴿۴۹۱۳﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ أَوْ لَيُوشِكَنَّ اللّٰهُ أَنْ يَبْعَثَ عَلَيْكُمْ عذابا من عنده ثُمَّ لتدعنه فَلَا يُسْتَجَابُ لَكُمْ ، رواه الترمذي.

د حضرت حذيفة ﷺ څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : قسم دئ په هغه ذات چې د هغه په لاس کي زما ساه ده تاسو امر په نيکيو او منع د بديو څخه کوئ کنه نو ډير ژر به الله تعالى پر تاسو عذاب نازل کړي دغه وخت به تاسو د الله تعالى څخه دعاء غواړئ او ستاسو دعاء به نه قبليږي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴۰٦۱۴، رقم: ۲۱٦۹.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب دا دی چې په دواړو خبرو کي به يوه خبره خامخا کيږي يا خو به د امر بالمعروف او نهي عن المنكر فريضه سرته رسوي او يا که تاسو د هغه فريضې د سرته رسولو څخه غافل سئ نو الله تعالى به د مختلفو سختيو او مصيبتو په صورت کي خپل عذاب پر تاسو نازل کړي او هغه وخت به تاسو د هغه سختيو او مصيبتو د دفع لپاره د الله تعالى څخه دعاء غواړئ مگر ستاسو دعاء به نه قبليږي ، ددې څخه معلومه سوه چې نور عذاب او

مصائب د دعاء په برکت د دفع کېدو احتمال لري مگر د امر بالمعروف او نهي عن المنکر پر ترک باندي د الله تعالی له خوا چي کوم آفات او بلاوي نازليږي هغه د دعاء په ذريعه هم د دفع کېدو احتمال نه لري ځکه چي د هغه د دفع لپاره دعاء نه قبليږي.

بزاز او طبراني په کتاب اوسط کي د حضرت ابوهريره رضی الله عنه څخه دغه الفاظ نقل کړي دي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په دوو خبرو کي د يوې خبري کېدل ضروري دي يا خو به تاسو يقينا امر بالمعروف هم کوي او د نهي عن المنکر فريضه به هم تر سره کوي يا ددواړو د عدم ادائيگي په صورت کي يقينا الله تعالی به پر تاسو خراب خلک مسلط کړي او بيا ستاسو نيکان خلک به د هغه خرابو خلکو د فتنې او فساد او ظلم د دفع لپاره دعاء کوي او هغه به نه قبليږي.

## گناه بده وگڼئ

﴿۴۹۱۴﴾: وَعَنِ الْعُرْسِ ابْنِ عَمِيرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا عُمِلَتِ الْخَطِيئَةُ فِي الْأَرْضِ مَنْ شَهِدَهَا فَكَرِهَهَا كَانَ كَمَنْ غَابَ عَنْهَا وَمَنْ غَابَ عَنْهَا فَرَضِيَهَا كَانَ كَمَنْ شَهِدَهَا. رواه ابوداؤد.

د حضرت عرس بن عميرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي په مځکه کي گناهونه وسي نو څوک چي په زړه سره هغه بد وگڼي که څه هم هغه هلته موجود وي نو د هغه سړي په ډول به وي کوم چي هلته موجود نه وي او څوک چي هلته موجود نه وي او هغه گناهونه بد ونه گڼي نو هغه د هغه چا په ډول دئ چي هلته موجود وي (يعني گناهونه بد گڼونکی د گناه کارانو د ډلي څخه ايستل کيږي او گناه بد نه گڼونکی په گناه کارانو کي گڼل کيږي). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۵۱۵، رقم: ۴۳۴۵.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي گناه په هر حال کي گناه او بده گڼئ که ستاسو په مځکي يو گناه کيږي نو اول خو هغه د لاس او ژبي په ذريعه د ختمولو هڅه وکړئ او که په دغه دواړو کي د يوه تاوان هم نه وي نو بيا چي کومه اخري درجه ده هغه اختيار کړئ يعني هغه گناه بده وگڼئ او په زړه کي د هغه خلاف د نفرت جذبه ولرئ په دغه صورت کي ستاسو شمېر به د هغه خلکو په ډله کي وي کوم چي هلته موجود نه وي او د هغوئ په مځکي هغه گناه نه کيږي، ددې څخه ثرگنده سوه چي د حقيقي موجودتيا او نه موجودتيا تعلق د زړه سره دی نه د بدن او جسم سره، نو کوم څوک چي د خپلو سترگو په مځکي کيدونکي گناه بده وگڼي او په زړه کي د هغه خلاف

نفرت ولري نو ګويا په حقيقت کي هغه په هغه ځای کي موجود نه دی چيري چي هغه ګناه کيږي که څه هم په ظاهري توګه هلته موجود دی او که چيري يو سړی ګناه ونه ګڼي يعني هغه ګناه او د ګناه کونکی بد ونه ګڼي نو ګويا هغه په حقيقت کي په هغه ځای کي موجود دی چيري چي ګناه کيږي که څه هم په ظاهري توګه هلته موجود نه دی.

## د ګناهو څخه نه منع کول

﴿۴۹۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي بَكْرٍ الصِّدِّيقِ قَالَ يَاأَيُّهَا النَّاسُ إِنَّكُمْ تَقْرَءُونَ هَذِهِ الْآيَةَ

د حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه څخه روايت دئ چي هغه خلکو ته وفرمايل: اې خلکو! تاسو دا آيت وایاست:

يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَيْكُمْ أَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ إِذَا اهْتَدَيْتُمْ فَإِنِّي

(يا ايها الذين آمنوا عليكم...) اې مؤمنانو! د خپلو ځانونو ساتنه پر ځان لازم کړی هر کله چي تاسو پر هدايت ياست نو څوک چي ګمراه سوي دي هغه تاسو ته څه تاوان نه سي رسولای، ما

سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ النَّاسَ إِذَا رَأَوْا مُنْكَرًا فلم

د رسول الله ﷺ څخه (ددې آيت په اړه) اوريدلي دي چي فرمايل يې: اې خلکو! هر کله چي تاسو د شريعت خلاف يو کار ووينئ

يُغَيِّرُوهُ يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللَّهُ بِعِقَابِهِ. رواه ابن ماجة والترمذي و صححه

او د هغه اصلاح او تبديلۍ کوښښ ونه کړئ نو نژدې ده چي الله تعالی تاسو په خپل عذاب کي اخته کړي، ابن ماجه او ترمذي او صحيح يې بللی دی،

وفي رواية ابي داؤد إِذَا رَأَوُا الظَّالِمَ فَلَمْ يَأْخُذُوا عَلَى يَدَيْهِ أَوْشَكَ أَنْ يَعُمَّهُمُ

د ابوداؤد په روايت کي دا الفاظ دي کله چي ظالم ووينئ او هغه د ظلم څخه منع نه کړئ نو نژدې ده چي الله تعالی هغه ټول په خپل عذاب کي ګرفتار کړي،

اللَّهُ بِعِقَاب و في اخرى له مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي ثُمَّ يَقْدِرُونَ

د ابوداؤد په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي په کوم قوم کي ګناهونه وسي او هغه قوم د هغه

عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا ثُمَّ لَا يُغَيِّرُون إِلَّا يُوشِكُ أَنْ يَعُمَّهُمُ اللهُ بِعِقَابٍ وفي اخرى له مَا مِنْ قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي هُمْ أَكْثَرُ مِمَّنْ يَعْمَلُهُ.

پر اصلاح قدرت لري او بيا يې هم اصلاح ونه کړي نو نژدې ده چې الله تعالى هغه په عذاب کې اخته کړي ، او دابوداؤد په يو بل روايت کې دا الفاظ دي چې کوم قوم گناهونه وکړي او د گناه کارانو شمير زيات نه وي او قوم د هغه گناهونه منع ونه کړي نو الله تعالى به هغوئ په خپل عذاب کې اخته کړي .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۳۲۷، رقم: ۲۰۰۵، والترمذي ۴\ ۴۰۶، رقم: ۲۱۶۸، وابوداود ۴\ ۵۰۹، رقم: ۴۳۳۸.

**تشريح**: د آخري روايت د الفاظو مطلب دادی چې کله د خرابو خلکو په مقابله کې د نيکو خلکو شمېر زيات وي او هغه نيک خلک د خپل کثرت سربېره پر هغه خرابو خلکو باندې واک تر لاسه نه کړي او هغوئ د گناه د لارو څخه منع نه کړي نو هغوئ به يقينا د عذاب الهي مستحق گرځول کيږي ځکه چې د هغوئ په اکثريت کې کېدل د بديو پر دفع کولو باندې د قدرت لرلو مترادف دی او د قدرت لرلو سربېره د بدېو د بېخ کښنلو هڅه نه کول يو داسې غفلت او تقصير دی چې پر هغه د الله تعالى عذاب نازليږي .

د ذکر سوي آيت په اړه دا وضاحت سوی دی چې دغه آيت د خپل حکم په اعتبار عام او مطلق نه دی بلکه ددې سره مخصوص او مقيد دی چې کوم خلک د وعظ، نصيحت او خبرداري سربېره د بدۍ لار نه پرېږدي نو پر هغوئ د امر بالمعروف او نهي عن المنکر هيڅ اثر نه وي او هغوئ پر خپله اختيار کړي لار باندې مطمئن او خوشحاله دي لکه څرنگه چې په قيامت کې نژدې به دخلکو دغه حال وي ، نو د داسې خلکو په اړه مذکوره آيت وايي چې د داسې خلکو د بديو وبال هغه بندگانو ته هيڅ تاوان او ضرر نسي رسولای کوم چې الله تعالى هدايت يافته کړي دي او د بديو د لارو څخه ليرې اوسيږي، ددې تائيد ددغه روايت څخه هم کيږي چې په هغه کې نقل سوي دي چې يو وار دغه آيت د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په مخکې وويل سو او د هغه څخه يې ددې مطلب پوښتنه وکړه، نو هغه وفرمايل تاسو چې په کومه زمانه کې ياست هغه زمانه ددغه آيت محمول نه ده ځکه چې ستاسو د زمانې خلک خو نيکې خبرې اورې او د هغو اثر قبلوي مگر په پای کې يوه زمانه داسې راتلونکې ده کله چې د الله تعالى بندگان د امر

باالمعروف او نهي عن المنكر فريضه سرته رسوي نو خلک به د هغوئ خبري نه اوري نو دغه آيت د راتلونكي زمانې په اړه خبر وركوي همدارنګه د حضرت ثعلبه رضي الله عنه روايت چي مخته راځي پر دې دلالت كوي.

ځينو مفسرينو ليكلي دي چي په دغه آيت كي د هدايت يافته څخه مراد هغه مؤمنان دي چي د بدو كارو ترديد او تغليظ كوي او دنهي عن المنكر فريضه سرته رسوي، په دې مناسبت سره ذكر سوى حديث ته ددغه آيت تفسير ويل كيداى سي، د ضرر څخه مراد عام عذاب دى او د انفسكم څخه مراد مسلمانان دي، تاسو خپل ځانونه لازم ونيسئ، ددې مطلب دادى چي تاسو خلک په خپلو كي د يو بل د اصلاح او هدايت كولو ذمه داري په پوره توګه سرته رسوئ كه تاسو په دې توګه عامل ياست او د يو بل د بديو څخه په منع كولو سره د هدايت لار نيولي وي نو هيڅ ګمراهي به تاسو بې لاري نه كړي او د چا ګناه به تاسو ته تاوان نسي رسولاى.

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليكلي دي د آيت مطلب دادى چي اې مسلمانانو! تاسو خپل ځان د ګناهو څخه محفوظ وساتئ كه تاسو د ګناهو او بديو څخه د خپل ځان ساتنه وكړه نو همدارنګه به هدايت يافته سئ او كه په يو وجه د امر باالمعروف او نهي عن المنكر د فريضې سرته رسولو څخه عاجز پاته سئ نو بيا تاسو ته ددغه خلكو د ګمراهۍ عذاب هيڅ تاوان نسي رسولاى كوم چي د شريعت خلاف كارو او بديو په كولو سره ګمراه سوي وي.

﴿۴۹۱۶﴾: وَعَنْ جَرِيرِ بْنِ عَبْدَاللهِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مِنْ رَجُلٍ يَكُونُ فِي قَوْمٍ يُعْمَلُ فِيهِمْ بِالْمَعَاصِي يَقْدِرُونَ عَلَى أَنْ يُغَيِّرُوا عَلَيْهِ وَلَا يُغَيِّرُون إِلَّا أَصَابَهُمُ اللَّهُ منه بِعِقَابٍ قَبْلَ أَنْ يَمُوتُوا. رواه ابوداؤد وابن ماجة.

د حضرت جرير بن عبدالله رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دا اوريدلي دي په كوم قوم كي چي داسي كس موجود وي چي ګناه كوي او د هغه د ګناه څخه په منع كولو دغه قوم قدرت لري او بيا يې هم نه منع كوي نو الله تعالى به يې د مرګ څخه مخكي په خپل عذاب كي اخته كړي. ابوداؤد او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابي داود ۱۴\۵۱۰، رقم: ۴۳۳۹، وابن ماجه ۲\۱۳۲۹، رقم: ۴۰۰۹.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د الله تعالی هغه عذاب په دنیا کي نازليږي که څه هم هغه په هر صورت کي وي، ددې څخه معلومه سوه چي امر باالمعروف او نهي عن المنكر ترک کولو په وجه په دنیا کي هم عذاب رسيږي او د آخرت عذاب خو هم وي چي هلته به رسيږي ددې پر خلاف د نورو ګناهونو پر کونکو باندي په دنیا کي عذاب کېدل ضروري نه دي.

## په اخيره زمانه کي په دين عمل کولو فضيلت

﴿۴۹۱۷﴾: وَعَنْ اَبِيْ ثَعْلَبَةَ فِيْ قَوْلِهِ تَعَالٰى عَلَيْكُمْ اَنْفُسَكُمْ لَا يَضُرُّكُمْ مَنْ ضَلَّ

حضرت ابو ثعلبة رضي الله عنه د الله تعالی ددغه ارشاد (عليكم انفسكم......) په اړه فرمايي :

إِذَا اهْتَدَيْتُمْ فَقَالَ أَمَا وَاللّٰهِ لَقَدْ سَأَلْتُ عَنْهَا رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

په الله دي مي قسم وي ما د رسول الله ﷺ څخه ددغه آيت په اړه پوښتنه وکړه (يعني دا چي ددې سره سم زه د امر بالمعروف او نهي عن المنكر کار پرېږدم)،

فَقَالَ بَلْ ائْتَمِرُوا بِالْمَعْرُوفِ وَتَنَاهَوْا عَنِ الْمُنْكَرِ حَتّٰى إِذَا رَأَيْتَ شُحًّا مُطَاعًا

رسول الله ﷺ وفرمايل :يا ، بلکه جاري يې وساته تر څو چي ته وويني چي د بخل اطاعت کيږي

وَهَوًى مُتَّبَعًا وَدُنْيَا مُؤْثَرَةً وَإِعْجَابَ كُلِّ ذِي رَأْيٍ بِرَأْيِهِ وَرَأَيْتَ أَمْرًا لَا بدلك

د خواهش نفس اتباع کيږي او دنیا ته پر آخرت ترجيح ورکوي او هر عقلمند يې رايه غوره ګڼي او چي ته دا ووينې چي د کومي خبري څخه دي خلاصون نه سته

منه فَعَلَيْكَ نَفْسَكَ وَدَعْ أَمْرَ الْعَوَامِّ فَإِنَّ مِنْ وَرَائِكُمْ أَيَّامًا الصَّبْرُ فَمَنْ صَبَرَ

نو ته خپل ځان لازم ونيسه (يعني خپل ځان وساته) او عوام پرېږده ځکه چي ستا راتلونکی وخت به داسي وي چي په هغه کي به ته صبر کوې په دغه ورځو کي چي څوک صبر کوي

فِيهِنَّ قَبَضَ عَلَى الْجَمْرِ لِلْعَامِلِ فِيهِنَّ أَجْرِ خَمْسِينَ رَجُلًا يَعْمَلُونَ مِثْلَ

د هغه به دا کيفيت وي چي ګويا هغه په خپل لاس کي سکروټه اخيستې ده ، په دغه ورځو کي چي څوک ددين په احکامو عمل کوي هغه ته به پنځوسو کسانو د عمل ثواب ورکول کيږي ،

عَمَلِهِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْهُمْ قَالَ أَجْرُ خَمْسِينَ مِنْكُمْ. رواه

الترمذي و ابن ماجة.

صحابه کرامو وویل: اې دالله رسوله ! د هغه پنځوسو کسانو د عمل ثواب چې په هغه زمانه کې وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: یا، بلکه په تاسو کې د پنځوسو کسانو د عمل ثواب. (یعني د رسول الله ﷺ د وخت د خلکو ثواب) .ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۲۴۰، رقم: ۳۰۵۸، وابن ماجه ۲\۱۳۳۰، رقم: ۴۰۱۴.

**تشریح**: ورایت امرا لا بدلک: کله چې ته داسې شی ووینې چې د هغه څخه پرته چاره نه وي، مطلب دادی که چیرې د داسې خرابۍ زمانه وي چې هغه خوا ته د خواهش نفسي میلان کیږي او د خلکو په منځ کې راتلې او د هغوئ سره د اوسېدو په وجه د خلقت انساني پر بنا بې اختیاره په هغه بدې کې د اخته کېدو بېره وي نو په دغه صورت کې د هغه خلکو څخه لیرې والی اختیارول لازم دي چې د هغه بدۍ څخه خلاص سي، په ځینو حاشیو کې دا مطلب لیکلی دی چې د لابدلک څخه مراد د خپل عجز په سبب د نهي عن المنکر فریضې تر سره کولو څخه معذوره کېدل وي یعني که چیرې ته یو داسې بدې ووینې چې د هغه څخه د خلکو د منع کولو توان نه لرې او د هغه په وجه ته د نهي عن المنکر د فریضې ادا کولو څخه سکوت او مخ اړوې نو په هغه صورت کې ستا لپاره ضروري ده چې د داسې خلکو څخه بېلوالی اختیار کړې کوم چې په هغه بدۍ کې اخته دي، دغه معنی د کتاب د هغه نسخو د روایت مطابق ده چې په هغه کې لابدلک د هغه څخه پرته ستا لپاره څه چاره نه وي، پر ځای لایدلک، یعني لاقدرة لک علیه، یعني د هغه د منع کولو توان تا ته تر لاسه نه وي،

د ذکر سوي جملې مراد دا هم کیدای سي که چیرې تا ته داسې امر پېښ وي چې ستا لپاره ډېر ضروري وي او د سخت ارزښت حامل وي او د هغه په وجه ته د نهي عن المنکر فریضه تر لاسه کولای نسې په دې توګه که چیرې ته خپله توجه او خپل وخت د دغه فریضې په تر سره کولو کې ولګوې نو ستا هغه ضروري امر به فوت سي نو په دغه صورت کې ته د هغه خلکو څخه بېلوالی اختیار کړه کوم چې په بدیو کې اخته وي او د هغوئ د خرابیو منع کولو څخه ته معذور یې.

او د عامو خلکو د معاملو سره تعلق مه ساته: مطلب دادی چې کله ته خلک ووینې چې هغوئ په خرابیو کې اخته دي مګر ته د قدرت نه لرلو په وجه د نیکۍ د تلقین کولو او د بدۍ څخه د منع کولو څخه سکوت کول ضروري ګڼې نو په دغه صورت کې تا ته پکار ده چې د خپل ځان اصلاح ته متوجه سې او د امر بالمعروف او نهي عن المنکر د فریضې ادا کولو پر ځای

خپله خپل ځان د ګناهو او خرابیو څخه خوندي وساته او په ښکو کارو کي بوخت اوسه او د خلکو معاملات او حالات الله تعالى ته وسپاره كه هغه وغواړي نو په خپل فضل او کرم سره به هغوئ پر سېده لار راولي كنه نو سخته سزا به ورکړي، د دغه حکم بنیاد پر دغه حقیقت دی چي الله تعالى يو سړى دومره ذمه دار ګرځوي څومره چي هغه توان لري.

لکه هغه چي په خپل لاس کي سکروټه اخيستې ده: دغه جمله په اصل کي د سختئ زغملو كنايه ده يعني په هغه زمانه كي پر دين باندي تلل او د دنيا څخه بې شوقي كول به اسانه كار نه وي بلکه دغه کار به دومره سخت وي لكه يو څوک چي په خپل لاس کي تود ه سکروټه ونيسي او بيا د هغه تكليف وزغمي.

د حديث د آخري برخي څخه مذكوره صفت يعني پر دين باندي د عمل كولو تكليف زغمل او پر هغه صابر او شاكر اوسېدو کي پر صحابه کرامو باندي د اخرې زمانې د ديندارو خلکو فضیلت ثابتیږي او څکه ویل کیږي چي جزي فضيلت د کلي فضيلت خلاف کیدای نسي، ابوعمرو بن عبدالبر چي مشهور محدث دی په خپل کتاب استیعاب کي پر دغه مسئله بحث کړی دی او لیکلي يې دي چي دا ممکن ده چي په دغه امت کي د صحابه كرامو څخه وروسته يو داسي څوک پیدا سي چي د يو صحابي په ډول مرتبه ولري بلکه تر صحابي به هم زیات فضیلت لري، هغه د خپل دغه قول په دليل کي هغه حديثونه وړاندي کړي دي چي د هغو څخه دا خبره مفهوم کیږي مګر د علماؤ مختار قول ددې پر خلاف دی، ځرګنده دي وي چي دغه اختلاف د هغه صحابه كرامو سره دی کوم چي د رسول الله ﷺ په لاس مبارک ایمان راوړ او بېرته خپل هيواد ته ولاړل او تر دې زيات د رسول الله ﷺ صحبت هغوي ته حاصل نه سو، او کوم چي د هغه صحابه کرامو د ذات تعلق دی چي هغوئ ته رسول الله ﷺ د طويل صحبت او ملګرتيا شرف حاصل دی چي شپه او ورځ به د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر وه او هغوئ آثار او انوار صحبت جمع کړه نو د هغوئ ذات د دغه اختلاف څخه ماوراء دی چي د هغوئ په اړه د هيڅ عالم دا قول نسته چي د دغه امت يو فرد په هغه صحابه كرامو كي د يو چا مرتبې يا د هغه څخه زيات فضیلت درلودلای سي بلکه موږ د جمهورو علماؤ د قول مطابق بېله استثناء د صحابه کرامو په اړه دا وايو چي د شرف صحابيت مرتبه هر يو صحابي ته حاصله ده كه څه هم هغه د رسول الله ﷺ په لاس مبارک ایمان راوړلو سره خپل هیواد ته تللی وي او كه ټول عمر د رسول الله ﷺ په ملګرتيا کي پاته سوی وي او دغه شرف بذات خود ددې درجې دی چي د هغوئ څخه پرته هيڅ کس هم په هغه مرتبه كي د هغوئ شريک کیدای نسي نو د دغه امت هيڅوک هم بېله

استثناء د يو صحابي مرتبې ته نسي رسيدلای ، په قوت القلوب کي ليکلي دي چي پر جمال مصطفی ﷺ باندي په لوېدونکي نظر سره هغه حقائق ښکاره کيږي او هغه مقام او مقصد تر لاسه کيږي چي نورو ته په کلونو قرنونو او رياضت سره هم نسي تر لاسه کيدای .

﴿۲۹۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَامَ فِيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو سعيد خدري ﷛ څخه روايت دئ چي (يوه ورځ) رسول اللهﷺ ودرېدی په موږ کي

وَسَلَّمَ خَطِيبًا بَعْدَ الْعَصْرِ فَلَمْ يَدَعْ شَيْئًا يَكُونُ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا ذكره

د مازديگر د لمانځه وروسته د خطبې لپاره ، په هغه خطبه کي يې تر قيامت پوري د راتلونکو ټولو خبرو يادونه وکړه ،

حَفِظَهُ مَنْ حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ وَكَانَ فِيمَا قَالَ إِنَّ الدُّنْيَا حُلْوَةٌ خَضِرَةٌ وَإِنَّ

هغه خبري ياد وساتلې چا چي ياد وساتلې او هيري يې کړې چا چي هيري يې کړې، رسول الله ﷺ چي څه وفرمايل: په هغه کي دا هم وه چي دنيا خوږه ده او تازه ده

اللّٰهَ مُسْتَخْلِفُكُمْ فِيهَا فَنَاظِرٌ كَيْفَ تَعْمَلُونَ أَلَا فَاتَّقُوا الدُّنْيَا وَاتَّقُوا النِّسَاءَ

الله تعالى به په دې کي تاسو خليفه جوړ کړي بيا به گوري چي تاسو څنگه عمل کوئ ، خبردار! د دنيا څخه ځان وساتئ، او د ښځو څخه ځان وساتئ ،

ذَكَرَ أَنَّ لِكُلِّ غَادِرٍ لِوَاءً يَوْمَ الْقِيَامَةِ بِقَدْرِ غَدْرَتِهِ فِي الدُّنْيَا وَمَا غَدْرَ أَكْبَرَ مِنْ

ددې وروسته يې وفرمايل : دهر وعده ماتونکي سره به د قيامت په ورځ يو بيرغ وي چي د هغه د بې قولۍ سره سم به لوړ يا کښته وي

غَدْرِ أَمِيرِ الْعَامَّةِ يُغْرَزُ لِوَاؤُهُ عِنْدَ اسْتِهِ قَالَ لَا يَمْنَعَنَّ احدا منكم هَيْبَةُ النَّاسِ

دا به په دنيا کي دده د بې قولۍ په اندازه غټه يا کوچنۍ وي ، دغه بيرغ به د هغوئ مقعد (د انسان د شا خاص اندام) ته نژدې ودرول سي ، بيا يې وفرمايل : په تاسو کي دي د خلکو هيبت او خوف څوک د حق خبري کولو څخه منع نه کړي

أَنْ يَقُولَ بِحَقٍّ إِذَا عَلِمَهُ وفي رواية ان راى منكرا ان يغيره فَبَكَى أَبُو سَعِيدٍ و

هر کله چې د هغه حق خبرې څخه خبر وي، او په یوه روایت کې دا الفاظ دي چې هر کله په تاسو کې یو څوک د شریعت خلاف یو کار ووینې نو د هیچا بیره دې تاسو د هغه د اصلاح څخه منع نه کړي (د دغه بیان څخه وروسته) ابو سعید په ژړا سو

قَالَ قَدْ رَأَيْنَاهُ فَمَنَعَتْنَا هيبة الناس ان نتكلم فيه ثم قال أَلَا إِنَّ بَنِي آدَمَ

او وه یې ویل: ما د شریعت خلاف کار په خپلو سترګو سره ولیدی او د خلکو د بیرې د هغه په اړه ما څه ونه ویل، رسول الله ﷺ وفرمایل: په یاد لرئ د آدم علیه السلام اولاد

خُلِقُوا عَلَى طَبَقَاتٍ شَتَّى فَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ مُؤْمِنًا وَيَحْيَا مُؤْمِنًا وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا

د مختلف طبقاتو څخه پیدا سوی دئ په دوئ کې ځیني هغه دي چې مؤمنان پیدا کړل سوي دي هغه ټول ژوند د ایمان په حالت کې تیروي او پر ایمان یې خاتمه کیږي

وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ كَافِرًا وَيَحْيَا كَافِرًا وَيَمُوتُ كَافِرًا وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ مُؤْمِنًا وَيَحْيَا

او ځیني پکښي هغه دي چې کافر پیدا کړل سوي دي ټول ژوند د کفر په حالت کې تیروي او پر کفر یې خاتمه کیږي او ځیني پکښي داسي دي چې مؤمن پیدا سوي دي او ژوند تیروي

مُؤْمِنًا وَيَمُوتُ كَافِرًا وَمِنْهُمْ مَنْ يُولَدُ كَافِرًا وَيَحْيَا كَافِرًا وَيَمُوتُ مُؤْمِنًا قال وذكر

د ایمان په حالت کې مګر خاتمه یې پر کفر کیږي او ځیني پکښي کافران پیدا سوي دي د کفر په حالت کې ژوند تیروي مګر پر ایمان یې خاتمه کیږي، ابو سعید راوي وایي د دې څخه

الْغَضَبِ فَمِنْهُمْ من يكون سَرِيعُ الْغَضَبِ سَرِيعُ الْفَيْءِ فاحداهما بالاخرى

وروسته رسول الله ﷺ د غصې د دولونو ذکر وکړ او وه یې فرمایل: ځیني کسان داسي دي چې سمدستي په غضب سي مګر د هغوئ غصه ژر ختمه سي په دغه دوو خبرو کې یو د بل بدل دي یعني ژر غصه راتلل بده خبره ده او ژر غصه تلل ښه خبره ده..

ومنهم من يكون بطئ الغضب بطئ الفئ فاحداهما بالاخرى وخياركم من

ځیني کسان داسي دي چې په زنډ غصه کیږي او په زنډ یې غصه ځي دا د یو بل بدل دي (یعني د غصې په زنډ راتلل ښه دي او وروسته یې ختمیدل بد دي) او همداسي یوه بدي د یوې نیکۍ

سره په يو ځای کيدو سره برابر سي ، او رسول الله ﷺ وفرمايل : په تاسو کي غوره کس هغه دئ

يكون بَطِيءُ الْغَضَبِ سَرِيعُ الْفَيْءِ وَشِرَارِكُمْ مَنْ يَكُوْنُ سَرِيعُ الْغَضَبِ بَطِيءُ

چي په زنډ غصه ورسي او ژر يې غصه ختمه سي او بد ترين خلک هغه دي چي ژر غصه ورسي او په زنډ ولاړه سي ،

الْفَيْءِ قَالَ اتَّقُوا الْغَضَبَ فَإِنَّهُ جَمْرَةٌ عَلَىٰ قَلْبِ ابْنِ آدَمَ أَلاَ تَرَوْنَ إِلَى اِنْتِفَاخِ

دده وروسته يې وفرمايل : د غصې څخه ځان وساتئ ځکه چي هغه د آدم عليه السلام د زوی په زړه يوه سکروټه وي تاسو نه وينئ هر کله چي د انسان غضب نازل سي

أَوْدَاجِهِ وَحُمْرَةِ عَيْنَيْهِ فَمَنْ أَحَسَّ بِشَيْءٍ مِّنْ ذٰلِكَ فَلْيَضْطَجِعْ وَلْيَتَلَبَّدْ بِالْأَرْضِ

نو د هغه د غاړي رګونه وپړسيږي او ستر ګي يې سرې سي هر کله چي تاسو غصه محسوسه کړئ نو پريوځئ او د مځکي سره جخت سئ.

قَالَ وَذَكَرَ الدَّيْنَ فَقَالَ مِنْكُمْ مَنْ يَكُوْنُ حَسَنَ الْقَضَاءِ وَإِذَا كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي

دده وروسته رسول الله ﷺ د پور او د پور د ډولونو يادونه وکړه، چي په تاسو کي ځيني خو هغه دي چي په پور ادا کولو کي ښه دي مګر کله چي د هغه پر چا پور سي

الطَّلَبِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرٰى وَمِنْهُمْ مَنْ يَكُوْنُ سيئ الْقَضَاءِ وَإِنْ كَانَ لَهُ أَجْمَلَ

نو په ادا کولو کي سختي او بد کلامي کوي په دې کي يو عادت د بل عادت بدل دئ، ځيني داسي دي چي په پور ادا کولو کي خراب دي خو که د هغه پر چا پور سي نو په هغه کي نرمي

فِي الطَّلَبِ فَإِحْدَاهُمَا بِالْأُخْرٰى وَخِيَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَحْسَنَ

کوي په دې کي يو عادت د دويم عادت بدل دئ مګر په تاسو کي غوره کس هغه دئ چي پر هغه پور وي نو په ښه ډول يې ادا کړي

الْقَضَاءَ وَإِنْ كَانَ لَهُ أَجْمَلَ فِي الطَّلَبِ وَشِرَارُكُمْ مَنْ إِذَا كَانَ عَلَيْهِ الدَّيْنُ أَسَاءَ

او که پر بل د هغه پور وي نو په نرمۍ سره يې غوښتنه کوي ، او بد ترين کس هغه دئ چي په پور

الْقَضَاءَ وَإِنْ كَانَ لَهُ أَفْحَشَ فِي الطَّلَبِ حَتَّى إِذَا كَانَتْ الشَّمْسُ عَلَى رُؤُوسِ النَّخْلِ

ادا كولو كي خراب او په خپله غوښتلو كي هم سخت او بد كلام وي،. د راوي بيان دئ چي رسول الله ﷺ په خطبه كي د نصيحت دا خبري كولې تر څو چي لمر د خرماوو د ښاخونو او

وَأَطْرَافِ الْحِيطَانِ فَقَالَ أَمَا إِنَّهُ لَمْ يَبْقَ مِنَ الدُّنْيَا فِيمَا مَضَى مِنْهَا إِلاَّ كَمَا بَقِيَ مِنْ يَوْمِكُمْ هٰذَا فِيمَا مَضَى مِنْهُ. رواه الترمذي.

ديوالونو غاړي ته ورسيدئ (يعني د لمر لويدو وخت راغلئ) نو (رسول الله ﷺ) وفرمايل: خبردار! زمانه تيره سوې ده د هغې په مقابله كي يوازي دومره زمانه پاته ده څومره چي دا ورځ د ورځي نژدې پوره برخه تيره سوې ده او څو لمحې پاته سوي دي همداسي د دنيا حال دئ، د دنيا زياته برخه تيره سوې ده او اوس يو څو لمحې پاته دي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۱۹، ۴۲۰، رقم: ۲۱۹۱.

**د لغاتو حل**: است: اى دبره (د شا شرمگاه). الفيء: اى الرجوع من الغضب.

**تشريح**: دغه دنيا ډېره خوږه او شنه ده: مطلب دادی چي دغه دنيا د خپل متعلقاتو سره په ظاهره دومره خوندوره ده چي محض پر ظاهري حالت باندي خلكو ته په طبعي توگه سره ډېر مناسبت او هغه ته ميلان وي او دهغوئ په ستر گو كي ددې حقيقت ډېر په زړه پوري او زرغون معلوميږي، ځيني حضرات وايي چي د اهل عربو په نزد كوم شی چي نرم او نازک وي او دخپل بقاء په وجه تر زيات وخت پوري نه پاته كيږي بلكه ژر ختميږي هغه ته خلق خضروات يعني شنكياوو سره مشابهت وركولو سره ورته خضراء وايي، په هر حال د حديث په دغه جمله كي دا حقيقت څرگند سوی دی چي دغه دنيا د مكر او تصنع ظاهري حسن او لذت څخه ډكه ده چي خلق پر خپل ظاهري حسن او جمال باندي عاشق كوي او خپل لذات او خواهشاتو ته يې مائل كوي حال دا چي دغه ټول خواهشات او خوندونه ډېر ژر فنا كيږي.

الله ﷻ تاسو په دغه دنيا كي خليفه گرځولي ياست: مطلب دادی چي په دغه دنيا كي تاسو ته كوم مال او دولت حاصل دی د هغه په اړه تاسو په دې حقيقت پوه سئ چي ددغه مال او دولت تاسو حقيقي مالكان نه ياست بلكه حقيقي مالک الله تعالى دی او تاسو يوازي د هغه په تصرف كي د خليفه او وكيل حيثيت لرئ، يا دا چي الله تعالى تاسو د هغه خلكو خليفه گرځولي ياست كوم چي ستاسو څخه مخكي په دغه دنيا كي وه او د هغوئ مال او جائيداد يې تاسو ته

سپارلی دی نو هغه دا گوري چي تاسو د خپل اموالو او املاکو په باره کي څه عمل اختیاروئ او په دې کي څرنگه تعریف کوئ، یا دا چي تاسو د تېرو خلکو د حال او انجام څخه څرنگه عبرت اخلئ او دهغوئ په پرې ایښي مالو او جائیدادو کي څرنگه تصرف کوئ.

تاسو د دنیا څخه ځان ساتئ: مطلب دادی چي تاسو د دنیا په دې حقیقت پوه سئ چي دا فنا کېدونکی شی دی او ددې هیڅ شي ته استحکام او دوام نسته نو بیا په دې پسي لگېدل ډېره نامناسب او د کم عقلۍ خبره ده نو تاسو د دومره دنیا تر لاسه کولو هڅه مه کوئ چي د ضرورت او اړتیا څخه زیاته وي او اړتیا هم هغه چي په هغه سره د عزتمند ژوند بقاء، ددین مرسته او په آخرت کي گټه تر لاسه سي.

همدارنگه د ښځو څخه ځان وساتي: مطلب دادی چي د ښځو د حسن او جمال او ناز او مکر څخه ځان وساتئ، داسي نه چي دغه شی مو د مال او دولت جمع کولو حرص او د دنیا زیاتي تر لاسه کولو په شوق کي اخته کړي چي د هغه په وجه تاسو د علم او عمل د لاري څخه لیري سئ.

د امیر عامه څخه مراد هغه سړی دی چي د مسلمانانو حالات او د هغوئ پر هیواد او ښار باندي غالب او حکمران سوی وي او عامو خلکو د علماؤ او پوهانو د رایي او مشورې څخه پرته هغه سړی خپل امیر او حاکم منلی وي او د هغه مرستیالان وي.

د حضرت ابو سعید ﷜ ژړا له دې کبله وه چي موږ د حق کلمې ویلو په اړه هغه مرتبه ترک کړه کومه چي اعلی وه او هغه دا چي په هر حال کي حق خبره وکړل سي که څه هم د هغه په بدله کي د سر تاوان وي، څرگنده ده چي د هغه دغه احساس محض د هغه د کمال ایمان او ددین شدت احتیاط باندي مبني وه کنه حقیقت دادی چي دغه مرتبه ترک کول د اسلامي تعلیمات خلاف نه وه بلکه پر هغه حدیثو باندي د عمل کولو په وجه وه چي د هغو څخه څرگندیږي چي اهل ایمان ته د کمزورۍ او عجز په صورت کي د حق کلمې ویلو څخه سکوت اختیارول جائز دي، په شرط ددې چي ددې په وجه د ځان او مال او عزت د هلاکت او تاوان بېره وي،

ددې څخه دا خبره ظاهره سوه چي کله د اسلام په ابتدائي زمانه کي د اکابرو صحابه کرامو په ډول عظیم انسانان چي ددین په باره کي ډېر سخت وه او دیقین او معرفت په دولت سره په پورته توگه برخمن وه که هغوئ د دغه وصف او مرتبې سربېره د اهل باطل لکه یزید او حجاج سفاک او داسي نورو د بیري څخه د اظهار حق قدرت نه درلودی نو زموږ په ډول مسلمانانو په اړه څه ویل کیدای سي چي د اهل ایمان ډېره کمزورې زمانه ده چي په هغه کي باعمله علماء او ایماني جرات او ایثار لرونکي راهبران ډېر کم دي او دریاکاره مشائخو او صوفیانو کثرت دی

او په هغوئ اكثر ظالمان اميران او حاكمان مسلط دي ، په دې كي شک نسته چي دغه زمانه د صبر او تحمل او يوازيوالي اختيارولو ده .

ځيني هغه دي چي مؤمن پيدا كيږي يعني د هغوئ زيږېدنه د مؤمن مور او پلار په كور كي وي يا په اسلامي ښار كي وي او په دې اعتبار هغوئ ته مؤمن ويل كيږي دا وضاحت ځكه كيږي چي كله يو سړی پيدا كيږي نو د پوهي عمر ته د رسېدو څخه مخكي هغه ته د ايمان نسبت نه كيږي دا بېله خبره ده چي علم الهي په اعتبار يا ددې څخه د راتلونكي زمانې د حالت په اعتبار هغه ته دايمان نسبت وكړي همدارنګه ځيني خلک هغه دي چي كافر پيدا كيږي، ددې څخه مراد هغه خلک دي چي د كافر مور او پلار څخه پيدا كيږي يا د هغوئ زيږېدنه د كافرانو په سيمه او هيواد كي كيږي، په دې اعتبار دحديث دغه جمله د هغه حديث خلاف نه ده چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي: (كل مولود يولد على الفطرة) ځكه چي ددغه ارشاد : (كل مولود الخ) مراد داښودل دي چي كوم څوک دغه دنيا ته راځي هغه په فطري توګه د هدايت او راستی قبلولو صلاحيت لري په شرط ددې چي يو داسي مانع نسي چي هغه د ګمراهی پر لار بوځي لكه څرنګه چي خپله ددغه حديث وروستني الفاظ : فابواه يهود انه ...الخ، پر دې دلالت كوي، څرګنده دي وي چي په ذكر سوي ارشاد كي د خلكو كوم ډولونه چي بيان سوي دي هغه دغالب او اكثريت په اعتبار دي كنه ځيني خلک داسي هم دي چي مؤمن پيدا كيږي د كفر په حالت كي ژوند تېروي مګر د هغوئ خاتمه د ايمان په حال كي وي همدارنګه ځيني هغه كسان دي چي كافران پيدا كيږي د ايمان په حالت كي ژوند تېروي مګر دهغوئ خاتمه پر كفر وي، كيدای سي چي دغه دواړه ډوله خلک ددې لپاره ذكر نه كړل سوه چي دلته حقيقي مقصد دا خبره څرګندول دي چي په هدايت كي او ګمراهی كي اصل اعتبار د خاتمې د حالت دی او دا خبره د ذكر سوو ډولو په بيانولو سره په اجمالي توګه په پوهه كي راځي .

پر بغل دي پرېوځي او د مځكي سره دي جوخت سي: د غصې راتلو په وخت كي ددغه حالت اختيارولو حكم ځكه وركړل سوی دی چي دغه حالت په نفسياتي توګه دغصې دفع كولو غوره ذريعه ده ځكه چي د غصې په‌وخت كي د مځكي په لګېدو سره پر بغل باندي پرېوتل په سمدستي توګه دا احساس پيدا كوي چي زما حقيقت بس دومره دی چي زه د خاورو څخه پيدا يم او اخر به خاورو ته ورځم نو ما ته تكبر نه دی پكار بلكه د تحمل او انكساری لاره اختيارول پكار دي .

﴿۴۹۱۹﴾: وَعَنْ اَبِي الْبَخْتَرِيِّ عَنْ رَّجُلٍ مِّنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَنْ يَهْلِكَ النَّاسُ حَتّٰى يُعْذِرُوا مِنْ أَنْفُسِهِمْ. رواه ابوداؤد.

حضرت ابوبختري ﷺ د نبي كريم ﷺ د يو صحابي څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: خلك به تر هغه وخته پوري نه هلاكيږي تر څو پوري چي په هغوئ كي د گناه زياتي ونه سي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۵۱۵، رقم: ۴۳۴۷.

**تشريح**: لفظ د (يعذروا) د ياء په پيښ، د عين په جزم او د ذال په زېر سره د اعزار څخه مشتق دى، په صراح كي ليكلي دي چي د اعذار معنى د ډېر گناه كار او باعيب ده، همدارنگه په قاموس كي ليكلي دي چي: اعذر فلان، اى كثرت ذنوبه وعيوبه، يعني كله چي عرب داسي وايي چي اعذر فلان يعني فلاني سړي اعذر وكړ، نو ددې دا معنى ده چي د هغه سړي څخه ډېر گناهونه او عيبونه صادر سول، د مفهوم په اعتبار د حديث په دغه جمله كي د اعذار لفظ د سلب عذر په معنى كي استعمال سوى دى يعني كله چي د يو سړي گناه او عيبونه زيات سي نو بيا پر هغه د الله تعالى د عذاب نازلېدو او د خلكو له خوا د هغوئ د هغه گناهو او عيبو څخه په منع كولو كي هيڅ عذر حائل نه پاته كيږي نو هغه سړى د خپلو گناهو او عيبو د زياتوالي په سبب گويا هغه عذر ختم كړ چي هغه د عذاب الهي څخه خوندي وساتي.

د اعذار لفظ صاحب عذر يعني د عذر كونكي په معنى كي هم استعماليږي او دا معنى هم د حديث د مفهوم سره مطابقت لري، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي خلك به تر هغه وخته پوري په هلاكت او بربادى كي نه اخته كيږي تر څو چي هغوئ د خپلو بديو په اړه د ليري تاويلونو او ناروا اعذار او معذرت كولو رويه اختيار نه كړي.

په ځينو روايتو كي دغه لفظ يعذروا، د ياء په زور سره منقول دى چي د هغه ماده اشتقاق عذر دى، او معنى يې د معذور ساتل دي، په دغه صورت كي به مطلب دا وي چي خلك به تر هغه وخته پوري په هلاكت كي نه اخته كيږي تر څو چي هغوئ خلك داسي معذور او مجبور نه كړي چي هغوئ په زياتو گناهو كي په اخته كېدو سره هغوئ د گناهو او بديو څخه منع نه كړي او نه پر هغوئ ملامتيا وكړي، په هر حال په درو سره صورتو كي د حديث خلاصه داده چي الله

تعالى خپل بندګان د دنيا په مصيبتو او آفاتو کي هغه وخت اخته کوي کله چي هغوئ په ګناهو او د شريعت خلاف کارو کي مصروف سي ، د احکام الهي نافرماني ډېره کوي او کله چي د الله تعالى نېک بندګان يې د هغه ګناهو او خرابيو څخه منع کوي نو دهغوئ اثر نه قبلوي بلکه په ډېره بې حسي او لاپرواهي سره پر خپل اختيار کړې لار ځي.

﴿٤٩٢٠﴾: وَعَنْ عَدِيِّ بْنِ عَدِيِّ الْكِنْدِيِّ قَالَ حَدَّثَنَا مَوْلًى لَنَا أَنَّهُ سَمِعَ جَدِّي

د حضرت عدي بن عدي کندي رحمه الله څخه روايت دئ چي موږ ته زموږ يو آزاد سوي غلام بيان وکړ چي هغه زما د نيکه څخه دا اوريدلي دي چي

يَقُوْلُ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ اللهَ تَعَالَى لَا يُعَذِّبُ

ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي الله تعالى د يو قوم عوام د هغوئ د خواصو د ګناهونو

الْعَامَّةَ بِعَمَلِ الْخَاصَّةِ حَتّٰى يَرَوُا الْمُنْكَرَ بَيْنَ ظَهْرَانَيْهِمْ وَهُمْ قَادِرُوْنَ عَلٰى

په سبب په عذاب کي نه اخته کوي تر څو پوري چي د قوم ډير عوام دا کارونهويني چي دهغوئ په خپل منځ کي د شريعت خلاف کارونه کيږي او هغوئ د هغه په بندولو قادر وي

أَنْ يُّنْكِرُوْهُ فَلَا يُنْكِرُوْا فَإِذَا فَعَلُوْا ذٰلِكَ عَذَّبَ اللهُ الْعَامَّةَ وَالْخَاصَّةَ . رواه في شرح السنة.

او منع يې نه کړي ، هر کله چي دا خاموشي او بې پرواهي زياته سي (يعني د قوم عوام په پټه خوله ګناهونه ويني) نو الله تعالى عام او خاص ټول په عذاب کي اخته کوي . شرح السنة.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة: ١٤\٣٤٦، رقم: ٤١٥٥.

**تشريح**: د حديث د آخري الفاظو خلاصه داده چي د قوم ځينو افرادو د هغوئ د بدو عملو او احکام الهي د نافرمانيو په وجه په عذاب کي اخته کوي او پاته کسان ځکه په عذاب کي اخته کوي چي هغوئ د قدرت درلودلو سربېره هغه ځيني کسان ولي نه منع کوي او د خرابيو د دفع کولو فريضه سرته نه رسوي .

## د بني اسرائيلو د تباهی سبب

﴿۴۹۲۱﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

لَمَّا وَقَعَتْ بَنُو إِسْرَائِيلَ فِي الْمَعَاصِي نَهَتْهُمْ عُلَمَاؤُهُمْ فَلَمْ يَنْتَهُوا فَجَالَسُوهُمْ

بني اسرائيل چي په ګناهونو کي اخته سول، په پيل کي د هغوئ علماؤ ددې څخه منع کول او کله چي هغوئ د منع کولو سره منع نه سول نو هغوئ هم د هغوئ په مجلسونو کي کښېنستل او

فِي مَجَالِسِهِمْ وَ اكَلُوهُمْ وَشَارَبُوهُمْ فَضَرَبَ اللّٰهُ قُلُوبَ بَعْضِهِمْ بِبَعْضٍ

د هغوئ سره په خوراک او څښاک کي ملګري سول نو الله تعالی په هغوئ کي د ځينو زړونه د ځيني د زړونو سره ووهل (وتړل) او الله تعالی

فَلَعَنَهُمْ عَلَى لِسَانِ دَاوُدَ وَعِيسَى ابْنِ مَرْيَمَ ذٰلِكَ بِمَا عَصَوْا وَكَانُوا يَعْتَدُونَ

د حضرت داؤد علیه السلام او حضرت عیسی علیه السلام په ژبه پر دوئ لعنت وکړی او دا لعنت د هغوئ د ګناه کولو او د حد څخه د تریدلو په سبب سوی وو،

قَالَ فَجَلَسَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَكَانَ مُتَّكِئًا فَقَالَ لَا وَالَّذِي

د راوي بيان دئ چي (رسول الله ﷺ) تکيه لګولې وه کښېنستی وه يې فرمايل : په هغه ذات

نَفْسِي بِيَدِهِ حَتّٰى تَأْطِرُوهُمْ أَطْرًا. رواه الترمذي وابوداؤد وفي روايته قَالَ

دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده تاسو تر هغه وخته پوري د الله ﷻ د عذاب څخه خلاصون نه سئ تر لاسه کولائ تر څو پوري چي تاسو فاسقان او ظالمان د ګناهونو څخه منع نه کړئ. ترمذي او ابوداؤد، او په يو بل روايت کي دا الفاظ دي چي (رسول الله ﷺ)

كَلَّا وَاللّٰهِ لَتَأْمُرُنَّ بِالْمَعْرُوفِ وَلَتَنْهَوُنَّ عَنِ الْمُنْكَرِ وَلَتَأْخُذُنَّ عَلَى يَدَيْ

وفرمايل (څرنګه چي ستاسو خيال دئ) داسي هيڅ کله نه ده په الله دي مي قسم وي تاسو به د ښو خبرو حکم ورکوئ او د ناروا وو څخه به منع کوئ خامخا د ظالم لاسونه ونيسئ

الظَّالِمِ وَلَتَأْطُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ أَطْرًا وَلَتَقْصُرُنَّهُ عَلَى الْحَقِّ قَصْرًا او لَيَضْرِبَنَّ اللّٰهُ بِقُلُوبِ بَعْضِكُمْ عَلَى بَعْضٍ ثُمَّ لَيَلْعَنَنَّكُمْ كَمَا لَعَنَهُمْ.

او پر حق یې اماده کړئ او پر حق یې قائم کړئ کنه نو الله تعالى به په تاسو کې د ځینې زړونه د ځینو د زړنو سره وتړي او بیا به درباندې لعنت وکړي څرنګه چې پر بني اسرائیلو لعنت سوی وو.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۴\۵۰۹، رقم: ۴۳۳۷، والترمذي ۵\ ۲۳۵، رقم: ۳۰۴۷.

**تشريح**: ددغه جملې معنی: (ضرب الله ...الخ) ، ملا علي قاري رحمه الله او شیخ عبدالحق رحمه الله داسي لیکلي ده کوم چي مخکي ذکر سوه، مګر ملا علي قاري رحمه الله د ابن ملک رحمه الله دا نقل کړي دي چي په ببعض حرف کي باء د سببیت لپاره ده په دغه صورت کي د مذکوره جملې معنی به دا وي چي الله تعالى د ګناه کارو د نحوست په سبب د هغه خلکو زړونه هم تور کړه کومو چي ګناه نه ده کړې نو هغه ټول سخت زړه سول د حق او راستي د لاري قبلولو او اختیارولو صلاحیت په هغو ټولو کي ختم سو او په هغوئ کي هر یو د خیر او رحمت څخه لیري سو او داسي ځکه وسول چي په هغوئ کي کومو خلکو د ګناه او بدۍ لار اختیار کړې وه هغوئ د خپلي بدۍ سزا تر لاسه کړه او چا چي ګناه نه وه کړې هغوئ یې ځکه اخته کړل چي د ګناه کارو سره ګډ سول او د هغوئ په اړه یې د سکوت او سستۍ رویه اختیار کړه.

### د بې عمله واعظ حشر

﴿۴۹۲۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ رَأَيْتُ لَيْلَةَ أُسْرِيَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: ما د معراج په شپه ډیر خلک

بِيْ رِجَالًا تُقْرَضُ شِفَاهُهُمْ بِمَقَارِيْضَ مِنْ نَّارٍ قُلْتُ مَنْ هٰؤُلَاءِ يَا جِبْرِيْلُ قَالَ

ولیدل چي د هغوئ شونډان د اور په غچیانو پریکیدل ما د جبرائیل علیه السلام څخه پوښتنه وکړه دا کوم خلک دي؟ هغه راته وویل

هٰؤُلَاءِ خُطَباءُ مِنْ أُمَّتِكَ يَأْمُرُوْنَ النَّاسَ بِالْبِرِّ وَيَنْسَوْنَ أَنْفُسَهُمْ . رواه في شرح السنة والبيهقي في شعب الإيمان وفي روايته قال خطباء من أمتك

الذين يقولون ما لا يفعلون ويقرؤون كتاب الله ولا يعملون.

دا ستا د امت خطيبان دي چي خلکو ته به يې د نيکۍ هدايت کوئ او خپل ځان به يې هير وو ، شرح السنة او بيهقي په شعب الايمان کي، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي جبرائيل عليه السلام وويل : دا ستاسو د امت واعظان دي چي داسي خبري به يې کولې چي خپله يې عمل نه په کوئ هغوئ به د الله ﷻ کتاب قرآن کريم وايه مګر عمل به يې نه پر کوئ .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\ ۳۵۳، رقم: ۴۱۵۹، والبيهقي في شعب الايمان ۳\ ۲۸۳، رقم: ۱۷۷۳.

**تشريح**: دغه سزا بې عمله علماؤ ، واعظينو او مشائخو ته د هغوئ د بدعملۍ په وجه ورکول کيږي لکه څرنګه چي الله تعالی فرمايلي دي : (اتامرون الناس بالبر وتنسون انفسکم...) ايا تاسو خلکو ته د نيکۍ تلقين کوئ او ځان هيروئ .

رسول الله ﷺ وفرمايل: ويل للجاهل مرة وويل للعالم سبع مرات: د جاهل لپاره يوه خرابي ده او د بې عمله عالم لپاره اووه خرابۍ دي، او په يوه مشهور حديث کي داسي فرمايل سوي دي چي : (اشد الناس عذابا يوم القيامة عالم لم ينفعه الله بعلم) : د قيامت په ورځ به تر ټولو سخت عذاب د هغه عالم وي چي هغه ته الله تعالی د علم څخه ګټه ونه رسوي .

## په الهي نعمت کي خيانت

﴿۴۹۲۳﴾: وَعَنْ عَمَّارِ بْنِ يَاسِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُنْزِلَتْ الْمَائِدَةُ مِنَ السَّمَاءِ خُبْزًا وَلَحْمًا وَأُمِرُوا أَنْ لَا يَخُونُوا وَلَا يَدَّخِرُوا لِغَدٍ فَخَانُوا وَادَّخَرُوا وَرَفَعُوا لِغَدٍ فَمُسِخُوا قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ. رواه الترمذي.

د حضرت عمار بن ياسر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : (د حضرت عيسی عليه السلام پر قوم) د آسمان څخه دسترخوان نازل سو يعني ډوډۍ او غوښه او دا حکم ورکړل سو چي هغوئ دي خيانت نه کوي (د ضرورت او خواهش څخه زيات دي نه خوري يا د بل برخه دي نه اخلي او نه دي يې ذخيره کوي (يعني کوم خوراک چي راسي هغه دي د دويم وخت لپاره نه ايږدي) مګر هغوئ خيانت وکړ او جمع کول يې يعني خوراک يې د دويمي ورځي لپاره اينبودئ (نو ددې په سزا کي) د هغوئ شکلونه مسخ کړل سو يعني بيزوګان او خنزيران ځيني جوړ سول. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۵\۲۴۲، رقم: ۳۰۶۱.

**تشريح**: په ظاهره دا معلوميږي چي په هغوئ كي كوم سپين ږيري وه هغوئ د بېزوګانو په صورت كي تبديل كړل سوه او كوم چي ځوانان وه هغوئ د خنزيرانو په شكل سول.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ظالم حاكم په وخت كي

﴿۴۹۲۴﴾: عَنْ عُمَرَبْنِ الْخَطَّابِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّهُ

د حضر عمر بن خطاب ﷺ ځخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

تُصِيبُ أُمَّتِيْ فِيْ آخِرِ الزَّمَانِ مِنْ سُلْطَانِهِمْ شَدَائِدُ لاَ يَنْجُوْ مِنْهُ إِلاَّ رَجُلٌ

زما په امت كي به په آخري زمانه كي د هغه پاچهانو د لاسه مصيبتونه راسي او د هغه مصيبتونو او حكمرانانو د لاسه به يوازي هغه خلک خلاصون تر لاسه كړي

عَرَفَ دِيْنَ اللّٰهِ فَجَاهَدَ عَلَيْهِ بِلِسَانِهِ وَيَدِهِ وَقَلْبِهِ فَذٰلِكَ الَّذِيْ سَبَقَتْ لَهُ

چي د الله تعالى د دين ځخه خبر وي هغه به په خپل ژبه، خپل لاس او خپل زړه سره د حق د اعلان لپاره جهاد كوي نو دا به هغه ځوک وي چي د هغه نيكي او د نيكيو ثواب به مخكي وي

السَّوَابِقُ وَرَجُلٌ عَرَفَ دِيْنَ اللّٰهِ فَصَدَّقَ بِهِ وَرَجُلٌ عَرَفَ دِيْنَ اللّٰهِ فَسَكَتَ

او يو كس به وي چي د دين ځخه به خبر وي او د دين تصديق به كوي او يو كس به وي د الله تعالى د دين ځخه به خبر وي او پټه خوله به وي

عَلَيْهِ فَإِنْ رَأَى مَنْ يَّعْمَلُ الْخَيْرَ أَحَبَّهُ عَلَيْهِ وَإِنْ رَأَى مَنْ يَّعْمَلُ بِبَاطِلٍ أَبْغَضَهُ عَلَيْهِ فَذٰلِكَ يَنْجُو عَلٰى إِبْطَانِهِ كُلِّهِ. بيهقي

يعني هر كله چي د يو خير عمل ويني نو هغه به خوښوي او كله چي يو بد عمل ويني نو د هغه ځخه به نفرت كوي دا كس به هم د خپل محبت او بغض پټ ساتلو په وجه خلاصون تر لاسه كړي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۱۶\۹۵، رقم: ۷۵۸۷.

**تشريح**: ددغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ يوې خوا ته د هغه زمانې په اړه وړاند وينه فرمايلې ده كله چې پر امت مرحومه باندي د ظالم او بدكاره حكمرانانو هغه سخت حالاتو څخه د خلاصون لار هم څرګنده سوې ده او هغه لاره د الله تعالى ددين علم تر لاسه كول، يقين او استقامت اختيارول، نيكي خپرول او د بدۍ ختمولو هڅه كول، دغه لار اختيارونكي خلك درې ډوله بيان سوي دي ، لومړى ډول هغه خلك دي چې د الله تعالى په دين باندي په پوره توګه پوهيږي او ددين په اړه ډيري سختي رويې اختياروي ، داسي خلك نه يوازي دا چې بدي په زړه كي بده ګڼي او د ژبه په ذريعه د تلقين او نصيحت فريضه سرته رسوي بلكه پر طاقت تر لاسه كېدو باندي دلاس په ذريعه هم جهاد كوي، او دظلم ختمولو لپاره كما حقه هڅه كوي، دوهم ډول خلك هغه دي چې په دين پوهېدو او د معرفت او يقين په اعتبار د اول قسم خلكو څخه كم وي ، داسي خلك د نيكۍ خپرولو او بدۍ ختمولو لپاره محض د ژبي او زړه په ذريعه اكتفاء كوي او دريم ډول خلك هغه دي چې د دين علم ډېر معمولي لري او د خرابيو خلاف په ژبه هم پټه خوله وي او د شريعت خلاف كارونه په زړه كي په بد ګڼلو باندي اكتفاء كوي بلكه هغوئ د قلبي نفرت او عداوت په معامله كي هم دومره سخت او حساس نه وي څومره چې د هغوئ د ايمان تقاضا ده ځكه داسي خلك د يو بل حديث د الفاظ: (ذلک اضعف الايمان..) په ذريعه تر ټولو د كمزوري ايمان حامل ښودل سوي دي ، ذكر سوې درې ډوله خلك هغه دي چې عارف او ديندار ورته ويل كيداى سي مګر دغه درې ډوله خلك د خپلو خپلو مرتبو او خپل خپل حيثيت په اعتبار پر يو بل فضيلت لري او دهغوئ په درجو كي تفاوت دى ، د قرآن كريم د يو آيت په رڼا كي د دوئ درجې داسي ټاكل سوي دي چې د اول ډول تعلق لرونكو خلكو ته سابق، دوهم ډول سره تعلق لرونكو ته مقتصد يعني متوسط او دريم ډول خلك ته په ظالم سره تعبير كيږي ، هغه آيت دادى :

ثُمَّ أَوْرَثْنَا الْكِتَابَ الَّذِينَ اصْطَفَيْنَا مِنْ عِبَادِنَا فَمِنْهُمْ ظَالِمٌ لِّنَفْسِهِ وَمِنْهُم مُّقْتَصِدٌ وَمِنْهُمْ سَابِقٌ بِالْخَيْرَاتِ،

بيا دغه كتاب موږ د هغه خلكو لاس ته ورسوى چې موږ (د خپلي ټولي دنيا) د بندګانو څخه خوښ كړه بيا ځيني په هغوئ كي پر خپلو ځانو ظلم كونكي دي او ځيني پكښې ميانه روه او ځيني په هغوئ كي په ښېكيو سره وړاندي تلونكي دي.

څرګنده دي وي چې دريم ډول خلكو ته ظالم په دې اعتبار ويل سوي دي چې هغوئ د دين

زيات معرفت نه درلودی او ددين زيات مختاط او حساس نه کېدو په وجه د کوتاهيو ښکار کيږي او همدارنګه د خپلو کوتاهيو په ذريعه پر خپل نفس ظلم کوي ، د ذکر سوي آيت د لومړنيو الفاظو څخه دا هم څرګنده سوه چي دغه درې ډوله خلک که څه هم په خپلو مرتبو او درجو کي فرق لري مګر په يوه خبره کي ټول مشترک دي چي دغه ټول د الله تعالى په دربار کي غوره بندګان ګرځول سوي دي.

د سوابق لفظ د سابقه جمع دی او سابقة هغه خصلت ته وايي چي اوليت او امتيازي حيثيت لري، لکه څرنګه چي ويل کيږي: له سابقة في هذا الامر، يعني ته په دغه معامله کي اوليت حاصل دی، يا هغه سړی په دغه معامله کي پر خلکو سبقت وړی دی، نو دحديث دغه جمله : (وذلک الذي سبقت له السوابق) ، مطلب دادی چي ذکر سوی سړی به د سابقين بالخيرات څخه وي په دې توګه چي هغه ددين او دنيا سعادتونو، اجر او ثواب د زيرو او د طاعاتو او عباداتو د توفيق په برخو کي به پر خلکو سبقت يوسي، ګويا په دغه جمله کي د الله تعالى د ارشاد : (السابقون السابقون ) ته اشاره ده چي په هغه کي فرمايل سوي دي ، دا هغه خلک دي چي هغوئ د کمال و تکميل مراتب د علم او عمل درجات او دتعليم او تعلم خصوصيات په ځان کي جمع کړي دي او په دې اعتبار د هغوئ په اړه دا زيری دی چي : (اولئک المقربون) يعني دغه خلک د الله تعالى په دربار کي مقرب او مقبول دي.

## ګناه کاران بد نه ګڼل

﴿۴۹۲۵﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَوْحَى اللهُ عَزَّ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى حکم وکړ

وَجَلَّ إِلَى جِبْرِيلَ عَلَيْهِ السَّلَامُ أَنْ اَقْلِبْ مَدِينَةَ كَذَا وَكَذَا بِأَهْلِهَا فَقَالَ

جبرائيل عليه السلام ته چي هغه فلانی ښار يا کلی چي داسي او داسي دئ سره د اوسيدونکو پر بل مخ واړوه ، جبرائيل عليه السلام وويل:

يَارَبِّ إِنَّ فِيهِمْ عَبْدَكَ فُلَانًا لَمْ يَعْصِكَ طَرْفَةَ عَيْنٍ قَالَ فَقَالَ اَقْلِبْهَا عَلَيْهِ وَعَلَيْهِمْ فَإِنَّ وَجْهَهُ لَمْ يَتَمَعَّرْ فِيَّ سَاعَةً قَطُّ. رواه البيهقي.

اې زما پروردګاره ! د هغه کلي په اوسيدونکو کي ستا يو بنده هم دئ چي هغه د يوې لحظې

لپاره هم ستا نافرماني نه ده کړې ، الله تعالی به ورته وفرمايي چي پر هغه او پر هغوئ هم ځکه وارووه، ځکه چي د هغه مخ (د ګناه په ليدو سره) د يوې لحظې لپاره هم متغير سوی نه دئ. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٦\٩٧، رقم: ٧٥٩٥.

**تشريح**: د الله تعالی د ارشاد خلاصه داوه چي بېله شکه زما دغه بنده هيڅکله زما نافرماني نه ده کړې او يو وخت يې هم د بدی لار نه ده اختيار کړې مګر د هغه دغه جرم څه کم دی چي خلکو د هغه په مخکي ګناه کول او هغه په داډ سره ورته کتل، خرابي خپرېدل او د الله تعالی نافرماني کېدل مګر هغه د بدی او نافرمانی په لېدو سره د هغه پر مخ هيڅکله داسي اثار پيدا نه سوه چي د هغه څخه دا معلومه سوه چي د هغه په زړه کي د هغه خرابيو کونکو خلاف د غيظ او غضب او نفرت جذبه وه ، د يوساعت الفاظ دې ته اشاره کوي که هغه سړي په خپل ټول ژوند کي يو وار هم د الله تعالی در ضا لپاره د هغه خرابيو کونکو خلاف د غصې او نفرت اظهار کړی وای نو دهغه د ژوند په پاته برخو کي به د هغه د دغه کوتاهيو څخه معافي سوې وای .

## د ګناهونو دزياتوالي ببره

﴿۴۹۲۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی به

عَزَّ وَجَلَّ يَسْأَلُ الْعَبْدَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَيَقُوْلُ مَا لَكَ إِذَا رَأَيْتَ الْمُنْكَرَ فَلَمْ

د قيامت په ورځ د بنده څخه پوښتنه وکړي چي په تا هغه وخت څه سوي وه چي تا د شريعت خلاف کار وليدی

تُنْكِرْهُ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَيُلَقَّى حُجَّتَهُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ خِفْتُ النَّاسَ وَرَجَوْتُكَ. روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان.

او د هغه څخه دي خلک منع نه کړل ، رسول الله ﷺ فرمايي چي هغه بنده ته به د الله جل جلاله د لوري دليل وښودل سي چي الله تعالی به ورته د هغه د بخښني اراده وفرمايي او هغه به وايي اې پروردګاره ! زه د خلکو (د ظلم) څخه بيريدم او ستا د مغفرت اميد مي درلودئ . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٦\٩١، رقم: ٧٦٧٦.

**تشريح**: د هغه بنده له خوا په مذکوره جواب کي به د خپل کوتاهی اقرار، د خپل عجز اظهار او

د رب كريم پر فضل او كرم باندي د خپل يقين او باور بيان وي او څرنګه چي بيهقي ويلي دي چي كيداى سي د حديث تعلق د هغه چا سره وي چي د شريعت خلاف كارو كونكو د غلبې او جذبې څخه بيريږي او د هغوئ له خوا د خپل ځان د خوندي كولو توان نه لري، ددې څخه معلومه سوه كه د خلكو د رعب په وجه يو سړى د امربالمعروف او نهي عن المنكر دنده سرته ونه رسوي نو هغه به د مؤاخذې مستحق نه وي، او د الله تعالى له خوا د هغه په حق كي د عفو اميد كېداى سي مګر په هغه صورت كي دا سوال يقينا پيدا كيږي چي داسي سړى د شريعت په نظر كي معذور دى نو د قيامت په ورځ به نه خو د هغه څخه مؤاخذه وي او نه به هغه ته د تاويل او دليل ويني ضرورت وي، ددغه سوال دفع كولو لپاره دا ويل مناسب دي چي ددغه حديث تعلق د هغه چا سره دى چي هغه د يو عذر او مانع څخه پرته د ذكر سوي فريضې په سرته رسولو كي كوتاهي كړې وي او كه الله تعالى د هغه دغه جزوي كوتاهي معافول وغواړي نو هغه ته د ذكر سوي تاويل او دليل الهام وكړي چي هغه معذورت وكړلاى سي .

﴿۴۹۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو موسى اشعري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَالَّذِي نَفْسُ مُحَمَّدٍ بِيَدِهِ إِنَّ الْمَعْرُوفَ وَالْمُنْكَرَ خَلِيقَتَانِ تُنْصَبَانِ لِلنَّاسِ

په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په قبضه كي د محمد ﷺ ساه ده چي مشروع عمل (د شريعت سره سم عمل) او غير مشروع عمل به

يَوْمَ الْقِيَامَةِ فَأَمَّا الْمَعْرُوفُ فَيُبَشِّرُ أَصْحَابَهُ وَيُوعِدُهُمُ الْخَيْرَ وَأَمَّا الْمُنْكَرُ

د قيامت په ورځ په خپل شكل پيدا كړل سي او د خلكو په مخ كي به ودرول سي چا چي په هغو عمل كړى وي مشروع عمل به خلكو ته زيرى واوروي او د انجام د خير وعده به ورسره وكړي،

فَيَقُولُ إِلَيْكُمْ إِلَيْكُمْ وَمَا يَسْتَطِيعُونَ لَهُ إِلَّا لُزُومًا . رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

او بد عمل به خلكو ته وايي زما څخه ليري سئ ليري سئ او دا خلك به د هغه څخه د بيلېدو قوت نه لري بلكه په هغو پوري به مونښتي وي . احمد او بيهقي .

**تخريجٌ**: مسند الامام احمد ۳۹۱\۱۴، لم نجده عند البيهقي.

**تشريح**: د حديث خلاصه داده چي انسان په دنيا کي کوم نيک عملونه وکړي هغه به د مرګ څخه وروسته په قبر کي هم په ښه پاک او خوشبويه صورتو کي ظاهر سي او د قيامت په ورځ د غوره شکل او صورت په اختيارولو سره د هغه سړي مخته راسي او هغه ته به د آخرت د لازوال سعادتونو زيری اوروي ، ددې پر خلاف که چيري يو څوک بداعمال اختيار کړي نو هغه اعمال به په قبر کي هم په خراب او بېرونکي صورت کي په راتلو سره هغه خفه کوي او د قيامت په ورځ به هم په خراب شکل او صورت کي د هغه مخته راځي او هغه به ورته وايي چي زموږ څخه ليري سه مګر هغه سړی به پر ليري کېدو باندي قادر نه وي يعني پر هغه خرابو اعمالو چي کومه سزا ورکول کيږي د هغه څخه به تېښته کولای نسي ، لفظ د تنصبان د مجهول کېدو په وجه د مؤنث صيغه ده مګر د مشکوة په يوه نسخه کي دغه الفظ د مذکر په صيغه نقل سوی دی او دا زيات مناسب دی ځکه چي د خليقة په لفظ کي د تاء حرف د تانيث لپاره نه دی بلکه د مبالغې لپاره دی او معنی يې داده چي دغه دواړه يعني عمل خير او عمل بد د مخلوقاتو څخه يو نوع ده چي د قيامت په ورځ به د خلکو په وړاندي د شکل او صورت په اختيارولو سره څرګنديږي .

==========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيم

# كِتَابُ الرِّقَاقِ

## (د رقاق بيان)

رِقاق د رقيق جمع ده چي معنی يې د نرم او نري ده، دلته چي د كتاب كوم بابونه پېل كيږي هغه په كتاب الرقاق سره ځكه نومول سوي دي چي په دغه بابو كي هغه حديثونه نقل سوي دي چي زړه نرموي په طبيعت كي نرمي پيداكوي او د فكر او عمل قوائې داسي متاثروي چي د دنيا څخه به يې بې فكري او د آخرت سره به يې رغبت پيدا كيږي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### دوه نعمتونه

﴿۴۹۲۸﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نِعْمَتَانِ مَغْبُونٌ فِيهِمَا كَثِيرٌ مِنَ النَّاسِ الصِّحَّةُ وَالْفَرَاغُ. رواه البخاري.

د ابن عباس رضی الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوه نعمتونه دي چي د هغو په اړه خلک ډير په تاوان كي پراته دي (يعني د هغو قدر نه كوي) يو صحت او بل فراغت. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۲۹، رقم: ۶۴۱۲.

**تشريح**: په ذكر سوو نعمتو كي يو نعمت خو روغتيا ده يعني د ناروغيو څخه خوندي كېدل او دويم نعمت فراغت دی يعني د وختونو د غم، فكرونو او تشويشونو څخه خالي كېدل، په دنيا كي د داسي خلكو كمي نسته چي د خپل غفلت په وجه د دې دواړو نعمتونو قدر نه كوي او د هغو په باره كي په دوكه كېدو سره هغه نعمتونه په مفته كي د لاسه ځيني ووځي، لكه يو سړی د رانيولو او پلورلو په معامله كي د يو چا څخه په دوكه خوړلو په خپل مال او سامان كي تاوان زغمي.

نو په دغه ارشاد كي پر هغو خلكو باندي د حسرت او افسوس اظهار دی چي د دغه نعمتونو يعني روغتيا او فراغت څخه گټه نه ترلاسه كوي، په دې توگه چي نه خو په خپل روغتيا كي د دين او دنيا د خير او گټې كار كوي او نه د فراغت وختونه په غنيمت گڼلو سره په هغه كي د آخرت كارو ته متوجه كيږي، مگر كله چي د هغوئ صحت او روغتيا خراب سي، د دنيا

فکرونه ورته لاحق سي او د کاروبار غم د هغو وختونه په ښلا ښلو پريشانيانو او تشويشو کي اخته کوي نو هغه وخت د دغه نعمتونو يعني روغتيا او فراغت قدر ورته پيداسي او محسوسوي چي موږ څرنګه قيمتي وخت ضائع کړی ، او د دغه قول ( النعمة اذا فقدت عرفت ) د نعمت قدر هغه وخت کيږي کله چي هغه ځيني ولاړسي ، مصداق جوړسي .

ملا علي قاري رحمة الله عليه د دغه حديث په تشريح کي ليکلي دي ، د دغه ارشاد مطلب دادی چي کوم خلک د دغه نعمتو حقيقي قدر نه کوي په دې توګه چي هغوئ د دغه نعمتونو د حاصلېدو په زمانه کي داسي کار نه کوي چي د هغه په آخرت کي محتاج وي او بيا چي هلته پښېمانه وي چي موږ په دنيا کي د خپل عمر ګران وختونه څرنګه ضائع کړل ، او د روغتيا او فراغت په وخت کي چي کوم نعمتونه موږ ته ترلاسه سوي وه د هغه د تلو مخکي موږ د هغه قدر نه وکړی حال دا چي هغه وخت دغه پښېماني هغوئ ته هيڅ ګټه نسي رسولای څرنګه چي الله تعالی فرمايي چي ( ذالک يوم التغابن ) او رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي په آخرت کي اهل جنت که څه ارمان او افسوس کوي نو پر هغه وختونو باندي به يې کوي په کوم کي چي دوئ الله تعالی نه وي ياد کړی او داغسي يې تېر کړی وي .

## د دنيا او آخرت مثال

﴿۴۹۲۹﴾: وَعَنِ الْمُسْتَوْرِدِ بْنِ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ وَاللهِ مَا الدُّنْيَا فِي الْآخِرَةِ إِلَّا مِثْلُ مَا يَجْعَلُ أَحَدُكُمْ إِصْبَعَهُ فِي الْيَمِّ فَلْيَنْظُرْ بِمَ يَرْجِعُ. رواه مسلم

د حضرت مستورد بن شداد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي ويل يې قسم په خدای د آخرت په مقابله کي د دنيا مثال داسي لکه څوک چي په درياب کي ګوته غوټه کړي او بيا وګوري چي په ګوته کي يي څه شي راوړي دي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۱۹۳، رقم: ۵۵– ۲۸۵۸.

**د لغاتو حل**: اسک: ای صغير الاذن او مقطوعها (هغه چي غوږونه يې کوچني وي يا نه وي.)

**تشريح** : مطلب دادی که يو سړی خپله ګوته په درياب کي ډوبه کړي او بيرته يې راو کاږي نو هغه به ويني چي دغه ګوتي د سمندر څخه يو يا نيمه قطره اوبه راخيستي دي نو داغسي پوهېدل پکار دي چي د آخرت د زمانې او د هغه د نعمتونو په مقابله کي د دنيا زمانه او د دنيا

ټول نعمتونه دومره لږ دي ځومره چي د سمندر په مقابله کي د هغه ګوتي څخه اوبه څڅېدل ، مګر حقیقت خو دادی چي دا مثال هم د خلکو د پوهېدلو لپاره يې کنه او د متناهي او غيرمتناهي سره هيڅ نسبت نسي کېدای د اوبو هغه قطره چي د درياب څخه دباندي راوتلې ده ، د خپلي کمترئ او بې وقعتئ سره سره د درياب سره څه نا څه نسبت خاماخا لري ، خو دنيا د آخرت سره په دومره اندازه نسبت هم نه لري .

ملا علي قاري رحمه الله ليکي ، د دې حديث حاصل دادی چي انسان ته پکار ده چي د دنيا په فناکېدونکو نعمتونو او ارامتياوو باندي مغروره نسي او نه د دغه پر سختيو او خوابديو باندي ژړا او فرياد او شکايت وکړي ، بلکه د رسول الله ﷺ د تعليم سره سم دي دا وائي چي : اللهم لا عيش الا عيش الاخرة : اې الله تعالی ، اصل ژوند خو بس د آخرت ژوند دی

او دا حقيقت هر وخت تر نظر لاندي ساتل پکار دی چي دا دنيا مزرعة الآخرة يعني د آخرت کښت دی او د دې ځای ژوند بس يو ساعت دی نو دا يو ساعت د تېرولو لپاره د الله تعالی په ذکر کي اخته کېدل تر ټولو لويه عقلمندي ده .

## دنيا يو بې حيثيته شی دی

﴿۴۹۳۰﴾: وَعَنْ جَابِرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَرَّ بِجَدْيٍ أَسَكَّ مَيِّتٍ قَالَ أَيُّكُمْ يُحِبُّ أَنَّ هَذَا لَهُ بِدِرْهَمٍ فَقَالُوا ما نُحب أَنَّهُ لَنَا بِشَيْءٍ قَالَ فَوَاللّٰهِ لَلدُّنْيَا أَهْوَنُ عَلَى اللّٰهِ مِنْ هَذَا عَلَيْكُم . رواه مسلم .

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو مړ مرغومي سره تېر سو چي کوچني کوچني غوږونه يې وه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : دا مرغومی څوک په يوه درهم اخيستل خوښوي، خلکو وويل: موږ يې د هيڅ شي په بدل کي نه غواړو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: په الله تعالی دي مې قسم وي د الله تعالی په نزد دا دنيا تر دې هم زياته ذليله ده څومره چي ستاسو په نظر کي دغه (مردار مرغومی) ذليل دئ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۷۲، رقم: ۲- ۲۹۵۷.

**د لغاتو حل**: اسک: ای صغير الاذن او مقطوعها (هغه چي غوږونه يې کوچني وي يا نه وي.)

**تشريح** : رسول الله ﷺ د مېږي د مړه بچي د مثال په توګه په حقيقت کي دې ته خلک متوجه کړه چي دا دنيا هيڅ کله د دې وړ نه ده چي انسان د دې په محبت او غوښتنه کي د آخرت تاوان او ګټه

هېره کړي مګر اصل شی د آخرت محبت او غوښتنه ده ، د هغه ځای ژوند هم نه ختمېدونکی دی او د هغه نعمتونه هم لازواله دي نو د ژوند مقصود د آخرت محبت او غوښتل پکاردي نه د دنیا محبت او غوښتنه ځکه فرمایل سوي دي :

حب الدنیا راس کل خطیئة: د دنیا محبت او غوښتنه د هري ګناه بېخ دی لکه چي ویل سوي دي :ترک الدنیا راس کل عبادة ، د دنیا څخه بې فکري د هر عبادت بنیاد دی او د دغه وجه داده ، چي د دنیا په محبت کي اخته کېدونکي په خپلو اعمالو کي مخلص او پاکیزه نه وي ، مګر د هغه هر کار د څه خرابي وجي او لالچ آمیز شی لري که څه هم هغه دیني او مذهبي کار ولي نه کوي ، د دې پر خلاف کوم سړی چي د دنیا څخه بې اعتنائي اختیار کړې وي د هغه په هر عمل کي اخلاص او پاکیزګي او د آخرت مفاد وي که څه هم هغه په څه دنیاوي کار کي اخته ولي نه وي ځکه یو عارف ویلي دي چا چي دنیا خپل خوښ او محبوب شی جوړ کړی هغه د ټولي دنیا مشائخ او مرشدین په یو ځای کېدو سره هم په راه راست باندي نسي راویستی او چا چي دنیا ته بې اعتنائي ، بې توجي خپله شیوه ( طریقه) جوړه کړه هغه د ټولي دنیا مفسد او بدکار خلک هم نسي ګمراه کولای .

## د مؤمن لپاره دنیا بندیخانه ده

**﴿۴۹۳۱﴾**: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَجَنَّةُ الْكَافِرِ . رواه مسلم.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دنیا دمؤمن لپاره بندیخانه او د کافر لپاره جنت ده . مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\ ۲۲۷۲، رقم: ۱- ۷۹۵۶.

**تشریح** : د بندي خانې مطلب دادی چي څرنګه یو سړی په بندیخانه کي بندي وي نو هلته د بندیتوب تکلیفونه زغمي او بېلابېل سختۍ زغمي همداسي د مؤمن لپاره دا دنیا هم ګویا یوه قیدخانه ده ، چي محنت ، سختۍ او تکلیفونه ورته رائحي ،د منکراتو منهیاتو ، ممنوع او خلاف شرع امورونو څخه خپل ځان ساتل ورته پکاروي ، د نفس آزادي او بې راه روي ختمول وي او د طاعاتو او عبادتونو سختیاني زغمي ، یا دا چي مؤمن دا دنیا یو داسي ځای محسوسوي چیري چي تنګي او سختي وي او هلته وجود اختیارول هغه نه خوښوي د هغه هر

وخت دا خواهش وي ، چي هغه د تنگي او تياري د دنيا څخه ووځي او د عالم مملکوت وسعتونه خپل مقام جوړ کړي ، او دنيا د کافر لپاره جنت دی د دغه مطلب دادی چي کافر د خپل ژوند مقصد دنيا حاصلول غواړي ځکه هغه خپل ټول کوشش او خپل ټول جدوجهد د دنيا د نعمتونو او آسائشونو حاصولو کي تېروي او بيا هغه د دنيا په لذاتو او شهواتو کي داسي مصروف سي چي د هغه لپاره دا دنيا يوه عشرت ځای جوړه سي چي د هغې څخه وتل هغه نه مني.

ځيني حضرات وائي ، د حديث مراد دادی چي مؤمن ته په آخرت کي کوم اجر او ثواب ورکول کيږي او هلته چي په کومو نعمتونو او راحتونو سره نازول کيږي د هغه په وجه دا دنيا د هغه په حق کي گويا قيدخانه ده او کافر چي به په آخرت کي د کوم سخت عذاب سره مخامخ کيږي د هغه په وړاندي کي دا دنيا د هغه په حق کي گويا جنت دی ، د دې حاصل دادی چي مؤمن په دې دنيا کي که څه هم په څومره ناز او نواز سره وسيږي او هغه ته په دې دنيا کي که څه هم هر څومره راحتونه او آراميانې ترلاسه وي بيا هم هغه هيڅ نه دي ، ځکه چي هغه ته په آخرت کي کوم نعمتونه او راحتونه ترلاسه کېدونکي دي هغه د دې دنيا د نعمتونو ، راحتونو او آراميانو څخه ډير زيات غوره او اعلی دي ، همداسي کافر په دې دنيا کي که څه هم هر څومره تکليفونه آفتونه او سختياني برداشت کړي خو په آخرت کي به د هغه حال د دې دنيا د حال څخه هم بدتر وي، نقل سوي دي چي يو يهودي امام حسن رضي الله عنه ته وويل چي ستاسو نيکه رسول الله ﷺ چي دا فرمايلي دي (الدنيا سجن المؤمن وجنة الکافر) نو د هغوئ دا قول زما او ستاسو پر حال باندي څنگه صادق راځي ځکه چي تاسو خو پر آس باند ي سفر کوئ او په ډېري اسانۍ او ارامتيا سره ژوند تېروی هر کله چي زه په ناروغي کي اخته يم او په ډول ډول تکليفونو او فقر و فاقو کي راچاپېره يم ، امام حسن رضي الله عنه چي کوم جواب ورکړ هغه همدغه وؤ ، کوم چي پورته نقل سوی دی .

## د کافر د نيکۍ اجر

﴿۴۹۳۲﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ لَا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالی د

يَظْلِمُ مُؤْمِنًا حَسَنَةً يُعْطَى بِهَا فِي الدُّنْيَا وَيُجْزَى بِهَا فِي الْآخِرَةِ وَأَمَّا الْكَافِرُ

مؤمن د نيکۍ اجر نه ضائع کوي، په دنيا کي هم (د هغه د نيکۍ اجر) ورکوي او (په آخرت کي

هم، او که کافر صرف د الله ﷻ د رضا لپاره نیکي کړې وي

فَيُطْعَمُ بِحَسَنَاتِ مَا عَمِلَ بِهَا لِلّٰهِ فِي الدُّنْيَا حَتّٰى إِذَا أَفْضَى إِلَى الْآخِرَةِ لَمْ يَكُنْ له حَسَنَةٌ يُجْزَى بِهَا. رواه مسلم.

نو د هغه د نیکۍ اجر په دنیا کې ورکول کیږي او هر کله چې هغه آخرت ته ولاړ سي نو د هغه د هیڅ نیکۍ اجر به هلته نه وي. مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۲۱۶۲، رقم: ۵۶ – ۲۸۰۸.

**تشریح**: د دې ارشاد په ذریعه دا حقیقت ښکاره کړل سوی دی چې د آخرت خیر او د هغه ځای د اجر او ثواب دارومدار په دنیا کې پر څه نیک کار باندې نه دی، مګر پر ایمان او عقیده باندې دی هغه نیک کارونه چې د الله تعالی د رضا لپاره کول کیږي او په هغه سره یقینا الله تعالی خوشحاله کیږي هر کله چې مؤمن یې کوي، نو هغه ته د هغه نیکو کارو په وجه په دې دنیا کې هم ښه بدله ورکول کیږي په دې توګه چې د هغه کاروبار معیشت او په رزق کې فراخي ترلاسه کیږي د هغه ژوند ته آرام خوشحالي د زړه اطمینان او دولت نصیب کیږي او بیا هغه د هر ډول آفاتو بلاوؤ او د خراپو عناصرو څخه ساتل کیږي او بیا چې هغه د دې دنیا د ژوند په پوره کولو سره آخرت ته رسیږي نو هغه ته هلته هم د هغه نیکو کارونو پوره پوره اجر او ثواب ترلاسه کیږي، د دې بل اړخ ته چې کافر ښک اعمال کوي چې په هغه سره الله تعالی خوشحاله کیږي لکه فقیر او اړ کس ته ډوډۍ ورکول د هغه مرسته کول د یتیمانو او کونډو ښځو سره ښه رویه او احسان کول او همداسې نور فلاحي او نامي کارونه نو د هغه ښه کارو پوره بدله هغه ته په دې دنیا کې ورکول کیږي، کله چې په آخرت کې هغه د دې ښه کارو د څه اجر او ثواب ترلاسه کېدو حق داره نه وي.

پاته سوه دا خبره چې څنګه مؤمن ته په دنیا کې د خپلو نیکو کارونو بدله ښه ترلاسه کیږي همداسې آیا هغه ته په دنیا کې د خراپو کارونو سزا هم ورکول کیږي نو د دې جواب به په اثبات کې وي چې الله تعالی خپل کوم بنده د آخرت د عذاب او سختیو څخه ساتل غواړي هغه ته د هغه د بدو کارو سزا په دغه دنیا کې ورکوي، په یو دویم حدیث کې نقل سوي دي چې مؤمن ته د هغه د بدو کارونو په بدله کې په دنیا کې د بېلابېل ډوله مصیبتونه، پرېشانیاني او مصیبتونه راځي تر دې چې هغه آخرت ته وررسیږي نو د هغه په عمل نامه کې څه داسې بدي نه وي چې په

هغه سره هغه د عذاب حق داره وګرځول سي د دې تائيد د دې حديث څخه هم کيږي کوم چي احمد رحمه الله او ابن حبان رضي الله عنه نقل کړي دي او کوم وخت چي دا آيت کريمه : من يعمل سوء يجزبه. نازل سو نو حضرت ابوبکر رضي الله عنه عرض وکړ، يا رسول الله ﷺ که داسي ده چي د بنده څخه کومه بدي هم صادره سي نو بيا خلاصون ترلاسه کوونکی سړی به څوک وي رسول الله ﷺ ورته وفرمايل الله تعالی دي تا وبخښي آيا ته غمجن کېږې نه آيا تا ته غم او تکليف نه در رسيږي، ايا ته ناروغه کېږې نه او ايا تا ته څه تکليف او ضرر نه رسيږي هغه عرض وکړ هو يا رسول الله ﷺ ده مبارک ورته وفرمايل نو ياد لره دا شی يعني ستا په څه تکليف مصيبت درد او غم کي اخته کېدل په اصل کي ستا په حق کي د هغي بدئ سزا او بدله ده کومه چي ستا څخه سوې ده.

## د جنت او دوږخ پردې

**﴿۴۹۳۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُجِبَتْ النَّارُ بِالشَّهَوَاتِ وَحُجِبَتْ الْجَنَّةُ بِالْمَكَارِهِ. متفق عليه الا عند مسلم حفت بدل حجبت.**

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوږخ په شهوتونو سره پټ سوی دئ (يعني پر دوږخ د شهوتو پردې پرتې دي هر کله چي سړی د شهوت پرده وشکوي نو په دوږخ کي داخل سي) او جنت په سختيو او تکليفونو سره پټ سوی دئ. بخاري او مسلم، او د مسلم په روايت کي د حجبت پر ځای د حُفّت لفظ راغلی دئ چي معنا يې داده چي دوږخ او جنت شهوت او تکليفونو راګير کړی دی.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۲۰، رقم: ۶۴۸۷، ومسلم ۱۴\۷۱۷۴، رقم: ۱- ۲۸۲۲.

**تشريح** : مطلب دادی، چي هغه محنت سختي او پريشاني چي د عبادت د پابندي او نفساني خواهشاتو او د لذت څخه د پرهيز په وجه ګالل غواړي دا داسي دی لکه دا چي د جنت پرده ده او کوم شی چي د پردې شاته وي هغه ته د رسيدو لپاره مخکي پردي ته رسيدل او هغه پورته کول ضروري دي څکه جنت ته که رسېدل غواړې نو مخکي هغه پرده پورته که يعني د الله تعالی د احکامو اتباع او د نفس د خواهشاتو څخه پرهيز محنت او سختي برداشت کړه هر کله چي دا خبري اختيار کړي بيا چيري جنت ته رسېدل کيږي همداسي د نفس خواهشات او لذات ګويا د دوږخ پردې دي کوم سړی چي دا پردې ليري کوي يعني د نفس د اتباع او خواهش پرستئ

ارتکاب کوي هغه دوزخ ته رسيږي واضحه دي وي چي په حديث کي د شهوت کوم لفظ استعمال سوی دی د دې تعلق د نفس د هغه خواهشاتو او لذاتو سره دی چي د حرامو شيانو لکه د شراب نشه زنا غيبت وغيره ارتکاب کوي کنې تر څو پوري چي د مباح خواهشاتو او لذاتو تعلق دی هغه نه خو دوزخ ته د تلو باعث جوړيږي او نه يې په جنت کي د تلو څخه راګرځوي که څه هم د نفس د مباح خواهشاتو او لذاتو اتباع هم بنده د قرب او ولايت څخه ليري کوي.

د حديث د ذکر سوي پورته وضاحت څخه دا خبره هم واضحه کيږي چي په يو روايت کي دا فرمايل سوي دي چي العلم حجاب الله يعني علم د الله تعالي پرده ده د دې څه معنی ده نو د دې جملې مطلب هم دادی چي علم ګويا د الله تعالی او بنده په منځ کي پرده ده کوم څوک چي علم حاصلوي هغه ګويا دغه پرده ايسته کوي او هر کله چي هغه پرده ايسته سي نو د الله ﷻ معرفت حاصل سي .

## د مال او زر خاوند

﴿۴۹۳۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَعِسَ عَبْدُ الدِّينَارِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هلاک سو بنده د دينار

وَعَبْدُ الدِّرْهَمِ وَعَبْدُ الْخَمِيصَةِ إِنْ أُعْطِيَ رَضِيَ وَإِنْ لَمْ يُعْطَ سَخِطَ تَعِسَ

او بنده د درهم او بنده د څادر ، که هغه ته دا شيان ورکړل سي نو هغه خوشحاله او راضي وي او که ورنه کړل سي نو ناراضه وي دا بنده هلاک

وَانْتَكَسَ وَإِذَا شِيكَ فَلَا انْتَقَشَ طُوبَى لِعَبْدٍ آخِذٍ بِعِنَانِ فَرَسِهِ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ

او ذليل سو او هر کله چي په پښه کي يې اغزی ننوزي نو هيڅوک دي يې نه ځيني کاږي ، زيری دی هغه بنده ته چي د الله ﷻ په لار کي

أَشْعَثَ رَأْسُهُ مُغْبَرَّةً قَدَمَاهُ إِنْ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ كَانَ فِي الْحِرَاسَةِ وَإِنْ كَانَ فِي

د خپل آس واګي نيولي ولاړ وي د سر وريښتان يې ببر وي او قدمونه يې په ګرد وي ، که هغه د لښکر پر ساتني وټاکل سي نو پوره ساتنه کوي

السَّاقَةِ كَانَ فِي السَّاقَةِ إِنِ اسْتَأْذَنَ لَمْ يُؤْذَنْ لَهُ وَإِنْ شَفَعَ لَمْ يُشَفَّعْ . رواه

البخاري.

او كه په لښكر كي تر شا و ټاكل سي نو په پوره اطاعت سره په لښكر پسې وي، كه هغه د خلكو په محفلونو كي د شركت اجازه غواړي نو هغوئ اجازه نه وركوي (ځكه چي هغه دنيوي شان او شوكت نه لري) او كه د چا سفارش كوي نو شفارش يې نه قبليږي (ځكه هغه د خلكو په نظر حقير او سپك وي). بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦١\٨١، رقم: ٢٨٨٧.

**د لغاتو حل**: الخميصة: هي ثوب خز او صوف معلم. (يو ډول جامې). انتكس: اى صار ذليلا (ذليله سي). شيك: اى دخل شوك في عضوه (ازغى په جګېدل). الساقة: اى مؤخرة الجيش (د لښكر د پاى)

**تشريح**: (د دينار او درهم غلام) په دې وجه ورته فرمايل سوي دي چي د مال او دولت په اړه چي كوم شى بد دى هغه د هغه مال او دولت محبت او په دنيا دارئ كي اخته كېدل وي، نو دا خصلت يعني د مال او دولت او د دنيا په محبت كي راچاپېرېدل انسان د مال بنده جوړوي او د هغه د هر كوشش محور، د هغه د هر خواهش مركز او د هغه د هر كار او عمل بنياد يوائې مال او زر دي، د دې څخه واضحه سوه چي مالداري او دولتمندي په خپله څه مذموم شى نه دى ديو سړي سره كه هرڅومره مال وزر وي او هر څومره لوئ دولتمند وي كه هغه د هغه مال او دولت په مينه كي راچاپېره نه وي نو هغه ته به بد نه ويل كيږي.

په حديث كي د مال او دولت د تعلق سره د دينار او درهم ذكر دا رقم فرمايل سوى دى چي دا دواړه شيان چي هغه ته سره زر، سپين زر، روپۍ او پيسې هم ويل كيږي چي په رانيولو او خرڅولو كي د هغه اعتبار وي او د دې په وجه د ټولو روا او ناروا مقصدو تكميل كيږي، همداسي په اسباب معيشت كي يوائې د پټو (څادر) ذكر دى، چي په اصل كي (خميصه) هغه خط داره پټو ته وائي چي په هغه زمانه كي د لباس فاخره تر ټولو لوړ مظهر ګڼل سوى وو او د هغه په كارېدو سره په عامه توګه د تكبر، رعونت او د نمود و ښائستوب جذبه پيدا كېده او خلكو به هغه پټو ډير خوښوى حتى د ځانه به يې نه جلا كوى نو د هغې زمانې دنياداره د هغه پټو د خواهش او غوښتني او د هغه په مينه كي دومره راچاپېره وه چي حتى هغوئ د هغه پټو غلامي اختيار كړې وه.

د نقش او انتقاش معنى ده، د پښې څخه ازغي كښل نو د (لهذا واذا شيك فلا انتقش) مطلب دادى چي كوم سړى د مال او دولت غلام جوړ سي چي نه خو هغه په ناروا او حرام سبب

سره ګټل او جوړول پریږدي او نه خپلي روپی او پیسې په اړمندو خلکو د الله تعالی په لار کي خرڅوي نو مسلمانانو ته پکار ده چي د هغه سره د مرستي او کومک څخه پرهیز وکړي او هر کله چي هغه په څه افت کي ومونبلي نو هیڅ ثوک دي یې مرسته نه کوي او د دې خبري خیال ساتل پکار دی چي د پښې څخه ازغي کښل د مدد کولو تر ټولو کمتره درجه ده او د ټولو څخه د دغه کمتري درجې د کومک څخه هم منع کول د دغي خبري دلیل دی او که هغه ته تر دغه هم غټه پېښه راسي او د ډیرو زیاتو سختو حالاتو سره مخامخ سي نو د هغه مرسته نه کول به بطریق اولی جائز بلکه مطلوب دی .

دا خبره واضحه کول هم ضروري دي چي د حدیث د لفظ تعس دا ترجمه چي هغه سړی دي مړ سي الخ دا امر ظاهر دی چي د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد مطلب د داسي سړي په حق کي بددعا کول دي ، نو ذکر سوې ترجمه د دغه مراد لاندي کتنه او د شارحینو د اتباع د نظر لاندي نقل سوې ده او که دا مطلب ځیني واخستل سي چي رسول الله ﷺ د دغه لفظ په وجه د هغه سړي په حق کي بددعا نه ده فرمایلې مګر د ده بدتر خصلت مذمت او خصلت اختیاروونکو ته یې دنیاوي او اخروي لذت او خواري او د هغه بد انعام په توګه د خبر ظاهر کړ نو په دې صورت کي به یې معنی دا وي چي هلاک سو هغه سړی الخ او دا مراد به هم د حدیث مغائر نه وي .

## مالداري ښه شی نه ده

﴿۴۹۳۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ سَعِيدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

ان مِمَّا أَخَافُ عَلَيْكُمْ مِنْ بَعْدِي مَا يُفْتَحُ عَلَيْكُمْ مِنْ زَهْرَةِ الدُّنْيَا وَزِينَتِهَا

د خپل مرګ څخه وروسته چي زه ستاسو لپاره د کومو شیانو څخه بیریږم په هغو کي د دنیا تازګي او ښکلا دي چي (د فتوحاتو تر لاسه کولو وروسته) به تاسو ته راسي،. (ددې اوریدو

فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللهِ أَوَيَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ فَسَكَتَ حَتّٰى ظَنَنَّا أَنَّهُ يُنْزَلُ

سره) یو سړي وویل: ایا ښېګڼه او خیر به د ځان سره بدي او شر هم راولي ، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ پټه خوله تر څو چي زموږ دا خیال سو چي پر رسول الله ﷺ وحي نازلیږي،

عَلَيْهِ قَالَ فَمَسَحَ عَنْهُ الرُّحَضَاءَ وَقَالَ أَيْنَ السَّائِلُ وَكَأَنَّهُ حَمِدَهُ فَقَالَ إِنَّهُ لَا

د ابو سعيد راوي بيان دئ (د وحي نازليدو څخه وروسته) رسول الله ﷺ د خپل مخ مبارك څخه خوله وچه كړه بيا يې وفرمايل: پوښتنه كونكي چيري دئ؟ گويا هغه يې د تعريف وړ وگڼئ، بيا يې وفرمايل:

يَأْتِي الْخَيْرُ بِالشَّرِّ وَإِنَّ مِمَّا يُنْبِتُ الرَّبِيعُ ما يَقْتُلُ حبطا أَوْ يُلِمُّ إِلَّا آكِلَةَ

نيكي د ځان سره بدي نه راولي (او ددې مثـــال دادئ) د سپرلي موسم چي شنگيا راشنه كوي (دا نيكي يا خير دئ په دې كي هيڅ ډول بدي نسته) مگر د حيوان نس پړسيږي

الْخَضِرِ أَكَلَتْ حَتَّى امْتَدَّتْ خَاصِرَتَاهَا اسْتَقْبَلَتْ عَيْنَ الشَّمْسِ فَثَلَطَتْ

او وژني يې يا هلاكت ته يې نژدې رسوي (بدي په شنگيا كي نه ده د حيوان په كار كي ده يعني وابنه خوړونكي حيوان دومره زيات وابنه وخوړل چي نس يې ډک سواو) دواړي خواوي يې ايله سوې (يعني په شنگيا خوړولو كي يې د حد څخه تجاوز وكړ او د ضرورت څخه يې زيات خوراک وكړ چي د بدۍ او خرابي سبب سو) بيا (د حيوان دا عادت دئ چي نس پر دروند سي نو لمر ته كښيني چي د لمر گرمي يې نس نرم كړي) نرمي سوتيي يې وكړې

وَبَالَتْ ثم عادت فاكلت وَإِنَّ هَذَا الْمَالَ خَضِرَةٌ حُلْوَةٌ فَمَنْ آخَذَهُ بِحَقِّهِ

او بولي يې وكړي (يعني د لمر گرمۍ يې نس نرم كړ، بولي او مرداري ځيني ووتل) او بيا وروسته ولاړ سي او وابنه يې وخوړل (دغه حال دانسان دئ) چي مال په لاس ور سي نو په بې پرواهي يې مصرف كوي او په گناهونو كي اخته سي) او د دنيا دا مال شين تازه او خوندور دئ څوک چي دا په جايز طريقې سره تر لاسه كړي

وَوَضَعَهُ فِيْ حَقِّهِ فَنِعْمَ الْمَعُوْنَةَ هُوَ وَمَنْ اَخَذَهُ بِغَيْرِ حَقِّهِ كَان كَالَّذِي يَأْكُلُ وَلَا يَشْبَعُ وَيَكُونُ شَهِيدًا عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. متفق عليه.

او په جائز طريقه يې مصرف كړي نو دا مال غوره مرستيال دئ او څوک چي يې په ناجائزه طريقه تر لاسه كړي نو دا مال د هغه سړي په حق كي د هغه چا په ډول دئ چي خوراک كوي او نه مړيږي او دا مال به د قيامت په ورځ پر هغه شاهد وي يعني د هغه د اسراف شهادت به وركوي. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۳۲۷\۱۳، رقم: ۱۴۶۵، ومسلم ۷۲۸\۲، رقم: ۱۲۳- ۱۰۵۲.

**د لغاتو حل**: الرخضاء: عرق یظهر علیه ﷺ عند نزول الوحي علیه (د وحي په وخت کي پر نبيﷺ خوله راتلل). یلم: ای یکاد ان یقتل. ثلطت: ای القت روثها رقیقا سهلا.

**تشریح** : د حدیث د اولو جملو مطلب دادی چي ستاسو په اړه کي ماته ډېره ده چي کله تاسو د دنیا ملکونه او ښارونه په آزادولو سره د خپل تسلط او اقتدار ډېرغ پورته کوئ او د هغه په بدله کي تاسو ته د مال او دولت خوشحالي نصیبه سي نو دا شی به تاسو د عبادت او طاعت او د نیکو کارو د منع کولو کوشش کوي کټه رسونکي علوم یعني دیني علوم او فنونو څخه به مو بې پرواه جوړ کړي او د غرور شان و شوکت د اظهار او جاه و جلال سره د محبت په شان خرابئ په تاسو کي پیداسي د هغه لازمي نتیجه همدا وي چي تاسو به د آخرت د ژوند د فکر کولو او د مرګ لپاره د تیاري کولو پر ځای په دنیاوي امورو کي اخته پاته سئ.

بیا د څارلو ځای ته ولاړسئ په کښتو کي څارل شروع کړئ یعني هرکله چي هغه حیوانان تر ضرورت زیات وخوري او په بد هضمئ کي اخته سي نو په خپلي طریقې سره د بدهضمئ علاج کوي او خپل نس په پاکولو سره بیا خوراک شروع کړي ، دا مثال د هغه سړي دی چي په انساني ضمیر کي ګډ د حرص او خواهشاتو د غلبې په وجه ځیني وخت د اعتدال د لاري څخه په بدخواکېدو سره تر حد تیرېږي او بیا مرګ ته نژدې رسیږي مګر د خپل طرزعمل څخه ژر رجوع کوي او په مستقله توګه د بې اعتدالۍ او د ګناه پر لار قائم نه پاته کېدی مګر د هدایت د لمر رڼا د هغي لاري خواته متوجه کوي او د هغه د پښېمانۍ او توبې په ذریعه خپل ځان د بې اعتدالۍ او د ګناه د غلاظت (سختوالي) څخه په پاکولو سره ګویا خپل علاج کوي د دغه بل اړخ ته اول قسم چي د هغه حیوانانو نس په پړسېدو سره مړه کیږي په وجه بیان وفرمایلو د هغه سړي حالت ته اشاره کوي چي د نفس د خواهشاتو غلام جوړیږي پر ګناه باندي ولاړ وي او په دغه حالت کي مړ سي تر دې چي هغه ته توبه غوښتل هم نصیب نسي ، پر دغه دواړو ډولو باندي په غور کولو سره یو بل ډول مخ ته راځي چي د هغه تعلق د هغه سړي سره دی چي د سره څخه د ګناه لار نه اختیاروي او د نفس د خواهشاتو بندي نه جوړیږي مګر د دنیا څخه بې پرواه وي او خپله ټوله توجه د آخرت د مفادو خوا ته ګرځوي او یو ډول خلک هغه دي چي په اصطلاحي توګه په ظالم سره نومول سوي دي ، نو اول ډول خلک هغه دي چي هغوئ ته مقتصد یعني میانه رو ویل سوي دي او دریم ډول خلک هغه دي چي هغوئ ته سابق یعني په نیکي خپلولو کي مخکي خلک نو کوم سړی چي سابق وي هغه د سره څخه خپل لاسونه په ګناه نه لړي او کوم سی

چي مقتصد وي هغه خپل لاسونه په ګناه سره خو لړي مګر برته يې پرېولي او کوم سړي چي ظالم وي هغه لاس لړلی د دغه دنيا څخه ولاړ سي.

ذکرسوی مثال او د داغه سره سم د بيانولو وروسته رسول الله ﷺ وويل، دغه مال و زر ډېر شنه تازه نرم او زړه کشونکي دي دغه حقيقت خوا ته اشاره يې وفرمايله چي د دنيا مال و زر او د دغه محبت او د دغه د تعلق سره د انسانانو حالات او خيالات جلا وي، چي ځيني خلک خو هغه وي چي يوائې د اړتيا په اندازه د مال او اسباب په لاس راوړو ته کفايت کوي او د هغه د لاس راوړلو لپاره هم روا او صحيح وسائل او ذريعې اختياروي او د هغوئ سره چي کوم مال و زر روپۍ و پيسې وي هغه په ښه مصرفو خرڅوي او ځيني خلک داسي وي چي مال و دولت هر څه ګڼي د هغوئ طمع په هيڅ اندازه قناعت نه کوي هغوئ نه يوائې دا چي تر ضرورت زيات مال و زر ټولوي مګر د هغه په لاس راوړلو کي د روا او ناروا په منځ کي هيڅ فرق نه کوي د سخت ترينو ګناهو ارتکاب کوي او د حرامو ذرائع په اختيارولو سره دولت راټولوي د دغه ماسيوا د هغوئ سره چي کوم مال و دولت او روپۍ پيسې وي هغه پر حقدارانو باندي نه خرڅوي کوم چي د الله تعالی د رضا باعث جوړېږي او د مال و دولت په اړه د هغوئ طمع د هغه سړي په رقم جوړوي چي خوري يې خو د طمعي د غلبې په وجي هيڅ کله نس يې نه مړېږي يا د هغوئ حالت د هغه سړي په ډول به سي چي د استسقاء مريض وي چي هيڅ وخت هم په اوبو نه اوبيږي او څومره اوبه چي څښي هغومره تنده يې زياتيږي او نس يې پرسيږي.

## د يو عارف په آند د دنيا مثال

د يو لوی بزرګ او عارف بالله خواجه عبيد الله نقشبندي رحمة الله عليه په اړه منقول دي چي هغه وويل: دغه دنيا د مار په ډول ده، کوم څوک چي د هغه دم پېژني د هغه لپاره د دنيا تر لاسه کول جائز دي مګر د نورو لپاره جائز نه دي، خلکو چي دا واورېدل نو وه يې ويل چي د دنيا دم څه شي دی؟ هغه ورته وويل: دد پ خبري علم درلودل چي د دغه دنيا مال او دولت د کوم ځای څخه او څرنګه حاصلوي او چيري يې مصرفوي.

﴿۴۹۳۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ عَوْفٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن عوف رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

فَوَاللّٰهِ لَا الْفَقْرَ أَخْشَى عَلَيْكُمْ وَلٰكِنْ أَخْشَى عَلَيْكُمْ أَنْ تُبْسَطَ عَلَيْكُمُ الدُّنْيَا

قسم په خدای زه ستاسو د فقر او مفلسي څخه نه بیریږم بلکه ددې څخه بیریږم چي دنیا به پر تاسو پراخه کړل سي لکه څرنګه چي پر هغه خلکو پراخه کړل سوې وه

كَمَا بُسِطَتْ عَلَى مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ فَتَنَافَسُوهَا كَمَا تَنَافَسُوهَا وَتُهْلِكَكُمْ كَمَا أَهْلَكَتْهُمْ. متفق عليه.

چي ستاسو څخه مخکي تیر سوي دي بیا به تاسو د دنیا په لور رغبت کوئ یعني د دنیا په خوندونو کي به اخته سئ لکه څرنګه چي ستاسو څخه مخکي خلکو ددې رغبت وکړ او دنیا به تاسو هلاک کړي لکه څرنګه چي هغوئ یې هلاک کړ. بخاري او مسلم

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۳۱۹۱، رقم: ۴۰۱۵، ومسلم ۱۴\۲۲۷۳، رقم: ٦ – ۲۹٦۱.

**تشریح**: د مال و دولت هغه فراخي چي د دنیا عاشق یې جوړوي په طمع کي یې اخته کوي، د راټولو او یوځای کولو عادت کوونکی یې جوړوي انسان په اخلاقي او روحاني توګه تباه کوي او د اخروي هلاکت حق داره یې جوړوي ځکه رسول الله ﷺ د مسلمانانو د دنیاوي خوشحالئ، او د مالدارئ څخه د خپلي بیري اظهار وفرمایه، یا رسول الله ﷺ د دغه دنیاوي خوشحالئ په اړه د بیري اظهار وفرمایه چي یو تر بله مخالفت او جګړې یوائي د دنیاوي اقتدار لپاره د جنګ او قتل قتال په بدله کي ترلاسه سي.

په ښکاره دا معلومیږي چي په دغه ارشاد کي د فقراء څخه مراد د هغه ټولو شیانو څخه خالي لاس کېدل دي چي د هغه یو انساني ژوند ته ضرورت وي چي پر هغه د دین د اړتیاوو تکمیل او بنیادي اسبابو معیشت انحاروي همداسي غناء یعني د دنیاوي فراخئ څخه مراد د دنیا د شیانو دومره ترلاسه کول دي چي د اندازې د کفایت او تر ضرورت زیات وي چي د هغه په وجه انسان د الله تعالی د عبادت او اطاعت څخه غافله سي او سرکښي خپله کړي.

## د رزق په باره کي دعاء

﴿۴۹۳۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُمَّ اجْعَلْ رِزْقَ آلِ مُحَمَّدٍ قُوتًا وفي رواية كفافا. متفق عليه.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: اې الله! ته د محمد ﷺ د اهل بیت او اولاد ته یوازي دومره رزق ورکړې چي خپل ځان وساتي او د بدن توان په هغه تر

لاسه کړي ، او په يوه روايت کي دي چي يوازي دومره رزق ورکړې چي د ژوندي پاته کېدلو لپاره يې بس وي . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۸۳، رقم: ۶۴۶۰، ومسلم ۴\۲۲۸۱، رقم: ۱۸- ۱۰۵۵.

**تشريح** : د ملا علي قاري رحمة الله عليه سره سم د (آل) څخه مراد د رسول الله ﷺ اولاده او اهل بيت دی يا د امت هغه خلک ځيني مراد دي چي د رسول الله ﷺ ريښتيني تابعداره او خوښ دي او شيخ عبدالحق رحمة الله عليه ليکلي دي چي د آل څخه مراد د رسول الله ﷺ د امت ټوله خلک او تابع کوونکي مراد دي ځرنګه چي د لفظ (آل) د اصل معنی څخه دا مراد اخستل کيږي او که خاندان و عيال ځيني مراد کړه سي نو هم قياس او دلالت بنياد په جوړولو سره د خاندان و عيال ماسيوا د امت نور افراد هم په دغه دعا کي شامل ګرځيدل کيږي .

قوت د خوراک څيښاک هغه محدودي اندازې ته وائي چي ځان وساتي او په توګه د رزق بس وي کفاف د ژوند د بنيادي ضروریاتو هغي اندازې ته وائي چي د چا مخکي د سوال لاس غزولو څخه يې وساتي او ځيني حضراتو دا ويلي دي چي د قوت او کفاف په اصل کي د اول روايت د لفظ قوت وضاحت دی او د دغه لفظ په ذريعه دغه خوا ته اشاره کول مقصد دي چي اسباب معيشت او د ژوند د اړتياوو پر کم ترينې اندازې باندي کفايت کول اولی دي ښکاره دي وي چي الله تعالی د رسول الله ﷺ دا دعا د خپلو هغو بندګانو په حق کي قبوله کړې ده څوک چي يې خپل محبوب جوړول.

دا خبره په ذهن کي ساتل پکار ده چي کفاف يعني د خوراک په اندازه کفايت څه متعين او آخري نه دي مګر د دغه مختلف صورتونه کېدای سي او د دغه فرق مدار اشخاص ، زمانه او د حالاتو عدم يکسانيت باندي دی مثلا يو سړی داسي وي چي د لږ خوراک عادت لري په دغه توګه چي هغه د دوو درو ورځو يا تر دغه زياتو وږی پاته کېدای سي مګر يو سړی داسي دی چي په ورځ کي دوه يا درې واري د ډوډی خوړلو عادت لري يو سړی کم يا زيات عيال لري او يو سړی د سره کورني نه لري همداسي ځيني وختونه داسي وي چي په هغه کي د خوراک څيښاک لږ اندازه هم کفايت کوي لکه د وچ کالی زمانه د تنګدستئ حالت او کمزوري يا مرض راتلل د دغه بل اړخ ته خوشحالي او د قوت په حالت کي د خوراک څيښاک زيات خواهش وي اخر دا د کفاف اندازه منضبط کېدای نسي مګر د دغه دارومدار پر وخت حالاتو او اړتياوو باندي وي کوم سړی چي په کوم حيثيت او کوم حالت کي وي د هغه په حق کي د کفاف اندازه د هغه سره سم وي البته مستحب او مطلوب دادی چي انسان ته د خپل خوراک څيښاک بس تر دغه اندازې

پوري ساتل پکار دي چي د ژوند د تېرولو لپاره ضروري او د بدن د قوت د ساتلو لپاره ضروري وي چي د هغه سره پر عبادت او اطاعت باندي قدرت حاصل وي او د ژوند معمولات مړه نسي.
په دغه حديث کي گويا مسلمانان په دغه امر کولو مقصود سوي دي چي هغوئ د ماش د لاس راوړلو د کوشش ضروريات د ژوند د دغه اندازې سره سم وساتي چي هغه ته قوت او کفاف وائي او تر ضرورت زيات د اسباب معيشت لاس ته راوړلو محنت او سختي برداشت نه کړي او د حد اعتدال څخه په تجاوز کولو سره او په طمع او کوشش کي په اخته کېدو سره خپل روحاني او اخلاقي ژوند کمزوری نه کړي.
علماؤ ليکلي دي چي تر فقر او غناء کفاف افضل دی که څه هم په ځيني حالاتو کي غناء يعني د مال او دولت کثرت هم يو قسم فضيلت لري په شرط د دغه کثرت په وجه حاصليدونکې خوشحالي په هيڅ صورت کي هم په ديني گمراهئ اخروي نقصان او تاوان او د دنيا د ميني موجب جوړ نسي مگر خير او کاميابي او د عباداتو اواطاعاتو زيات تر په اختيارولو کي کومکي وي.

## د انسان خلاصون

﴿۴۹۳۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَسْلَمَ وَرُزِقَ كَفَافًا وَقَنَّعَهُ اللّٰهُ بِمَا آتَاهُ. رواه مسلم.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه چا خلاصون تر لاسه کړ چا چي اسلام قبول کړ او د ضرورت په اندازه رزق ورکړل سو او الله تعالی ورته په هغه شي کوم چي ورته ورکړل سوی قناعت ورکړ. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۷۳۰، رقم: ۱۲۵- ۱۰۵۴.

## په مال کي د انسان درې برخي

﴿۴۹۳۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْعَبْدُ مَالِي مَالِي إِنَّمَا لَهُ مِنْ مَالِهِ ثَلَاثٌ مَا أَكَلَ فَأَفْنَى أَوْ لَبِسَ فَأَبْلَى أَوْ أَعْطَى فَاقْتَنَى وَمَا سِوَى ذٰلِكَ فَهُوَ ذَاهِبٌ وَتَارِكُهُ لِلنَّاسِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: بنده وايي زما مال زما مال او حقيقت دادئ چي د هغه په مال چي څه د هغه دي هغه يوازي درې برخي دي يو خو هغه مال چي هغه وخوړ او ختم يې کړ، دويم هغه مال چي وا يې غوستی او زوړ يې کړی او دريم هغه مال چي د الله ﷻ په لار کي يې ورکړ او د آخرت لپاره يې ذخيره کړ، د دغه درو ډولو څخه پرته څه چي دي هغه به ټول خلکو ته پريږدي او دی به ځيني ځي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۲۲۷۳\۴، رقم: ۴-۲۹۵۹.

**تشريح**: په دغه ارشاد کي دا حقيقت ښکاره سوی دی چي انسان په محنت کولو سره دنيا ګټي مال و دولت ترلاسه کوي او مځکه و جائيدا جوړوي بيا په هغه مځکه جائيداد او مال و دولت باندي فخر کوي خپل ځان يو ډير لوی سړی ګڼي او پر خلکو د مشرتوب کولو کوشش کوي مګر هغه دا خبره نه احساسوي چي اول خو د دغه مال و دولت او مځکي و بال ډير سخت دی او د دغه جواب ډير سخت دی دويم دا چي د ده سره څه مال و دولت مځکه و جائيداد دی دا د هغه ذات ته ډيره معمولي فائده وررسوي او دا شيان تر ډير کم وخته پوري د هغه سره پاته کېدونکي دي رسول الله ﷺ په غټي نفساني طريقې سره ښکاره و فرمايله چي په مال و دولت کي د انسان اصلي حصه او د هغه في الجمله بس دومره فائده وي چي هغه څه شيان خو په خوړلو سره ختم کي څه شيان په اغوستلو سره زاړه کي او که هغه ته توفيق وي نو يو څه شيان د الله تعالی په لار کي په خرڅولو سره د ځان لپاره د آخرت ذخيره جوړه کړي نور ټول مال و اسباب ټوله مځکه و جائيداد ټولي روپی و پيسې همداسي نور شيان د نورو لپاره پاته سي او دی له دنيا څخه رخصت سي.

په ذکر سوي پورته درو صورتو کي آخري يعني خپل مال د الله تعالی په لار کي خرڅول ښکه يو داسي شی دی چي انسان ته د هغه مال او دولت څخه تر ټولو ګران او د هميشه لپاره پاته کېدونکې ګټه رسوي او که د دغه اصلي ګټي لپاره مال و دولت تر لاسه کړي او هغه يو ځای کړي نو دا په يقين سره په پوهه کي راتلونکې خبره به وي کنه نو د دنيوي ګټو لپاره يې يو ځای کوي نو دا بې حقيقته خبره به وي د دغه ارشاد دا الفاظ (او اعطي فاقتني) په ذريعه د دې امر خوا ته اشاره فرمايل سوې ده چي مال و دولت جمع کول په حقيقت کي دا دي چي انسان ته د الله تعالی کوم مال و دولت ورکړي هغه د الله تعالی د خوشحالئ لپاره مسکينانو او ضرورت مندانو ته ورکړي چي د هغه ثواب جمع کيږي او بيا د حاجت په ورځ د قيامت په ورځ په کار راسي.

## د مړي سره تلونکي شيان

﴿۴۹۴۰﴾: وَعَنْ اَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتْبَعُ الْمَيِّتَ ثَلَاثَةٌ فَيَرْجِعُ اثْنَانِ وَيَبْقَى مَعَهُ وَاحِدٌ يَتْبَعُهُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَعَمَلُهُ فَيَرْجِعُ أَهْلُهُ وَمَالُهُ وَيَبْقَى عَمَلُهُ. متفق عليه.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د مړي سره درې شيان ځي دوه بيرته راځي او يو ورسره پاته کيږي: د کور خلک، مال او عمل ورسره ولاړ سي خو راوګرځي د کور خلک او مال دده (يعني مړی) يوازي پريږدي او دوئ ځيني راسي او هغه (يعني د مړي) عمل ورسره پاته سي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۶۲، رقم: ۶۵۱۴، ومسلم ۴\۲۲۷۳، رقم: ۵-۲۹۶۰.

**تشريح**: د اعمالو څخه مراد هغه ثواب او عذاب دی چي هر ښه او بد کار پر مرتب کيږي حاصل دادی چي انسان کله د دغه دنيا څخه ځي د آخرت اول منزل يعني قبر ته ورسيږي نو هلته به هغه مرحله شروع کيږي چيري چي عزيزان قريبان دوستان خپلوان مال و دولت دا ټول به پريږدي او يوازي هغه اعمال ورسره پاته سي چي هغه په دنيا کي کړي وه شايد له دې وجهي څخه ويل سوي دي چي القبر صندوق العمل يعني قبر د اعمالو صندوق دی.

﴿۴۹۴۱﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّكُمْ مَالُ وَارِثِهِ أَحَبُّ إِلَيْهِ مِنْ مَالِهِ قَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ مَا مِنَّا أَحَدٌ إِلَّا مَالُهُ أَحَبُّ إِلَيْهِ من مال وارثه قَالَ فَإِنَّ مَالَهُ مَا قَدَّمَ وَمَالُ وَارِثِهِ مَا أَخَّرَ. رواه البخاري.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په تاسو کي څوک دی چي هغه ته د خپل مال څخه زيات د خپل وارث مال خوښوي، صحابه کرامو وويل: اې دالله رسوله! په موږ کي هيڅوک داسي نسته چي د خپل مال څخه زيات د وارث مال خوښوي، رسول الله ﷺ وفرمايل: دده مال هغه دی چي ده مخکي وليږی (يعني خيرات او

صدقې په ذريعه) او هغه د وارث مال دى چې ده دخپل مرګ څخه وروسته پرېښود (او واقعه داده چې خلک د ځان څخه وروسته پرېښودونکى مال چې د وارثانو دى زيات خوښوي) . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ١١\ ٢٦٠، رقم: ٦٤٤٢.

**تشريح** : مطلب دادى كه خلک رښتيا هم دا خبره خوښوي چې د هغوئ سره کوم مال و دولت دى د هغه زياته زياته ګټه هغوئ ته وررسيږي نو پكار خو داده چې هغوئ دا مال و دولت دلته په دنيا کې د يوځاى كولو او دلته د پرېښېدو پرځاى په آخرت کې د كار د راتلو لپاره مخكې واستوي د هغه صورت دادى چې هغه خير و خيرات وكي او په ښه كارو کې يې په خرڅولو سره زيات ترين ثواب وګټي مګر په عامه توګه سره داسې چې خلک خپل مال و دولت او پيسې يوځاى كوي خير و خيرات نه وركوي او د حقدارانو د حق په وركولو کې بخيل توب كوي او همداسې هغه د مخكې استولو پر ځاى د وارثانو لپاره دلته په دنيا کې يې پرېږدي او ځيني ولاړسي چې د هغه څخه دا معلوميږي چې خپل مال و دولت د ځان لپاره نه خوښوي مګر د خپلو وارثانو لپاره يې ډېر زيات خوښوي بيا هم ښكاره دي وي چې د دغه ارشاد مطلب دا نه دى چې د كوم سړي سره څه مال و دولت او سرمايه وي هغه دي ټول د الله تعالى په لار کې خرڅ كې او د خپلو وارثانو لپاره دي هيڅ نه پرېږدي او ځيني ولاړسي مګر اصل مقصد د دغه خبرې خواته ترغيب وركول دي چې مالدار خلک په دغه بخيلتوب خپل شعار نه جوړوي او نه دي د مسكينانو د كومک څخه ډډه كوي بلكه د خپل مال و دولت او پيسو څه حصه دي د الله تعالى په لار کې خرڅوي د خپل مال و دولت څه حصه صدقه او په خيرات كولو او مسكينانو ته او د نيكو كارونو لپاره د وصيت كولو وروسته چې د هغه زياته حصه دريمه حصه ده نوره د وارثانو لپاره پرېښول افضل دي څرنګه چې په حديث شريف کې راغلي دي چې خپل وارثان مالداره پرېښول تر دغه غوره دى چې خپل ټول مال د الله تعالى په لار کې په خرڅولو سره د دنيا څخه ولاړسي او د هغه وارثان د خپلو اړتياوو لپاره د خلكو څخه غوښتنه او لاس غزونه كوي.

﴿۴۹۴۲﴾: وَعَنْ مُطَرِّفٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهُوَ يَقْرَأُ أَلْهَاكُمُ التَّكَاثُرُ قَالَ يَقُولُ ابْنُ آدَمَ مَالِي مَالِي قَالَ وَهَلْ لَكَ يَا ابْنَ آدَمَ إِلَّا مَا أَكَلْتَ فَأَفْنَيْتَ أَوْ لَبِسْتَ فَأَبْلَيْتَ أَوْ تَصَدَّقْتَ فَأَمْضَيْتَ. رواه مسلم.

حضرت مطرف رحمه الله د خپل پلار څخه روايت کوي چې زه د نبي کريم ﷺ په خدمت کې حاضر سوم او هغه مبارک دغه وخت دا سورت تلاوت کوی (يعني الهكم التكاثر) چې د هغه معنا داده : اې خلکو تاسو د خپل مال په زياتوالی په خپل منځ کې د فخر په سبب د آخرت د خيال څخه بې پروا سوې ياست ، بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : د آدم عليه السلام اولاد وايي زما مال زما مال، حال دا چې اې د آدم زويه ! ستا په مال کې تا ته هيڅ په لاس نه درځي خو يوازې دومره چې تا وخوړى او ختم دې کړ او وادې غوستى او وه دې شکوى او خيرات دې کړ او د آخرت لپاره دې ذخيره کړ . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۷۳، رقم: ۳- ۲۹۵۸.

## حقيقي غنا څه شي ده

﴿۴۹۴۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَيْسَ الْغِنَى عَنْ كَثْرَةِ الْعَرَضِ وَلَكِنَّ الْغِنَى غِنَى النَّفْسِ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : غنا د اسباب او سامان په زياتوب نه ده بلکه غنا د زړه شتمنتوب دئ . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۷۱، رقم: ۶۴۴۶، ومسلم ۲\۷۲۶، رقم: ۱۲۰- ۱۰۵۱.

**تشريح** : د زړه غني کېدل دادي چې څه حاصل شی وي پر هغه صبر وکړي د مال و دولت او مالدارئ څخه بې پرواه سي او د غټې حوصلې او همت مالک وي چې نه خو په طمع کې اخته وي او نه د چا مخته د سوال لاس غزوي کوم سړی چې داسي وي چې د هغه زړه د مال و دولت په حاصلولو او يوځای کولو کې بوخت وي او د ډير مال په غوښتنه او په طمعه کې اخته وي نو هغه په حقيقت کې فقير او ضرورت مند دی که څه هم په ظاهره کې هر څومره مالداره ولې نه وي دا حقيقت شيخ سعدي رحمه الله داسي بيان کړی دی :

تونگري بدل است نه بمال　　بزرگي بعقل راست نه بسال

ځينو حضراتو داسي ويلي دي چې غني النفس ( يعني د نفس د غني کېدو ) څخه مراد دادی چې هغه ته علمي او عملي کمالات ترلاسه سي چې د هغه څخه ماسيوا د انسان روحاني او اخلاقي ژوند نه خو خوندي وي او نه هغه ته عظمت تر لاسه وي گويا اصل خوش بختي او د

دولتمندئ دارومدار پر روحاني او عملي کمالاتو باندي دی نه چي د مال و سامان پر دې پرشت باندي لکه چي چا ویلي دي :

تونګري نه بمال است نزد اهل کمال که مال تالب ګور است بعد از آن اعمال

او ځیني ارباب کمالو داسي ویلي دي

رضینا قسمة الجبار فینا لنا علم وللاعداء مال

الله تعالی چي زموږ په قسمت کي څه لیکلي دي موږ په هغه راضي او خوشحاله یو زموږ لپاره د علم دولت دی او د دشمنانو لپاره دنیاوي مال دی .

فان المال یفني عن قریب و ان العلم یبقي لا یزال

په دغه کي شک نسته چي دنیاوي مال ډیر ژر ختمېدونکی دی کله چي د علم دولت همیشه پاته پاته کېدونکی دی .

او دا خبره معلومه ده چي دنیاوي مال او سامان د هغه خلکو میراث دی چي د الله تعالی په نزد سخت شړل سوي دي لکه فرعون قارون او ټول کفار او فاسقان وغیره کله چي انبیاء علیهم السلام ، علماء او اولیاء میراث علم او د اخلاص دولت دي نو دنیاداره سړی په ښکاره مال و سامان تر لاسه کېدو خوشحاله کیږي او دینداره سړی د علم دولت په لاس نه راوړو سره خوشحاله او مطمئن کیږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### پنځه نصیحتونه

﴿۴۹۴۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ يَأْخُذُ

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څوک دئ چي واخلي

عَنِّي هٰؤُلَاءِ الْكَلِمَاتِ فَيَعْمَلُ بِهِنَّ أَوْ يُعَلِّمُ مَنْ يَعْمَلُ بِهِنَّ قُلْتُ أَنَا يَا رَسُولَ

زما څخه دا کلمې او عمل په وکړي ، یا هغه چا ته یې وښیي چي عمل په وکړي، ما وویل: اې د الله رسوله ! زه یم،

اللّٰهِ فَأَخَذَ بِيَدِي فَعَدَّ خَمْسًا فَقَالَ اتَّقِ الْمَحَارِمَ تَكُنْ أَعْبَدَ النَّاسِ وَارْضَ

رسول الله ﷺ زما لاس ونیوی او داسي پنځه خبري یې وشمیرلې یعنی وه یې فرمایل : (۱) د

هغه شیانو څخه ځان وژغوره کوم چي الله ﷻ حرام کړي دي که ته د هغه څخه ځان وساتې نو ستا شمیر به د غوره عبادت کونکو خلکو څخه سي

بِمَا قَسَمَ اللَّهُ لَكَ تَكُنْ أَغْنَى النَّاسِ وَأَحْسِنْ إِلَى جَارِكَ تَكُنْ مُؤْمِنًا وَأَحِبَّ

(۲) کوم شی چي الله تعالی ستا په قسمت کي لیکلی دي په هغه راضي او شاکر اوسه که ته داسي وکړې نو ستا شمیر به د دنیا په غني ترین خلکو کي سي (۳) د خپل همسایه سره ښه چلن کوه که ته داسي وکړې نو پوره مؤمن به سې (۴) کوم شی چي د ځان لپاره خوښوې

لِلنَّاسِ مَا تُحِبُّ لِنَفْسِكَ تَكُنْ مُسْلِمًا وَلَا تُكْثِرُ الضَّحِكَ فَإِنَّ كَثْرَةَ الضَّحِكِ تُمِيتُ الْقَلْبَ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث غريب.

نو د خلکو لپاره یې هم خوښ کړه که ته داسي وکړې نو پوره مسلمان به سې (۵) او ډیر مه خانده ځکه چي ډیره خندا زړه مړ کوي. احمد او ترمذي، ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۳۱۰، والترمذي ۴\۴۷۸، رقم: ۲۳۰۵.

**تشريح** : د حدیث د اولو جملو څخه دا خبره ښکاره کیږي چي علم په خپله افضل او اشرف دی د یو سړي یو اځي علم حاصلول د هغه د فضیلت دلیل دی، هو که پر هغه باندي د علم پیدا کیدو دولت هم نصیب سي نو تر دغه د خوشبختئ خبره بله نسته چي د علم اصل مقصد تر لاسه کیږي مګر که یو عالم پر خپل علم باندي خپله خو عمل نه کوي البته د تعلیم او تلقین په ذریعه د هغه علم نورو ته رڼا رسوي او د سیده لاري ښودلو فریضه منځ ته راوړي نو هغه ته په دغه صورت کي هم ثواب ترلاسه کیږي د دغه څخه دا هم معلومه سوه چي د بې علمه عالم خلکو ته د نیکئ او خیر تلقین کول او د بدئ څخه راګرځول صحیح دي.

د محارم په مفهوم کي هر ډول ممنوع شیان اختیارول او د کومو شیانو د اختیارولو حکم چي سوی دی د هغه پرېښودل پکښي شامل دي نو ته محارم یعني د هغه شیانو څخه ځان وساته کوم چي شریعت حرام کړي دي د دغه مطلب دادی چي نه یو اځي د منع سوو او حرامو شیانو څخه پرهیز وکړه بلکه شریعت چي د کومو شیانو د اختیارولو حکم کړی دی د هغه د پرېښولو څخه هم پرهیز وکړه.

د محارم څخه پرهیز کوونکي ته تر ټولو زیات عبادت ګزاره بنده په دغه اعتبار ورته فرمایل سوي دي چي د محارم څخه پرهیز کول هغه فرائض پوره کول دي کوم چي الله تعالی عائد کړي دي او ښکاره ده چي د فرائضو پوره کولو څخه افضل هیڅ عبادت نسته مګر عام خلک فرائض

پرېږدي یا هغه خوا ته کومه توجه ورکوي او په نفلو کي مصروف اوسي او همداسي هغه گویا اصول او بنیاد خو ضائع کوي او فروعات او فضائل اختیاروي مثلاً ډېر وخته داسي کېږي چي د روژې قضاء واجب وي خو هغه د دغه روژو د قضاء راوړلو خوا ته خو غافل وي البته د علم حاصلول په افضل عباداتو کي د مصروفه کېدو خوا ته ترجیح ورکوي یا پر یو سړي باندي زکواة واجب دی د خلکو مالي حقوق پر هغه باندي ذمه وي خو هغه د زکوة او د بندګانو حقوق د ادا کېدو خوا ته خو څه توجه نه ورکوي البته پر مسکینانو باندي خرڅول او د مسجدو او مدرسو جوړول یا دارقم نور په نافله کارو کي په پوره شوق سره خپل مال خرڅوي.

پر تقدیر الهي باندي خوشحاله او مطمئن کېدل او پر خپل قسمت باندي صبر کوونکی او شکر کوونکی ډېره غټه مرتبه لري کوم سړي ته چي دا مقام ورپه نصیب سي هغه د حرص څخه پاک سي د زیاتي غوښتني څخه خپله لمن راټولوي او د دولتمندئ په وجه د چا مخته لاس غزول نه بولي نقل سوي دي چي یو سړي د بزرگ سید ابوالحسن شاذلي رحمه الله څخه د کیمیا په باره کي پوښتنه وکړه نو هغه جواب ورکړ چي هغه کیمیا په دوو خبرو کي پټه ده یو خو دا چي ته مخلوق د نظر څخه وغورځوه یعني د الله ماسیوا څوک د سختئ پورته کوونکی وغیره مه ګڼه او د الله تعالی ماسیوا د بل چا سره خپل حاجت مه متعلق کوه او دویم دا چي د الله تعالی سره هم دا امید مه متعلق کوه چي هغه تا ته د هغه شیانو ماسیوا څه نور هم درکړي کوم چي هغه ستا په قسمت کي لیکلي دي.

حضرت شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله وفرمایل اې انسانه په دغه خبره پوه سه چي کوم شی ستا په قسمت کي لیکل سوی دی هغه به په هر حالت کي تا ته رسیږي که څه هم د غوښتني او سوال لار اختیار کړې یا هغه لار پرېږدې، او کوم شی چي ستا په قسمت کي نه دی لیکل سوی هغه تا ته هیڅ وخت نه ترلاسه کیږي که څه هم د هغه په غوښتني کي ته هر ډول طمع وکړې او د هغه د لاس راوړو لپاره هر ډول کوشش محنت او سختي برداشت کړې نو تا ته چي څه ترلاسه سي پر هغه شکر وکړه او صبر پر وکړه په هر حالت کي حلال او جائز شی ترلاسه کول ضروري وګڼه او پر خپل قسمت باندي راضي او مطمئن اوسه چي رب ذوالجلال ستا څخه راضي او خوشحاله سي.

ته چي کوم شی د ځان لپاره خوښوې د دغه مطلب دادی چي د دین د بهترئ او خیر کوم شی چي ته په خاصه توګه سره د ځان لپاره خوښوې هغه شی د نورو لپاره هم خوښوه تر دغه چي د کافر لپاره د بې ایمان او فاجر لپاره توبه او انابت خوښ کړه.

## په عبادت کي زړه لګول

﴿۴۹۴۵﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يَقُولُ ابْنَ آدَمَ تَفَرَّغْ لِعِبَادَتِي أَمْلأْ صَدْرَكَ غِنًى وَأَسُدَّ فَقْرَكَ وَإِنْ لا تَفْعَلْ مَلأْتُ يدكَ شُغْلًا وَلَمْ أَسُدَّ فَقْرَكَ. رواه احمد وابن ماجة.

د حضرت ابوهریرة ؓ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله پاک فرمایي :اې د آدم زویه! ته خپل زړه په ښه ډول زما د عبادت لپاره مطمئن او فارغ کړه زه به ستا زړه د غنا څخه ډک کړم او فقر او اړتیا به درباندي بنده کړم که ته داسي ونه کړې نو زه به ستا لاسونه د بوختیاوو څخه ډک کړم او ستا فقر او افلاس به هم بند نه کړم . احمد او ابن ماجه.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۳۵۸، وابن ماجه ۱۷\۱۳۷۶، رقم: ۴۱۰۷.

**تشریح** : مطلب دادی چي د فقر افلاس او تفکراتو وریځ یو اځي په دغه توګه سره نه ختمیږي چي خپل ټول وختونه د معاش په غوښتنه او د مال و دولت د لاس راوړو په کوشش او سختئ کي تېر کړې او هر ګړی په دنیاوي کارو او مصروفیاتو کي سرګردان اوسې مګر واقعه داده چي په دغه صورت کي ټولي پرېښانیاني او سرګردانئ دي پر خپل ځای پاته وي کله چي د الله تعالی د عبادت لپاره خپل فکر و عمل وختونه د دنیاوي تفکراتو او مصروفیاتو څخه فارغ ساتل د حالاتو د کشائش ضامن هم دي او د الله تعالی ماسیوا د استغناء او بې نیازئ د حاصلېدو باعث هم ، دا خبره په نورو لفظو کي داسي بیان کېدای سي چي د الله تعالی خوا ته د متوجه کېدو پر ځای هر وخت د غم روزګار پریشاني پر ځان مسلط کولو او د غوښتني په لار کي ناروا محنت او په سختئ کي په ګډېدو سره خپل ځان په تکلیف او غم کي د اخته کېدو په وجه د هغه اندازې څخه زیات د لاس راوړو څخه خو پاته سو کوم چي د ازله په قسمت کي لیکل سوي دي البته چپه اثر به دا خاماخا وي چي د الله ﷻ د عبادت په پرېښولو د زړه د استغناء او دولت څخه هم محرومه سو .

## پرهیزګاري ښه ده

﴿۴۹۴۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ ذُكِرَ رَجُلٌ عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِعِبَادَةٍ وَاجْتِهَادٍ وَذُكِرَ عِنْدَهُ آخَرُ بِرِعَةٍ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تُعْدَلُ

بِالرِّعَةِ يعني الورع. رواه الترمذي.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي يو سړي د رسول الله ﷺ مخته په عبادت او طاعت کي د کوښښ ذکر وکړ او بل سړي د پرهيزګارۍ ذکر وکړ (رسول الله ﷺ) ورته وفرمايل: دا، (يعني په عبادت او طاعت کي کوښښ) د پرهيزګارۍ برابر مه ګڼئ. (يعني پرهيزګاري لوی شی دی.) ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۷۷، رقم: ۳۵۱۹.

**د لغاتو حل**: برعة: ای بورع عن حرام مع قلة عبادة.

**تشريح**: د ورع الفاظ په اصل کي د حديث حصه نه ده مګر د يو روايت کوونکي خپل قول دی چي هغه د دغه الفاظو په وجه د رعة وضاحت کړی دی چي د دغه لفظ څخه مراد ورع دی واضحه دي وي چي د ورع څخه مراد تقوی ده يعني د حرامو شيانو څخه ځان ساتل او د دغه په مفهوم کي عبادات واجبه ادا کول هم پکښي شامل دي د حديث حاصل دادی چي کوم سړي عبادتونه خو ډير کوي مګر د ګناهو د پرېښولو په معامله کي کمزوری وي نو هغه تر هغه سړي افضل نه دی چا چي پرهېزګاري اختيار کړې وي که څه هم د هغه عبادت او اطاعت ډير وي او په هغه کي زيات کوشش او اهتمام نه وي.

### پنځه شيان غنيمت تر پنځو شيانو مخکي وګڼئ

﴿۴۹۴۷﴾: وَعَنْ عَمْرِوبْنِ مَيْمُوْنِ الْأَوْدِيِّ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عمرو بن ميمون اودي ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يو سړي ته وفرمايل

وَسَلَّمَ لِرَجُلٍ وَهُوَ يَعِظُهُ اِغْتَنِمْ خَمْسًا قَبْلَ خَمْسٍ شَبَابَكَ قَبْلَ هَرَمِكَ

چي پنځه شيان تر پنځو شيانو مخکي غنيمت وګڼه يعني (۱) ځواني مخکي تر سپين ږيرتوب

وَصِحَّتَكَ قَبْلَ سَقْمِكَ وَغِنَاكَ قَبْلَ فَقْرِكَ وَفَرَاغَكَ قَبْلَ شُغْلِكَ وَحَيَاتَكَ

قَبْلَ مَوْتِكَ. رواه الترمذي مرسلا.

(۲) روغتيا مخکي تر ناروغۍ (۳) غنا مخکي تر مفلستيا (۴) فراغت مخکي تر بوختيا (۵): او ژوند مخکي تر مرګ. ترمذي

**تخریج**: لم نجده عند الترمذي.

**تشریح**: اغتنم لفظ د اغتنام څخه مشتق دی چي معنی یې ده د غنیمت مال اخیستل او غنیمت خو په اصل کي هغه مال ته وائي چي مسلمانانو د جنګ په کولو سره د جنګي کافرانو څخه حاصل کړی وي مګر د دغه لفظ اطلاق پر هغه شي باندي هم کیږي چي د دغه محنت او مشقت څخه بغیر لاس ته راغلی وي.

د حدیث خلاصه داده چي ځواني، روغتیا، شتمني، فراغت او ژوند داسي شیان دي چي تل نه وي، د ځوانۍ وروسته سپین ږیرتوب، د روغتیا وروسته ناروغي، د شتمنۍ وروسته محتاجي او د فراغت وروسته بوختیاوي او د ژوند وروسته مرګ راتلل لازمي دي، ځکه تر څو چي دغه شیان نه راسي نو غنیمت یې وګڼئ او په هغه کي د خپلي دنیوي او اخروي ښېګڼي او ګټي لپاره څه کولای سئ و کړئ.

## انتظار کول

﴿۴۹۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ما ينتظر

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په تاسو کي یو سړی د

احدكم إِلَّا غِنًى مُطْغِيًا أَوْ فَقْرًا مُنْسِيًا أَوْ مَرَضًا مُفْسِدًا أَوْ هَرَمًا مُفَنِّدًا أَوْ

شتمنتوب انتظار کوي چي سرکښ کونکی شی دی یا د مفلسۍ انتظار کوي چي الله جل جلاله هیرونکی شی دی، یا د ناروغۍ انتظار کوي دي یا د سپین ږیرتوب انتظار کوي چي بنده بې حواسه او بې عقله کوي.

مَوْتًا مُجْهِزًا أَوِ الدَّجَّالَ فالدجال شَرُّ غَائِبٍ يُنْتَظَرُ أَوِ السَّاعَةَ وَالسَّاعَةُ أَدْهَى وَأَمَرُّ. رواه الترمذي والنسائي.

د مرګ انتظار کوي چي ناڅاپه او ژر راتلونکی دی، یا د دجال انتظار کوي چي خراب او غائب دی، یا د قیامت انتظار کوي چي سخت او تلخ حوادث دي. ترمذي او نسائي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۴۷۸، رقم: ۲۳۰۶، ولم نجده عند النسائي.

**د لغاتو حل**: مفندا: ای مبلغا صاحبه الی الفند وهو ضعف الرای.

**تشریح**: د حدیث حاصل دا دی چي انسان ته فرصت او فراغت او د څه کولو موقع نصیب

كيږي هغه دا غنيمت نه گڼي او داسي هغه گويا د هغه وخت په انتظار وي كله چي هغه وخت دلاسه ځيني ووځي او داسي صورت راسي چي هغه د دغه خيرونو او خوش بختيو څخه محرومه كړي چي د هغه څخه په تيره زمانه كي برخمن كيداي سي مثلا يو سړی په غريبۍ او مجبوری كي اخته وي نو پكار خو داده چي هغه دا حالت د ځان لپاره غنيمت وگڼي او په دا پوه سي چي د مال و دولت په وجه چي كومي خرابۍ پيدا كيږي د هغه څخه الله تعالى ساتلی دی او دا وخت دا موقع ورته په نصيب ده چي پر خپل اوسني حالت باندي د صبر لار په اختيارولو سره د الله تعالى صبركوونكی بنده جوړ سم مگر د دغه پر ځای هغه د خپل د غريبۍ پر حالت د مال و سامان غوښتونكی سي د هغه نفس هغه د مالدارۍ خوا ته راكښوي او هغه گويا د هغه مال و دولت خواهش لري چي د هغه په نشه كي سركښه وي او د سيده لاري څخه يې راگرځوي همداسي الله تعالى چي كوم سړی په مال و دولت سره نازيي هغه د دا خپل مالدارۍ په حالت كي د شكر د ادا كولو څخه بې پرواه كيږي او هغه مال و دولت د خير او ښېگڼي په كارونو كي د خرڅولو پر ځای آخوا دې خوا په خرڅولو سره د الله تعالى د دغه لوئ نعمت بې قدري كوي او په خپل دا كار كولو سره گويا دی د غريبۍ او مايوسۍ خوا ته تلل غواړي چي په معاشي فكرو او خوابديو كي په اخته كېدو سره د عبادت څخه غافل سي په دغه حديث كي د نورو جملو مطلب هم قياس كېداى سي.

ښكاره دي وي چي دا الفاظ انتظار كوي په اصل كي د هغه خلكو په حق كي د تنبيه په توگه دی چي د دين په كارو كي غفلت او سستي او په عبادت كي كوتاهي كوي گويا هغوئ خبر كړه سوي دي چي تاسو د خپل رب عبادت او د خپل دين د خدمت لار به آخر كله اختيارئ كه تاسو د خپل دين خدمت او د خپل رب عبادت او اطاعت ونه كړی كله چي تاسو ته د لږ مصروفياتو او د وخت د فارغ والي د بدن د طاقت او داسي نوري ښائستې موقعې په لاس درغلي دي نو بيا به هغه وخت څه وكې كله چي دا موقع په لاس نه درځي او د ډير مصروفياتو د بدن د كمزوري په وجه تاسو په پوره توگه سره قدرت لرونكي پاته نسی نو ايا تاسو د فائدې موقع په پرېښېدو سره د تاوان د وخت انتظار كوونكي ياست او د خپل تاوان د لاري انتظار كوی.

## د دنيا بدوالی

﴿۴۹۴۹﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اَلَا إِنَّ الدُّنْيَا مَلْعُونَةٌ مَلْعُونٌ مَا فِيهَا إِلَّا ذِكْرُ اللّٰهِ وَمَا وَالَاهُ وَعَالِمٌ أَوْ مُتَعَلِّمٌ. رواه

## الترمذي وابن ماجة.

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : خبردار! دنيا ملعونه ده او کوم شی چي په دنيا کي دننه دي هغه هم ملعون دي پرته د الله ﷻ د ذکر څخه او د هغه شي څخه کوم چي الله تعالی خوښوي او عالم او يا طالب علم . ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۸۵، رقم: ۲۳۲۰، وابن ماجه ۲\۱۳۷۷، رقم: ۴۱۱۲.

**تشريح** : د دغه ارشاد مقصد د دنيا څخه بې توجه کېدل او د دا تعليم ورکول دي چي د دنيا کوم شيان چي الله تعالی يې نه خوښوي لکه ټول حرام او ناروا کارونه د هغه څخه پرهيز کوئ داسي نه چي د دغه شيانو د اختيارولو په وجه تاسو هم د رب العزت د دروازې څخه شړونکي وګرځول سئ او کوم شيان چي د الله تعالی په نزد ښه او خوش ترينه دي لکه ذکر الله نيک کارونه او تعليم و تعلم وغيره هغه اختيار کړئ چي تاسو هم د الله تعالی د دروازې قبول سوي وګرځول سئ د الله تعالی خوښ شيان عبادت او اطاعت او ټول هغه شيان ځيني مراد دي چي د الله تعالی د رضا باعث او د الله تعالی د نژدې والي ذريعه وي يا (ما والاه) چي د هغه معنی د الله تعالی خوښ شيان ، د دغه معنی ده هغه شيان چي د الله تعالی ذکر ته نژدې او د هغه مشابه وي لکه د انبياؤ اولياؤ او صلحاء حالات او د فضائلو ذکر او اعمال صالحه، يا دا معنی چي هغه شی چي د الله تعالی د ذکر تابع او د هغه د لوازمو او مقتضيانو څخه دي لکه د الله تعالی حکمونه او د امر و نهي اتباع او فرمانبرداري نو د( ما والاه) اوله معنی چي په ترجمه کي نقل سوې ده د مراد اخستو په صورت کي لفظ والاه ماده اشتقاق به ولي وي چي د هغه معنی د محبت او دوستئ ده د دويمي معنی اخستو په صورت کي به دا لفظ ګويا ولي څخه معنی متابعت (پيروي) وي، ليکن دا خبره دي په ذهن کي وي چي د دغه ټول وضاحت تعلق د دغه امر تسليم په کولو سره دی چي د ذکر الله څخه مراد د الله تعالی د نامه ورد دی څرنګه چي په عامه توګه سره د الله تعالی ذکر دا مفهوم ګڼل سوی دی او که د الله تعالی د ذکر څخه مراد هر هغه کار خير وي چي د الله تعالی د رضا د هغه د نژدېکت او د هغه د عبادت په نيت سره کول کيږي نو د دغه معنی څخه ټول عبادتونه او طاقتونه به د الله تعالی ذکر په مفهوم کي داخل وي او بيا لفظ ما والاه څخه به هغه شيان مراد وي چي د ذکر الله اسباب او ذرائع کېدو په وجه د هغه باعث معين او مددګار وي تر دغه چي په اندازه د کفاف خوراک څيښاک او د ژوند د ضرورتو شمير هم په دغه اسبابو کي وي په دغه صورت کي به وويل سي چي وروسته د عالم او متعلم ذکر به د تخصيص بعد تعميم په توګه وي.

## د دنيا حيثيت

﴿۴۹۵۰﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ كَانَتِ الدُّنْيَا تَعْدِلُ عِنْدَ اللّٰهِ جَنَاحَ بَعُوضَةٍ مَا سَقَى كَافِرًا مِنْهَا شَرْبَةً. رواه احمد والترمذي وابن ماجة.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: كه دنيا د الله جل جلاله په نظر كي د غوماشي د وزر برابر هم څه حيثيت درلوداى نو كافر ته به يې يوه ذره هم نه وركولاى. احمد ،ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۸۵، رقم: ۲۳۲۰، وابن ماجه ۲\ ۱۳۷۷، رقم: ۴۱۱۰، ولم نجده عند احمد.

**تشريح**: مطلب دادى كه د الله تعالى په نظر كي د دغه دنيا څه قدر هم وي نو د دغه دنيا كم ترين شى به هم د كافر نه نصيب كېدى ، ځكه چي كافر د الله تعالى دښمن دى نو ښكاره ده چي كوم شى هم څه قدر او وقعت لري او د وركولو والا هغه شى خپل دښمن ته هيڅ كله نه وركوي نو د دنيا د بې وقعت او ډير سپک كېدو وجه ده چي الله تعالى دا دنيا كافرانو ته وركوي ليكن خپلو بندګانو ته يې نه وركوي ځرنګه چي په يوه حديث كي دغه خوا ته داسي اشاره فرمايل سوې ده : ما رويت الدنيا عن احد الا كانت خيرة له: د دنيا د مال و جاه حق داره هغه سړى وي چي د هغه لپاره غوره وي .

او كفار و فاسقان چي په دنيا كي ډير خوشحاله موړ وينو نو د هغه يوه وجه دا هم ده چي د الله تعالى په نظر كي دغه دنيا د نيكو بندګانو لپاره ښه نه ګڼي مګر دا د كچرې په ډول د كفارو او فجارو مخ ته يې غورځوي چي د دغه څخه هغه ته نفرت دى په دا آيت كريمه كي دغه خوا ته اشاره سوې ده :

أَن يَكُونَ النَّاسُ أُمَّةً وَاحِدَةً لَجَعَلْنَا لِمَن يَكْفُرُ بِالرَّحْمَٰنِ لِبُيُوتِهِمْ سُقُفًا مِّن فَضَّةٍ

ژباړه: كه دا خبره امېدناكه نه واى چي ټولي تول خلک به يوه طريقه يعني كافران سي نو كوم خلک چي د الله تعالى سره كفر كوي موږ به د هغوئ لپاره د هغوئ د كورو چتونه هم د سپينو زرو جوړ كړو .

او د قرآن كريم په دغه آيت سره وما عند الله خير للابرار او رزق ربک خير و ابقي څخه هم دا خبره هم واضحه كيږي .

﴿٤٩٥١﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَتَّخِذُوا الضَّيْعَةَ فَتَرْغَبُوا فِي الدُّنْيَا. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الايمان

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: په خپل کاروبار کي دومره مه مبتلئ چي هغه د دنيا په لور د رغبت سبب جوړ سي. ترمذي او بيهقي.

**تخريج**: سنن الترمذي ٤\٤٨٨، رقم: ٢٣٢٨، والبيهقي في شعب الايمان ١٧\٣٠٤، رقم: ١٠٣٩١.

**د لغاتو حل**: الضيعة: هي البستان والقرية والمزارعة.

**تشريح**: د ضيعة څخه مراد دنياوي اسباب سامان او د ګټي ذريعې دي لکه صنعت او تجارت مځکه و جائيداد باغ کلى او داسي نور د حديث حاصل دادى چي د معاش د ترلاسه کېدو او د ګټي کومي ذريعې دي که څه هم هغه ذکر سوي شيان دي يا د هغه ماسيوا نور شيان وي په هغه کي داسي مصروفتيا اختيارول منع دي چي د هغه سره انسان د الله تعالى عبادت او د آخرت خوا ته متوجه پاته نسي مګر د زياتي غوښتني په حرص کي په اخته کېدو سره هر وخت په دنياوي جنجالو کي مصروف وي د دغه څخه دا خبره هم واضحه سوه چي په حديث کي ذکر سوى حکم د هغه سړي په حق کي دى چي د معاش د ترلاسه کېدو اسباب او په وسائلو کي راچاپېره وي او د الله تعالى خوا ته توجه او د هغه د ياد څخه بې پرواه وي او د الله تعالى حقوق او د بندګانو حقوق د ادا کولو څخه منع وي او که داسي نه وي نو بيا د ماش د ترلاسه کېدو اسباب او ذريعې اخيتارول او په حلال دنياوي کارو کي د مصروفيدو څه ممانعت نسته.

ښکاره دي وي چي د قرآن کريم دا آيت:

رِجَالٌ لاَّ تُلْهِيهِمْ تِجَارَةٌ وَلاَ بَيْعٌ عَن ذِكْرِ اللَّهِ وَإِقَامِ الصَّلاَةِ وَإِيتَاء الزَّكَاةِ

چي څرنګه دا معنى مراد ځيني اخيسته کيږي چي قرآن کريم د دغه الفاظو په ذريعه د هغه خلکو تعريف او ښائست والى فرمايلى دى په تجارت او خرڅلا کي مصروفيات ځکه نه اختياروي چي د آخرت د کارو خوا ته د هغوئ په متوجه کېدو کي هغوئ ته څه خنډ مخ ته رانسي، همداسي دا معنى هم مراد ځيني اخيسته کيږي چي په دغه آيت کي په اصل کي د هغه خلکو تعريف او تحسين فرمايل سوى دى چي په خپل تجارت وغيره کي د مصروفه کېدو سره د آخرت د کارو څخه غافل کيږي مګر په خپلي دنيا سره د خپل آخرت اصلاح او د کاميابۍ خوا ته هم متوجه وي او حقيقت دادى چي مؤخر الذکر معنى زيات ه مناسبه معلوميږي څرنګه چي د

واقام الصلوة و ایتاء الزکوة الفاظ د مناسبت څخه دا مفهوم کیږي.

## د دنیا محبت د اخرت نقصان

﴿۴۹۵۲﴾: وَعَن أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ أَحَبَّ دُنْيَاهُ أَضَرَّ بِآخِرَتِهِ وَمَنْ أَحَبَّ آخِرَتَهُ أَضَرَّ بِدُنْيَاهُ فَآثِرُوا مَا يَبْقَى عَلَى مَا يَفْنَى. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت ابو موسی رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي خپله دنیا عزیزه او محبوبه ګڼي دومره عزیزه چي د الله جل جلاله پر محبت غالبه سي هغه خپل آخرت ته تاوان رسوي او څوک چي خپل آخرت عزیز ګڼي نو هغه خپل دنیا ته تاوان رسوي نو تاسو هغه شی اختیار کړئ چي همېشه پاته کیدونکی دی فنا کیدونکی شی پرېږدی. احمد او بیهقي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۴۱۲، والبيهقي في شعب الايمان ۷\۲۸۸، رقم: ۱۰۳۳۷.

## د مال غلام

﴿۴۹۵۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عن النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال لُعِنَ عَبْدُ الدِّينَارِ لُعِنَ عَبْدُ الدِّرْهَمِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د درهم او دینار پر عبادت کونکي باندي لعنت کړل سوی دئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۰۷، رقم: ۲۳۷۵.

**تشريح**: د لعن معنی ده شړل د خیر څخه محروم کېدل او د الله تعالی د رحمت څخه لیري کېدل د حدیث مطلب دادی چي کوم سړی د مال و زر روپی و پیسو په مینه کي دومره راچاپېره سي چي د هغه په وجه د الله تعالی د عبادت او فرمانبرداری څخه لیري سي نو هغه ګویا د مال و زر روپی و پیسو غلام دی او داسي سړی د ټولو ښېګڼو څخه محروم د الله تعالی د رحمت څخه لیري او محرومه دي.

## حرص

﴿۴۹۵۴﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ مَالِكٍ عَنْ أَبِيهِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا ذِئْبَانِ جَائِعَانِ أُرْسِلَا فِي غَنَمٍ بِأَفْسَدَ لَهَا مِنْ حِرْصِ الْمَرْءِ عَلَى الْمَالِ وَالشَّرَفِ لِدِينِهِ. رواه الترمذي والدارمي.

حضرت كعب بن مالك ﷛ د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دوه وږي شرمښان چي په خپل منځ كي پرېښودل سي دومره تاوان نه رسوي څومره چي د انسان حرص او د دولت حرص دين ته تاوان رسوي. ترمذي او دارمي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۰۸، رقم: ۲۳۷۶، والدارمي ۲\۳۹۴، رقم: ۲۷۳۰.

**تشريح**: دين ته يې د پسه سره تشبيه وركړې او حرص يې د شرموښ مشابه كړيدى. مطلب داسو كه دوه وږي شرموشان د بوزو په رمه كي پرېښودل سي نو هغوئ هم رمه دومره نه تباه كوي څرنگه چي د يو انسان حرص د هغه دين خرابوي او تباه كوي يې.

د حديث سند د مشكوة په نسخو كي داسي نقل سوى دى څرنگه چي پورته نقل سوى دى يعني عن كعب ابن مالك عن ابيه د دغه مطلب دادى چي دا روايت حضرت كعب ابن مالك ﷛ د رسول الله ﷺ څخه نقل كړى دي حال دا چي دا خبره صحيح نه ده او بربناء سوه او خطاء سند داسي نقل كړې ده ځكه چي د حضرت كعب ﷛ ابن مالك پلار ته د اسلام خوشبختي نصيب سوې نه وه او ښكاره ده چي د هغه د رسول الله ﷺ څخه څه نقلول څه معنى نه لري نو دا سند په صحيح توگه سره داسي دى عن ابن كعب ابن مالك عن ابيه يعني ابن كعب د خپل پلار حضرت كعب ابن مالك څخه روايت كوي په جامع ترمذي كي دا سند داسي نقل سوى دى او د مشكوة په ځينو نسخو كي هم داسي نقل دى نو د دغه حديث اصلي روايت كوونكى حضرت كعب ابن مالك ﷛ دي چي مشهور صحابي دى او د هغه صحابۇ رضي الله تعالى عنهم څخه دى كوم چي په غزوه تبوك كي نه وه گډ سوي او د هغوئ قصه ډيره مشهوره ده.

## د ضرورت څخه زيات سرايونه

﴿۴۹۵۵﴾: وَعَنْ خَبَّابٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَا أَنْفَقَ مُؤْمِنٌ مِنْ نَفَقَةٍ إِلاَّ أُجِرَ فِيهَا إِلاَّ نَفَقَتَهُ فِي هٰذَا التُّرَابِ. رواه الترمذي

وابن ماجه.

د حضرت خباب رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : مسلمان چي څه نفقه کوي هغه ته د هغه ثواب ورکول کيږي پرته د هغه مصرف څخه چي دی يې پر خاورو باندي کوي (يعني پرته د ضرورت څخه کورونو جوړولو کي هيڅ ثواب نسته). ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۶۲، رقم: ۲۴۸۳، وابن ماجه ۲\۱۳۹۴، رقم: ۴۱۶۳.

**تشريح** : د حديث د آخري حصې مطلب دادی چي د يو ځای او داسي نور په جوړېدو کي چي څه خرچه کيږي هر کله چي هغه ځای د ضرورت څخه زيات وي کنې د خپل ضرورت په اندازه جوړول د ژوند په اړتياوو کي ګڼل کيږي او د هغه په جوړتيا کي خرڅېدونکي پيسې نه ضائع کيږي همداسي د خير ښېګڼي مکانات لکه مسجدونه ، مدرسې او همداسي د نورو ځايو په معامله کي د ذکر سوي حکم څخه مستثنی دي چي د هغه جوړول مستحب او ډېر ښه کار دی .

﴿۴۹۵۶﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ النَّفَقَةُ كُلُّهَا فِي سَبِيلِ اللَّهِ إِلَّا الْبِنَاءَ فَلَا خَيْرَ فِيهِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د خرڅ کول ټول د الله جل جلاله په لاره کي دي مګر خرڅ کول پر سرای دوکان (بېله ضرورت) جوړولو کي هيڅ خير (نيکي او ثواب) نسته . ترمذي او ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۶۱، رقم: ۲۴۸۲

**تشريح** : تر اړتيا زيات پر يو ځای خرچه کول اسراف دی او الله تعالی اسراف نه خوښوي د دغه پر خلاف پر بل ضروروت باندي الله تعالی ته د نژدې والي په خاطر چي څه خرڅولای سي په هغه کي د اسراف احتمال نه وي ځکه چي هغه خرڅ په خلکو باندي د خوړلو او د بخشش په ډول دی که څه هم هغه حق داره وي يا غيرحقداره او ښکاره ده چي دا دواړه شيان يعني خوړل او ورکول او په بخشش سره خوشحاله کيږي .

﴿۴۹۵۷﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَرَجَ يَوْمًا وَ نَحْنُ مَعَهُ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يوه ورځ نبي کريم ﷺ د باندي راووتی موږ ورسره وو

فَرَأَى قُبَّةً مُشْرِفَةً فَقَالَ مَا هَذِهِ قَالَ أَصْحَابُهُ هَذِهِ لِفُلَانٍ رَجُلٍ مِنْ

چي يوه لوړه قبه (گنبد) يې وليدل او د سپکاوي په لهجه کي يې وفرمايل: دا څنګه ګنبد ده، صحابه کرامو وويل: دا فلاني انصاري جوړه کړې ده (ددې اورېدو سره)

الْأَنْصَارِ فَسَكَتَ وَحَمَلَهَا فِي نَفْسِهِ حَتَّى لَمَّا جَاءَ صَاحِبُهَا فسلم عَلَيْهِ فِي

رسول الله ﷺ پټه خوله سو او خبره يې په زړه کي وساتل ترڅو چي ګنبد جوړونکی راغلئ او رسول الله ﷺ ته يې په خلکو سلام وکړ،

النَّاسِ فَأَعْرَضَ عَنْهُ صَنَعَ ذَلِكَ مِرَارًا حَتَّى عَرَفَ الرَّجُلُ الْغَضَبَ فِيهِ

رسول الله ﷺ د هغه څخه مخ واړوی دا کاريې ډېر واره وکړی ترڅو چي هغه سړي د (رسول ﷺ) پر مخ د غصې اثار ننبې و پېژندلې

وَالْإِعْرَاضَ عَنْهُ فَشَكَا ذَلِكَ إِلَى أَصْحَابِهِ وَقَالَ وَاللَّهِ إِنِّي لَأُنْكِرُ رَسُولَ اللَّهِ

او د رسول الله ﷺ د مخ ګرځولو سره ورته د رسول ﷺ د خفګان احساس وسو هغه صحابه کرامو ته شکايت وکړاو وه يې ويل: قسم په خدای داسي معلوميږي چي رسول الله ﷺ ما ته په

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالُوا خَرَجَ فَرَأَى قُبَّتَكَ فَرَجَعَ الرَّجُلُ إِلَى قُبَّتِهِ

غصه دی، صحابه کرامو ورته وويل: رسول الله ﷺ پر دې لوري تشريف راوړی وو او ستا په ګنبد ليدو سره په غصه سو، هغه سړی ګنبد ته ورغلی

فَهَدَمَهَا حَتَّى سَوَّاهَا بِالْأَرْضِ فَخَرَجَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ذَاتَ

او هغه يې ونړول ترڅو چي د ځمکي سره يې برابره کړه (ددې پېښي څخه وروسته) يوه ورځ بيا رسول الله ﷺ پر هغه لور تشريف راوړ

يَوْمٍ فَلَمْ يَرَهَا قَالَ مَا فَعَلَتْ الْقُبَّةُ قَالُوا شَكَا إِلَيْنَا صَاحِبُهَا إِعْرَاضَكَ

او ګنبد يې ونه ليدل نو وه يې فرمايل: هغه ګنبد څه سول؟ صحابه کرامو وويل: ګنبد کونکي موږ ته ستا د خفګان وويل: موږ د پېښي څخه خبر کړ

فَأَخْبَرْنَاهُ فَهَدَمَهَا فَقَالَ أَمَا إِنَّ كُلَّ بِنَاءٍ وَبَالٌ عَلَى صَاحِبِهِ إِلَّا مَا لَا يَغْنِي الا مَا لَا بُدَّ مِنْهُ. رواه ابوداؤد.

نو هغه گنبد ونړول، رسول الله ﷺ وفرمایل: خبردار! هر عمارت د هغه پر جوړونکي وبال دی (یعني د عذاب سبب دی) پرته د هغه عمارت څخه چي د هغه څخه پرته چاره نه وي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۵\۴۰۳، رقم: ۵۲۳۸.

**د لغاتو حل**: قبة: ای بناء عال (لوړه ماڼی)

**تشریح**: د وبال اصله معنی د وزني سختي او مکروه ده، د حدیث مطلب دادی چي کوم عمارت جوړیږي هغه په آخرت کي د خپل مالک لپاره د عذاب سبب جوړیږي مگر واضحه دي وي چي دا حکم د هغه عمارت په حق کي دی چي تر اړتیا زیات وي او د اظهار شان و شوکت او یواځي عیش و عشرت لپاره جوړ سوی وي کنې هغه عمارت چي د خپل ځان ا و د متعلقینو د وسېدو د ضروریاتو په اندازه وي یا کوم عمارت چي د ښېگڼي کارو لپاره وي لکه مسجدونه مدرسې او خانقاه و داسي نور نو هغه د ذکر سوي وعید څخه نفي سوي دي، همداسي هغه شی چي د انسان د بدن قوت د ساتلو لپاره د جامو او وسېدو په توگه د ژوند د ضروریاتو درجه لري په آخرت کي د څه گناه باعث نه جوړیږي.

بیقهي رحمه الله هم د حضرت انس رضي الله عنه څخه په طریقه د مرفوع دا روایت نقل کړی دی چي مسجد او خیر په کار کي د راتلونکو او نورو عمارتو ماسیوا هر عمارت به پر خپل مالک باندي د قیامت په ورځ گناه وي د دغه مطلب داهم دی چي داسي عمارت چي تر اوسیدونکو ضروریاتو څخه زیات او د شوشا لپاره وي همداسي طبراني رحمه الله د حضرت واثله رضي الله عنه څخه په طریقه مرفوع نقل کړي دي چي هر عمارت گناه ده ماسیوا د هغه عمارت چي بس دومره وي او په دغه فرمایلو سره د خپل ورغوي په ذریعه یې اشاره وفرمایله چي کوم مکان ډیر کوچنی او یواځي د اوسېدو د اړتیاوو په اندازه وي هغه گناه نه ده او هر علم به د قیامت په ورځ گناه وي ماسیوا د هغه علم څخه چي په هغه عمل وکړه سي.

## کفایت کوي

﴿۴۹۵۸﴾: وَعَنْ أَبِي هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ عَهِدَ إِلَيَّ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو هاشم بن عتبة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وصیت وفرمایه چي

وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ فِي سَبِيلِ اللّٰهِ. رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة و في بعض نسخ المصابيح عن ابي هاشم بن عتبد بالدال بدل التاء وهو تصحيف.

د دنيا د ټولو مالونو څخه ستا لپاره يو خادم او د الله ﷻ په لار كي د سپرتيا لپاره يو سپرلۍ بس ده . احمد ، ترمذي، نسائي، ابن ماجه او د مصابيح په ځيني نسخو كي عتبد (په دال سره) دئ چي دا تصحيف دئ ، تصحيف په ليكلو كي غلطي كولو ته وايي .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\ ۲۹۰، والترمذي ۴\ ۴۸۸، رقم: ۲۳۲۷، والنسائي ۸\ ۲۱۸، رقم: ۵۳۷۲، وابن ماجه ۲\ ۱۳۷۴، رقم: ۴۱۰۳، والبغوي في مصابيح السنة ۳\ ۴۲۳، رقم: ۴۰۲۷.

## د انسان ضرورتونه

﴿۴۹۵۹﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَيْسَ لِابْنِ آدَمَ حَقٌّ فِي سِوَى هَذِهِ الْخِصَالِ بَيْتٌ يَسْكُنُهُ وَثَوْبٌ يُوَارِي به عَوْرَتَهُ وَجِلْفُ الْخُبْزِ وَالْمَاءِ . رواه الترمذي.

د حضرت عثمان ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ددغه شيانو پرته د آدم عليه السلام د اولاد پر هيڅ شي هيڅ حق نه سته ، د اوسيدو لپاره كور، د بدن پټولو لپاره جامه، وچه ډوډۍ او اوبه .ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۹۴، رقم: ۲۳۴۱.

**تشريح** : د حق څخه مراد هغه شي دي چي د الله تعالى د خوا د انسان لپاره واجب سوي دي او پر هغه باندي په آخرت كي د څه سوال و جواب معامله نه وي يعني الله تعالى چي د دنيا كوم شيان د ژوند د اړتياوو په توګه جوړ كړي دي هغه انسان په هغه اندازه تر لاس راوړلو او د هغه څخه د برخمن كېدو حقداره او ورته اجازت دي څومره چي د هغه اړتياوو لپاره بس وي كوم سړی چي دا شيان په حلالو ذريعو سره تر لاسه كوي او د اړتياوو په اندازه كفايت او قناعت پر وي د هغه څخه به په آخرت كي د دغه شيانو په باره كي هيڅ سوال نه كيږي ځكه چي د ضرورت

په اندازه شيان د هغه د لوازمو څخه دي چي د هغه څخه ماسيوا د انسان لپاره هيڅ چاره نسته هو د دغه ماسيوا نور شيان دي يا د دغه شيانو د اړتيا څخه زائد چي کومي اندازې دي هغه ټول د ژوند په لوازمو کي نه دي مګر په لذت نفس کي دي او د هغه په باره کي په آخرت کي په يقين سره غوښتنه او سوال به کيږي.

(جلف) د جيم په زير او لام په جزم سره د دغه څخه مراد دی بغير لع کتغه وچه ډوډی، په يو روايت کي دا لفظ جلف جيم په زور سره هم نقل دی چي جلفة يې جمع ده او د هغه معنی ده د وچي ډوډی ټوټه چي د هغه په وجه لوږه ايسته سي.

## د الله ﷻ او خلکو مينه حاصلول

﴿۴۹۶۰﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ دُلَّنِي عَلَى عَمَلٍ إِذَا أَنَا عَمِلْتُهُ أَحَبَّنِي اللَّهُ وَأَحَبَّنِي النَّاسُ قَالَ ازْهَدْ فِي الدُّنْيَا يُحِبَّكَ اللَّهُ وَازْهَدْ فِيمَا عند النَّاسِ يُحِبُّكَ النَّاسُ. رواه الترمذي وابن ماجة.

د حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړی حاضر سو او عرض يې وکړ اې د الله رسوله! ما ته يو داسي عمل وښيه چي زه هغه وکړم نو الله تعالی او د هغه بندګان زما سره مينه وکړي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: د دنيا په لور رغبت مه کوه الله ﷻ به در سره مينه وکړي او د هغه شي خواهش مه کوه کوم چي د خلکو سره وي خلک به ستا سره مينه کوي. ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۷۳، رقم: ۴۱۰۲، ولم نجده عند الترمذي

**تشريح**: يو شي ته د خواهش او ميلان نه کولو ته زهد وايي، او پوره زهد دادی چي د دنيا لذت د لاس ته راوړو باوجود د هغه څخه بې رغبتي اختيار کړه سي ځينو حضراتو ويلي دي د هغه سړي په باره کي د زهد تصور نسي کېدای چي نه مال و دولت لري او نه د جاه و حشم خاوند وي مګر د حقيقت د اعتبار څخه زاهد هغه سړی دی چي د مال و دولت او جاه و حشم خاوند کېدو باوجود د هغه د خوندو څخه ليري اوسي نقل سوي دي چي يو وار يو سړی حضرت ابن مبارک رحمه الله ته يا زاهد په ويلو سره مخامخ سو نو هغه ورته وفرمايل چي زاهد خو بس حضرت عمر ابن عبدالعزيز رضی الله عنه وو چي د هغوئ لمن ته دنيا راتله، خو د دغه سره سره ده دنياوي خوندو نه پرې ايښي وه او زموږ سره چشي دي چي موږ زهد خپل کړو حاصل دا چي په اصل کي زهد دادی چي د دنيا په خوندو کي د خوراک څښناک او اغوستلو سره سره په اندازه د ضرورت

صبر وكړل سي او بدخرڅي پرېښودل سي .

﴿۴۹۶۱﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ اَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نَامَ عَلَى

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ پر ګونی (بوری) بيده سو ، کله

حَصِيرٍ فَقَامَ وَقَدْ أَثَّرَ فِي جَسده فَقَال ابن مسعود يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ لو امرتنا

چي د خوب څخه راکښېنستی نو پر بدن مبارک یې نښې وې ، ابن مسعود وویل: اې دالله رسوله ! که تاسو حکم وکړی

ان نبسط لك ونعمل فَقَالَ مَا لِي وَلِلدُّنْيَا مَا أَنَا و الدُّنْيَا إِلَّا كَرَاكِبٍ اسْتَظَلَّ

تَحْتَ شَجَرَةٍ ثُمَّ رَاحَ وَتَرَكَهَا. رواه الترمذي وابن ماجة.

نو موږ به تاسو ته فرش غوړولای او جامه به مو جوړولای ، رسول الله ﷺ وفرمايل : د دنيا سره زما څه مطلب دئ؟ زما او د دنيا مثال داسي دئ لکه يو سپور چي د يوې درختي لاندي ودرېږي د سايې څخه ګټه واخلي او بيا روان سي او درخته هلته پرېږدي . احمد ، ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۳۹۱، والترمذي ۴\۵۰۸، رقم: ۲۳۷۷، وابن ماجه ۲\۱۳۷۶، رقم: ۴۱۰۹.

**تشريح** : په (مالي وللدنيا ) کي حرف ما د نفي لپاره دی مطلب دادی چي نه خو زما د دغه دنيا سره څه الفت سته او نه د دغه دنيا زما سره څه مينه سته چي زه د دغه لپاره څه رغبت وساتم د دغه عيش و آرم وغواړم او د دغه د بې آرامئ څخه د ساتلو لپاره د آرام شيان لکه پستې بسترې او ډېري ښه جامې او د داسي نورو مالک جوړ سم او دا حرف ما استفهاميه هم مراد اخيستل کېږي څرنګه چي په ترجمه کي د دغه خيال ساتل سوی دی او په هغه کي به د جملې مطلب داوي چي زما د دغه دنيا سره سم محبت نسته يا د دغه دنيا خوا ته زما رغبت او زما خوا ته د دغه دنيا رغبت او الفت څخه ماته کومه ګټه ترلاسه کيږي ځکه چي زه خو د آخرت غوښتونکی يم او دا دنيا د آخرت ضد ده .

د وني د سايې څخه د فائدې اخيستلو په ضمن کي په خاصه توګه سره د سپرېدو ذکر کول د هغه وني لاندي د درېدو وخت په لږ کېدو او ژر د هغه ځای څخه د تلو په وجه دی يعني په دغه خبره ټول پوهيږي چي د يوې وني د سائې څخه فائده اخيستونکی که څوک مسافر وي او هغه د خپل سواري څخه د تاکېدو په وخت کي د هغه وني لاندي ولاړوي نو هغه هلته تر زيات وخته

پوري نسي درېداى مګر د لږ وخت پوري د هغه سپرلی. په درېدو سره او بيا مخ ته ځي او د سپرلئ مثال په بيانولو دغه خوا ته هم اشاره كول مقصد دى چي څرنګه د يو مسافر منزل چي مقصود يې ليري وي ، نو هغه د سفر په مينځ كي د څه هوسائي او آرام زيات ته پرواكولو بغير د ډيري لاري وهلو كوښښ كوي او دلته هلته نه دريږي خپل وخت نه بربادوي همداسي موږ هم په دغه دنيا كي د يوه مسافر په ډول يو چي زموږ منزل مقصود يعني آخرت ډير ليري دى او د هغه لار د سختيو څخه ډكه ده نو موږ ته پكار ده چي موږ د آخرت د لاري وهلو زيات كوشش وكړو او هيڅ داسي شي ته مائله نه سو چي د منزل مقصود خوا ته زموږ په سفر كي خنډ جوړ سي .

## د فخر وړ مؤمن

﴿۴۹۶۲﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَغْبَطُ أَوْلِيَائِي

د حضرت ابو امامه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما په نزد زما په دوستانو

عِنْدِي لَمُؤْمِنٌ خَفِيفُ الْحَاذِ ذُو حَظٍّ مِنَ الصَّلَاةِ أَحْسَنَ عِبَادَةَ رَبِّهِ وَأَطَاعَهُ

كي د فخر وړ هغه مؤمن دى چي د دنيا د مال او خيال څخه به سپک وي او د لمانځه د اعتبار څخه خوش نصيبه وي يعني د خپل پروردګار عبادت په ښه ډول كوي

فِي السِّرِّ وَكَانَ غَامِضًا فِي النَّاسِ لَا يُشَارُ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ وَكَانَ رِزْقُهُ كَفَافًا

او په پټه طريقه سره په طاعت الهي كي بوخت وي ، په خلكو كي ګمنامه وي د هغه په لور په ګوتو اشاره ونه كړل سي د هغه روزي يوازي د بسوالي د درجې وي

فَصَبَرَ عَلَى ذٰلِكَ ثُمَّ نَقَدَ بِيَدِهِ فَقَالَ عُجِّلَتْ مَنِيَّتُهُ قَلَّتْ بَوَاكِيهِ قَلَّ تُرَاثُهُ .

رواه احمد والترمذي وابن ماجة

او پر هغه صابر او قانع وي، ددې ويلو سره رسول الله ﷺ د ګوتو په يو د بله وهلو سره اواز وكړى او بيا يې وفرمايل : د هغه په مرګ كي تلوار وسي پر هغه ژړيدونكي ښځي كمي وي او ميراث يې كم وي، احمد، ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۵۲، والترمذي ۴\۴۹۶، رقم: ۲۳۴۷، وابن ماجه ۲\۱۳۷۸، رقم: ۴۱۱۷.

**تشريح** : د حاذ معنى د سپرلی پر شا ده ، او د قاموس سره سم د خفيف الحاذ مطلب قليل

المال والعیال دی یعني د خفیف الحاذ اطلاق پر هغه سړي باندي کیږي چي د زیات کور وعیال بوج او د مال و دولت ګرانباري نه لري په صراح کي لیکلي دي چي د خفیف الحاذ معنی د سپک بوج ده یعني هغه سړی چي د زیات کور و عیال او د مال و دولت د فسادو څخه فارغه وي بهر حال په دواړو صورتونو کي داسي سړی چي د دنیوي فکرو او مصروفیتو څخه خالي وي او د زړه فراغت او وخت لري څکه هغه د الله تعالی په عبادت اوفرمانبرداري او د قوم په خدمت کي په ښه ډول مصروفه وي او د علاقو د ډوله هیڅ شی هم د هغه د عبادت او خدمت په لاره کي خنډ نسي جوړېدای.

د لمانځه څخه ډیر زیات برخمن کیږي، د دغه مطلب دادی چي هغه حضور قلب او مناجات مع الله سره لمونځ ډیر زیات ادا کوي او تر دغه زیات وخت د الله تعالی په عبادت کي تېروي څکه چي د کور و عیال او دنیاوي جنجالو سره ډیر لږ تعلق لرونکی او د لږ مصروفیا په وجه نه یوائي دا چي هغه د لمانځه خوا ته متوجه وي مګر په لمانځه او عبادت کي هغه ته حضور قلب هم ډیر زیات ورته ترلاسه وي نو ربښتیا الله تعالی ته نژدې خلک د دنیاوي علائقو او تعلقاتو څخه لیري ګرځي چي په لمانځه او د الله تعالی په عبادت کي زیات تر حضور قلب ترلاسه کړي.

په خلکو کي مشهوره دی په دغه کي دې خوا ته اشاره ده چي د هغه عبادت لپاره د خلکو په مابینځ کي سکونت نه پرېږدي مګر د هغوئ په مابینځ کي په پاته کېدو سره عبادت د دین او علم په خدمت کي په ارامه سره مصروفه وي او خپل ځان د عام شهرت څخه ساتي ګویا د جملې څخه دا مراد نه دی نو هغه د عام شهرت څخه د ساتلو لپاره د خلکو د مابینځ څخه وځي او د ټولو څخه ځان ژغوري څکه چي د عامو خلکو په مابینځ کي بود و باش پرېښودل او د هغه څخه لمن راټولول پر خپل ځای موجب شهرت دی او په دغه جمله کي دغه خوا ته هم اشاره ده چي د خلکو څخه مراد عوام الناس دي او د خواص یعني اولیاء او صلحاء په منځ کي د هغه متعارف کېدل چي د هغوئ همنشین وي د هغه د مذکوره مرتبې منافي نه دی دا خبره د وروستيَ جملې و لا یشاء الیه الخ څخه هم فهمول کیږي.

د لقد بیده اصله معنی خو داده چي رسول الله ﷺ د خپلي بتې ګوتي بند او د خپلي درمیانی ګوتي بند یې کنبېکاږی چي د هغه څخه وتلی ژغ واورېده سو او حاصل دا چي څرنګه په عامه توګه سره د خلکو دا عادت وي هغوئ پر څه خبري باندي د حیرانتیا او تعجب لپاره یا د څه کار په کم وخت کي د بیانولو لپاره اوهو وائي چي فلانی کار بس داسي یودم وسو، همدارنګه رسول الله ﷺ هم د مذکوره مؤمن حال بیان کړ چي هغه په دنیا کي د خپل ذکر سوي حالت او

کیفت سره ژوندی وي چي مرګ د هغه رشته بدن او روح څو ورځي وروسته ختم کړي او هغه د فتنې او فساد څخه ډک سوی دی د دغه عالم څخه ډیر ژر سفر وکړي او د دغه ځای د آفتونو څخه د همیشه لپاره خلاصي ترلاسه کړي یا دا مراد دی چي داسي مومن د دغه دنیا سره ډیر لږ تعلق لري او د آخرت شوق پر هغه زورور وي ځکه د وعده سوي وخت په راتلو باندي هغه په ډیر آسانۍ او آرام سره ډیر ژر خپل ځان خپل پیدا کوونکي ته وروسپاري.

## د دنیا سره د رسول الله ﷺ بې رغبتي

﴿۴۹۶۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَرَضَ عَلَيَّ رَبِّي

د حضرت ابو امامه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی ما ته دا خبره

لِيَجْعَلَ لِي بَطْحَاءَ مَكَّةَ ذَهَبًا فَقُلْتُ لَا يَا رَبِّ وَلَكِنْ أَشْبَعُ يَوْمًا وَأَجُوعُ يَوْمًا

وکړه چي هغه زما لپاره د مکې ډبري د سرو زرو جوړ کړي، ما عرض وکړ: یا، اې زما پروردګاره! زه خو دا غواړم چي یوه ورځ په ماړه نس وخورم او یوه ورځ وږی یم

فَإِذَا جُعْتُ تَضَرَّعْتُ إِلَيْكَ وَذَكَرْتُكَ وَإِذَا شَبِعْتُ حَمِدْتُكَ وَشَكَرْتُكَ. رواه احمد والترمذي

هر کله چي زه وږی یم ستا په لور به عاجزي او زاري وکړم او تا به یاد کړم او هر کله چي په ماړه نس خوراک وکړم نو ستا تعریف او ستا شکر به ادا کړم. احمد او ترمذي.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\ ۲۵۴، والترمذي ۴\ ۴۹۷، رقم: ۲۳۴۷،

**تشریح**: د رسول الله ﷺ لپاره د الله تعالی ذکر سوی وړاندیز یا خو حسي او په ظاهري توګه سره وو یا معنوي یعني په باطني توګه سره او دا دویم مراد ډیر زیات صحیح معلومیږي په دغه صورت کي د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب به دا وي چي الله تعالی په دغه اړه کي زما سره مشوره وفرمایله او ماته اختیار راکړه سو چي که څه هم ته په دغه دنیا کي فراخي او د دغه مال و زر فراواني خوښوې او که څه هم د دنیا څخه بې رغبتي په خپلولو سره د آخرت د توښې په فکر کي استول غواړې او د هغه ځای د حساب او عذاب څخه د خلاصون لاره اختیاروې نو ما دنیا ته لغته ورکړه او آخرت مي خوښ کړ.

بطحاء او ابطح هغه پراخه نالی ته وائي چي په هغه کي او به تیریږي او په هغه کي شګي او

ډېرې يو ځاى كيږي د سره زرو جوړلو څخه مراد دا وو چي د مکې په شاوخوا کي چي کومي نالى او د اوبو د وتلو لارې دي هغه گرده د سرو زرو څخه ډكي كړل سي يا دا چي په دغه ويالـه كي كومي سنگريزې دي هغه په سرو زرو كي گډې سوي دي او دا دويم مراد زيات صحيح معلوميږي ځكه چي په يو دويم روايت كي فرمايل سوي دي كه ته غواړې نو الله تعالى به د مكې غرونه ستا لپاره په سرو زرو واړوي د حديث د آخري جملو حاصل دادى چي د الله تعالى د خوا څخه زما لپاره دنياوي فراخي او د خوشحالئ د وړانديز سره سم ما د دنيا مال و زر ته لغته وركړه او غريبي مي اختيار كړ چي يو ورځ په نس موړ يم او دويمه ورځ وږى يم او همداسي د صبر او شكر دواړو فضيلت ترلاسه كړم د دغه ارشاد په ذريعه رسول الله گويا امت ته تعليم او تلقين وفرمايلو كه څه هم دولتمندي هم د الله تعالى ډير لوئ نعمت دى مگر د دغه مصيبتونه هم ډير دي او انسان د دولتمندئ په حالت كي زيات گمراه كيږي نو فقر او صبر اختيارول زيات مناسب دى ځكه دا خبره واضحه سوه چي د دولتمندئ په وړاندي فقر ډير افضل دى.

## د دنيا اصل نعمتونه

﴿۴۹۶۴﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ اللّٰهِ بْنِ مِحْصَنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبيدالله بن محصن ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

مَنْ أَصْبَحَ مِنْكُمْ آمِنًا فِي سِرْبِهِ مُعَافًى فِي جَسَدِهِ عِنْدَهُ قُوتُ يَوْمِهِ فَكَأَنَّمَا

څوک چي په داسي حال كي سبا كړي چي د خپل ځان د لوري په امن وي، بدن يې درست وي د يوې ورځي د خوراک سامان ورسره وي نو گويا

حِيزَتْ لَهُ الدُّنْيَا بِحَذَافِيرِهَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د هغه لپاره د دنيا نعمتونه جمع سوي دي او ټول دنيا هغه ته وركړل سوې ده. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴/۴۹۶، رقم: ۲۳۴۶.

**تشريح**: هغه د خپل ځان د خوا څخه بې بيري وي د دغه مطلب دادى چي هغه ته د خپل دښمن د خوا څخه د څه تاوان بيره نه وي يا دا چي د خرابو كارو څخه د ساتلو او د خپل لغزشونو څخه الله تعالى ته د توبې كولو په وجه هغه مصيبتونه بې بيري وي كوم چي د الله تعالى د عذاب په توگه نازليږي ښكاره دي وي چي لفظ سرب د سين په زير او راء په وړغندي سره يعني سرب زيات

مشهور دی چي نفس لار حال او زړه د دغه ټولو په معنی کي استعمالیږي که دلته په حدیث کي د دغه لفظ څخه دا ټول شیان مراد واخیسته سي نو دا هم د حدیث د منشاء سره سم به وي په دغه صورت کي مطلب به دا وي چي کوم سړی په داسي حال کي په صباکولو سره ولاړیږي چي هغه ته د ذکرسوي شیانو په اړه کي د هیڅ تاوان څه بیره نه وي الخ ، او ځینو حضراتو ویلي دي چي دا لفظ سین او راء دواړه په زور سره یعني سرب دی چي معنی یې د زیرزمیني ده یعني هغه سوری چي وحشي حیوانان لکه د موږک او داسي نور د اوسېدو ځای وي که دا قول صحیح ومنل سي نو دا معنی هم د حدیث د منشاء خلاف نه دی په دغه صورت کي به دا مطلب وي چي کوم سړی په داسې حالت کي سهار راولاړیږي چي د هغه د کور په غارو کي د موږکانو او ګبدړو وغیره د خوا څخه چي د زمانې د آفاتو څخه نه دي هغه ته د څه تاوان رسولو څه بیره نه وي الخ .

## د نس درې برخي

﴿۴۹۶۵﴾: وَعَنِ الْمِقْدَامِ بْنِ مَعْدِي كَرِبَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَا مَلَأَ آدَمِيٌّ وِعَاءً شَرًّا مِنْ بَطْنٍ بِحَسْبِ ابْنِ آدَمَ أُكُلَاتٌ يُقِمْنَ صُلْبَهُ فَإِنْ كَانَ لَا مَحَالَةَ فَثُلُثٌ طعام وَثُلُثٌ شراب وَثُلُثٌ لِنَفَسِهِ.

رواه الترمذي وابن ماجة.

د حضرت مقدام بن معدي کرب رضی الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي : سړي بل هیڅ یو لوښی تر نس بد نه دی ډک کړئ هر کله چي نس بنه ډک کړي او د هغه څخه دیني او دنیوي خرابي پیداسي ، د سړي لپاره یو څو ګولې بس دي چي د هغه ملا سیده وساتي ، که ډکول ضروري وي نو پکار ده چي نس درې برخي کړي ،په یوه برخه کي خوراک، په یوه برخه کي اوبه او دریمه برخه د ساه لپاره . ترمذي او ابن ماجه .

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۵۰۹، رقم: ۲۳۸۰، وابن ماجه ۲\۱۱۱۱، رقم: ۳۳۴۹.

**د لغاتو حل:** اكلات: الاكلة اللقمة (ګولې)

**تشريح** : څرنګه چي طیبي رحمه الله لیکلي دي ، د حدیث مطلب دادی چي د ډوډی په اړه کي تر هغه حد وانه وړي چي ملا ساتي یعني د بدن طاقت د ساتلو لپاره بس وي او دا هم د دغه لپاره

چي د الله تعالی احکام پر ځای راوړلو وس ولري هو که یو سړی پر دغه اندازه صبر نسي کولای او هغه تر دغه اندازې واوړي یعني په زیاته اندازه کي د خوړلو خواهش لري نو هغه دي دومره وخوري چي د نس په درو حصو کي یوه حصه ډکه سي نوري پاته دوې حصې یوه حصه د اوبو لپاره او یوه حصه خالي پرېښول پکار دي د خپل خوراک په اندازه کي تر آخري اندازې اوښتل نه دي پکار .

ښکاره دي وي چي په دغه حدیث کي خو نس مخکي د هغه فالتو لوښو په ډول یو لوښی ګرځول سوی دی چي د کور په اړتیاوو کي په کار راځي او داسي اشاره فرمایل سوې ده چي نس یو بې حیثیته شی دی بیا دا ښکاره فرمایل سوي دي چي په لوښو کي هم دا نس ګویا تر ټولو خراب شی دی ځکه چي په عامه توګه سره ټول لوښي په هغه کارونو کي استعمالیږي چي د هغه لپاره جوړ سوي وي همداسي د نس اصله موضوع داده چي په هغه کي خوراک بس په دومره اندازه ورواچول سي چي د بدن د قوت ساتلو لپاره ضروري وي او که هغه تر اړتیا زیات ډک کړل سي نو نه یواځي د هغه د اصل مقصد څخه به تجاوز کوي مګر د دغه په وجه داسي خرابۍ پیداکیږي چي دین و دنیا دواړو ته یې تاوان رسیږي په دغه اعتبار سره نس ګویا تر ټولو خراب لوښی سو .

## د لوږي لس ګټې

لوږه په ښکاره توګه ډیر بېرندوکی توری دی ، او د اوسني دنیا ډیره سنګینه مسئله ده او په دغه کي څه شک هم نسته که د لوږي تعلق د قوت لا یموت پوري د فقدان نه وي او یو انسان د ورېشي د ډوډۍ څخه هم محرومه وي چي د هغه د ژوند لپاره نس ته رسېدل پکار دي نو رښتیا هم لوږه د انسان لپاره د مرګ تر پیغام په کمه نه ده مګر که د لوږي څخه مراد کم خوړل یا وخته فوخته وي نو هغه لوږه هم زموږ د دغي دنیا د نقطه نظر سره که څه هم هر څومره سنګینه مسئله وي خو په حقیقت کي د دغي لوږي چي کومي فائدې دي طبي او روحاني نقطه نظر نه دي د هغه د فائدې او اهمیت څخه انکار نسي کېدای ځیني حضراتو دا فائدې په ډیر جامعیت سره بیان کړي دي د یو لوړي درجې اسلامي محقق او عارف بالله شیخ ابو حامد رحمة الله علیه لیکلي دي چي په لوږه کي لس فائدې پټي دي .

اول : دا چي زړه او دید ته ئې صفائي ترلاسه کیږي ، ځکه چي د نس ډکېدل د طبیعت سست او کند ، قلب دروند او پر دماغ باندي د بخاراتو غلبه کوي .

دویم : دا چي په زړه کي رقت نرمي او پاکي راځي او په دغه وجه زړه د الله تعالی خواته متوجه وي . دریم : په طبیعت او مزاج کي انکسار پیدا کوي او د هغه تکبر ، لالچ او عشرت خوښي ختموي چي د سرکشۍ مبداء ده او په دغه کي هیڅ شک نسته چي د انسان نفس څومره انکسار خوښه وي د لوړي په حالت کي وي هغه انکسار د بل شي سره نه پیدا کیږي .
څلورم : دا چي د الله تعالی د عذابه آفتو او بلاو قدرت او اهل بلاء فراموش کیږي نه (معلومیږي نه ) کوم خلک چي هر وخت نس ډک ساتي هغوئ نه خو لوږه محسوسوی سي او نه وږه یاد ساتی سي .
پنځم : دا چي د خوب غلبه کمه وي او د بیدارئ حالت پر خپور وي ځکه چي کوم سړی نس د ډوډۍ څخه ډک ساتي هغه اوبه هم ډیري څیشي ډیري اوبه چیشل د خوب د زیاتی سبب وي او د خوب زیاتي ګویا عمر فالتو کول دي او بنکاره ده چي عمر ډیر لوړ جوهر دی چي هغه الله تعالی د دغه لپاره نه دی راکړی چي هغه بېکاره تیر کړو مګر د انسان په حق کي یې راس المال جوړ کړی دی چي د دغه په وجه د خپل دیني او دنیاوي معاملاتو د صلاح او کامیابۍ کارونه وکړي د دغه ماسیوا خوب یو ډول مرګ دی نو پر ځان باندي خوب غالب ساتل ګویا عمر کمول دي .
شپږم : دا چي د عبادت او اطاعت پابندي او همیشګي ترلاسه کیږي ځکه چي کوم سړی چي زیات خوراک کوي د هغه د وختونو زیاته حصه د خوراک څیښاک په مصروفتیا کي تیریږي مثلاً د هغه څه وخت خو بازار ته د سودا راوړلو او د خوراکي شیانو په رانیولو کي مشغوله کیږي څه وخت د خوراک په تیاري کي تیریږي ډیر وخت د ډوډۍ په خوړلو کي هم مصرفیږي او بیا د ډوډۍ خوړلو مخکي لاس مینځل او د خوراک څخه ورسوته د خولې پاکي او خلال کول او څو واري د اوبو لپاره د اوبو ځای ته تلل و راتلل او داسي په نورو کارو کي هم ډیر وخت تیریږي غرض دادی چي ډیر وخت پکښي تیریږي او که دا وختونه د خوراک څیښاک د مصروفتیا څخه په ساتلو سره د عبادت ، اطاعت او په ذکر و مناجات کي تیر کړي نو ډیري زیاتي فائدې به ورته ترلاسه سي مشهور عالم او بزرګ سهل تستري رحمة الله علیه وائي یوه ورځ ما حضرت علي جرجاني رحمة الله علیه په ستو پوکلو ولیدی نو عرض مي وکړ حضرت ! داسي کومه وجه راغله چي تاسو ستو پوکوئ وه یې فرمایل: وروره څه پوښتني کوې ما یوه ورځ حساب ورته وکی معلومه سوه چي د یوې ډوډۍ د خوړلو په دوران کي دومره وخت تیریږي څومره چي اویا ځله په تسبیح ویلو کي، ما سوچ وکړ چي داسي خو په ډوډۍ خوړلو کي ډیر وخت تیریږي او دا وخت په ساتلو سره نور ضروري کارونه کېدای سي نو ما ډوډۍ خوړل پرېښول او څلوېښت کاله مي یوه ډوډۍ هم نه ده

خوړلې مګر د لوږې د سختي د کمولو لپاره وخت ناوخته ستو پوه کولو سره خورم.
اوم: دا چي د لږ خوراک په وجه د بدن صحت او روغتيا پرځای وي او د ناروغيو څخه ساتل کيږي ځکه چي د ډيرو مرضو وجه زيات خوراک او ښيښناک وي او د ډير خوراک په وجه نه يوائي ناروغی پيدا کيږي مګر هغه د عبادت څخه هم راګرځول کيږي او په تشويش او فکرو کي اخته وي د هغه نتيجه داسي چي د وخت ډيره حصه حکيم او ډاکټر ته د تلو راتلو او علاج په معامله کي او په دوايانو اوداسي نور کي هم تيريږي او په دغه ټولو شيانو کي د کوم محنت سختي او پريښاني برداشت کول وي هغه تر دې ښه وي نو انسان چي يو څه خوري او وخت ناوخته بيت الخلاء ته ځي نو د دغه پرېشانيانو څخه خلاصون ترلاسه کوي.
اتمه: دا چي د معاش د لاس ته راوړو کوښښ او د روزي د ګټلو محنت او سختي زياته نه پريوځي ځکه کوم سړی چي د کم خوراک عادت پيدا کړي د هغه لپاره په لږ محنت سختي سره حاصل سوي شيان مال و اسباب هم بس کيږي.
نهم: دا چي ايثار و احسان او صدقه و خيرات کولو باندي په اساني سره قدرت ترلاسه کيږي يعني د کم خوړلو په صورت کي چي کومه ډوډۍ بچت کيږي هغه غريب مسکين او فقير ته د صدقې په توګه ورکول زيات سخت نه وي او ښکاره ده چي صدقه او خيرات کونکی سړی به د قيامت په ورځ د خپلي صدقې او خيرات په سايه کي د الله تعالی په رحمت ونازول سي او دا حقيقت هم مخ ته راوړستل پکار دي چي انسان چي څه خوري او ښيښي هغه ګويا بيت الخلاء ته په تلو سره يوځای کوي او څه چي په فقير ا و اړ سړي باندي خوري هغه د ځان لپاره د آخرت ذخيره کوي چي هلته به د الله تعالی په فضل و کرم سره افضله جزاء ورکول کيږي.
لسم: دا چي د لوږي د ذکر سوو فائدو څخه تر ټولو غټه فائده دا ده چي د دغه په وجه د هغه خواهشاتو او جذباتو بيخ کني کيږي کوم چي انسان هر ډول ګناه ته راولاړوي او پر نفس اماره باندي غلبه او قابو ترلاسه کوي ځکه چي کم خوړل نفساني خواهش وژني او شهواني خواهشات کمزوري کوي او دا خبره د څه دليل محتاجه نه ده چي د دين ټولي خوشبختياني او خيرښېګني په دغه امر کي پټي دي چي انسان د خپل نفس مالک او په ده يعني نفس باندي قابو يافته وي او په هر ډول شقاوت او بدبختي په نفس کي پټه ده چي انسان د خپل نفس غلام جوړسي او ځان ته په هغه قابو ورکړي.

## د دنیا موړوالی

﴿۴۹۶۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ رَسُوْلَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعَ رَجُلًا يَتَجَشَّأُ فَقَالَ أَقْصِرْ مِنْ جُشَائِكَ فَإِنَّ أَطْوَلَ النَّاسِ جُوْعًا يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَطْوَلُهُمْ شِبْعًا فِي الدُّنْيَا. رواه في شرح السنة. وروى الترمذي نحوه.

د حضرت ابن عمر رضی اللہ عنہما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د يو سړي د نس اروړمی واوريده نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: خپل اروړمی بنده کړه ځکه چي د قيامت په ورځ به لويه لوږه لرونکی هغه سړی وي چي په دنيا کي بنه په ماړه نس خوراک کوي. شرح السنه او ترمذي هم داسي روايت کړی دی.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۲۵۰، رقم: ۴۰۴۹، والترمذي ۱۴\۵۶۰، رقم: ۲۴۷۸.

**تشريح**: په حديث کي چي د کوم صحابي د نس د آواز ذکر دی د هغه نوم وهب ابن عبدالله وو، او د هغه شمير کم عمر والا په هغه صحابوؤ کي راځي چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي لا بالغ سوی نه وو خپله د هغه بيان دی يوه ورځ ما ماته ډوډی وخوړه او په تېغ کولو سره د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم رسول الله ﷺ راته وفرمايل کوم چي پورته نقل سوي دي په ذکر سوي ارشاد چي د ډکار کوم ممانعت فرمايل سوی دی د هغه مقصد څرنګه چي د حديث د آخري حصې څخه واضحه کيږي د دومره زيات خوراک څخه منع کول دي چي په هغه سره نس تر اړتيا زيات ډک سي او د غټو غټو تېغو کولو باعث جوړ سي، نقل سوي دي چي حضرت وهب ابن عبدالله د رسول الله ﷺ د ذکر سوي ممانعت وروسته تر مرګه پوري هيڅ کله د نس تر موړېدو ډوډی نه وخوړه که د شپې به يې ډوډی خوړله نو د ورځي به ئې نه خوړه او که د ورځي به يې وخوړه د شپې به يې نه خوړه.

## مال يوه فتنه ده

﴿۴۹۶۷﴾: وَعَنْ كَعْبِ بْنِ عِيَاضٍ قَالَ سَمِعْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ إِنَّ لِكُلِّ أُمَّةٍ فِتْنَةً وَفِتْنَةُ أُمَّتِي الْمَالُ. رواه الترمذي.

د حضرت کعب بن عياض رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي د

هر قوم او امت لپاره يوه فتنه وي او زما د امت فتنه مال دی. ،ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۹۲،رقم: ۲۳۳۶.

## د مال جمع کونکی

﴿۴۹۶۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يُجَاءُ بِابْنِ آدَمَ

د حضرت انس ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د آدم عليه السلام اولاده به د

يَوْمَ الْقِيَامَةِ كَأَنَّهُ بَذَجٌ فَيُوقَفُ بَيْنَ يَدَيِ اللّٰهِ فَيَقُولُ لَهُ أَعْطَيْتُكَ وَخَوَّلْتُكَ

قيامت په ورځ داسي راوستل سي لکه د پسو کوچني بچيان، بيا به د الله ﷻ په مخکي ودرول سي، الله تعالی به ورته فرمايي ما درته ژوند درکړی وو ما درته غلام، مينځي، مال او دولت

وَأَنْعَمْتُ عَلَيْكَ فَمَا صَنَعْتَ فَيَقُولُ رَبِّ جَمَعْتُهُ وَثَمَّرْتُهُ وَتَرَكْتُهُ أَكْثَرَ مَا كَانَ

درکړی وو او ما درباندي انعام کړی وو (يعني کتاب او رسول مي در استولي وه) نو تا څه کار وکړ؟ ابن آدم به ورته وايي اې پروردګاره! ما مال جمع کړ هغه مي په تجارت سره زيات کړ او

فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ كله فَيَقُولُ لَهُ أَرِنِي مَا قَدَّمْتَ فَيَقُولُ رَبِّ جَمَعْتُهُ وَثَمَّرْتُهُ

څومره چي به مي تر لاسه کړ تر هغه مي زيات په دنيا کي پريښود ما دنيا ته بيرته وليږئ چي دا ټول مال تا ته راوړم (يعني دنيا ته ولاړ سم هغه ټول مال خيرات کړم) بيا به الله تعالی پوښتنه وکړي کوم مال چي تا مخکي ليږلی دئ هغه وښيه، هغه به جواب کي ووايي اې پروردګاره! ما

وَتَرَكْتُهُ أَكْثَرَ مَا كَانَ فَارْجِعْنِي آتِكَ بِهِ كله كُلِّهِ فَإِذَا عَبْدٌ لَمْ يُقَدِّمْ خَيْرًا فَيُمْضَى بِهِ إِلَى النَّارِ. رواه الترمذي و ضعفه.

مال جمع کړ زيات مي کړ او د هغه څخه زيات مي په دنيا کي پرېښود څومره چي وو ته ما دنيا ته بيرته وليږه چي زه هغه مال تا ته راوړم نو دا خبره به ښکاره سي چي دی داسي بنده دی چي د اخيرت لپاره يې هيڅ نه دي ذخيره کړي نو دی به د دوږخ په طرف واستول سي. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۳۴، رقم: ۲۴۲۷.

**د لغاتو حل**: البذج: ولد الضان، اراد بذلک هو انه و عجزه.

**تشریح** : طیبي رحمہ اللہ ویلي دي چې په دغه حدیث کي د انسان کوم حالت چې ذکر سوی دی چې کوم بنده ته د الله تعالی د خوا څخه ذکر سوي شیان او نعمتونه ترلاسه وي او هغه د هغه په وجه د آخرت د خیر ترلاسه کولو څخه غافله سي نو د هغه مثال د هغه غلام په ډول دی چې هغه ته هغه مالک ډیر مال و اسباب د دغه مقصد لپاره ورکړي چې د هغه په ذریعه تجارت وکړي او ډیره ګټه وکړي خو هغه غلام د خپل مالک د رضاء او د هغه د حکم نافرماني وکي او هغه ټول مال فالتو کړي یا په داسي کاروبار او تجارت کي ومو بنلي چې د هغه حکم هغه ته نه وي سوی نو ښکاره ده چې هغه غلام به نه یواځي نااهل وګڼل سي مګر د سزا لائق به هم وګرځول سي همداسي هغه بنده هم په ډیر تاوان کي وي او د عذاب حق داره به وګرځول سي.

ابو حامد رحمہ اللہ ویلي دي، دا خبره په ذهن کي ساتل پکار دي که څه هم هره نیکي هر لذت او هره خوشبختي تر دغه چې هر غوښتونکي شي ته نعمت ویل کېدای سي مګر حقیقي نعمت بس اخروي خوشبختي ده د دغه ماسوا بل شي ته خوشبختي ویل غلط دي، مګر پر څه دنیاوي شیانو باندي مجازا هم د خوشبختۍ اطلاق کول یعني هغه ته دنیوي خوشبختي ویل هم صحیح نه دي هو کوم دنیاوي شیان چې د اخروي سعادت د ترلاس راوړو سبب او ذریعه وي او د هغه په لارکي په یو واسطې یا څو واسطو سره کومکي وي نو هغه شیانو ته نعمت ویل صحیح کېدای سي او دا هم له دې کبله چې هغه شیان یې حقیقي نعمت ته رسوي.

### صحت او یخې اوبه

﴿۴۹۶۹﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَوَّلَ مَا يُسْأَلُ العبد يَوْمَ الْقِيَامَةِ مِنَ النَّعِيمِ أَنْ يُقَالَ لَهُ أَلَمْ نُصِحَّ جِسْمَكَ وَنُرْوِكَ مِنَ الْمَاءِ الْبَارِدِ. رواه الترمذي.

د حضرت ابو هریرة رضی اللہ عنہ څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت په ورځ به د بنده څخه د نعمتونو په اړه لومړی چې کوم سوال کیږي هغه به دا وي چې ایا موږ تا ته صحت نه وو درکړی او په یخو اوبو سره مو نه وې اوبه کړی. ترمذي

**تخریج**: سنن الترمذي ۵\۴۱۸، رقم: ۲۳۵۸.

**تشریح** : هسي خو هر شی د الله تعالی نعمت دی چې د هغه څخه انسان فائده اخلي مګر په دغه کي هم هیڅ شک نسته چې لوئ نعمت روغتیا او اوبه دي ځکه د قیامت په ورځ به تر تولو

مخکې د دغه دوو نعمتونو په باره کې پوښتنه کیږي .
د یو لوئ بزرگ په باره کې نقل دي ، هغه خپل مورید ته وفرمایل چې اوبه یخوه بیا ئې څیښه ځکه چې یخې اوبه د الله تعالی شکر د زړه د اخلاص څخه اداء کوي او شیخ عبدالحق رحمه الله فرمائي ماته د خپل پلار په باره کې یاد دي هغه چې به کله یخې اوبه څیښلې نو بې هوښه به سو او کله چې به د لږ ځنډ وروسته هغه د بې هوښۍ وروسته خپل حالت ته راغلی نو وه به یې فرمایل: سبحان الله دا یخې اوبه هم څنګه شی دي او الله تعالی دا څومره جوهري جوړې کړې دي او همداسې عالم ذوق او د توحید سره سم کلمات به ئې ارشاد وفرمایلې، پای یې دا چې اوبه په خپله خو ډیر لوئ نعمت دی مګر یخې چې کوم کیف و لات او کومې فائدې لرې د هغه په وجه د دغه نعمت درجه ډیره زیاتیږي او عجیبه خبره داده قدرت اوبه داسې عزیز او ضروري شی جوړې کړې چې د ژوند دار ومدار هم په دغه باندې دی مګر عامې ئې دومره کړې چې د دغه څه بیه نسته .
په دغه ځای کې یو خوندور حکایت بیانیږي چې یو بادشاه چیرې لار ځیني ورکه سوه یو ځنګله ته ورسېدی هلته تږی سو خو هلته د اوبو نوم هم نه وو د تندې سره د هغه خوابدتیا نوره ډېرېدله تر دې چې مرګ ته بالکل نژدې سو یودم د هغه مخ ته یوه ملائکه ښکاره سوه او پوښتنه ئې ځیني وکړه که زه اوبه دربانديې وڅیښم نو ته به ماته څه شي راکړې بادشاه سمدستي ورته وویل خپل نیم ملک هغه غیبي انسان اوبه په وڅیښلې، د دغه وروسته د هغه بولې بندې سوې هغه که هر څومره غوښتل چې په څه رقم بولې وکړي خو نامراده سو او په سختې پرېشانۍ کې اخته سو آخر بیا هغه غیبي انسان ورته ښکاره سو ورته وئې ویل که زه ستا د دغه مرض علاج وکم او ستا بولې ایله سې نو ماته به ته څه انعام راکړې بادشاه ورته وویل نور نیم ملک به هم تاته درکړم د هغه علاج ئې وکړ او د بادشاه بولې ایله سوې بیا هغه غیبي انسان ورته وویل اې بادشاه سلامت ته خپل ملک خپله سنبال که ما ته د دغه ضرورت نسته مګر د خپلې بادشاهي حیثیت وګوره د لږ اوبو او بولو لپاره د ټول ملک او بادشاهي د قربانولو فیصله دې وکړه نو دومره بې حیثیته شی او د دغه پر ښکاره ښکلا باندې هیڅ غرور ونه کړې ،
په آخر کې یوه خبره دې په ذهن کې وي چې په ذکر سوي حدیث کې روغتیا او اوبه دواړه نعمتونه یو ځای په ذکر کولو کې ګویا دې ته اشاره کول مقصد دي چې دا دواړه دومره عظیم الشان او ضروري نعمتونه دي چې ټول ملک او بادشاهي یوې خوا ته او دغه دواړه نعمتونه بلې خوا ته دي یعني دا پر زیات دي .

## پنځه نعمتونه

﴿۴۹۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَزُولُ

د حضرت ابن مسعود ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

قَدَمَا ابْنِ آدَمَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ حَتَّى يُسْأَلَ عَنْ خَمْسٍ عَنْ عُمُرِهِ فِيمَا أَفْنَاهُ

د قیامت په ورځ به د چا پښې حرکت نه کوي تر څو پوري چي د سړي څخه دا پنځه خبري ونه پوښتل سي د هغه څخه به پوښتنه وسي چي خپل عمر دي په کوم کار کي صرف کړ،

وَعَنْ شَبَابِهِ فِيمَا أَبْلَاهُ وَمَالِهِ مِنْ أَيْنَ اكْتَسَبَهُ وَفِيمَا أَنْفَقَهُ وَمَاذَا عَمِلَ فِيمَا

عَلِمَ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

خپله ځواني دي په کوم کار کي ختمه کړه؟ مال دي څنگه وگټئ او څنگه دي خرڅ کړ؟ او کوم علم چي دي تر لاسه کړی وو د هغه سره سم دي کوم عمل وکړ. ترمذي. دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۲۹\۴، رقم: ۲۴۱۶.

**تشريح**: د حضرت ابودرداء په باره کي نقل سوي دي چي يوه ورځ هغه حضرت عويمر ته وفرمايل اې عويمر! په قيامت کي به ستا څه حال وي کله چي ستا څخه پوښتنه وسي چي آيا ته عالم وې که جاهل که ته دا جواب ورکړې چي زه عالم وم نو بيا ستا څخه دا پوښتنه کيږي چي تا کوم علم حاصل کړی وو د هغه موافق دي کوم کار وکړ او که ته دا جواب ورکړې چي زه خو جاهل وم نو پوښتنه به در څخه وسي چي ستا د جاهل پاته کېدو څه وجه وه او تا علم ولي نه وو حاصل کړی.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### غوره والی په تقوا کي دئ

﴿۴۹۷۱﴾: عَنْ أَبِي ذَرٍّ أَنَّ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَهُ انك لست بِخَيْرٍ مِنْ أَحْمَرَ وَلَا أَسْوَدَ إِلَّا أَنْ تَفْضُلَهُ بِتَقْوَى. رواه احمد.

د ابو ذر ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ هغه ته وفرمایل: ته د سور او تور رنگ په سبب

غوره نه يې مگر كه ته په تقوا سره غوره سوې (يعني د هر يوه سره تقوا هم ضروري ده) . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۱۵۸.

**تشريح** : مطلب دادى چي انساني فضيلت او غوره والى پر ښكاره صورت ،رنګ او نسل باندي موقوف نه وي مگر د دغه دارومدار پر ديني او اخلاقي كردار عظمت او تقوى باندي دى ښكاره دي وي چي په حديث كي يواځي د دوو رنګو سور و تور ذكر په دغه وجه سوى دى چي زيات خلک د دغه دوو رنګونو وي او زياته صحيح خبره داده چي د دغه دوو رنګونو والا مراد مالک او غلام دى اكثر داسي وي چي بادار د سور رنګ وي او غلام د تور رنګ وي .

طيبي رحمه الله د حديث په وضاحت كي ويلي دي چي دلته د سره رنګ څخه مراد اهل عجم او د تور رنګ څخه مراد اهل عرب دي په هغه زمانه كي به اهل عربو عجم والا يعني غير عرب خلكو ته سره ويله ځكه چي د هغوئ په رنګ سور والى او سپين والى غالبه وه او اهل عرب ته به يې تور ويله ځكه چي د هغوئ رنګ به پوخ وو او په هغه به د توروالي غلبه وه .

او شيخ عبد الحق رحمه الله ليكلي دي ، د حديث معنى داده چي د حقيقي فضيلت او لوړوالي تعلق د تقوى او نيكو كارو سره دى او د تقوى او نيک عمل څخه ماسوا هيڅ وصف اود خصوصيت خوا ته نسبت څه فضيلت نه لري څرنګه چي د الله تعالى ارشاد دى : ان اكرمكم عندالله اتقكم د الله تعالى په نزد په تاسو كي زيات عزت مند سړى هغه دى كوم چي په تاسو ټولو كي زيات متقي وي دا خبره دي په ذهن كي وي چي تقوى د خپل مراتبو او درجاتو د اعتبار څخه پر څو ډولو باندي مشتمله ده تر ټولو كم ډول يا تر ټولو كمه درجه داده چي په هر حالت كي د شرک جلي څخه پرهيز وكړي درمياني درجه يې داده چي د هر ډول ګناه هر ډول خرابئ هر ډول لهو ولعب او د شرک خفي څخه پرهيز وكړي او تر ټولو غټه درجه داده چي هر وخت د الله تعالى سره تعلق او مينه وساتل سي او په زړه كي د بل چا خيال رانسي .

## د دنيا څخه زهد

﴿۴۹۷۲﴾ : وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ مَا زَهِدَ عَبْدٌ فِي الدُّنْيَا إِلاَّ أَنْبَتَ اللّٰهُ الْحِكْمَةَ فِيْ قَلْبِهِ وَأَنْطَقَ بِهَا لِسَانَهُ وَبَصَّرَهُ عَيْبَ الدُّنْيَا وَدَاءَهَا وَدَوَاءَهَا وَأَخْرَجَهُ مِنْهَا سَالِماً إِلَى دَارِ السَّلاَمِ . رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : كوم بنده چي په دنيا كي زهد

اختيار کړي الله تعالی د هغه په زړه کي حکمت پيدا کړ د هغه ژبه يې ګويا کړه هغه ته يې د دنيا عيبونه او د هغې ناروغی او د هغه ناروغيو درملنه وښودل او بيا يې هغه په سلامتي سره ددې دنيا څخه د دار سلام په لور بوتلی. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۷\۳۴۷، رقم: ۱۰۵۳۲.

**تشريح**: د دارالسلام څخه مراد جنت دی او په دغه حديث کي دغه خواته اشاره ده چي باکمال حقيقي سلامتي بس دار آخرت او په جنت کي ترلاسه کيږي نقل سوي دي چي د يو عارف او درويش څخه خلکو پوښتنه وکړه چي ووايه ستا څه حال دی نو هغه جواب ورکړ که الله خوښه وي نو سلامتي ده په شرط د دې چي جنت ته به ورسيږم.

## د کاميابي ذريعه

﴿۴۹۷۳﴾: وَعَنْهُ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَدْ أَفْلَحَ مَنْ أَخْلَصَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا زړه چي الله تعالی د

اللّٰهُ قَلْبَهُ لِلْإِيمَانِ وَجَعَلَ قَلْبَهُ سَلِيمًا وَلِسَانَهُ صَادِقًا وَنَفْسَهُ مُطْمَئِنَّةً

ايمان لپاره ځانګړی کړ هغه خلاصون ترلاسه کړ، الله تعالی د هغه زړه (د حسد او نفاق څخه) سالم وساتئ، د هغه ژبه يې رېښتوني جوړه کړه او نفس يې ور مطمئن کړ

وَخَلِيقَتَهُ مُسْتَقِيمَةً وَجَعَلَ أُذُنَهُ مُسْتَمِعَةً وَعَيْنَهُ نَاظِرَةً فَأَمَّا الْأُذُنُ فَقَمْعٌ

د هغه خوی عادت يې برابر کړی او د هغه غوږونه يې اوريدونکي جوړ کړل د هغه سترګي يې کتونکي جوړي کړي نو غوږونه يې پيپ دي لکه څرنګه چي د پيپ په ذريعه تيل بوتل ته اچول

واما الْعَيْنُ فمقرةٌ لِمَا يُوعَى الْقَلْبُ وَقَدْ أَفْلَحَ مَنْ جَعَلَ قَلْبَهُ وَاعِيًا. رواه احمد

کيږي او سترګي قائم ساتونکي دي چي د هغه زړه خوندي ساتي او البته هغه چا خلاصون ترلاسه کړ چي د هغه زړه د حق خبري لپاره محافظ جوړ کړل سو، احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۱۴۷، والبيهقي في شعب الايمان ۱\۱۳۲، رقم: ۱۰۸.

**د لغاتو حل**: مفرة: ای محل قرار.

**تشريح**: د قمع معنی د قيف ده او قيف هغه نلکی لرونکي آلې ته وايي چي هغه د بوتلانو يا نورو شيانو په خوله کي په اېښودو سره لوښي وغيره ته بهېدونکی شی ور اچوي لکه تېل، نو

غوړونه قیف دي د دې مطلب دادی چي څرنګه د قیف په ذریعه یو نرم شی بوتلانو وغیره ته ور اچوي همداسي غوږ هغه ذریعه ده چي حقه خبره د انسان زړه او دماغ ته رسوي په دغه توګه چي غوږ هغه خبره اوري او زړه هغه قبلوي.

او سترګه د هغه شي قائم او ثابت لرونکې وي الخ، د دغه جملې مطلب دادی چي کوم شیان چي سترګه ویني زړه د هغه ظرف وي یا هغه شیان زړه خپل ظرف جوړوي چي هغه د سترګو په وجه زړه ته ننوځي ګویا څرنګه چي غوږ حقه خبره زړه ته رسوي همداسي په نظر راتلونکي حقائق د سترګو د لاري زړه ته ننوځي او په هغه کي د ننه قائم او ثابت وي د حدیث په آخري حصه کي ګویا د دغه دواړو شیانو نتیجه بیان سوې کوم سړی چي حقه خبره په اوریدو سره او د حق شیانو په لیدو سره خپل زړه ته یې واچوي او د هغه ساتنه ئې وکړه یعني بهر صورت پر حق باندي عامل وو نو هغه کامیاب ګرځول کیږي.

## کافرانو ته دنیا ورکول

﴿۴۹۷۴﴾: وَعَنْ عُقْبَةَ بْنِ عَامِرٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَأَيْتَ

د حضرت عقبة بن عامر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي ته وویني

اللّٰهَ يُعْطِي الْعَبْدَ مِنَ الدُّنْيَا عَلَى مَعَاصِيهِ مَا يُحِبُّ فَإِنَّمَا هُوَ اسْتِدْرَاجٌ ثُمَّ تَلَا

چي الله تعالی بنده ته د هغه د ګناه سربیره غوره شی ورکوي نو دا یوازي استدراج دئ (درجه پر

رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ فَلَمَّا نَسُوا مَا ذُكِّرُوا بِهِ فَتَحْنَا عَلَيْهِمْ أَبْوَابَ كُلِّ شَيْءٍ حَتَّى إِذَا

فَرِحُوا بِمَا أُوتُوا أَخَذْنَاهُمْ بَغْتَةً فَإِذَا هُمْ مُبْلِسُونَ. رواه احمد

درجه بیول) بیا رسول الله ﷺ دا آیت تلاوت کړ: (هر کله چي کافرانو هغه نصیحت هیر کړ کوم چي هغوئ ته سوی وو نو موږ د هر شي دروازې پر هغوئ خلاصي کړې تر دې چي هغوئ په هغه شي چي هغوئ ته ورکړل سو خوشحاله سول نو موږ ناڅاپه را ونیول او هغوئ نا امیده سول). احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۱۴۵.

**تشریح**: په لغت کي د استدراج معنی ده درجه په درجه تلل لکه څوک چي پورته ځي او په زینو کي خیږي درجه په درجه ځي یو وار یوه زینه بیا دوهمه زینه او بیا دریمه زینه همداسي یوې بلې زینې ته پرله پسې خیږي او همداسي تر آخره پوري روان وي او ورسیږي او د بنده په

حق کي د الله تعالی استدراج دادی چي کله یو انسان په ګناه او مصیبت کي اخته سي نو هغه ته د دنیا خوشحاله کونکی نعمت ورکړي یا د هغه یوه خبره یا خواهش پوره کړي او بیا هغه د هغه پر حال پریږدي چي هغه انسان دا ګمان وکړي چي دا زما په حق کي د الله تعالی د خوا څخه لطف او کرم دی نو په خپل حالت کي سست وي نه خو د خپلو بدو عملو څخه توبه کاږي او نه پر خپلو ګناهو باندي استغفار کوي او بیا یو دم د الله تعالی په عذاب کي راچاپېره سي نو دا ګویا د الله تعالی د خوا څخه هغه بنده درجه په درجه د عذاب خواته تلل وي څرنګه چي څوک درجه په درجه خیژي او بیا یو دم د هغه ځایه رایله سي ،

حاصل دا چي کوم ګناه کار یا کافر ته د دنیا ترقي یا خیر ترلاسه وي نو هغه ته دا ګڼل نه دي پکار چي الله تعالی ئې نازوي مګر دا حقیقت په ذهن کي ساتل پکار دي چي د هغه ټول دنیاوي ترقی او کامیابي په اصل کي هغه درجه په درجه هغه مرحلې ته رسوي چیري چي یو دم د الله تعالی عذاب هغه تباه کوي که څه هم هغه وخت ډیر وروسته راسي .

## د زهد خاوندان

﴿۴۹۷۵﴾: وَعَنْ أَبِي أُمَامَةَ أَنَّ رَجُلًا مِنْ أَهْلِ الصُّفَّةِ تُوُفِّيَ وَتَرَكَ دِينَارًا فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ كَيَّةٌ قَالَ ثُمَّ تُوُفِّيَ آخَرُ فَتَرَكَ دِينَارَيْنِ فَقَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ كَيَّتَانِ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت ابو امامه ﷺ څخه روایت دئ چي د اهل صفه څخه یو کس وفات سو او یو دینار ئې پاته سو ، رسول الله ﷺ وفرمایل : دینار یو داغ دئ ، ابوامامه وایي چي یو څو ورځي وروسته د اصحاب صفه څخه یو بل سړی وفات سو هغه دوه دیناره پرېښودل نو رسول الله ﷺ وفرمایل : دوه دیناره دوه داغونه دي . احمد او بیهقي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\۲۵۲، والبیهقي في شعب الایمان ۵\۳۶۴، رقم: ۶۹۶۳.

**تشریح**: صفه والا : هغه غریب او کور نه لرونکي صحابه کرامو ته وایي چي په ځانګړې توګه د مسجد په صفه کي اوسېدل، صفه په اصل کي د مسجد نبوي سره متصل یو بام لرونکی ځای وو او په پېل کي کله چي د مسلمانانو قبله بیت المقدس وه دغه ځای د مسجد په توګه استعمالېدی مګر بیا کله چي قبله بدله سوه او کعبة الله قبله وګرځېدل نو دغه ځای پر خپل حالت باندي پرېښودل سو او د هغه په څنګ کي مسجد نبوي جوړ کړل سو ،

د صحابه کرامو کومه مقدسه ډله چي په صفه کي اوسېدل هغه پر اویا یا اتیا کسانو باندي مشتمل وه ، دغه شمېر به په مختلفو وختو کي کمېدی او زیاتېدی ، او نه ددغه صحابه کرامو کورونه وه او نه د هغوئ سره مال او اسباب وه او نه یې کاروبار او کورنۍ درلودل، ځکه نو هغوئ پوره زهد اختیار کړی وو ، او د الله تعالی پر ذات باندي په توکل په هغه ځای کي پراته وه او هر وخت به په ذکر ، ریاضت، مجاهد او تلاوت کي بوخت وه او د رسول الله ﷺ احادیث به یې یادول، دغه حضراتو ته اضیاف الله (د الله ﷻ مېلمانه) ویل کېدل، کومو صحابه کرامو چي توان درلودی هغوئ به یې خدمت کوی او د هغوئ د اړتیاوو په پوره کولو کي به یې تر خپله وسه هڅه کول، ځینو ته به یې په ډېر عزت او احترام سره خوراک رسوی او څوک به یې د مېلمه په توګه خپل کور ته بوتله او په هغوئ کي ځیني حضرات داسي وه چي د رسول الله ﷺ په خاص عنایت او توجه برخمن کېدل او د رسول الله ﷺ سره به یې خوراک کوی او په دې وجه به کله نا کله د رسول الله ﷺ د داسي معجزاتو د صادر کېدو باعث هم جوړېدل چي لږ خوراک به په حېرانونکې توګه د ټولو لپاره بس سو ، د مثال په توګه څو واره داسي سوي دي چي د شېدو یوه پیاله چي د یوه سړي لپاره هم د کافي کېدو صلاحیت نه درلودی د اعجاز نبوي په طفیل هغه ټول حضرات به یې په نس ماړه کړل ، رسول الله ﷺ ته حکم الهي وو چي ته ددغه حضراتو په منځ کي اوسه نو رسول الله ﷺ به وخت ناوخته په خپل شرف سره نازول او هیڅ وخت به یې هغوئ ته د بې چارګۍ احساس نه ورکوی ، رسول الله ﷺ به هغوئ ته فرمایل: تاسو خپل ځان یوازي او بې کسه مه ګڼئ زه ستاسو څخه یم او هغوئ ته به یې دا زیری ورکوی چي په آخرت کي به تاسو زما سره یاست او زما سره به یو ځای جنت ته ځئ، مشهور صحابي حضرت ابوهریره ﷺ هم ددغه صفه والا صحابه کرامو څخه وو ، رضي الله عنهم اجمعین .

څرګنده دي وي چي د صوفیانو ډلي ته د زهد او توکل او له دنیا څخه ترک تعلق په اړه د اهل صفه سره مشابهت حاصل دی او که چیري لفظ د صوفیه د صفه څخه مشتق ګرځول او دا ویل چي زهد او توکل اختیارونکي ته صوفي ویل د صفې په بنیاد دی ، دا که څه هم غیر حقیقي خبره ده مګر په دې کي شک نسته چي په معنوي توګه د صوفیاء نسبت اهل صفه ته کیدای سي .

اوس حدیث ته راسئ، په اصل صفه کي د وفات کېدونکو حضراتو دینار پرېښودل او د رسول الله ﷺ وعید بیانول په دې وجه وو چي که څه هم د حاجت او اړتیا لپاره یو یا دوه دیناره اېښودل او جمع کول په شرعي توګه د ګناه سبب نه دی او نه یو داسي خبره ده چي غیر مناسب وګرځول سي بلکه یو سړی که د حقوق ادا کولو څخه وروسته پوره خزانه جمع کړي او د دنیا مال

او اسباب د ځان سره وساتي نو دي ته د شريعت خلاف نه وايي مگر دا چي يو سړی د مال او زر کوټه جوړه کړي چي نه د هغه زکوۃ ورکوي او نه د بل چا مالي حقوق ادا کوي نو بېله شکه دا منع دی مگر د دې حقيقت سربېره د دې څخه انکار نسي کيدای چي اهل زهد او تارکان دنيا چي دهر څه په پرېښودو سره د ټولو څخه د سترگو په بندولو سره او د اهل فقر محبت اختيارولو سره باب فقر او توکل باندي کښيني د هغوئ شان بېل دی د هغوئ سره د ضرورت څخه زيات دنياوي مال او اسباب په حقير مقدار کي کېدل هم نامناسب دي نو د رسول الله ﷺ مذکوره ارشاد گويا د فقر او تجرد د هغه وعدې خلاف د سخت خبرداري په توگه دی چي د حقيقت حال سره مطابقت نه لري او غالبا په دې وجه راوي د دغه دواړو حضراتو په ذکر کي دا ونه ويل چي په اصحابو کي يو سړی وفات سو بلکه دا يې وويل چي د اصحاب صفه څخه يو سړی وفات سو گويا هغه دغه دواړو صحابه کرامو ته د صفه نسبت په خاصه توگه وکړ چي دا ښکاره کړي چي که څېري بل صحابي په خپله ترکه کي يو يا دوه ديناره پرېښودو سره وفات سي نو دا يو ضروري خبره نه وه مگر دا د اصحاب صفه څخه د دوو کسانو ذکر دی چي د هغوئ د شخصياتو امتياز زهد او فقر وو، نو د هغه اصحاب صفه په صحبت او معيت کي اوسېدل او ځان د هغوئ امتيازي خصوصيت حامل گرځول د مطلق درهم او دينا جمع کولو خلاف دی.

ملا علي قاري رحمه الله د دغه حديث په وضاحت کي د يو بلي خوا څخه بحث کړی دی چي د هغه مفهوم دا دی چي رسول الله ﷺ د هغه دوو صحابه کرامو په اړه چي کوم وعيد بيان کړ هغه د دې لپاره وو چي هغه دواړه صحابه کرام په اصل کي د هغه مسکينو خلکو (يعني اصحاب صفه) څخه وه چي د هغوئ د فقر او فاقې په وجه نورو خلکو به هغوئ ته خپل مال ورکوی او د الله لپاره به يې هغوئ خوراک او څښناک ورکوی همدانگه هغه دواړه حضرات يا خو د مال له موخي يا د حال له موخي په منزله د سائلينو وه او ځرنگه چي معلومه ده چي د هيڅا لپاره دا قطعا حلال نه دي چي د هغه سره د يوې ورځي په اندازه د خوراک او څښناک سامان وي نو هغه دي د سوال لاس نه غزوي، نو هغه دواړو حضراتو د ځان سره دينار درلودی او د دې سربېره هغه شيان چي د خوراک او څښناک لپاره نورو خلکو د صدقې او خيرات په توگه هغوئ ته راوړل هغه گويا د هغوئ په حق کي حرام وه.

همدارنگه دغه مسئله هم په ذهن کي ساتل پکار دي چي کوم څوک خپل ځان د فقر او مسکينانو په صورت کي ظاهر کړي د مثال په توگه زړې جامې اغوندي او په خراب حال سره اوسي يا د صوفيانو او مشائخو وضع اختيار کړي او د هغه سره مال وي او د دې سربېره د خلکو

د لاس څخه هغه شی اخلي او قبول کړي چي چا ته د صدقې او خيرات په توګه ورکولو لپاره وي او بيا هغه شی خوري او څښني يا په خپل مصرف کي يې راولي نو هغه شی به د هغه په حق کي حرام وي همدارنګه هغه سړی خپل ځان عالم او صالح او باشريعت ظاهر کړي او د حقيقت په اعتبار هغه داسي نه وي او خلک هغه ته د علم يا شرافت په وجه څه ورکړي نو د هغوئ ورکړی هغه شی به د هغه لپاره حرام وي.

نقل سوي دي چي مشهور بزرګ شيخ ابو اسحاق ګاندوئي رحمة الله عليه يوه ورځ فقيران پر داسي خوراک باندي ولېدل چي د مستحقينو لپاره تيار سوی وو، نو هغه فقيرانو ته يې وفرمايل: تاسو خلک حرام خورئ، هغه ټولو فقيرانو (د دې په اورېدو سره) د خوراک څخه خپل لاس را ايسته کړه، ددې څخه وروسته شيخ ورته وويل : دغه خوراک يوازي د داسي خلکو لپاره دی چي هغوئ هيڅ دنياوي مال نه لري نو په تاسو کي چي کوم څوک داسي وي نو هغه دي دغه خوراک وخوري ، ددې څخه پرته بل څوک دي دغه خوراک نه خوري نو د هغه خوراک څخه ځينو وخوړل او ځينو ونه خوړل، ددې په لېدو سره شيخ وفرمايل: سبحان الله! خوراک خو يو دی مګر د ځينو خلکو لپاره حلال دی او د ځينو خلکو لپاره حرام دی، څرګنده سوه چي هغه شيان کوم چي محض د فقيرانو لپاره وي د هغه آمدني او د هغه وسائل هيڅ داسي سړي ته په خپل مصرف کي راوستل مطلقا حلال نه دي چي په شرعي توګه غني وي نو هغه سرايونه او خوني چي د فقيرانو او مسکينانو لپاره وقف دي نو داسي خلکو ته هلته مفت اوسېدل حرام دي څوک چي فقير او مسکين نه وي لکه څرنګه چي علامه ابن همام رحمة الله عليه وضاحت کړی دی چي پر غني باندي حرام دی چي هغه د خانقا د وقف په حجرو کي مفت هستوګنه اختيار کړي نو دا قول د باور وړ ګڼل نه دي پکار چي د هغه خلاصه داده چي د حرمين شريفين اوقاف د فقير او غني هر يوه لپاره دي ځکه که دا خبره صحيح ومنل سي نو ددغه اوقافو څخه غني ته ګټه اخيستل جائز نه دي او ددې سبب دادی چي زمونږ په نزد د غني په حق کي د يو شي وقف کول صحيح نه دی چي هغه غير محصور وي.

## د دنياوي مال جمع کولو څخه ليري سه

﴿۴۹۷۶﴾: وَعَنْ مُعَاوِيَةَ اَنَّهُ دَخَلَ عَلٰى خَالِهِ اَبِيْ هَاشِمِ بْنِ عُتْبَةَ يَعُوْدُهُ فَبَكٰى

د حضرت معاويه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د خپل ماما ابو هاشم بن عتبة عيادت (دناروغ پوښتني) ته ورغلی ، ابو هاشم په ليدو سره وژړل،

اَبُوْ هَاشِمٍ فَقَالَ مَا يُبْكِيكَ يَا خَالِ أَوَجَعٌ يُشْئِزُكَ أَمْ حِرْصٌ عَلَى الدُّنْيَا قَالَ

معاويه ورته وويل: ما ما ولي ژاړې؟ ناروغي په پريشاني کي اخته کړی يې يا د دنيا حرص؟

كَلَّا وَلَكِنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَهِدَ إِلَيْنَا عَهْدًا لَمْ آخُذْ بِهِ قَالَ

ابو هاشم وويل: په دې کي يوه خبره نسته بلکه د پريشانۍ سبب دا دئ چي رسول الله ﷺ موږ ته وصيت کړی وو چي په هغه ما عمل ونه کړلای سو، معاويه پوښتنه وکړه

وَمَا ذَالِكَ قَالَ سَمِعْتُهُ يَقُولُ إِنَّمَا يَكْفِيكَ مِنْ جَمْعِ الْمَالِ خَادِمٌ وَمَرْكَبٌ فِي

هغه وصيت څه شی دئ.؟ ابو هاشم ورته وويل: ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي تا ته په مال يو ځای کولو کي يوازي يو خادم

سَبِيلِ اللّٰهِ وَإِنِّي أَرَانِي قَدْ جَمَعْتُ. رواه احمد والترمذي والنسائي وابن ماجة

او د الله ﷻ په لار کي د جنګ لپاره يوه سپرلۍ بس ده او زما خيال دئ چي ما مال جمع کړی دی (يعني زيات). احمد، ترمذي، نسائي او ابن ماجه

**تخريج:** مسند الامام احمد ۳\ ۴۴۴، والترمذي ۴\ ۴۸۸، رقم: ۲۳۲۷، والنسائي ۸\ ۲۱۹، رقم: ۴۵۳۷۲، وابن ماجه ۲\ ۱۳۷۴، رقم: ۴۱۰۳.

**تشريح:** د أراني لفظ د مفهوم په اعتبار د اظن په معنی دی يعني زه ګمان کوم، په ځينو نسخو کي د غه لفظ د همزه په زور سره دی چي معنی يې ده: زه وينم يا زه پوهيږم.

## مال او منصب نه غوښتل

﴿۴۹۷۷﴾: وَعَنْ أُمِّ الدَّرْدَاءِ قَالَتْ قُلْتُ لِأَبِي الدَّرْدَاءِ مَالَكَ لَا تَطْلُبُ كَمَا يَطْلُبُ فُلَانٌ فَقَالَ إِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ أَمَامَكُمْ عَقَبَةً كَؤُودًا لَا يَجُوزُهَا الْمُثْقِلُونَ فَأُحِبُّ أَنْ أَتَخَفَّفَ لِتِلْكَ الْعَقَبَةِ.

د حضرت درداء د مور (رض) څخه روايت دئ چي ما د درداء پلار ته وويل په تا څه سوي دي چي ته د رسول الله ﷺ څخه مال او منصب نه غواړې لکه څرنګه چي فلانی او فلانی يې غواړي، د درداء پلار وويل: ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي ستاسو مخته يو غونډۍ ده

چي پر هغه هغه خلک نه سي تيريدلای کوم چي دروند باري وي ، په دې وجه زه دا خوښوم چي پر دغه باندي د ختلو لپاره (سپک) يم . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳۰۹\۱۵ ، رقم: ۱۰۴۰۸.

**تشريح**: د سخت پړاو څخه مراد مرگ، قبر، حشر او په دې اړه پيښېدونکي سختياني دي، او د گران بار څخه مراد هغه خلک دي چي د مال ، دولت او دنياوي خوشحالي باريې پر اوږو پورته کړي وي د رسول الله ﷺ د ارشاد خلاصه داده چي دمؤمن دنياوي ژوند او د هغه ابدي قرارگاه (جنت) په منځ کي چي کومه فاصله ده هغه د يو سخت پړاو تېرېدو څخه وروسته قطع کېږي او ځرگنده ده کوم څوک چي د يو سخت پړاو سره تېرېږي نو هغه د ځان سره بار نه ساتي او هر څومره چي سپک وي هغومره په اساني سره تېرېدای سي نو که چيري ته د خپل آخري منزل يعني جنت ته په اساني سره رسېدل غواړي نو خپل ځان د دنيا د مال او اسباب څخه سپک ساته چي ستا او د جنت په منځ کي چي کوم سخت پړاو دی د هغه په قطع کولو کي څه خنډ رامنځته نسي او ځکه ويل سوي دي : (فاذ المخفون و هلک المثقلون) يعني سپک بار وال خلک کامياب سول او دروند بار والا خلک هلاک سول .

## د دنيا څخه پرهېز وکړئ

﴿۴۹۷۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ مِنْ أَحَدٍ يَمْشِيْ عَلَى الْمَاءِ إِلاَّ ابْتَلَّتْ قَدَمَاهُ قَالُوْا لاَ يَا رَسُوْلَ اللهِ قَالَ كَذٰلِكَ صَاحِبُ الدُّنْيَا لاَ يَسْلَمُ مِنَ الذُّنُوْبِ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا يو څوک پر اوبو داسي تيريدلای سي چي د هغه پښې لندې نه وي؟ صحابه کرامو وويل: يا، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : دغه حال د دنيا دارو دئ چي د گناهونو څخه خوندي کيدلای نه سي . بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۳۲۳\۱۷ ، رقم: ۱۰۴۵۷.

**تشريح**: پر چا چي د دنيا مينه غالبه سي نو هغه په هيڅ حالت کي هم د گناهو څخه خوندي کيدای نسي او پر چا چي د دنيا مينه غالبه نه وي مگر په مال او دولت او دنياوي چارو کي اخته وي نو د هغه لمن هم په عامه توگه په گناهو کي د لړل کېدو څخه خوندي کېدای نسي .

د ارشاد خلاصه د شتمنو کسانو ته سخت خبرداری ورکول او زهد ته شوق ورکول دي او

دا هم څرګندول مقصد دي چي په هر حالت کي د آخرت ګټه او تاوان ته د دنيا پر ګټه او تاوان باندي ترجيح ورکول پکار دي د دنيا د مال او دولت طلب کونکي ته دا احساس کافي دی چي د آخرت تاوان او خسران د فقر په نسبت په شتمنی کي زيات پټ دی او د فقر دا فضيلت کم نه دی چي فقيران چي هغوئ پر خپل فقر او مفلسي باندي صبر او قناعت اختيار کړی وي په جنت کي د شتمنو څخه پنځه سوه کاله مخکي داخليږي .

## د پروردګار حمد او تسبيح

﴿۴۹۷۹﴾: وَعَنْ جُبَيْرِبْنِ نُفَيْرٍ مُرْسَلاً قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت جبير بن نفير ﷺ څخه مرسلا روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ مَا أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ أَجْمَعَ الْمَالَ وَأَكُونَ مِنَ التَّاجِرِينَ وَلٰكِنْ أُوحِيَ إِلَيَّ أَنْ

ما ته د وحي په ذريعه دا حکم نه دی راکړل سوی چي زه مال جمع کړم يا تجارت وکړم بلکه دا وحي راته سوې ده چي زه

سَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ وَكُنْ مِّنَ السَّاجِدِيْنِ وَاعْبُدْ رَبَّكَ حَتّٰى يَأْتِيَكَ الْيَقِيْنُ .

رواه في شرح السنة وأبو نعيم في الحلية عن أبي مسلم .

د خپل پروردګار حمد او تسبيح کوم ، د سجده کونکو څخه سم او د خپل پروردګار عبادت کوم تر هغو چي مرګ راته راسي شرح السنة او ابو نعيم په الحلية کي د ابي مسلم څخه روايت کړی دی .

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۲۳۷، رقم: ۴۰۳۶،

**تشريح**: د دغه ارشاد په ذريعه رسول الله ﷺ دا څرګنده کړه چي ما ته خو د خپل رب له خوا دا حکم دی چي زه خپل وختونه په تسبيح، تحميد، عبادت او په خاصه توګه په لمانځه کي صرف کړم او د عمر تر پايه پوري همدا رنګه په اخروي کارو کي بوخت اوسم نو ما ته دومره فرصت چيري دی چي زه تجارتي کاروبار او نور دنياوي امورو ته توجه ورکړم او په هغو کي بوختيا اختيار کړم.

## دنيا په روا طريقه تر لاسه کول

﴿۴۹۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ طَلَبَ

د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي د سوال (فقر
الدُّنْيَا حَلاَلاً اِسْتِعْفَافًا عَنِ الْمَسْأَلَةِ وَسَعْيًا عَلٰى أَهْلِهِ وَتَعَطُّفًا عَلٰى جَارِهِ لَقِيَ
كولو) د ذلت څخه د ساتنې لپاره، د كورنۍ د مصرف او د همسايګانو سره د احسان كولو په
نيت په جائز طريقه سره دنيا تر لاسه كړي
اللهُ تَعَالٰى يَوْمَ الْقِيَامَةِ وَوَجْهُهُ مِثْلُ الْقَمَرِ لَيْلَةَ الْبَدْرِ وَمَنْ طَلَبَ الدُّنْيَا
نو د قيامت په ورځ به هغه د الله تعالى سره په داسي حال كي ملاقات كوي چي د هغه مخ به د
څوارلسمي شپې د سپوږمۍ په ډول ځلا كوي او څوک چي په روا طريقه سره مال جمع كړي
حَلاَلاً مُكَاثِرًا مُفَاخِرًا مُرَائِيًا لَقِيَ اللهُ تعالى وَهُوَ عَلَيْهِ غَضْبَانُ. رواه
البيهقي في شعب الإيمان وأبو نعيم في الحلية.
اوكه د فخر او ريا په نيت يې تر لاسه كړي نو هغه به د الله تعالى سره په داسي حال كي يو ځاى
كيږي چي الله تعالى به پر غضب ناک وي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ١٧\٢٩٨، وابونعيم في الحلية ٨\٢١٥.

**تشريح**: د فكر كولو او عبرت تر لاسه كولو خبره ده چي كله د زيات مال جمع كولو حرص پر يو بل باندي د فخر او نامه ښوونې لپاره د دنيا په ګټلو كي د حلالو ذرائعو او وسائلو اختيارونكي دا حشر دى نو د هغه خلكو به څه پاى وي چي مذكوره غير شرعي مقاصد په حرام وسائلو او ذرائعو سره مال او دولت تر لاسه كوي، رسول الله ﷺ په حديث كي د حرام مال ګټونكو ذكر دې ته په اشاره كولو سره نه دى فرمايلى چي دا كار د يو مسلمان هيڅ كله نسي كيداى چي اول خو هغه د مذكوره مقاصدو لپاره دنيا وګټي او بيا وسائل او ذرائع هم حرام او ناجائز اختيار كړي يا د داسي خلكو ذكر يې ددې لپاره ونه فرمايه چي د هغوئ بد انجام د حديث د انداز څخه په خپل څرګند يږي.

## د خير او شر خزاني

﴿۴۹۸۱﴾: وَعَنْ سَهْلِ بْنِ سَعْدٍ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ
د حضرت سهل بن سعد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

هَذَا الْخَيْرَ خَزَائِنُ لِتِلْكَ الْخَزَائِنِ مَفَاتِيحُ فَطُوبَى لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللهُ مِفْتَاحًا

دا خير (يعني ډير مال) خزانې دي او ددې خزانو كيلياني هم سته نو هغه بنده ته دي زيرى وي چي هغه ته الله تعالى د خير كولو او د شر بندولو كيلي جوړه كړې وي

لِلْخَيْرِ مِغْلَاقًا لِلشَّرِّ وَوَيْلٌ لِعَبْدٍ جَعَلَهُ اللهُ مِفْتَاحًا لَلشَّرِّ مِغْلَاقًا لِلْخَيْرِ.

رواه ابن ماجة.

او هغه بنده ته دي هلاكت وي چي هغه ته الله تعالى د شر خلاصولو او خير بندولو كيلي جوړه كړې ده . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱\۸۷، رقم: ۲۳۸.

**تشريح**: ذكر سوي معنى د شيخ عبدالحق محدث دهلوي رحمة الله عليه د اسعة اللمعات څخه ماخوذ ده، او ملا علي قاري رحمة الله عليه د حديث وضاحت په دې توكه كړى دى چي په هذا الخير كي جنس خير (يعني هر ډول خير) مراد دى، او د خزائن څخه مراد د خير انواع كثيره دي يعني هغه خير مختلف انواع لري او هغه د الله تعالى د بندګانو په منځ كي داسي مخزون او مركوز كړل سوي دي لكه خزانې چي پټې اېښودل كيږي، لتلك الخزائن مفاتيح: د دغه خزانو كيلياني دي چي د مځكي پر مخ باندي د كائناتو په امورو كي تصرف او تسلط لپاره د الله تعالى د وكيل او نائب حيثيت لري ، مفتاح للخير : د خير د كيلي څخه مراد د بندګانو هغه خير او نيكي اختيارول او خپرول دي كه هغه د علم او عمل اختيارول وي او كه د خپلو ا ونورو اخلاقو او احوالو د صالح كېدو په صورت كي وي يا خپل مال او روپۍ د الله تعالى په لاره كي د خرڅ كولو په صورت كي وي، او مفتاحا للشر: د شر د كيلي څخه مراد د خير لار بندول او د بدۍ لار خلاصول دي او د دغه بدۍ د لاري خلاصول كه د كفر او شرك، تكبر او سركښۍ، بدعملۍ او فتنې خپروني په ذريعه وي يا د بخل او خپل مسلمان ورور سره د بد چلن كولو په صورت كي وي .

امام راغب رحمة الله عليه وايي: خير هغه شي ته وايي چي هغه ته هر انسان شوق لري لكه علم، عقل، احسان، مهرباني او داسي نور، او همدارنګه هر هغه شي چي ګټه رسوي او كوم شى چي د خير ضد او دهغه برعكس وي هغه ته شر وايي ، خير او شر كه څه هم د يو بل ضد او مخالف دي مګر كله ناكله په دواړو كي اتحاد ذاتي او فرق اعتباري هم وي يعني يو شى په دوو

اعتبارو سره خير او شر دواړو حامل کېداى سي چي د يوه سړي په حق کي خو هغه د خير ذريعه وي او د بل چا په حق کي هغه شى د شر او بدى سبب جوړ سي د مثال په توګه مال، چي هغه د يو سړي مثلا عمر په حق کي د خير ذريعه کيږي کله چي عمر هغه په جائزه طريقه سره حاصل کړي وي او په جائز مصارفو کي يې خرڅ کړي او هغه مال د بل چا لپاره مثلا زيد په حق کي د شر سبب جوړېداى سي کله چي زيد هغه مال په ناجائزه طريقه قبضه او تصرف وکړي.

همدارنګه د علم مثال هم دى چي علم په يوه وخت کي د ځينو خلکو د نسبت څخه د الله تعالى او بنده په منځ کي حجاب جوړيږي او پر هغه خلکو باندي د عذاب الهي سبب کيږي کله چي هغه خلک د هغه علم څخه د هدايت تر لاسه کولو پر ځاى ضلالت او ګمراهي کي ولويږي او هغه علم د نورو خلکو په حق کي دالله تعالى د معرفت او قربت او د ايمان او يقين ذريعه جوړيږي کله چي هغه خلک د هغه علم څخه هدايت تر لاسه کړي او د هغه پر صحيح تقاضا باندي عمل وکړي ، پر دې باندي نور عبادات هم قياس کيداى سي چي په هغو کي ځينو عبادتونه د عجب او غرور باعث کيږي کله چي د هغو اختيارونکي د ريا او نامه لار اختيار کړي او ځينو عبادتونه د ايماني او روحاني کيف او نورانيت باعث جوړيږي کله چي د هغه اختيارونکى د اخلاص او للهيت په جذبې سره برخمن وي، دنياوي شيان د مثال په توګه آس، د جنګ سامان او همدارنګه د نورو شيانو په اړه هم دا خبره ده چي کله دغه شيان د دښمن سره د جهاد کولو ذريعه جوړيږي نو د بنده جنت ته تللو وسيله کيږي او کله چي دغه شيان د فتنې او فساد خپرولو تر دې چي د الله تعالى د ډېر نېک او غوره بندګانو (لکه اولياء او انبياء) د قتل ذريعه جوړيږي نو د دې په وجه انسان د دوږخ ژوري درجې ته رسيږي.

## د ضرورت څخه زيات سراى

﴿۴۹۸۲﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا لَمْ يُبَارَكْ لِلْعَبْدِ فِيْ مَالِهِ فَجَعَلَهُ فِي الْمَاءِ وَالطِّيْنِ. رواه البيهقي.

د حضرت علي ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر کله چي د بنده په مال کي برکت وا نه چول سي نو هغه يې په اوبو او خاورو مصرف کړي. (يعني په بې ضرورته ځايونو جوړولو) بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۷\۳۹۴، رقم: ۱۰۷۱۹.

﴿۴۹۸۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اتَّقُوا الْحَرَامَ فِي الْبُنْيَانِ فَإِنَّهُ أَسَاسُ الْخَرَابِ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ځان ددې څخه وژغورئ چي حرام مال په عمارتونو جوړولو کي مصرف کړي ځکه چي دا بېخ د خرابۍ دی. بيهقي په شعب الايمان کي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۱۷\ ۳۹۴، رقم: ۱۰۷۲۲.

**تشريح**: د ذکر سوي ارشاد څخه دا مفهوم اخيستل کېږي که چيري په عمارتونو کي حلال مال ولګول سي نو د هغه څخه څه خرابي نه پيدا کيږي او ځينو حضراتو په عمارتو کي د حرام لګولو څخه پرهيز کوئ، دا مطلب بيان کړی دی چي د هغه حرام شيانو څخه پرهيز کوئ چي د عمارتونو په جوړولو کي پېښيږي ګويا په دې اعتبار سره حرام شی د ضرورت څخه زيات عمارت جوړول دي.

په (في البنيان) کي د في لفظ هغه معنی ده چي د مثال په توګه په دغه جمله کي چي په دغه زنځير کي دوه سيره اوسپنه ده، څرګنده ده چي ددغه جملې څخه دا مراد نسي اخيستل کيدای چي هغه زنځير د دوو سيرو اوسپني لوښی دی بلکه مفهوم به دا وي چي خپله زنځير د خالص دوه سيره اوسپني دی.

د خرابۍ څخه مراد د دين خرابي او د آخرت تاوان دی مګر دا هم کيدای سي چي خپله د عمارت خرابي مراد وي يعني دعمارت جوړول ددې خرابۍ او تباهۍ بنياد اېښودل دي، په هر حال کوم عمارت چي جوړيږي هغه به په پای کي بربادېږي لکه څرنګه چي ويل کيږي: لدوا للموت و ابنوا للخراب: يعني پيدا کوه د مړکېدو لپاره او عمارت جوړوه د خرابېدو لپاره.

ځينو شارحينو دا ويلي دي چي ددغه حديث دا مطلب هم کيدای سي چي په عمارتونو کي د حرام امورو او د ګناهو کولو څخه پرهيز کوئ يعني عمارتونه ددې لپاره مه جوړوئ چي په هغه کي فسق او فجور لپاره کښېنئ او د بدو خلکو سره مجلسونه کوئ او هغه د ناجائزو کارو مرکزا و اډه جوړ کړئ، ځکه چي په کوم عمارت کي د فسق او فجور بازار ګرم وي او د بدمعاشه خلکو مجلسونه کيږي نو هغه په پای کي تباه کيږي.

ملا علي قاري رحمه الله ددغه جملې: (ځکه چي په عمارتونو کي حرام مال لګول... الخ) په

اړه دوه احتماله بیان کړي دي یو دا چي دغه حدیث پر دې دلالت کوي چي د ضرورت څخه زیات حلال مال لګول جائز دي او دوهم احتمال دادی چي حدیث پر ذکر سوي جواز باندي دلالت نه کوي هغوئ لیکلي دي چي دغه دوهم احتمال د باب سره زیات مناسبت لري.

## دنیا د چا ده

﴿۴۹۸۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ عن رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال الدُّنْيَا دَارُ مَنْ لَا دَارَ لَهُ وَمَالُ مَنْ لَا مَالَ لَهُ وَلَهَا يَجْمَعُ مَنْ لَا عَقْلَ لَهُ. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت عایشې (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دنیا د هغه چا کور دی چي د هغه (په آخرت کي) کور نه وي، او مال د هغه چا دی چي د هغه (په آخرت کي) مال نه وي او مال هغه څوک جمع کوي چي په هغه کي عقل نه وي. احمد او بیهقي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۷۱\۱۶، رقم: ۱۰۶۳۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي دغه دنیا فاني ده ځکه په دې کي تم کېدل او د خوشحالۍ ژوند اختیارول ممکن نه دي نو کوم څوک چي دنیا خپل کور وګڼي او ددغه ځای ارام او راحت د ژوند اصل خوشحالي وګڼي نو هغه داسي سړی دی چي ایا د هغه لپاره بل کور نسته، همدارنګه د (او مال دهغه سړی دی) ددې مطلب دادی چي کوم چا ته د دنیا. مال او اسباب حاصل وي او هغه د هغه مقصد اصلي یعني د خیر کارونه او د الله تعالی در ضا په امورو کي خرڅ نه کړي بلکه د دنیا په خوندونو او دنفساني خواهشاتو په پوره کول کي يې مصرف کړي نو د هغه هغه مال د مالیت د حکم څخه خارج دی ځکه چي هغه د خپل مال د اصلي مقصد څخه په انحراف کولو سره او هغه په غیر مقصود کي په خرڅ کولو سره ضائع کړ نو هغه د هغه سړي په ډول سو چي د هغه سره مال نه وي.

د مشکوة په ځینو حاشیو کي دا لیکلي دي چي ددغه ارشاد څخه مراد دادی چي د دنیا کور او د دنیا مال دهر ژر فنا کېدونکی شی دی او د هغه هیڅ وقعت او حیثیت نسته ځکه هغه ته کور او مال ویل نه دي پکار، دا مراد هم د حقیقت په اعتبار د لومړي وضاحت څخه ماخوذ دی.

د حدیث یو مراد دا هم بیانیږي چي کوم څوک د دنیا کور خپل اصلي کور وګرځوي او په هغه مطمئن سي یا دا چي په دې ګمان سره دنیاوي مال او دولت جمع کړي چي زما سره څه دي

هغه تول باقي پاته کېدونکي او تل قائم پاته کېدونکي دي لکه څرنګه چي ارشاد رباني دی :
(ان الذين لا يرجون لقائنا ورضوا بالحيوة الدنيا واطمانوا بها) او په بل ځای کي فرمايي :
(يحسب ان ماله اخلده) نو هغه سړی به په اخرت کي په نعمتونو سره د نازولو مستحق نه وي.

مال او شتمني هغه څوک جمع کوي...الخ: مطلب دادی چي کوم څوک مال او شتمني ددې لپاره جمع کوي چي هغه ته دنيا عزيزه وي يا د هغه مال او دولت تل ساتلو نيت لري يا محض دنياوي لذت يا ددنياوي ګټو تر لاسه کول لپاره وي نو هغه سړی د عقل او پوهي حامل نسي ګرځول کيدای.

ملا علي قاري رحمة الله عليه ليکلي دي د حديث اجمالي مفهوم دادی چي دغه دنيا ددې وړ نه ده چي دا کور وګڼل سي هلته چي کوم سړی په آخرت کي د تر لاسه کېدونکي کور څخه محروم کېدل غواړي نو هغه دي دغه دنيا ددې وړ وګڼي همدارنګه ددغه دنيا دولت هغه سړي دولت ګڼي چي د آخرت دولت څخه محروم کېدل غواړي او خلاصه دا چي ددغه ارشاد مقصد دا احساس ورکول دي چي د کومو خلکو لپاره په آخرت کي دار القرار او دهغه ځای بې پايه دولت مقرر دی د هغوئ په نظر کي دغه دنيا دومره حقيره او بې حيثيته ده چي ددغه کور او مال او دولت ته کور او مال نسي ويل کيدای.

## شراب د ټولو ګناهو ټولګه ده

﴿۴۹۸۵﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه په خطبه کي اوريدلي دي چي

فِيْ خُطْبَتِهِ اَلْخَمْرُ جِمَاعُ الْإِثْمِ وَالنِّسَاءُ حَبَائِلُ الشَّيْطَانِ وَحُبُّ الدُّنْيَا رَأْسُ

شراب چينبل د ګناهونو ټولګه ده او ښځي د شيطان جال دي او د دنيا مينه د هري ګناه سر دی،

كُلِّ خَطِيْئَةٍ قَالَ وَسَمِعْتُهُ يَقُوْلُ أَخِّرُوْا النِّسَاءَ حَيْثُ أَخَّرَهُنَّ اللهُ. رواه رزين. و روى البيهقي منه في شعب الإيمان عن الحسن مرسلا :حب الدنيا رأس كل خطيئة.

د حضرت حذيفه بيان دی چي ما د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه دا هم اوريدلي دي چي ښځي شا ته کړئ

لكه څرنګه چي الله تعالی هغوئ شا ته كړي دي(يعني په قرآن كريم كي د هغوئ ذكر د خلكو وروسته راغلی دی) . رزين، او بيهقي په شعب الايمان كي د حضرت حسن څخه مرسلا روايت كړی دی چي د دنيا مينه د ټولو ګناهونو ريښه ده .

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: طبراني د حضرت ابن عباس ﷺ څخه مرفوعا نقل كړي دي چي : (الخمر الفواحش واكبر الكبائر من شربها وقع علی امه وخالته وعمته) رسول الله ﷺ وفرمايل: شراب د بې حيايي ريښه ده او په لويو ګناهو كي يوه لويه ګناه ده كوم څوک چي شراب څښښي نو هغه ګويا د خپل مور، خپل خاله او خپلي عمه سره بدكاري وكړه .

ويل كيږي چي يو سړي ته د بت په مخكي كي د سجدې كولو لپاره وويل سول نو هغه انكار وكړ ، بيا هغه ته د يو سړي د قتل لپاره وويل سول نو هغه ددې څخه هم انكار وكړ ، بيا د يوې ښځي سره د زنا كولو لپاره ورته وويل سول نو هغه ددې څخه هم انكار وكړ ، بيا چي هغه ته د شراب څښلو لپاره وويل سول نو هغه شراب وڅښل نو هغه سړي ګويا شراب ونه څښل بلكه هغه ټولي بدۍ يې وكړې كومو ته چي بلل سوی وو او ده انكار ځيني كړی وو .

د دنيا مينه د هري ګناه بنياد دی: مطلب دادی چي د دنيا مينه انسان په ډول ډول خرابيو كي اخته كوي او هغه يې په منع شيانو او ګناهو اخته كوي، ددغه جملې مفهوم مخالف دادی چي ترک دنيا د هر عبادت سر دی يعني كوم څوک چي دنياوي لذات او نفساني خواهشاتو څخه بې تعلقه سي نو هغه په عبادت او طاعت كي بوخت سي او هر وخت د الله رضا مخته لري ، ځينو حضراتو ويلي دي كوم څوک چي ددنيا مينه اختيار كړي نو هغه ټول مرشدين او مصلحين پر سېده لار باندي نسي راوستلای او كوم څوک چي ترک دنيا خوښ كړي هغه د ټول دنيا مفسد او ګمراه خلک د سيده لاري څخه نسي اړولای .

طيبي رحمه الله ويلي دي: د حديث درې سره جملې ډيري جامع دي يعني د هغه په دائره كي اكثره ګناهونه راځي ځكه چي په دغه درو شيانو (يعني شراب، ښځه او ددنيا مينه) كي هر يو د ګناهو بنياد دی .

## د ډيري دوه شيان

﴿۲۹۸۶﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ أَخْوَفَ مَا

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دوه شيان دي چي د هغو زه پر

أَتَخَوَّفُ عَلٰى أُمَّتِيَ الْهَوٰى وَطُوْلُ الْأَمَلِ فَأَمَّا الْهَوٰى فَيَصُدُّ عَنِ الْحَقِّ وَأَمَّا

خپل امت زیاته بیره کوم: یو د نفس غوښتنه، او دویم د عمر د اوږدوالي آرزو، د نفس غوښتنه یې د حق خبرې کولو څخه منع کوي او

طُوْلُ الْأَمَلِ فَيُنْسِي الْآخِرَةَ وَهٰذِهِ الدُّنْيَا مُرْتَحِلَةٌ ذَاهِبَةٌ وَهٰذِهِ الْآخِرَةُ

د عمر د اوږدوالي آرزو آخرت څیني هیروي، دا دنیا کوچ کونکې او تلونکې ده او آخرت یې

مُرْتَحِلَةٌ قَادِمَةٌ وَلِكُلِّ وَاحِدَةٍ مِّنْهُمَا بَنُوْنَ فَإِنِ اسْتَطَعْتُمْ أَنْ لَّا تَكُوْنُوْا مِنْ

مخته راتلونکی دئ او په دې کې د هر یوه زامن دي که تاسو کولای سئ نو تاسو

بَنِي الدُّنْيَا فَافْعَلُوْا فَإِنَّكُمُ الْيَوْمَ فِيْ دَارِ الْعَمَلِ وَلَا حِسَابَ وَأَنْتُمْ غَدًا فِيْ دَارِ

الْآخِرَةِ وَلَا عَمَلَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

ددنيا زامن مه جوړیږئ، داسي وکړئ چي نن تاسو دارالعمل کي یاست او په دنیا کي د عمل حساب نه سي اخیستل کیدلای مګر سبا به تاسو د آخرت په کور کي یاست هلته به عمل نه وي او حساب به وي، . بیهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷\ ۳۷۰، رقم: ۱۰۶۱۶.

**تشريح**: دنیا په کوچ کولو سره تلونکې ده، مطلب دادی چي دغه دنیا د خپل ټول سامان سره داسي فناء ته روانه ده چي په دې کي اوسېدونکو ته دا احساس هم نه کیږي لکه څرنګه چي په کښتۍ کي ناست سړی د کښتۍ چلېدل نه محسوسوي د حدیث دغه جمله او مابعد جمله په اصل کي د دنیا ډېر ژر تېرېدونکي او فنا کېدو مفهوم څرګندوي ځکه که چیري آخرت پر خپل ځای قائم وي او یوازي دنیا خپل سفر په جاري ساتلو سره هغې خوا ته ځي نو هم به دا پوره تېره سوې وي او خپل عمر به یې تمام کړی وي که څه هم د هغه سفر ته څه وقفه نوره تر لاسه سوې وي مګر کله چي صورت حال دادی چي یوې خوا ته آخرت را روان دی بلې خوا ته دنیا ور روانه ده نو ګویا هغه نقطه چیري چي ددنیا اختتام او د آخرت ابتداء کېدونکې د لاري په منځ کي به واقع سي او فاصله به ډېر ژر ختمه سي.

چیري چي د عمل حساب نه اخیستل کیږي: دا خبره د ظاهر په اعتبار او د فاسق او فاجر په

نسبت فرمایل سوې ده ، په یوه روایت کې دا فرمایل سوي دي چې (حاسبوا انفسکم قبل ان تحاسبوا) یعني د خپلو ځانو سره محاسبه وکړئ مخکې تر دې چې ستاسو څخه حساب واخیستل سي .

**دنیا د عمل لپاره ده**

﴿۴۹۸۷﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ ارْتَحَلَتْ الدُّنْيَا مُدْبِرَةً وَارْتَحَلَتْ الْآخِرَةُ مُقْبِلَةً

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دئ چې دنیا دېخوا شا کړې کوچ کونکې ده او آخرت دې خوا

وَلِكُلٍّ وَاحِدَةٍ مِنْهُمَا بَنُونَ فَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ

مخ کړې را روان دئ ، او په دوئ کې د هر یوه زامن دي تاسو د آخرت زامن جوړ سئ د دنیا زامن

الدُّنْيَا فَإِنَّ الْيَوْمَ عَمَلٌ وَلَا حِسَابَ وَغَدًا حِسَابٌ وَلَا عَمَلٌ. رواه البخاري في ترجمة باب.

مه جوړېږئ ځکه چې نن د عمل ورځ ده او حساب نه سته او سبا د حساب ورځ ده عمل به نه وي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۵.

**تشريح**: د ترجمة الباب څخه مراد د جامع بخاري د یو باب عنوان دی یعني امام بخاري رحمه الله دا روایت د خپل کتاب د یو باب په عنوان کې بېله اسناده د حضرت علي رضي الله عنه څخه موقوفا نقل کړی دی مګر د دې څخه مخکې د حضرت جابر رضي الله عنه کوم روایت چې نقل سوی دی د هغه څخه ثابتیږي چې حضرت علي رضي الله عنه د دغه روایت اصل مرفوع دی یعني دا د رسول الله صلی الله علیه وسلم ارشاد دی ځکه چې حضرت علي رضي الله عنه کوم مضمون نقل کړی دی هغه دادی کوم چې د حضرت جابر رضي الله عنه په روایت کې نقل سوی دی .

**دنیا بې دوامه مال دی**

﴿۴۹۸۸﴾: وَعَنْ عَمْرٍو أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطَبَ يَوْمًا فَقَالَ فِي

د حضرت عمرو رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله صلی الله علیه وسلم یوه ورځ په خطبه کې وفرمایل :

خُطْبَتِهِ أَلَا إِنَّ الدُّنْيَا عَرَضٌ حَاضِرٌ يَأْكُلُ مِنْهُ الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ أَلَا وَإِنَّ الْآخِرَةَ

خبردار! دنیا یو فاني سرمایه ده، ددې څخه نیک هم خوراک کوي او بد هم، او آخرت یو

أَجَلٌ صَادِقٌ وَيَقْضِي فِيهَا مَلِكٌ قَادِرٌ أَلاَ وَإِنَّ الْخَيْرَ كُلُّهُ بِحَذَافِيْرِهِ فِي الْجَنَّةِ

رینښتونې وعده ده چې په هغه کې به هر ډول قدرت لرونکی پاچا حکم او فیصله کوي، خبردار! ټولې نیکۍ په خپلو انواعو او اقسامو سره په جنت کې دي،

أَلاَ وَإِنَّ الشَّرَّ كُلُّهُ بِحَذَافِيْرِهِ فِي النَّارِ أَلاَ فَاعْمَلُوا وَأَنْتُمْ مِنَ اللهِ عَلَى حَذَرٍ

خبردار! ټول شرونه په خپلو انواعو او اقسامو سره په دوږخ کې دي نو تاسو نیک عمل کوئ او دالله جل جلاله څخه بیرېږئ

وَّاعْلَمُوا أَنَّكُمْ مَّعْرُوضُونَ عَلَى أَعْمَالِكُمْ فَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ خَيْرًا يَّرَهُ

وَمَنْ يَّعْمَلْ مِثْقَالَ ذَرَّةٍ شَرًّا يَّرَهُ. رواه الشافعي.

او دا خبره یاد ساتئ چې تاسو به په خپلو اعمالو سره د الله جل جلاله په مخ کې وړاندې کیږئ نو څوک چې د زرې برابر نیک کار وکړي د هغه جزا به تر لاسه کړي او څوک چې د ذرې برابر بد کار وکړي د هغه سزا به ویني. شافعي.

**تخریج**: ترتیب مسند الامام الشافعي ۱۱ / ۱۴۸، رقم: ۴۲۹.

**تشریح**: انکم معرضون علی اعمالکم: ددغه جملې معنی که چیرې دا وکړل سي چې تاسو به دخپلو اعمالو مخکې وړاندې کړل سئ نو ددغه عبارت به سرچپه معنی مراد سي چې (د قیامت په ورځ به) ستاسو اعمال ستاسو مخکې حاضر کړل سي، یوه معنی دا هم کیدای سي چې تاسو به د الله تعالی په دربار کې د خپلو اعمالو سره د الله تعالی په مخکې وړاندې کړل سئ او دخپلو هغه اعمالو مطابق جزاء یا سزا به تر لاسه کړئ لکه څرنګه چې یو لښکر د جنګ د میدان څخه راستنیږي نو هغه د خپل فرائضو د سرته رسوني سره د خپل امیر په مخکې وړاندې کیږي او هغه امیر د هغه لښکر د هر کس سپارل سوی کار ته ګوري او د هغه مطابق هر یوه ته انعام او سزا ورکوي.

﴿۴۹۸۹﴾: وَعَنْ شَدَّادٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ يَا

د شداد رضي الله عنه څخه روایت دئ چې ما د رسول الله صلی الله علیه وسلم څخه اوریدلي دي چې وه یې فرمایل: اې

أَيُّهَا النَّاسُ إِنَّ الدُّنْيَا عَرَضٌ حَاضِرٌ يَأْكُلُ مِنْهَا الْبَرُّ وَالْفَاجِرُ وَإِنَّ الْآخِرَةَ

خلكو ! دنيا يو غير قائم سامان دئ چي د هغې څخه نيک او بد دواړه خوراک کوي ، او آخرت

وَعْدٌ صَادِقٌ يَحْكُمُ فِيهَا مَلِكٌ عَادِلٌ قَادِرٌ يُحِقُّ فِيهَا الْحَقَّ وَيُبْطِلُ الْبَاطِلَ

يو رېښتونى وعده ده چي په هغه کي به عادل او قادر پاچا حکم او پريکړه کوي (په خپل حکم او فيصله سره) حق ثابت کړي او باطل به ختم کړي ،

كُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الْآخِرَةِ وَلَا تَكُونُوا مِنْ أَبْنَاءِ الدُّنْيَا فَإِنَّ كُلَّ أُمٍّ يَتْبَعُهَا

وَلَدُهَا. رواه ابونعيم.

تاسو د آخرت لپاره عمل کونکى جوړ سئ او د دنيا زامن مه جوړيږئ ځکه چي د هر مور اولاد هغې تابع وي . ابونعيم .

**تخريج**: ابونعيم في الحلية ۲۲٦/۱.

**تشريح**: د حديث د آخري جملې مطلب دادى که چيري تاسو د دنيا زامن جوړ سئ يعني د دنيا غوښتونکي او د دنيا په مينه کي بوخت سئ نو دوږخ ته به ځئ ځکه چي د باطل ځاى دوږخ دى او که چيري تاسو د آخرت زامن جوړ سئ نو جنت ته به ځئ ځکه چي د آخرت حق ځاى جنت دى ، دا د ملا علي قاري رحمه الله د منقولاتو مفهوم دى ، شيخ عبدالحق رحمه الله د حديث په پاى کي دا ليکلي دي چي سړى د آخرت زوى دى هغه د اخرت اتباع کوي او د هغه مطابق عمل کوي او کوم څوک چي د دنيا زوى وي هغه د دنيا پيروي کوي او د هغه لپاره کار کوي .

## لږ مال ښه دى تر ډېر

﴿۴۹۹۰﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا طَلَعَتِ

د حضرت ابو درداء رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : کوم وخت چي لمر راخيژي

الشَّمْسُ إِلَّا وَبِجَنْبَتَيْهَا مَلَكَانِ يُنَادِيَانِ يُسْمِعَانِ الْخَلَائِقَ غَيْرَ الثَّقَلَيْنِ يَا

نو د هغه دواړو خواوو ته دوې ملائکي وي چي اعلان کوي او مخلوقاتو ته يې اوروي ، د هغوئ آواز ټول اوري مګر پيريان او انسانان يې نه اوري ، هغوئ دا اعلان کوي چي اې

أَيُّهَا النَّاسُ هَلُمُّوا إِلَى رَبِّكُمْ مَا قَلَّ وَكَفَىٰ خَيْرٌ مِمَّا كَثُرَ وَأَلْهَىٰ. رواهما أبو نعيم في الحلية.

خلکو! د خپل پروردګار د حکم په لوري رجوع وکړئ او په دې خبره پوه سئ چي کوم مال کم وي او کافي وي هغه د هغه مال څخه غوره دی چي زيات وي او سړی په لهو او لعب کي اچوي، (يعني د الله ﷻ د عبادت څخه يې منع کوي). ابونعيم په حليه کي.

**تخريج**: ابونعيم في الحلية ۲۲٦/۱.

**تشريح**: د ملائکو ذکر سوی اعلان د پيريانو او انسانانو نه اورېدل، کېدای سي په دې وجه وي چي هغه فريضه د غيب پر خبرو ايمان راوړلو او عمل کولو لپاره جن او انس باندي عائد کړل سوې ده ، داسي چي بې اثره نسي مګر دلته دا سوال پيدا کيدای سي چي دغه اعلان او ددې مضمون په اصل کي د انسان خبردار کولو لپاره دی او کله چي يې هغه نه اوري نو هغه به څرنګه خبردار سي؟ ددې مختصر جواب دادی چي ددغه خبرداري انحصار محض د خپلو غوږو سره نه دی بلکه پر دې هم دی چي هغه په خبرداري سره باخبر او مطلع سي ،

نو دا خبره دمخبر صادق رسول الله ﷺ خبر ورکولو او ددې خبرداري مضمون بيانولو سره حاصليږي نو ذکر سوی مضمون کله چي ددغه حديث په ذريعه انسان ته ورسېدی نو هغه ددې څخه حقيقتا باخبر او مطلع سو، پاته سوه دا خبره چي په دغه خبرداري کي يوازي انسان ولي مخاطب کړل سو؟ جناتو ته خطاب ولي ور نه کړل سو، نو ددې وجه داده چي په دغه دواړو نوعو کي د مال او دولت زيات حريص او د عقبی څخه ډېر غافل دا يوازي انسان دی چي په دنيا پسي خپل خالق هيروي او د دنيا مال هغه د ذکر او عبادت الهي څخه منع کوي، نو انسان په خاصه توګه مخاطب کولو سره ويل سوی دی چي د عقبی انجام ته ستاسو دغه غفلت او بې پرواهي او د ذکر الله څخه ستاسو د دغه اعراض کولو لړۍ به تر کومه جاري وي ، دخپل اخروي تباهۍ دغه لار پرېږدئ او راځئ د عبادت الهي په ذريعه دغه سيده لار خپله کړئ چي تاسو د آخرت ښه انجام ته ورسوي .

### د خلکو حرص

﴿۴۹۹۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ يَبْلُغُ بِهِ قَالَ إِذَا مَاتَ الْمَيِّتُ قَالَتِ الْمَلَائِكَةُ مَا قَدَّمَ وَقَالَ بَنُو آدَمَ مَا خَلَّفَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ او هغه دا حديث نبي کريم ﷺ ته رسوي چي کله يو څوک مړ کيږي نو ملائکي پوښتنه کوي چي د آخرت لپاره يې څه وليږل او خلک دا وايي چي هغه څه پريښودل . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷ / ۳۲۸، رقم: ۱۰۴۷۵.

## اخرت نژدې دی

﴿۴۹۹۲﴾: وَعَنْ مَالِكٍ أَنَّ لُقْمَانَ قَالَ لِابْنِهِ يَا بُنَيَّ إِنَّ النَّاسَ قَدْ تَطَاوَلَ

د حضرت مالک رضي الله عنه څخه روايت دئ چي لقمان خپل زوی ته وويل (اې) زويه ! د کوم شي

عَلَيْهِمْ مَّا يُوْعَدُوْنَ وَهُمْ إِلَى الْآخِرَةِ سِرَاعًا يَّذْهَبُوْنَ وَإِنَّكَ قَدِاسْتَدْبَرْتَ

وعده چي د خلکو سره سوې ده (يعني د بيا ژوندي کېدو او حساب ،کتاب ، ثواب، عذاب وغيره..) پر هغه ډير وخت تير سوی دئ ، حال دا چي خلک په تيزي سره د آخرت په لور روان دي ،او اې زويه ! د کومي ورځي څخه چي ته پيدا سوی يې د دنيا تر شا پرېښودونکی يې او د

الدُّنْيَا مُنْذُ كُنْتَ وَاسْتَقْبَلْتَ الْآخِرَةَ وَإِنَّ دَارًا تَسِيْرُ إِلَيْهَا أَقْرَبُ إِلَيْكَ مِنْ دَارٍ تَخْرُجُ مِنْهَا. رواه رزين.

آخرت په لور په تيزي سره تلونکی يې او هغه کور چي د هغه په لور روان يې تا ته د هغه کور څخه زيات نژدې دی د کوم څخه چي روان يې . رزين . (لقمان حکيم د داؤد عليه السلام په زمانه کي وو دی په اصل کي حبشي مريی وو الله جل جلاله حکمت ورکړی وو يعني په عقل سره به يې داسي خبري کولې چي د پيغمبرانو د حکم سره به برابري وې) .

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: دغه وخت پر هغوئ اوږد سو: مطلب دادی چي د قيامت راتلو ، د اخرت چارو او د هغه جهان د ژوند په اړه چي کوم خبر ورکړل سوی دی او د هغه چي کومه وعده سوې ده پر هغه يو اوږد وخت تېر سوی دی ځکه خلک دا خيال کوي چي په وعده پوره کولو کي زنډ سوی دی حال دا چي تاخير هيڅ نه دی سوی بلکه د دنيا سفر جاري دی او خلک هر ساعت بلکه هره لحظه هغه يوم موعود او آخرت ته مخکي کيږي چي د هغه خبر هغوئ ته ورکړل سوی دی لکه څرنګه

چي د کبنتيو کاروان خپل منزل ته پر مخ روان وي او په ډکو کبنتيو کي ناست خلک د لاري د تيرېدو احساس نه کوي ، دا خبره ددغه جملې (او کوم وخت چي ته پيدا سوی وې ...الخ) په ذريعه بيان سوې ده ، په دغه جمله کي که څه هم په خاصه توګه و حاضر مجلس ته خطاب سوی دی مګر په حقيقت کي ددې څخه مراد عام خطاب دی چي ددې خبري مخاطب هر انسان دی.

د روايت د آخري جملې څخه دا خبره ثابته سوه چي کله يو سړی د يو ځای په پرېښودو سره ځي نو د هغه هر قدم د هغه ځای څخه ليري کيږي او کوم ځای ته چي د هغه مخ وي هغه ته نژدې کيږي نو کوم انسان چي ددغه دنيا څخه ځي هغه د خپل زېږېدني د ورځي څخه آخرت ته خپل سفر شروع کوي او د دنيا په شا ته پرېښودو سره ځي همدا رنګه ګويا هغه هره ورځ او هره لحظه د يو داسي مسافت په منځ کي دی چي هغه يې قطع کوي او هغه ته نژدې کيږي تر دې چي يوه ورځ به داسي راسي کله چي هغه مسافت پوره سي او هغه چي کومي خوا ته روان دی هلته به ورسيږي ، څرګنده دي وي چي د حضرت لقمان حکيم رحمه الله ددغه نصيحت مقصد د هغه غفلت پرده شکول دي چي هغه د امور اخرت څخه انسان بې پرواه کړی دی .

## غوره انسان څوک دی

﴿۴۹۹۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قِيلَ لِرَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وسول چي

أَيُّ النَّاسِ أَفْضَلُ قَالَ كُلُّ مَخْمُومِ الْقَلْبِ صَدُوقِ اللِّسَانِ قَالُوا صَدُوقُ

څوک غوره دی ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل : صاف زړه والا او رېښتوني ژبي والا ، صحابه کرامو وويل:

اللِّسَانِ نَعْرِفُهُ فَمَا مَخْمُومُ الْقَلْبِ قَالَ هو النقي التقي لَا إِثْمَ عليه وَلَا بَغْيَ وَلَا غِلَّ وَلَا حَسَدَ. رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان.

د ژبي رېښتنوالی خو موږ پېژنو ، د مخموم زړه څخه څه مراد دئ ؟ رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : مخموم زړه هغه دئ چي پاک وي ، پرهيزګاره وي هيڅ ګناه پکښي نه وي ، ظلم يې نه وي کړی د حد څخه نه وي تير سوی او حسد پکښي نه وي . ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۴۰۹، رقم: ۴۲۱۶، والبيهقي في شعب الايمان ۵\۲۶۴، رقم: ۶۶۰۴.

**تشریح:** د مخموم لفظ د خم څخه مشتق دی او معنی یې د څنډلو ، د کچرو او ګندګۍ او نورو شیانو څخه مځکه او ځاه پاکول دي، نو د مخموم څخه مراد هغه سړی دی چي د هغه زړه د غیر الله د ګرد څخه پاک وي او خراب اخلاقو او فاسد افکارو څخه پاک وي چي هغه ته سلیم القلب ویل کیږي او دهغه تعریف الله تعالی په دغه الفاظو کي فرمایلی دی : (الا من اتی الله بلقب سلیم) دغه مراد رسول الله ﷺ د لفظ نقي په ذریعه څرګند کړ نو د نقي معنی ده هغه څوک چي د هغه زړه او باطن د غیر الله دمیني څخه پاک وي او د تقي معنی ده د فاسد، پالتو افکارو او خیالاتو څخه ځان ساتونکی .

صحابه کرامو چي د رسول الله ﷺ څخه د مخموم القلب معنی و پوښتل نو د هغه یوه وجه دا کیدای سي چي هغه وخت د پوښتنه کونکو صحابه کرامو په ذهن کي دلفظ مخموم لغوي معنی محفوظ نه وي ځکه چي رسول الله ﷺ به کله نا کله داسي نادر الفاظ فرمایل چي صحابه کرامو به په عربي ژبه د پوره واک لرلو او فصاحت او بلاغت سره د اشنا کېدو سربېره د هغوئ فهم ددغه الفاظو معنی ته نسو رسیدلای ، نو د رسول الله ﷺ څخه به یې د داسي الفاظو په باره کي پوښتنه کول، یا دا چي صحابه کرام د مخموم لفظ په معنی پوهېدل مګر قلب ته ددغه لفظ اضافت او د هغه مراد ورته معلوم نه وو، نو هغوئ پوښتنه وکړه او رسول الله ﷺ وضاحت وفرمایه دغه احتمال زیات صحیح معلومیږي .

## څلور کتوري خبري

﴿۴۹۹۴﴾: وَعَنْهُ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَرْبَعٌ إِذَا كُنَّ فِيكَ فلا عليك مَا فَاتَكَ الدُّنْيَا حِفْظُ أَمَانَةٍ وَصِدْقُ حَدِيثٍ وَحُسْنُ خَلِيقَةٍ وَعِفَّةٌ فِي طعمة. رواه احمد والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : څلور خبري دي کله چي په تا کي پیدا سي نو ددنیا د فوت کیدو پر تا هیڅ غم نسته : د امانت ساتنه کول، ریښتوني خبره کول، ښه اخلاق او په خوراک کي احتیاط او پرهیزګاري . احمد او بیهقي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۱۷۷، رقم: ۶۶۵۲.

**تشریح**: مطلب دادی چي د کوم چا ژوند ددغه څلورو شیانو څخه معمور سي نو ګویا هغه د اخروي نعمتونو ښېګڼو سره دنیوي د هغه نفس د روحاني عروج او کمال درجه تر لاسه کړه د هغه قلب

او باطن منور سو، او د ثواب آخرت او جنت د لازواله نعمتونو ذريعه هغه ته تر لاسه سوه، نو په دغه صورت کي که چيري هغه د دنيا د ټولو نعمتونو او ټولو مادي خواهشاتو او لذتو څخه محروم سي نو هغه ته هيڅ افسوس او غم کېدل نه دي پکار بلکه هغه ته پر دغه محرومي باندي يو ډول اطمينان کېدل پکار دي، که دنياوي نعمتونه او لذتونه ورته حاصل وي نو د هغه په وجه ديني معمولات او عباداتو او طاعاتو کي جمعيت او حضور قلب به د خلل او وحشت ښکار سوی وای او روحاني لطافت او نورانيت جمال به يې په مادي کثافت او ظلمت سره په ګرد سوی وای.

## د رښتيا ويلو او امانت فائده

﴿۴۹۹۵﴾: وَعَنْ مَالِكٍ قَالَ بَلَغَنِيْ أَنَّهُ قِيْلَ لِلُقْمَانَ الْحَكِيْمِ مَا بَلَغَ بِكَ مَانَرٰى يَعْنِيْ الْفَضْلَ قَالَ صِدْقُ الْحَدِيْثِ وَأَدَاءُ الْأَمَانَةِ وَتَرْكُ مَا لَا يَعْنِيْنِيْ. رواه في الموطأ

د حضرت مالک رحمه الله څخه روايت دئ چي ما ته معلومه سوې ده چي د حضرت لقمان حکيم څخه دا پوښتنه وسول چي په کومه مرتبه مورږ تا وينو هغه کوم شي ته دې ځای ته ورسولې؟ حضرت لقمان ورته وويل: د ژبي رښتنوالی او امانت ادا کولو او د بې ګټې شی پرېښودلو، مؤطا.

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۹۹۰، رقم: ۱۷.

**تشريح**: د دغه روايت څخه دا حقيقت څرګنديږي چي اصل حکمت او هوښياري رښتيا ويل او نېک چلن دی، د انساني ژوند دغه دوه ستر شيان دي چي د هغه په اختيارولو سره لقمان حکيم رحمة الله عليه خپلي عظيمي مرتبې ته رسيدلی وو.

## حضرت لقمان حکيم رحمة الله عليه څوک وو؟

لقمان حکيم رحمة الله عليه چي د هغه حکمت او هوښياري نن هم ضرب المثل دی او د هغه نوم د علم او پوهي په توګه اخيستل کيږي چي د هغه څخه د دنيا لوی لوی حاکمان، لوی لوی فلاسفه فيضان تر لاسه کوي، نوموړی د مشهور پيغمبر حضرت ايوب عليه السلام خُريی وو او ځينو حضراتو د حضرت ايوب عليه السلام د خاله زوی ورته ويلي دي، د علماؤ په دې اړه اختلاف دی چي هغه خپله پيغمبر وو که يا، مګر دا خبره په اتفاق سره منل سوې ده چي هغه يو عظيم حکيم وو او د ولايت پر درجه فائز وو، منقول دي چي نوموړی د زرو پيغمبرانو په خدمت کي حاضري اختيار کړې ده او د هغوئ په مخکي يې د شاګردۍ شرف حاصل کړی وو، غالبا د هغه د دغه بې مثاله حکمت او پوهي يو لوی راز دا هم دی چي هغه ته د دومره زياتو پيغمبران د فيض تر لاسه کولو موقع په

برخه سوه، د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه دغه روايت نقل سوى دى چي لقمان نه پيغمبر وو او نه پاچا وو بلكه يو تور رنګه غلام وو او پسونه يې پېول چي الله تعالى په خپل دربار كي مقبول وګرځوى او په حكمت او پوهي يې ونازوى او په خپل كتاب (قرآن كريم) كي يې د هغه ذكر وفرمايه.

## د قيامت په ورځ

﴿۴۹۹۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَجِيْءُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اعمال به الله جل جلاله ته

الْأَعْمَالُ فَتَجِيْءُ الصَّلَاةُ فَتَقُوْلُ يَا رَبِّ اَنَا الصَّلَاةُ فَيَقُوْلُ إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ

حاضر كړل سي، لمونځ به وړاندي راسي او وايي به اې الله! زه لمونځ يم، الله تعالى به ورته فرمايي ته په خير يې،

فَتَجِيْءُ الصَّدَقَةُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ اَنَا الصَّدَقَةُ فَيَقُوْلُ إِنَّكِ عَلَى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيْءُ

بيا به صدقه راسي او عرض به وكړي اې الله زه صدقه يم، الله تعالى به ورته فرمايي ته په خير يې، بيا به راسي

الصِّيَامُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ اَنَا الصِّيَامُ فَيَقُوْلُ إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيْءُ الْأَعْمَالُ

روژه او وايي به اې الله جل جلاله! زه روژه يم، الله تعالى به ورته فرمايي ته په خير يې، بيا به نور

عَلَى ذٰلِكَ يَقُوْلُ اللّٰهُ تعالى إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ ثُمَّ يَجِيْءُ الْإِسْلَامُ فَيَقُوْلُ يَا رَبِّ

اعمال راسي او داسي خپل تعريف به وكړي او الله تعالى به ورته په جواب كي فرمايي تاسو په خير ياست، بيا به اسلام راسي او وايي به اې الله جل جلاله!

أَنْتَ السَّلَامُ وَاَنَا الْإِسْلَامُ فَيَقُوْلُ اللّٰهُ تعالى إِنَّكَ عَلَى خَيْرٍ بِكَ الْيَوْمَ آخُذُ

ته سلام يې او زه اسلام يم، الله تعالى به ورته فرمايي ته په خير يې، ستا په وجه به نن زه پوښتنه كوم

وَبِكَ أُعْطِي قَالَ اللّٰهُ تعالى فِي كِتَابِهِ وَمَنْ يَبْتَغِ غَيْرَ الْإِسْلَامِ دِيْنًا فَلَنْ يُقْبَلَ

مِنْهُ وَهُوَ فِي الْآخِرَةِ مِنَ الْخَاسِرِينَ. رواه احمد.

او ستا په وجه به ورکوم (ثواب او عذاب)، الله پاک خپل په کتاب کي فرمايي: (ومن يبتغ غير الاسلام....) څوک چي د اسلام څخه پرته بل دين اختيار کړي نو هغه دين به هيڅکله څيني قبول نه کړل سي او په آخرت کي به د تاوانيانو څخه وي. احمد.

**تخريج:** مسند الامام احمد ۲/۳۶۲.

**تشريح:** (تجئ الاعمال) مطلب دادی چي د قيامت په ورځ به نېک اعمال الله ﷻ ته وړاندي کړل سي او په دنيا کي چي کومو خلکو هغه اعمال اختيار کړي وي د هغوئ په حق کي به شاهدي ورکوي او دهغوئ شفاعت به کوي او کومو خلکو چي هغه اعمال ترک کړي وي د هغوئ خلاف به شکايت کوي، پاته سوه دا خبره چي د هغوئ د اعمالو د وړاندي کېدو به څه صورت وي نو يو قوي احتمال دادی چي هغه اعمال به په ښه صورتو کي په شکل ورکولو سره وړاندي سي چي الله تعالی به هغوئ ته ډېر پاک او غوره صورتونه ورکړي لکه څرنګه چي د ځينو حديثو او اثارو څخه مفهوم کيږي، يا دا چي د الله تعالی دغه قدرت په پوره توګه ثابت دی چي هغه بالذات وړاندي کړي او هغوئ ته د وينا قوت ورکړي.

شيخ عبدالحق رحمه الله د حديث په وضاحت کي ليکلي دي چي د لمانځه داسي تعارف وړاندي کوئ چي زه لمونځ يم، دا په اصل کي ددې مفهوم حامل دی چي اې پروردګاره! ما ته چي ستا په دربار کي کوم عظمت او مرتبه تر لاسه ده چي تا ماته د خپل دين ستن فرمايلي دي او په خپل نزد دي په عزت او قرب سره نازولی يم، په دې اعتماد کولو سره باامید قبوليت ستا د دربار په لطف او کرم کي د بندګانو په حق کي شفاعت کولو ته حاضر سوی يم او تا دا فرمايلي دي چي: (ان الصلوة تنهی عن الفحشاء والمنکر) ځکه څرنګه چي زه په دنيا کي خلک د فسق او فجور څخه ليري کونکی وم همدارنګه نن ورځ اميد لرم چي خلک ستا د عذاب څخه ليري کړم او ستا د غضب څخه يې وژغورم، نو الله تعالی به لمانځه ته وفرمايي: بېله شکه ته دخير او صلاح حامل يې، ګويا الله تعالی به د لمانځه شفاعت قبول نه کړي بلکه د هغه د شفاعت درخواست به موقوف کړي او د مذکوره ارشاد په ذريعه هغه توقف او التواء به ډېر بليغ او پاک انداز او حسن کلام په ذريعه ظاهر کړي، او ددغه ارشاد مفهوم په حقيقت کي دادی چي اې لمونځه! په دې کي شک نسته چي موږ ته د ډېري لوړي مرتبې ګرځولی يې او په تا کي مو فضل او شرف ايښی دی، دا يو حقيقت دی او پر خپل ځای دی مګر تر څو چي د شفاعت تعلق

دى نو دا يوه بله مرتبه ده چي تا ته تر لاسه نه ده بلكه دغه وصف او مرتبه هغه چا ته وركړل سوې ده چي ستا او ستا د هم مثل عبادتونو بنياد دى او ټولو ښه صفات مجموعه ده يعني دين اسلام دلته يوه باريكه نكته ده او هغه دا چي پر مقام شفاعت باندي درېدل يعني د قيامت په ورځ د الله تعالى په دربار كي د بندګانو په حق كي شفاعت كوي يوازي هغه ذات ته لائق دي چي جامع كمالات دى لكه د حضرت محمد ﷺ ذات مبارك چي رسول الله ﷺ د ټولو اسماؤ او صفات الهي مظهر دى.

نو د شفاعت حق به يوازي د رسول الله ﷺ ذات ته حاصل وي د رسول الله ﷺ څخه پرته بل پيغمبر به د شفاعت د دروازې پر خلاصولو قادر نه وي، همدارنګه په اعمالو كي به هم يوازي هغه عمل د شفاعت وړ وي چي د ټولو صفاتو او كمالاتو جامع وي يعني اسلام، لكه څرنګه چي د حديث د آخري برخي څخه څرګندېږي چي د صدقې دغه تعارف وراندي كول چي زه صدقه يم ددې مفهوم حامل به وي چي پروردګاره ما خپل دغه عزت او فضيلت په مرسته ستا په دربار كي د شفاعت كولو لپاره حاضره سوې يم چي په هغه سره تا د خپل لطف او كرم په طفيل نازولې يم او زما په حق كي دي فرمايلي دي چي : (الصدقة تطفئ غضب الرب) همدارنګه د روژې ددغه تعارف چي زه روژه يم دا مفهوم دى چي پروردګاره! زه هغه عبادت يعني روژه يم چي ددغه مخصوص صفت او حيثيت حامل ده چي تا د هغه خاص جزاء ايښي دي او ستا څخه پرته بل څوك يې نه پېژني او چا چي دا اختيار كړه او د هغه پوره حقوق يې ادا كړه نو د هغه د بخښني او په جنت كي د داخلولو وعده تا فرمايلې ده نو زه ددغه فضيلت او خصوصيت په وجه په اميد سره د قبوليت د شفاعت د درخواست لپاره حاضر سوى يم.

اسلام چي د خپل تعارف په اړه كوم انداز اختيار كړي هغه به د ذكر سوو نورو اعمالو د انداز څخه مختلف وي هغه ته به په باب شفاعت كي لوى دخل وي ځكه هغه به د خپل تعارف او خپل خواست پېل د حق تعالى په حمد او تعريف سره وكړي لكه څرنګه چي رسول الله ﷺ پر مقام شفاعت باندي درېږي نو مخكي به د الله تعالى حمد او تعريف بيان كړي، ددې څخه وروسته به د شفاعت درخواست وړاندي كړي نو اسلام د الله تعالى په حضور كي په وړاندي كېدو سره هغه ته به د هغه اسم مبارك (اسلام) په ذريعه بږغ وكړي او خپل ځان به يو مطيع او فرمانبردار ذات ظاهر كړي او ددې څخه وروسته به د شفاعت درخواست وكړي.

دا هم كېداى سي چي په حديث كي د اسلام څخه مراد دين اسلام نه وي بلكه صفت رضا او تسليم او ترك اختيار مراد وي چي د الله تعالى د غوره او مقربو بندګانو د اعلى مراتبو څخه

دی لکه څرنګه چي په قرآن کریم کي د حضرت ابراهیم علیه السلام په اړه د اسلام ذکر په دغه مفهوم کي سوی دی چي وه یې فرمایل : (اذا قال له ربه اسلم قال اسلمت لرب العالمین) کله چي ابراهیم علیه السلام ته د هغه رب وفرمایل چي تابعداري وکړه نو هغه وویل چي زه د رب العالمین تابعدار سوم.

## دنیا یادونکي شیان پرېږدئ

﴿۴۹۹۷﴾ : وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ لَنَا سِتْرٌ فِيهِ تِمَاثِيل طَيْرٍ قَالَتْ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يا عائشة حَوِّلِيهِ فَإِنِّي إِذَا رَأَيْتُهُ ذَكَرْتُ الدُّنْيَا. رواه احمد

د عائشې (رض) څخه روایت دئ چي زموږ پر یو پرده باندي د مرغانو عکسونه وه ، رسول الله ﷺ وفرمایل : اې عائشې دا بدله کړه ، ځکه چي کله زه دې ته ګورم نو دنیا را ته را یاد سي. احمد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲۴۱\۶.

**تشریح**: رسول الله ﷺ د هغه پردې د بدلولو حکم چي په کوم انداز کي وکړ او د هغه کوم علت یې بیان کړ د هغه څخه دا څرګندېږي چي پر هغه پرده باندي کوم عکسونه وه هغه څرګند نه وو بلکه د هغو خطونه او نقشونه دومره کوچني او غیر واضح وه چي پر هغو په حقیقي معنی کي د عکس اطلاق نه کېدی، یا دا چي د عکس لرونکي پردې دغه واقعه د هغه زمانې ده کله چي د عکس حرمت نازل او نافذ سوی نه وو .

په دغه حدیث کي دې ته اشاره ده چي هغه اسبابو او شیانو ته کتل چي د هغه په ذریعه شتمن خلک د عیش او عشرت ژوند اختیاروي ، د فقیرانو د قلب حلاوت او طمانیت باندي اثر کوي نو د عیش او عشرت شیان او دنیا ته مائل کونکي شیان نه یوازي دا چي اختیارول نه دي پکار بلکه هغو ته نظر کول هم نه دي پکار .

## مختلف نصیحتونه

﴿۴۹۹۸﴾ : وَعَنْ أَبِي أَيُّوبَ الْأَنْصَارِيِّ قَالَ جَاءَ رَجُلٌ إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ عِظْنِي وَأَوْجِزْ فَقَالَ إِذَا قُمْتَ فِي صَلَاتِكَ فَصَلِّ صَلَاةَ مُوَدِّعٍ وَلَا تَكَلَّمْ بِكَلَامٍ تَعْذِرُ مِنْهُ غَدًا وَاجْمَعْ الْإِيَاسَ مِمَّا فِي يَدَيْ النَّاسِ. رواه احمد.

د حضرت ابو ایوب انصاري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړی د رسول الله ﷺ په خدمت کي

حاضر سو او عرض يې وکړ ما ته نصيحت وفرمايا ست لنډ ، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هر کله چي ته لمونځ کوې نو په داسي ډول يې کوه چي د الله ﷻ څخه پرته ټول هر څه پرېښود ونکي دي او هيڅ داسي خبره د ژبي څخه مه باسه چي سبا ته د هغې عذر خواهي کوې او کوم شی چي د خلکو په لاس کي وي د هغه څخه د نا اميده کېدو پخه اراده وکړه . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۴۱۲.

**د لغاتو حل**: اجمع الاياس: اى اعزم على قطع الياس.

**تشريح**: د رخصت کولو يوه معنى هغه ده کوم چي په ژباړه کي بيان سوه او کيداى سي چي د رخصت کولو څخه مراد حيات (ژوند) رخصتول وي يعني ته داسي لمونځ کوه چي هغه ستا د ژوند آخري لمونځ دی ، د مشائخو په وصيتونو او نصائحو کي دا هدايت منقول دی چي طالب ته پکار دي چي هغه په خپل هر لمانځه کي دا تصور وکړي چي دغه زما آخري لمونځ دی کله چي هغه په دغه تصور سره لمونځ کوي نو يقينا هغه لمونځ به په کامل اخلاص ، پوره ذوق او شوق سره ادا کوي .

د حديث په آخري الفاظو کي دې ته اشاره ده چي د نورو پر مال او سامان باندي نظر کول او دهغوئ څخه امېد کوي د قلبي فقر او افلاس علامه ده ، د زړه غني کېدل پر دې منحصر دي چي د خلکو سره کوم مال او سامان دی د هغه څخه خپل اميد قطع کړل سي .

## د پرهېزګار فضيلت

﴿۴۹۹۹﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ لَمَّا بَعَثَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت معاذبن جبل ﷺ څخه روايت دئ چي کله رسول الله ﷺ هغه وليږئ

إِلَى الْيَمَنِ خَرَجَ مَعَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوصِيهِ وَمُعَاذٌ رَاكِبٌ

يمن ته نو نصيحتونه يې ورته کول ، معاذ پر سپرلۍ سپور وو

وَرَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَمْشِي تَحْتَ رَاحِلَتِهِ فَلَمَّا فَرَغَ قَالَ يَا مُعَاذُ

او رسول الله ﷺ پر پښو وو ، کله چي رسول الله ﷺ د نصيحت څخه فارغ سو نو ورته وه يې فرمايل : اې معاذ !

إِنَّكَ عَسَى أَنْ لَا تَلْقَانِي بَعْدَ عَامِي هَذَا وَ لَعَلَّكَ أَنْ تَمُرَّ بِمَسْجِدِي هَذَا وَ

د سږ کال ځخه وروسته کیدای سي چي ته زما سره ملاقات ونه کړلای سې او کیدای سي چي ته زما د دغه مسجد یا

قَبْرِي فَبَكَى مُعَاذٌ جَشَعًا لِفِرَاقِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ الْتَفَتَ

قبر سره تیر سې ، ددې په اوریدو سره معاذ په ژړا سو او د رسول الله ﷺ د فراق په غم کي یې ډیر و ژړل ، ددې وروسته رسول الله ﷺ مخ مبارک وګرځوی

فَأَقْبَلَ بِوَجْهِهِ نَحْوَ الْمَدِينَةِ فَقَالَ إِنَّ أَوْلَى النَّاسِ بِي الْمُتَّقُونَ مَنْ كَانُوا وَحَيْثُ كَانُوا. رواه الاحاديث الاربعة احمد.

او دمدینې په لوري یې مخ کړ وه یې فرمایل : ما ته زیات نژدې هغه خلک دي چي پرهیزګار دي که هغه هر څوک وي او هر ځای وي. احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۳۵.

**د لغاتو حل**: جشعا : ای جزعا وفزعا (بیره)

**تشريح**: فاقبل لفظ د التفت وضاحت دی او د معاذ ؓ له خوا د رسول الله ﷺ د مخ مبارک ګرځولو وجه کېدای سي دا وه چي رسول الله ﷺ دا نه غوښتل چي هغه ژړا کونکی وویني ځکه چي په دغه صورت کي د رسول الله ﷺ زړه مبارک نرم کېدی او لیري نه وه چي رسول الله ﷺ هم په ژړا سوی وای چي په هغه سره به د رسول الله ﷺ پر زړه مبارک د غم احساس سخت کېدی، او همدارنګه رسول الله ﷺ دغه حقیقت ته اشاره وکړه چي زما په دغه خبره سره ستا غمجن کېدل او ژړا پر ځای ده مګر زما دغه دنیا پرېښودل او د آخرت سفر اختیارول یوه یقیني خبره ده نو یوې خوا ته رسول الله ﷺ د خپل مذکوره فعل په ذریعه حضرت معاذ ؓ ته ډاډ ورکړ او هغه یې ددغه حادثې قبلولو لپاره تیا رکړ او بلي خوا ته دخپل ارشاد په ذریعه هغه خبرداری ورکړ چي ته دا وخت زما او مدینې ځخه بېلیږې مګر وروسته ته به مدینه ووینې مګر زما لېدل به دي په برخه نسي، بیا رسول الله ﷺ دې ته هم اشاره وفرمایل چي دانبیاؤ او پرهیزګارانو په منځ کي د حقیقي ملګرتیا او قرب کیف به په هغه جهان کي تر لاسه سي چي دار البقاء دی، هلته چي کوم څوک د چا ملګری سي هغوئ د تل لپاره د یو بل سره یو ځای وي نو کوم څوک چي دا غواړي چي هغه ته زما د تل ملګرتیا شرف تر لاسه سي او د آخرت په دائمي ژوند کي هغه ته هغه مرتبه

په برخه سي چي د هغه په وجه هغه ته زما شفاعت او قرب تر لاسه سي نو هغه ته پکار ده چي تقوا او پرهيزګاري اختيار کړي ځکه چي دا هغه لار ده چي پر هغه په تلو سره يو سړی زما قرب تر لاسه کولای سي.

که هغه هر څوک وي او هر ځای وي: لکه څرنګه چي په ژباړه کي وضاحت وسو ، ددغه جملې مطلب دادی چي کوم څوک زما نژدېوالی او زما ملګرتيا غواړي نو هغه ته لازم ده چي هغه متقي جوړ سي ، قطع نظر ددې خبري څخه چي هغه د کومي قبيلې او کوم قوم دی او کوم رنګ او نسل څخه دی او په کوم هيواد کي هستوګن دی، يو سړی په مکه او مدينه کي زما د ښار او زما د قبيلې او کورنۍ کېدو سربېره زما نژدې کيدای نسي کله چي هغه پرهيزګاري اختيار نه کړي او يو سړی زما څخه د ډېر ليري والي په وجه او زما سره د يو نسلي او قرابتي تعلق نه کېدو سربېره که هغه په بصره کي وي يا په کوفه کي ، په يمن کي وي يا په بل يو ليري هيواد کي وي زما ډېر نژدې کيدای سي کله چي هغه پر پرهيزګاري باندي عامل وي، په دغه مثال داسي پوه سئ چي يو خو حضرت اويس قرني رحمة الله عليه وو چي هغه ته هيڅکله د رسول الله ﷺ زيارت په برخه نه سو او په يمن کي هستوګن دی مګر هغه د تقوا او پرهيزګارۍ درجه کمال ته رسيدلی دی نو هغه څومره عظيمه مرتبه تر لاسه کړه او رسول الله ﷺ څخه د ليري اوسېدو سربېره د رسالت په دربار کي د څومره قربت او نژدېوالي حامل سو ، ددې پر خلاف بل هغه خلک وه چي د هغوئ شمېر د مکې او مدينې د معزز او اشرافو خلکو څخه وو ، د رسول الله ﷺ په ښار کي اوسېدل او د رسول الله ﷺ د قبيلې او کورنۍ څخه وه مګر تقوا يې اختيار نه کړه ځکه د رسالت په دربار کي د قرب د مقام څخه محروم سول بلکه رسول الله ﷺ ته د تکليف او ضرر رسولو په سبب ډېر شقي او بدبخته وګرځول سول نو رسول الله ﷺ د ذکر سوي ارشاد په ذريعه حضرت معاذ رضي الله عنه ته ډاډ ورکړ چي زموږ د ظاهري بېلوالي غم مه کوه بلکه تقوا اختيار وه ، که ته متقي يې نو په ظاهري اعتبار سره که څه هم زموږ څخه بېل يې مګر په معنوي توګه به زموږ سره يو ځای يې .

طيبي رحمة الله عليه وايي: د رسول الله ﷺ ارشاد د حضرت معاذ رضي الله عنه لپاره د تسلي په توګه وو او د هغه متوجه کول مقصد وو چي کله ته خپل فرائض پوره کولو سره د يمن څخه مدينې ته بېرته راسې او ما په دغه دنيا کي موجود ونه وينې نو هغه وخت دلته د هغه خلکو اقتداء او اتباع کوه چي د خپل تقوا ، طهارت او کمال ديندارۍ په سبب ما ته تر ټولو زيات نژدې او قريب دي، بيا طيبي رحمة الله عليه وايي: په دغه ارشاد کي د کومو خلکو د اقتداء او اتباع کولو حکم ورکول کيږي د

هغوئ څخه د كنايې په توګه د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه ذات مراد وو، چې د رسول الله ﷺ څخه وروسته اول خليفه جوړېدونكى وو ، ددې خبرې تائيد د حضرت جبير ابن مطعم رضي الله عنه ددغه روايت څخه هم كيږي چې د هغه تعلق ددغه ډول يوې واقعې سره دى چې په هغه كې رسول الله ﷺ د ځان څخه وروسته د حضرت ابوبكر صديق رضي الله عنه خلافت ته اشاره فرمايلې ده ، نو په هغه صورت كې منقول دي چې يوه ښځه د رسول الله ﷺ په خدمت كې راغلل او رسول الله ﷺ څخه يې په يوه مسئله كې پوښتنه وكړه ، رسول الله ﷺ هغې ته وفرمايل ته بل وخت راسه، هغې ښځې وويل : اې دالله رسوله ! كه چيري زه په داسې وخت كې راسم او تاسو (په دنيا كې) موجود نه ياست نو بيا څه وكړم، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : كه ته داسې وخت راسې چې زه (په دنيا كې) نه يم نو بيا ته ابوبكر رضي الله عنه ته ورسه ، يعني رسول الله ﷺ په صراحت سره اشاره وفرمايل چې زما څخه وروسته به ابوبكر رضي الله عنه خليفه وي او هغه وخت به د مسلمانانو مقتدا او پېشوا وي .

په هر حال ددغه حديث مقصد دې ته متوجه كول دي چې خپل ټول ديني او دنياوي معاملات او ټول ملكي او شرعي امورو كې هر وخت د احتياط او تقوا خيال ساتل پكار دي ، او په دې كې د ټول امت لپاره دا ډاډ هم دى چې كومو خلكو ته د رسول الله ﷺ زمانه او د رسول الله ﷺ د خدمت او صحبت شرف حاصل سوى نه دى كه څه هم هغوئ هر څومره وروسته پيدا سوي دي كه چيري هغوئ تقوا اختيار كړي نو هغوئ ته به د رسالت په دربار كې تقرب حاصل وي. اللهم ارزقنا هذه النعمة . آمين .

## د شرح صدر علامې

﴿۵۰۰۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ تَلاَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَمَنْ

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ دا آيت تلاوت كړ (فمن

يُّرِدِ اللهُ أَنْ يَّهْدِيَهُ يَشْرَحْ صَدْرَهُ لِلْإِسْلاَمِ فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

يرد الله ان يهديه ......) الله تعالى چې چا ته د هدايت اراده وكړي د هغه سينه د اسلام لپاره خلاصه كړي ، بيا يې وفرمايل :

وَسَلَّمَ إِنَّ النُّوْرَ إِذَا دَخَلَ الصَّدْرَ انْفَسَحَ فَقِيْلَ يَا رَسُوْلَ اللهِ هَلْ لِتِلْكَ مِنْ

کله چي نور په سینه کي داخل سي نو سینه پراخه سي ، پوښتنه وسول ای دالله رسوله ! دد ې حالت څه نښه ده چي د هغه څرګندونه سي ،

عَلَمٍ يُّعْرَفُ بِهٖ قَالَ نَعَمْ اَلتَّجَافِيْ مِنْ دَارِ الْغُرُوْرِ وَالْاِنَابَةُ اِلٰى دَارِ الْخُلُوْدِ وَالْاِسْتِعْدَادُ لِلْمَوْتِ قَبْلَ نُزُوْلِهٖ. رواه البيهقي.

رسول الله ﷺ وفرمایل : هو، هغه نښه د دار الغرور (دنیا) څخه لیري کیدل او د آخرت په لور رجوع کول او د مرګ د راتلو څخه تر مخه د مرګ لپاره تیاري کول دي . بیهقي

**تخریج** : البيهقي في شعب الايمان ۷\۳۴۲، رقم: ۱۰۵۵۲.

**تشریح** : شرح صدر یعني د سینې خلاصېدل هغه نعمت دی چي د هدایت او په ټولو دنیاوي او دیني چارو کي د خیر ذریعه ده، دا څرنګه معلومیږي چي فلانی سړی د شرح صدر حالت ته رسیدلی دی دد ې د پېژندني لپاره درې علامې بیان سوي دي: ۱-یو خو د دار الغرور (دنیا) څخه لیري والی یعني زهد او قناعت اختیارول چي دا ځای د مکر او فریب څخه ډک دی او شیطان دد ې په ذریعه خلکو ته فریب ورکوي، ۲: دوهم دا چي له دنیا څخه په بې پروا کېدو آخرت ته همېشه متوجه اوسېدل او هر وخت د هغه د خیر او غوره والي خیال ساتل، ۳: دریم دا چي د مرګ راتلو څخه مخکي د مرګ لپاره تیاري کول یعني د توبې او انابت په ذریعه د خپلو خطاوو او ګناهو څخه د بېزاري اظهار کول، په عبادت او نېکو کارو کي سبقت کول او خپل وختونه په طاعات الهي کي بوخت ساتل، په چا کي چي دغه درې خبري موجود سي نو پوهېدل پکار دي چي هغه ټول شرائع اسلام په پوره یقین او اخلاص سره قبول کړي دي او هغه مقام ته رسیدلی دی چیري چي د احکام الهي پر ځای راوړل پر مزاج او طبیعت باندي د مشکل کېدو پر ځای روحاني او جسماني کیف او لذت ورته رسوي،

څرګنده دي وي چي شرح صدر یعني د سینې خلاصېدو څخه مراد په زړه کي د حق استعداد او صلاحیت پیدا کیږي او د مؤمن زړه چي د نور هدایت څخه ډک وي هغه بذات خود د ډیري لوی مرتبې حامل دی تر دې چي د عرش رب سره تعبیر سوی دی لکه څرنګه چي په یو حدیث قدسي کي الله تعالی فرمایي: (لایسعني ارضي ولاسمائي ولکن یسعني قلب عبدي المؤمن) نه خو زما ځمکه ګنجائش لري او نه زما آسمان مګر زما د مؤمن بنده زړه زما ګنجائش لري .

دنیا ته دار الغرور یعني د دوکې کور ویل سوي دي ځکه چي بېله شکه دغه دنیا په مکر او

فریب کي اخته کونکې او دوکه ورکونکې ده او ددې څخه زیات هیڅ وعده ماتونکې نسته ، خلک ددې په مینه کي په اخته کېدو سره څه کوي او ددې د تر لاسه کولو لپاره څه کوي مګر اخر دا د هیڅا نه وي او هر یوه ته دوکه ورکوي، په قرآن کریم کي خبرداری ورکړل سوی دی : (ولا یغرنکم الحیوة الدنیا) د دنیا ژوند دي تاسو په دوکه کي اخته نه کړي، کوم چي د دنیا د حقیقت او ماهیت تعلق دی نو په دې کي هم څه شک او شبه نسته چي دغه دنیا د خرابی او فساد او غم او محنت کور دی که څه هم ددې ظاهري حالت د یو نعمت په ډول معلومیږي او ددې مثال د سراب دی چي په لمر کي د ځلانده کېدو په وجه تږی هغه اوبه ګڼي او هغه ته ور ځغلي مګر کله چي ور نژدې سي نو حقیقت ورته معلوم سي او پوه سي چي زه په دوکه کي اخته وم بالکل همدارنګه پاچا، امیران، شتمن او دنیادار خلک د دنیا د ظاهري ځلا په دوکه کي اخته کیږي او کله چي حقیقت مخته راسي نو سترګي یې خلاصي سي مګر وخت تېر سوی وي او د حسرت او تاوان څخه پرته هیڅ په لاس نه ورځي .

د مرګ راتلو څخه مخکي: ددې څخه مراد د حیات مستعار هغه وخت مراد دی چي په هغه کي انسان د څه کولو صلاحیت او قوت لري یعني د روغتیا زمانه او په آخر درجه کي هغه زمانه هم مراد کېدای سي چي کله د مرګ مقدمات ظاهر سي او د ژوند د خاتمې ظاهري اسباب پیدا سي او هغه د ناروغۍ زمانه ده مګر د عمر هغه برخه چي انسان بالکل بېکاره او ناکاره جوړ کړي یعني ډېر سپین ږیرتوب چي په دغه زمانه کي نه د علم او معرفت تر لاسه کولو توان پاته سي او نه د عمل کولو قدرت وي نو دغه وخت د بې ګټې حسرت او ندامت څخه پرته نور هیڅ په لاس نه راځي نو هوښیارتیا په دې کي ده چي ددغه زمانې څخه مخکي د آخرت د سفر لپاره د لاري توښه تیاره کړل سي .

## زهد حکمت راولي

﴿۵۰۰۱﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ وَأَبِيْ خَلاَّدٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا رَأَيْتُمُ الْعَبْدَ يُعْطٰى زُهْدًا فِي الدُّنْيَا وَقِلَّةَ مَنْطِقٍ فَاقْتَرِبُوْا مِنْهُ فَإِنَّهُ يُلَقَّى الْحِكْمَةَ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابو هریرة او ابو خلاد (رضي الله عنهما) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي تاسو وویني چي یو بنده ته په دنیا کي زهد (بې شوقي) او لږ ویل ورکړل سوي دي

نو د هغه نژدیوالی تر لاسه کړئ ځکه چي هغه ته حکمت ورکړل سوی دی . بیهقي په شعب الایمان کي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۱۴\۲۵۴، رقم: ۴۹۸۵.

**تشریح**: په ځینو روایتو کي راغلي دي چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي اې د الله رسوله! زیات هوښیار مؤمن څوک دی؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه مؤمن چي مرګ ډېر یادوي او د مرګ څخه وروسته ژوند لپاره ډېره تیاري کوي .

په ذکر سوي حدیث کي د حکمت لفظ نقل سوی دی ، د دغه لفظ څخه مراد نېکي کړني او نیک ویل دي او کوم بنده ته چي الله تعالی حکمت ورکوي د دې لوی فضیلت منقول دی لکه څرنګه چي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي: (ومن یؤتي الحکمة فقد اوتي خیرا کثیرا) چا ته چي حکمت ورکړل سو نو هغه ته ډېر زیات خیر ورکړل سو .

په هر حال د حدیث خلاصه داده چي کوم څوک له دنیا څخه بې شوقي اختیار کړي وې او د کم ویني په صفت سره متصف وي نو هغه یو داسي مخلص او کامل عالم دی چي الله تعالی د نیکیو او رېښتیا ویلو په دولت سره نازولی دی او هغه یقینا د مرشد او مقتداء د جوړېدو اهل دی چي هغه د بندګانو د تربیت او اصلاح او هدایت ذمه داري په پوره توګه سرته رسولای سي، نو پر هر سړي باندي واجب دي چي د هغه اطاعت او خدمت وکړي د هغه صحبت او هم نشیني اختیار کړي او دهغه سره هم کلامي ولري، ځینو عارفانو ډېر ښه ویلي دي چي د الله تعالی صحبت اختیار کړئ که تاسو پر دې قادر کېدای نه سئ نو د هغه چا صحبت اختیار کړئ کوم چي د الله تعالی سره صحبت لري، او څرګنده ده چي داسي سړی هغه څوک کېدای سي چي په هغه کي د کردار، احوالو، اقوالو، افعالو صحیح او د باور وړ کېدو هغه علامې تر لاسه سي کوم چي د انشراح صدر د علامو په توګه په مخکني حدیث کي بیان سوي دي او د هغه حیثیت او شخصیت داسي ظاهر او ثابت سي چي د هغه صحبت پر ټولو دیني او دنیاوي معاملاتو باندي د خیر په صورت کي اثر کوي ، او خپل رفقاء او معتقدین په دنیاوي لذتو څخه کناره کش او بې شوقه او تر اړتیا زیات طلب او خواهش څخه بې پرواه جوړوي او عقبی ته یې متوجه کوي ، داسي سړي ته نه یوازي عالم او عارف ویل کېږي بلکه د انبیاء علیهم السلام صحیح وارث او خلیفه ورته ویل کېږي، الله تعالی دي موږ ټول د داسي عارف باالله د زیارت او خدمت او د هغه د صحبت او ملګرتیا په ستر نعمت سره مشرف کړي . آمین .

==========

# بَابُ فَضْلِ الْفُقَرَاءِ وَمَا كَانَ مِنْ عَيْشِ النَّبِيِّ ﷺ

## (د فقیرانو فضیلت او دنبي ﷺ د ژوند بیان)

فقراء د فقیر جمع ده او معنی یې د مفلس، محتاج او غریب ده، د فضیلت څخه مراد د اجر او ثواب زیاتوب دی نو د فقیرانو د فضیلت د بیان مطلب هغه حدیثونه نقل کول دي چې د هغو څخه دا څرګنده سي چې کوم خلک د خپل غربت او مفلسي په وجه خپل او د خپلو متعلقینو د ژوند په سختۍ صبر او په سکون سره تیروي او د ټولو مشکلاتو مقابله په ډېر عزم او استقلال سره کوي او پر تقدیر الهي باندي راضي او شاکر اوسي نو هغوئ ته څومره زیات اجر او ثواب تر لاسه کیږي او هغوئ به په آخرت کي څومره لویه درجه تر لاسه کوي.

د نبي کریم ﷺ د ژوند څخه مراد د رسول الله ﷺ د خوراک، څښناک، اوسېدو او ژوند تېرولو هغه معیار او طریقه ده کوم چې د غریبانو او فقیرانو وي او هغه ته کفاف (د ضرورت په اندازه) ویل کیدای سي، په عنوان کي د فقیرانو فضیلت او د رسول الله ﷺ د ژوند یو ځای ذکر کولو او د دواړو سره متفق حدیثونه او مضمون په یوه باب کي نقل کولو کي چې کوم خاص حکمت دی هغه دې ته اشاره کول دي چې د اکثرو انبیاؤ او اولیاؤ په ډول د رسول الله ﷺ د ژوند معیار هم د غریبانو او فقیرانو په ډول وو، مګر رسول الله ﷺ د خوشحالۍ ژوند اختیارولو د قدرت سربېره خپل ژوند یې داسي تیروی لکه څرنګه چې یې یو غریب او مفلس سړی تیروي، او د خپلو اړوندو کسانو کفالت به یې په داسي سختۍ سره کوی کوم چې د غریبانو خلکو معمول دی نو د غریب مؤمن فضیلت ثابتولو لپاره دا خبره ډېره کافي ده.

څرګنده دي وي چې په دې باره کي دعلماؤ اختلاف دی چې صبر او رضا اختیارونکی غریب او مفلس زیات فضیلت لري که شکر ګزار غني او خوشحال سړی، ځیني حضرات وایي چې شکر ګزار غني زیات فضیلت لري ځکه چې د هغه په لاس کي اکثر هغه شیان په عمل کي راځي چې صدقه او خیرات او مالي انفاق او ایثار یعني زکوة او قربانۍ او نیکو کارو کي د خرڅ په صورت کي د الله تعالی زیات قرب تر لاسه کولو ذریعه وي، او په حدیث کي هم دغنیانو په تعریف کي داسي راغلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل: ذلک فضل الله یؤتیه من یشاء، یعني دغه مال او دولت د الله تعالی فضل دی چا ته چې وغواړي ورکوي یې، او اکثر حضرات وایي چې صبر کونکی غریب او مفلس زیات فضیلت لري چې د هغه تر ټولو لوی دلیل

دادي چي خپله د رسول الله ﷺ د ژوند معيار د غنيانو مطابق نه وو بلکه د غريبانو او مفلسو په ډول وو او په دې اړه چي کوم حديثونه نقل کيږي هغه ټول د دغه حضراتو د قول دليلونه دي مگر دا خبره دي په ذهن کي وي چي د دغه اختلاف تعلق په اصل کي د مطلق فقيرانو او غنيانو د حقيقت او ماهيت څخه دی او د دې اعتبار هم د وجوه پر مختلف کېدو باندي دی.

د يو چا په اړه کله خو غناء يعني شتمنتوب د ښېگڼي باعث جوړېدای سي او کله د هغه فقير او مفلس کېدل د هغه په اړه کي غوره کېدای سي لکه څرنگه چي په يو حديث کي فرمايل سوي دي چي کله الله تعالی پر خپل يو بنده باندي مهربان سي نو هغه بنده ته هغه شی ورکوي چي دده په حق کي د صلاح او فلاح ذريعه وگرځيږي که هغه فقر وي که غني توب ، او که ناروغتيا وي که روغتيا وي ، دا حکم د هغه ټولو صفاتو دی کوم چي د يو بل ضد دي .

د حضرت شيخ المشائخ سيد محي الدين عبد القادر جيلاني رحمة الله عليه په اړه منقول دي چي يو چا پوښتنه ځيني وکړه چي: صبر کونکی مفلس غوره دی که شکر گزار شتمن، نو ده وفرمايل : شکر گزار فقير تر دواړو غوره دی ، نو موږ د جواب په ذريعه د فقر او افلاس فضيلت ته اشاره وکړه چي فقر او افلاس په حقيقت کي يو نعمت دی چي پر هغه شکر گزار کېدل پکار دي نه دا چي هغه يو مصيبت او بلا دی چي پر هغه صبر وکړل سي ، شيخ عالم، عارف رباني او ولي الله حضرت عبد الوهاب متقي رحمة الله عليه به د خپل شيخ په باره کي ويل هغه چي تر څو پوري پر موږ باندي د فقر او افلاس اعتراف ونه کړ تر هغه وخته يې زموږ سره بيعت ونه کړ، نو وه يې فرمايل چي داسي واياست: الفقر افضل من الغناء، يعني فقر او افلاس تر غنا غوره دی ، کله چي موږ دغه خبره تکرار کړه نو هغه زموږ لاس په خپل لاس کي ونيوی او موږ يې مريدان کړو .

دلته په دې خبره پوهېدل ضروري دي چي د شريعت په اصطلاح کي د فقير هغه مفهوم نه وي کوم چي په عامه توگه معروف دی يعني سوالگر او خلکو ته لاس غزونکی، بلکه د دغه لفظ څخه مراد هغه سړی دی چي په عرف عام کي غريب ورته ويل کيږي او د مال او اسبابو څخه خالي لاس وي، د اسلام په مذهبي کتابو کي احکامو کي د داسي سړي لپاره په عامه توگه دوه لفظونه استعماليږي چي د نصاب مالک نه وي چي د هغه په وجه پر ده زکوة او سرسايه واجب کيږي يا هغه سړي ته فقير ويل کيږي چي د يوې ورځي د خوراک په اندازه سامان لري او تر دې زيات د هغه سره هيڅ نه وي او مسکين هغه دی چي هغه د يوې ورځي د خوراک په اندازه مال او اسباب نه لري او ځينو حضراتو ددې برعکس ويلي دي ، په هر حال په عنوان کي چي د فقراء لفظ استعمال سوی دی د هغه څخه فقير او مسکين دواړه مراد دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### د الله ﷻ نیک بندګان

﴿۵۰۰۲﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رُبَّ أَشْعَثَ مَدْفُوعٍ بِالْأَبْوَابِ لَوْ أَقْسَمَ عَلَى اللّٰهِ لَأَبَرَّهُ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ډير خلک داسي دي چي ډير بير سري او په ګرد لړلي وي او هغوئ د دروازو څخه په پوري وهلو ايسته کيږي که هغوئ په الله قسم وخوري نو الله ﷻ د هغوئ قسم پوره کوي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۰۲۴، رقم: ۱۳۸- ۲۶۲۲.

**تشريح**: چي هغوئ د دروازو څخه ايستل کيږي: مطلب دا نه دی چي هغه خلک د الله تعالی لپاره د دنيا د ظاهري زينت او عزت د شيانو څخه ليري اوسي د هغوئ په اړه دا تصور هم نسي کيدای چي هغوئ به داسي کار وکړي چي په هغه سره ذلت تر لاسه سي بلکه د دغه جملې څخه مراد دادی چي د اولياء الله روحاني عظمتونه د هغوئ په بد حالی کي پټ وي او د هغوئ ظاهر د هغوئ د باطن تر دې حده سرپوښ وي که بالفرض هغوئ د يو چا کور ته ورتلل غواړي نو د خلکو په نظر کي د هغوئ قدر نه کېدو په وجه هغوئ د دروازې څخه منع کړل سي او سرای ته يې دننه نه پرېږدي، څرګنده ده چي هغوئ د دروازو څخه ايستل کيږي نو هغوئ د مجلسو او محفلو څخه په طريقه اولی منع کيږي، په دې کي حکمت دادی چي الله تعالی دا نه غواړي چي د هغوئ حقيقت پر خلکو ظاهر سي او هغوئ په داسي حالت کي اوسي چي خلک هغوئ ته مائل سي چي د هغوئ د الله تعالی څخه پرته د بل چا سره انس او رغبت نه وي نو په حقيقت کي الله تعالی پاک نفس بندګان د دنيادارو او ظالمانو پر دروازو باندي په درېدو او د هغوئ حرام مال خوړلو څخه خوندي ساتي لکه څرنګه چي يو سړی خپل ناروغ د مضري آب او هواء او تاواني فضاء څخه د ساتني هڅه کوي نو هغه خلک د خپل مولی د درد څخه پرته د بل چا پر دروازه حاضري نه ورکوي او د خپل کمال استغناء او بې نيازۍ په وجه د خپل پروردګار څخه پرته د بل چا په مخکي لاس نه غزوي.

او که د هغوئ په الله قسم وکړي ...الخ: مطلب دادی که چيري هغوئ پر الله باندي په باور کولو سره او د هغه په قسم کولو سره دا ووايي چي الله تعالی به فلانی کار وکړي يا فلانی کار

به و نه کړي نو الله تعالی د هغوئ قسم رښتونی کوي په دې توګه چي د هغوئ د وینا مطابق هغه کار کوي یا يې نه کوي، لکه څرنګه چي په باب الدیت کي د دې متعلق یو روایت تېر سوی دی، خلاصه دا چي هغه خلک که څه هم د ظاهري حالت په وجه د شتمنو په نظر کي قدر او قیمت نه لري مګر په حقیقت کي د الله تعالی په نزد د هغوئ مرتبه دومره لوړه او د الله تعالی په دربار کي دهغوئ عزت او مقبولیت دومره زیات دی که هغوئ پر یوه خبره قسم وکړي نو الله تعالی هغه رښتیا کوي او دهغوئ قسم پوره کوي یعني هغه خبره پوره کیږي.

**ځان بښه بلل**

﴿۵۰۰۳﴾: وَعَنْ مُصْعَبِ بْنِ سَعْدٍ قَالَ رَأَى سَعْدٌ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ أَنَّ لَهُ فَضْلًا عَلَى مَنْ دُونَهُ فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلْ تُنْصَرُونَ وَتُرْزَقُونَ إِلَّا بِضُعَفَائِكُمْ. رواه البخاري.

د حضرت مصعب بن سعد رضی الله عنه څخه روایت دئ چي سعد د خپل ځان په اړه دا ګمان وکړ چي هغه ته پر نورو ښېګڼه تر لاسه ده، (رسول الله ﷺ د هغه د ګمان ماتولو لپاره) وفرمایل: تاسو ته یوازي د غریبانو او مسکینانو په وجه ستاسو د اسلام ددښمنانو په مقابله کي مرسته کیږي او تاسو ته رزق درکول کیږي. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦\٨٨، رقم: ٢٨٩٦.

**تشریح**: حضرت سعد رضی الله عنه د ډېرو اوصافو او ښېګڼو خاوند وو، د مثال په توګه د مهرباني، سخاوت، او فیاضۍ په ډول اعلی صفتونه په هغه کي په پوره توګه موجود وه، د هغه په ذهن کي دا خبره پیدا سوه چي کوم خلک زما په ډول ځانګړتیا او ښېګڼه نه لري د هغوئ په نسبت زه د مسلمانانو زیات مرسته او اعانت کوم او په دې اعتبار د اسلام لپاره زما وجود زیات ګټور دی، د ذهن دغه خبره به هم پر ژبه راغلې وي نو رسول الله ﷺ ددغه ګمان څخه هغه منع کړ او څرګنده یې کړه چي ستا په دغه اندازسره فکر غیر مناسب دی تا ته پکار دي چي کوم خلک د توان او قوت او مال په اعتبار تر تا کم دي د هغوئ عزت کوه هغوئ کم او حقیر مه ګڼه او د هغوئ سره د تکبر رویه مه اختیاروه ځکه چي هغوئ مسکینان دي په هغوئ کي د خلوص او رښتیا ججوهر وي پر هغوئ د الله تعالی خاص مهرباني وي او تاسو د هغوئ د دعاوو د برکتو څخه ګټه تر لاسه کوئ، الله جل جلاله د دوئ په سبب تاسو پر دښمنانو غالب کوي او ستاسو په رزق

کي برکت درکوي.

## غریبانو ته د جنت زیری

﴿۵۰۰۴﴾: وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت اسامه بن زید رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل:

قُمْتُ عَلَى بَابِ الْجَنَّةِ فَكَانَ عَامَّةَ مَنْ دَخَلَهَا الْمَسَاكِينُ وَأَصْحَابُ الْجَدِّ

زه د جنت پر دروازو ودریدم (یعني د معراج په شپه یا په خوب کي) کوم خلک چي په جنت کي داخل سول په هغوئ کي زیات شمیر د غریبانو وو، او شتمن مي ولیدل چي

مَحْبُوسُونَ غَيْرَ أَنَّ أَصْحَابَ النَّارِ قَدْ أُمِرَ بِهِمْ إِلَى النَّارِ وَقُمْتُ عَلَى بَابِ النَّارِ فَإِذَا عَامَّةُ مَنْ دَخَلَهَا النِّسَاءُ. متفق علیه.

د قیامت په میدان کي هغوئ تم کړل سوي دي مګر د کافرانو په باره کي حکم سوی وو په بیولو دوږخ ته، بیا زه د دوږخ پر دروازه ودریدم او وه مي لیدل چي په دوږخ کي زیات شمیر د ښځو وو. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۴۱۵، رقم: ۶۵۴۷، ومسلم ۴\۲۰۹۶، رقم: ۹۳- ۲۷۳۶.

**د لغاتو حل**: الجد: ای ارباب الغنی من المؤمنین الاغنیاء والامراء.

**تشریح**: د محبوسون معنی ده هغه خلک چي جنت ته د تللو څخه منع سوي وي، خلاصه دا چي په مؤمنانو کي کومو خلکو په دغه دنیا کي د شتمنۍ او عزت په وجه د عیش او عشرت ژوند تېر کړي وي نو هغوئ به جنت ته دتللو څخه تر هغه وخته پوري منع کړل سي تر څو چي د هغوئ څخه په ښه ډول حساب نه واخیستل سي نو هغه وخت به هغه خلک د دې خبري څخه سخت غم محسوس کړي چي هغوئ ته په دنیا کي د مال او سامان زیاتوب ولي تر لاسه سوی وو، او هغوئ د خپل خواهشات نفس مطابق دنیاوي لذاتو او عشرت څخه ولي برخمن سوي وه نو هغوئ به د عذاب مستحق وي او که هغوئ محض هغه شیان اختیار کړي وي کوم چي حلال ګرځول سوي دي بیا به هم هغوئ د حساب او کتاب د مرحلو څخه په هر حال تېرېدل وي، حال دا چي فقیرانو او غریبان خلک به ددې څخه خلاص وي چي نه خو به د هغوئ څخه حساب اخیستل

كيږي او نه به هغوئ جنت ته دتللو څخه منع كيږي بلكه هغوئ به د شتمنو خلكو څخه ځلوېښت كاله مخكې جنت ته ولاړ سي او د هغوئ د شتمنو خلكو څخه جنت ته مخكې تلل به د هغه نعمتو په عوض كي وي چي د هغو څخه په دنيا كي محروم سوي وه .

## جنتيان او دوږخيان

﴿۵۰۰۵﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اطَّلَعْتُ فِي الْجَنَّةِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا الْفُقَرَاءَ وَاطَّلَعْتُ فِي النَّارِ فَرَأَيْتُ أَكْثَرَ أَهْلِهَا النِّسَاءَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما په جنت كي وكتل نو زيات شمير غريبان مي وليدل او په دوږخ كي مي وكتل نو هلته زيات شمير د ښځو وو. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۱۵، رقم: ۶۵۴۶، ومسلم ۴\ ۲۰۹۶، رقم: ۹۴- ۲۷۳۷

## د غريبانو فضيلت

﴿۵۰۰۶﴾: وَعَنْ عَبْدِاللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا. رواه مسلم.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : فقراء مهاجرين به ځلوېښت كاله مخكي تر شتمنو په جنت كي داخل كړل سي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۲۸۵، رقم: ۳۷- ۲۹۷۹.

**تشريح**: د ځلوېښتو كالو څخه مراد هغه وخت دی چي زموږ ددغه دنيا د شپې او ورځي په اعتبار د ځلوېښتو كالو په اندازه دی او ددغه حديث د ظاهري مفهوم څخه دا څرګنديږي چي ددغه حديث تعلق په خاصه توګه د هغه فقيرانو سره دی چي د مهاجرينو څخه وه، همدارنګه د اغنياء څخه مراد هغه غنيان مهاجرين دي، پاته سوه دا خبره چي دلته د فقيرانو او غنيانو

مهاجرینو قید ولي لګول سوی دی، نو ددې حقیقت د دوهم فصل د اول حدیث څخه معلومیږي، او په جنت کي د فقیرانو مخکي د اخلېدو وجه به دا وي چي غنیان به د حساب د طوالت په وجه د حشر په میدان کي تم وي حال دا چي فقیران به بېله حسابه په جنت کي په داخلېدو سره د هغه ځای سعادتونو او نعمتونو څخه برخمن کیږي.

﴿۵۰۰۷﴾: وَعَنْ سَهْلِ ابْنِ سَعْدٍ قَالَ مَرَّ رَجُلٌ عَلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

د حضرت سهل بن سعد ﷺ څخه روایت دئ چي یو سړي د رسول الله ﷺ سره نژدې تیر سو،

وَسَلَّمَ فَقَالَ لِرَجُلٍ عِنْدَهُ جَالِسٍ مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا فَقَالَ رَجُلٌ مِنْ أَشْرَافِ

رسول الله ﷺ د خپل نژدې ناست ملګري څخه پوښتنه وکړه ددې سړي په باره کي ستا څه رایه ده (کوم چي اوس تیر سو)؟ هغه وویل: دا سړی د شریفو خلکو څخه دی،

النَّاسِ هَذَا وَاللَّهِ حَرِيٌّ إِنْ خَطَبَ أَنْ يُنْكَحَ وَإِنْ شَفَعَ أَنْ يُشَفَّعَ قَالَ فَسَكَتَ

او قسم په خدای ددې وړ دی که یوې ښځي ته د نکاح پیغام ورکړي نو هغه به یې قبول کړي او حاکمانو ته که د چا سفارش وکړي نو سفارش به یې قبول سي، ددې اورېدو سره (رسول الله

رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ثُمَّ مَرَّ رَجُلٌ فَقَالَ لَهُ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

ﷺ) پټه خوله سو بیا یو بل سړی د رسول الله ﷺ په خوا کي تیر سو، رسول الله ﷺ د هغه ناست

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَأْيُكَ فِي هَذَا فَقَالَ يَا رَسُولَ اللَّهِ هَذَا رَجُلٌ مِنْ فُقَرَاءِ

ملګري څخه پوښتنه وکړه د دغه سړي په اړه ستا څه رایه ده؟ هغه وویل: اې د الله رسوله!

الْمُسْلِمِينَ هَذَا حَرِيٌّ إِنْ خَطَبَ أَنْ لَا يُنْكَحَ وَإِنْ شَفَعَ أَنْ لَا يُشَفَّعَ وَإِنْ قَالَ

دا سړی د مسلمانانو فقراؤ څخه دی ددې وړ دی که چا ته د نکاح پیغام ورکړي نو پیغام به یې قبول نه کړل سي که چا ته سفارش وکړي نو سفارش به یې قبول نه سي که چا ته خبره وکړي نو

أَنْ لَا يُسْمَعَ لِقَوْلِهِ فَقَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَذَا خَيْرٌ مِنْ مِلْءِ الْأَرْضِ مِثْلَ هَذَا. متفق علیه.

خبره به یې وانه وریدل سي، ددې اوریدو سره رسول الله ﷺ وفرمایل: دا سړی تر هغه بل ډیر غوره دئ که څه هم چي د هغه په ډول خلکو څخه مځکه ډکه سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۷۳، رقم: ۶۴۴۷.

**تشريح**: د هغه چا په ډول د ډکي مځکي څخه هم غوره دی...الخ: مطلب دادی که ټول مځکه د هغه ډول خلکو څخه ډکه سي چي مځکي تېر سوي وه او د هغه تعریف تا وکړ نو هغه سړی چي دخپل فقر او افلاس په وجه ستاسو په نظر کي دومره قدر نه لري د مرتبې او فضیلت په اعتبار ددغه ټول نړۍ د خلکو څخه غوره دی.

په څرګنده دا معلومېږي چي هغه وخت د رسول الله ﷺ سره کوم څوک ناست وو او رسول الله ﷺ د هغه دوو کسانو په اړه پوښتنه ځیني کړې وه هغه به خپله غني او شمتن سړي وو نو د هغه سره د ذکر سوي سوال او جواب د هغوئ په حق کي دا خبرداری وو چي غریب او نادار مسلمانانو ته هیڅکله د سپکاوی په نظر کتل نه دي پکار ځکه چي د الله ﷻ په نزد هغوئ ته چي کوم فضیلت حاصل وو هغه لویو لویو شتمنو کسانو ته هم حاصل نه وو.

کوم چي ددې خبري تعلق دی چي رسول الله ﷺ د شتمنو مسلمانانو په مقابله کي د غریب مسلمان فضیلت ولي بیان کړ نو ددې وجه داده چي په عامه توګه د غریب مسلمان زړه ډېر صاف وي او د هغه په وجه هغه حق ډېر ژر قبلوي او د الله تعالی د احکامو پیروي زیاته کوي، ددې پر خلاف غني او شتمن خلک په عامه توګه په بې حسي او شقاوت کي اخته وي چي د هغه په وجه په هغوئ کي سرکښي، بې نیازي او د تکبر ماده پیدا کیږي چي هغوئ د حق قبلولو او احکام الهي د پیروي څخه منع کوي او د داسي خلکو په اړه الله تعالی فرمایلي دي:

(سَأَصْرِفُ عَنْ آيَاتِيَ الَّذِينَ يَتَكَبَّرُونَ فِي الأَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ)،

او ددغه حقیقت اندازه د علماؤ شاګردانو او د صالحانو مریدان په لېدو کېدای سي چي په هغوئ کي کوم خلک غریب وي هغوئ د حق خبره ډېر ژر قبلوي او کوم خلک چي شتمن او مالداروي هغوئ په هره خبره کي حیله او حجت کوي.

د حدیث د ظاهري مفهوم څخه دا څرګندیږي چي اول سړی هم د شتمنو مسلمانانو څخه وو نه دا چي کافر وو ځکه چي مفاضله یعني په خپلو کي د یو بل اخروي فضیلت څرګندولو تعلق د کفارو او مسلمانانو په منځ کي نسي کیدای او ددې وجه داده چي په کفارو کي هیڅ ته د خیر نسبت نسي کیدای او څرګنده ده چي په کوم چا کي د خیر څه وجود نه وي نو هغه ته د اخروي

فضيلت نسبت هم نسي كيداى ، ځينو علماؤ دا ويلي دي چي كوم مسلمان په خپله ژبه سره داسي ووايي چي : (النصراني خير من اليهودي) يعني عيسائي تر يهودي افضل دی نو دهغه په باره كي ښره ده چي هغه د كفر په دائره كي داخل سوی نه وي ځكه چي هغه ددغه جملي په ذريعه د خير وجود ثابت كړ چي په هغه كي د خير وجود نسي كيداى بيا هم پر هغه د كفر اطلاق په جزم (كلک والي) سره نسي كيداى ځكه چي په ځينو وختو كي د لفظ خير په ذريعه د اخروي سعادت پر ځاى د حق زيات نژدې والي مفهوم هم اخيستل كيږي او كيداى سي چي په ذكر سوې جمله كي د خير لفظ په دغه مفهوم كي استعمال سوی وي.

## د محمد ﷺ كورنۍ

﴿۵۰۰۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ مَا شَبِعَ آلُ مُحَمَّدٍ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ يَوْمَيْنِ مُتَتَابِعَيْنِ حَتَّى قُبِضَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ . متفق عليه.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د محمد ﷺ كورنۍ هيڅكله دوې ورځي پرله پسې په ماړه نس د اوربشو ډوډۍ نه ده خوړلې تر څو چي رسول الله ﷺ وفات سو . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\ ۵۴۹، رقم: ۵۴۱۶، ومسلم ۴\ ۲۲۸۲، رقم: ۲۲- ۲۹۷۰.

**تشريح**: د دوو ورځو پرله پسې څخه دا څرګنده سوه چي د رسول الله ﷺ او دهغه د كورنۍ معمول دا وو چي كه چيري يوه ورځ به يې په ماړه نس ډوډۍ وخوړل نو په دوهمه ورځ به وږي وه او دا په دې وجه وه چي رسول الله ﷺ د خوشحالۍ ژوند باندي د فقر او افلاس ژوند ته ترجيح وركړې وه او كله چي د الله تعالى له خوا رسول الله ﷺ ته د دنيا د خزانو وړانديز وسو او حكم وسو كه چيري ته غواړې نو د مكې غرونه به ستا لپاره د سروزرو كړم مګر رسول الله ﷺ ددې پر ځاى فقر او تنګدستي اختيار كړه او وه يې فرمايل چي زه دا غواړم چي يوه ورځ نس موړ كړم او په دوهم ورځ وږی يم په كومه ورځ چي خوراک وكړم نو په هغه ورځ د الله ﷻ شكر ادا كړم او په كومه ورځ چي وږی يم نو په هغه ورځ صبر وكړم .

د ذكر سوي حديث څخه د ځينو خلكو ددغه قول ترديد كيږي چي رسول الله ﷺ د خپل ژوند په آخري برخه كي شتمن سوی وو ، كه چيري رسول الله ﷺ د خپل عمر په آخر كي په حقيقت كي غني سوی وای نو بيا د بي بي عائشې ؓ ددغه ويلو څه معنی ده چي د رسول الله ﷺ د كورنۍ د رسول الله ﷺ تر وفات پوري دا معمول وو چي هغوئ هيڅكله پرله پسې تر دوو ورځو

پوري د اوربشو په ډوډۍ نس نه دی موړ کړی ، مگر په دې کي شک نسته چي د نبوت په آخره زمانه کي اسلام ته طاقت او غلبه تر لاسه سوه او مجاهدينو مختلفو سيمي فتح کړې نو په هغه صورت کي د مال غنيمت وغيره تاکل سوې برخه رسول الله ﷺ ته تر لاسه کېدل او لږ ډېر مال به راتلی مگر صحيح روايتونه شايد دي چي رسول الله ﷺ هغه مال هم د ځان لپاره نه ساتی بلکه څرنگه چي به راتلی هغه به يې د پروردگار په لاره کي مصرفوی او خپله به تل خالي پاته کېدی مگر د زړه غناء به يې نوره هم زياتېدل ، حضرت ابن عباس ﷺ وايي د رسول الله ﷺ دا حالت وو چي پرله پسې څو څو شپې به يې په لوږه کي تېروی ، رسول الله ﷺ او اهل بيت ته د شپې خوراک نه تر لاسه کېدی او کله نا کله به د خوراک تر لاسه کېدو په صورت کي هم د رسول الله ﷺ پر دسترخوان کومه ډوډۍ وه هغه به د اوربشو وه .

ددغه حديث څخه څرگنده سوه چي زموږ د زماني غريبانو او فقيرانو کي هيڅا دومره سخت ژوند نه دی تېر کړی او نه يې تېرولای سي څومره سخت ژوند چي به رسول الله ﷺ تيروی او همدارنگه د هغه ذات وو چي نه يوازي افضل البشر بلکه افضل الانبياء دی چي دهغه د سترگو مبارکو په اشاره د ټولي دنيا نعمتونه يې په پښو کي راتلل، نو د رسول الله ﷺ په دغه ژوند کي غريب او نادار مسلمانانو ته د لوی ډاډ او اطميمان سامان پټ پروت دی .

څرگنده دي وي چي د رسول الله ﷺ دومره د فقر او افلاس ژوند تېرول او د لوږي تکليف زغمل د اضطراري او مجبورۍ په وجه نه وو بلکه دا د خپل قصد او اختيار نيتجه وه چي رسول الله ﷺ د دنيا په لذتونو او نعمتونو سره څه کار نه وو ، پر قوت لا يموت باندي يې گزاره کول او پر خپل او خپل کورنۍ پر اړتياوو يې د فقيرانو او مسکينانو اړتياوو ته ترجيح ورکول ځکه نو رسول الله ﷺ دومره سخت ژوند تېروی .

## د نبي کريم ﷺ خوراک

﴿۵۰۰۹﴾: وَعَنْ سَعِيدٍ الْمَقْبُرِيِّ عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ مَرَّ بِقَوْمٍ بَيْنَ أَيْدِيهِمْ شَاةٌ مَصْلِيَّةٌ فَدَعَوْهُ فَأَبَى أَنْ يَأْكُلَ وَقَالَ خَرَجَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الدُّنْيَا وَلَمْ يَشْبَعْ مِنْ خُبْزِ الشَّعِيرِ. رواه البخاري

حضرت سعيد مقبري د ابو هريرة ﷺ څخه روايت کوي چي ابو هريرة د يو ډلي په خوا کي تير سو چي مخته يې پوخ سوی پسه پروت وو ، ابو هريره ﷺ ته هغه خلکو بلنه ورکړه خو هغه انکار وکړ

او وه يې ويل رسول الله ﷺ د دنيا څخه تشريف يووړ او هيڅكله يې د اوربشو ډوډۍ هم په ماړه نس ونه خوړل . بخاري

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۹\۵۴۹، رقم: ۵۴۱۴.

**د لغاتو حل:** مصلية: اى مشوية.

## د نبي كريم ﷺ په كور كي

﴿۵۰۱۰﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّهُ مَشَى إِلَى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِخُبْزِ شَعِيرٍ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما رسول الله ﷺ ته د اوربشو ډوډۍ

وَإِهَالَةٍ سَنِخَةٍ وَلَقَدْ رَهَنَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دِرْعًا لَهُ بِالْمَدِينَةِ عِنْدَ

او ويلي كړې بوى ناكه وازګه يووړل ، او نبي كريم ﷺ خپله زغره د مدينې د يو يهودي سره ګرو

يَهُودِيٍّ وَأَخَذَ مِنْهُ شَعِيرًا لِأَهْلِهِ وَلَقَدْ سَمِعْتُهُ يَقُولُ مَا أَمْسَى عِنْدَ آلِ

مُحَمَّدٍ صَاعُ بُرٍّ وَلَا صَاعُ حَبٍّ وَإِنَّ عِنْدَهُ لَتِسْعَ نِسْوَةٍ. رواه البخاري.

كړې وه او په هغه يې د كورنۍ لپاره اوربشې اخيستي وې ، راوي وايي ما د انس څخه اوريدلي دي چي د محمد ﷺ كورنۍ سره به په ماښام كي نه يو صاع غنم وه او نه يو بله غله، حال دا چي د رسول الله ﷺ نهه (۹) بيبياني وې . بخاري.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۴\۳۰۲، رقم: ۲۰۶۹.

**د لغاتو حل:** سنخة: اى متغيرة الريح لطول المكث (خراب سوى شى چي بوى يې كړى وي)

**تشريح:** د روايت د آخري الفاظو په ذريعه دا بيانول مقصد دي چي دا سي هيڅكله نه وه سوي چي رسول الله ﷺ خپل كورنۍ لپاره په يوه شپه كي د راتلونكي ورځي لپاره غله پرې ايښي وي سره د دې چي رسول الله ﷺ نهه بيبياني درلودې او د هغوئ د اړتيا لپاره لږ غله د رسول الله ﷺ سره پاته كېدل پكار وو .

او كوم چي د يهودي څخه د رسول الله ﷺ د پور اخيستلو خبره ده نو د دې وجه په ظاهره دا معلوميږي كه چيري رسول الله ﷺ د مسلمان څخه پور اخيستى واى نو پر مسلمان به د رسول الله ﷺ حال څرګند سوى واى او هغه به د رسول الله ﷺ د اړتياوو پوره كولو هڅه كولاى حال دا

چي رسول الله ﷺ دا هيڅکله نه خوښول چي د رسول الله ﷺ د اړتياوو بار دي د مسلمانانو پر وږو وي او هغوئ رسول الله ﷺ ته يو څه ورکړي. مګر دا ويل زيات صحيح دي چي د رسول الله ﷺ د مسلمان پر ځای د يهودي ځخه پور اخيستل په اصل کي ددې خبري د زيات تنزه او کمال احتياط په وجه وو چي رسول الله ﷺ د خپل امت د خلکو څخه د يو اجر او معاوضې غوښتونکی وي که هغه اجر او معاوضه د حقيقت په اعتبار وي بلکه محض صورتا وي لکه څرنګه چي د پور صورت دی که چيري رسول الله ﷺ د يو مسلمان څخه پور اخيستی وای نو پر هغه د اجر او معاوضې اطلاق نه کېدی مګر ممکن وه چي په يوه درجه کي د ګټي تر لاسه کولو په وجه پر هغه هم صورتا د اجر او معاوضې اطلاق کېدی ځکه رسول الله ﷺ احتياطا دا هم نه خوښول چي د يو مسلمان څخه د پور اخيستلو په صورت کي مالي ګټه تر لاسه کړي لکه چي دالله تعالی ارشاد دی: (قُلْ لاَ اَسْئَلُكُمْ مِّنْ أَجْرٍ إِنْ أَجْرِيَ إِلاَّ عَلَى اللهِ).

د رسول الله ﷺ د دغه کمال احتياط يو نظر زموږ د امام ابو حنيفة رحمه الله په ژوند کي هم تر لاسه کيږي د هغه په اړه نقل سوي دي چي د داسي سړي د دېوال د سوري څخه به يې هم ګټه نه اخيستل چي پر هغه به د هغه پور وو او د هغه دغه احتياط ددغه حديث په وجه وو چي: كل قرض جر منفعة فهو ربوا، يعني کوم پور چي ګټه راوړي نو هغه سود دی.

د ذکر سوي حديث په ضمن کي يو سوال پيدا کيږي هغه دا چي په ځينو صحيح روایاتو کي دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ د خپل ازواج مطهراتو د کفايت په اندازه د اړتياوو ځينو شيان د يوه کال لپاره ايښي وه، حال دا چي دلته کوم حديث نقل کيږي ددې څخه د هغه برعکس ثابتيږي نو ددې جواب علماؤ دا بيان کړی دی چي حقيقت دا دی چي په شروع کي تر ډېره وخته پوري د رسول الله ﷺ په ژوند کي د فقر او فاقې غلبه وه او د رسول الله ﷺ دا معمول وو چي هيڅکله به يې يو شی د بلي ورځي لپاره ذخيره کړی نه دی په کومه ورځ چي به څه تر لاسه سول هغه به د هغه ورځي په اړتياوو کي مصرف کېدل او د بلي ورځي لپاره به يې د قناعت او توکل څخه پرته هيڅ نه پاته کول، مګر وروسته کله چي معاشي حالت غوره سو او په آمدني کي پراختيا وسول نو رسول الله ﷺ د خپلو ازواجو مطهراتو لپاره د يوه کال خوراکي مواد جمع کړي وه.

ځينو حضراتو په دغه دواړو روايتو کي په دې توګه مطابقت پيدا کړی دی چي په آل محمد کي لفظ د آل زيات دی لکه څرنګه چي د اهل عربو په بيان کي دا هم تر لاسه کيږي چي هغوئ د آل

فلان ويلو سره د هغه لفظ معنى د فلاني اهل بيت پر ځاى يوازي د هغه فلاني ذات مراد اخلي د مثال په توګه که چيري هغوئ داسي ووايي چي د آل زيد يعني د زيد د کورنۍ سره روپۍ نسته نو د دغه جملې څخه د هغوئ مراد داوي چي په خاصه توګه د زيد سره روپۍ نسته نو دا خبره د حقيقت څخه ليري نه ده چي کله هم دوې ورځي پرله پسې د اوربشو ډوډۍ په ماړه نس خوړل يا دراتلونکي ورځې لپاره د غلي وغيره نه جمع کولو خبره په خاصه توګه د رسول الله ﷺ د ذات مبارک سره تعلق لري يعني داسي نه وي سوي چي خپله رسول الله ﷺ پرله پسې دوې ورځي په ماړه نس ډوډۍ خوړلې وي يا د خاص خپل ذات لپاره راتلونکي ورځي تر نيمايي پوري يې څه ايښي وي ، مګر که چيري رسول الله ﷺ کله نا کله داسي کړي وي نو د خپل ازواجو مطهراتو لپاره تر شو ورځو يا د کال خوراکي مواد د ضرورت په اندازه ايښي وي نو دا د دې خبري خلاف نه ده.

## د دنيا طلب د مؤمن کار نه دی

﴿۵۰۱۱﴾: وَعَنْ عُمَرَ قَالَ دَخَلْتُ عَلٰى رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَإِذَا هُوَ

د حضرت عمر ﷛ څخه روايت دئ چي زه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سوم ، دغه وخت

مُضْطَجِعٌ عَلٰى رِمَالِ حَصِيرٍ لَيْسَ بَيْنَهُ وَبَيْنَهُ فِرَاشٌ قَدْ أَثَّرَ الرِّمَالُ بِجَنْبِهِ

(رسول الله ﷺ) د خرماوو پر چټائي په تکيه کولو پروت وو او په مينځ د رسول الله ﷺ او د هغه چټائي بل فرش نه وو

مُتَّكِئٌ عَلٰى وِسَادَةٍ مِنْ أَدَمٍ حَشْوُهَا لِيفٌ قُلْتُ يَا رسول الله ادْعُ اللّٰهَ فَلْيُوَسِّعْ

پر تيکه کولو پروت ه سره پر اړخ مبارک يې داغونه لګيدلي وه او د رسول الله ﷺ سر مبارک ته د پوست بالښت وو چي د خرماوو د پوستکو څخه ډک کړل سوی وو ، ما وويل : اې دالله رسوله ! د الله ﷻ څخه سوال وکړه چي ستاسو امت ته پراخي

عَلٰى أُمَّتِكَ فَإِنَّ فَارِسَ وَالرُّومَ قَدْ وُسِّعَ عَلَيْهِمْ وَهُمْ لَا يَعْبُدُونَ اللّٰهَ فَقَالَ

او خوشحالي ورکړي ، د فارس او روم خلک خوشحاله جوړ کړل سوي دي ، حال دا چي هغوئ عبادت نه کوي ، رسول الله ﷺ راته وفرمايل:

أَوَفِي هٰذَا أَنْتَ يَا ابْنَ الْخَطَّابِ أُولٰئِكَ قَوْمٌ عُجِّلَتْ لَهُمْ طَيِّبَاتُهُمْ فِي الْحَيَاةِ

اې دخطاب زویه ! ایا تهاوس هم په دې خیال کې یې (یعني تا ته دداسې بصیرت نه دی درکړل سوی او ته تر اوسه پوري د حقیقت څخه ناخبریې) چي دا هغه خلک دي (یعني د روم او فارس) چي هغوئ ته په دنیا کي معاشونه ورکړل سوي دي).

الدُّنْيَا، وفي رواية اَمَا تَرْضٰى اَنْ تَكُوْنَ لَهُمُ الدُّنْيَا وَلَنَا الْاٰخِرَةَ. متفق عليه.

او په یوه روایت کي دي چي رسول الله ﷺ د حضرت عمر رضي الله عنه په جواب کي دا الفاظ وفرمایل: ایا ته په دې خبره راضي نه یې چي دوئ ته دنیا تر لاسه سي او موږ ته آخرت. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۵\۱۱۴، رقم: ۲۴۶۸، ومسلم ۲\۱۱۰۵، رقم: ۳۰- ۱۴۷۹.

**تشريح**: پر تاټ باندي پروت وو: یعني هغه تاټ د رسول الله ﷺ بستره وه چي هغه پر کټ باندي په اچولو سره پر هغه پرېوتی، یا هغه تاټ به پر مځکه غوړېدلی وو او پر هغه ځیږ تاټ به یې ارام کوی او په ځینو عبارتو کي دا مفهوم دی چي د رسول الله ﷺ کوم تاټ وو هغه د خرما د رسیو څخه جوړ سوی وو لکه څرنګه چي کټ د رسیو څخه اوبدل کیږي.

رمال: د راء په پېښ او زور دواړه سره دی، او د رمل جمع ده او د مرمول په معنی کي استعمال سوی دی لکه چي مخلوق د خلق په معنی کي استعمالیږي.

ليف: د لام په زیر او د راء په جزم سر، د خرما پوستکي ته وایي، خلاصه دا چي د رسول الله ﷺ کوم بالښت مبارک وو هغه د پوست وو او په هغه کي د پمبوو پر ځای د خرما پوستکي وه، کوم خلک چي غریب وي د پمبوو بالښت جوړول د هغوئ په وس نه وي نو هغوئ د خرما د پوستکي څخه بالښت وغیره جوړوي.

حضرت عمر رضي الله عنه چي د امت په اړه د مال د پراختیا او رزق د وسعت د دعاء لپاره رسول الله ﷺ ته کوم خواست وکړ د هغه وجه دا وه چي هغه ولېدل چي رسول الله ﷺ په فقر اختیارولو سره دومره سخت ژوند تېروي او خپل ځان یې په دغه حالت کي ساتلی دی نو هغه فکر وکړ که ټول امت په دغه فقر او مفلسۍ کي اخته سي او د ژوند غربت او ستونزي ورته پېښي سي نو ددغه امت هغه خلک کوم چي د ټېنګي عقیدې او مزاج نه وي ددغه سخت ژوند تاب نه راوړلای سي او د زغم نه وړ سختیو کي به اخته سي نو هغه د داسي خلکو لپاره دا وګڼل چي هغوئ ته مالي وسعت او پراختیا ورکړل سي.

مګر طیبي رحمه الله وایي چي د حضرت عمر رضي الله عنه اصل مقصد خپله د رسول الله ﷺ د ذات مبارک لپاره د مالي وسعت او پراختیا خواهش کول وو مګر هغه دا خبره د رسول الله ﷺ د شان

عظمت مناسب ونه ګڼل چي په خاصه توګه د رسول الله ﷺ لپاره د دغه ادنی او ناپاکه دنیا طلب ظاهر کړي لکه څرنګه چي په یو بل روایت کي منقول دي چي یو وار حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو وه یې لیدل چي رسول الله ﷺ په یو ډېره توده، تنګه او تیاره خونه کي پر یو تاټ باندي پروت وو، هغه د خوني پر کونجانو باندي نظر واچوی نو وه یې لیدل چي د پوست دوې څلور ټوټې او یو دوه لوښي پراته دي، د رسول الله ﷺ د غربت په لیدو سره حضرت عمر رضی الله عنه په ژړا سو، رسول الله ﷺ پوښتنه ځیني وکړه چي اې ابن خطاب! ولي ژاړې، هغه وویل: اې د الله رسوله! ستاسو د حالت په لیدو سره ژاړم چي تاسو د الله جل جلاله د رسول کېدو سره په دغه حالت کي پراته یاست او قیصر او کسری څومره د ناز او عیش ژوند تېروي، ددې څخه وروسته د روایت هغه الفاظ دي کوم چي (اوفي هذا یا بن الخطاب) څخه تر پایه پوري دي چي په مخکني حدیث کي نقل سوي دي، د طیبي رحمه الله علیه دغه وضاحت که څه هم حقیقت ته ډېر نژدې دی مګر خپله د حضرت عمر رضی الله عنه الفاظ: (فان فارس و روم قد وسع علیهم) سره سم لومړی وضاحت مناسب دی.

## د اهل صفه غریبي

﴿۵۰۱۲﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَقَدْ رَأَيْتُ سَبْعِينَ مِنْ أَصْحَابِ الصُّفَّةِ مَا

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي د اصحاب صفه څخه اویا کسان ما ولیدل چي په

مِنْهُمْ رَجُلٌ عَلَيْهِ رِدَاءٌ إِمَّا إِزَارٌ وَإِمَّا كِسَاءٌ قَدْ رَبَطُوا فِي أَعْنَاقِهِمْ فَمِنْهَا مَا

هغوئ کي د یوه کس سره هم څادر نه وو، یوازي لنګ یا یوه شړۍ به ورسره وه چي په غاړو کي به یې زړېدل په هغو کي د ځینو لنګ به بیخي تر پنډۍ پوري وو او د ځینو تر بجلکو پوري د چا

يَبْلُغُ نِصْفَ السَّاقَيْنِ وَمِنْهَا مَا يَبْلُغُ الْكَعْبَيْنِ فَيَجْمَعُهُ بِيَدِهِ كَرَاهِيَةَ أَنْ تُرَى عَوْرَتُهُ. رواه البخاري

لنګ چي به پورته وو هغه به خپل لنګ په لمانځه کي په لاس سره ونیوئ چي شرمګاه یې ښکاره نه سي. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱/۵۳٦، رقم: ۴۴۲.

## تر ځان کښته ته ګورئ

﴿۵۰۱۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا نَظَرَ أَحَدُكُمْ إِلَى

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي داسي کس

مَنْ فُضِّلَ عَلَيْهِ فِي الْمَالِ وَالْخَلْقِ فَلْيَنْظُرْ إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْهُ. متفق

ويني چي د هغه څخه شتمن او ښکلی وي نو هغه ته پکار ده چي پر هغه چا هم نظر واچوي چي د هغه څخه د کمي درجې وي. بخاري او مسلم

عليه و في رواية لمسلم قَالَ انظروا إِلَى مَنْ هُوَ أَسْفَلَ مِنْكُمْ وَلَا تَنْظُرُوْا إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَكُمْ فَهُوَ اَجْدَرُ اَنْ لَّا تَزْدَرُوْا نِعْمَةَ اللّٰهِ عَلَيْكُمْ.

او د مسلم په یو بل روایت کي دا الفاظ دي چي هغه چا ته وګوري چي ستاسو څخه د کمي درجې وي او هغه چا ته مه ګوري چي په مرتبه کي ستا څخه زیات وي او داسي کول ستاسو لپاره ضروري دي ددې لپاره چي تاسو هغه نعمت سپک ونه ګڼئ کوم چي الله تعالی تاسو ته درکړی دی.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۲۲، رقم: ۶۴۹۰، ومسلم ۴\ ۲۲۷۵، رقم: ۸- ۲۹۶۳.

**تشريح**: د ټولني د افرادو د دنیاوي مال او متاع، عزت او شان په اړه په خپلو کي د بغض، حسد حسرت او مایوسی څخه د ځان ساتني لپاره رسول الله ﷺ لویه نفساني طریقه تجویز کړې ده، دا د انسان فطرت دی چي دځان څخه زیات شمتن او د زیات حیثیت والا ویني نو په هغه کي داسي جذبات پیدا کیږي چي هغه نا امیده، حسرت زده او تقدیر الهي شاکي جوړوي، یا په هغه کي د حسد، عناد او ناروا مسابقت ماده پیدا کیږي چي د هغه په وجه هغه جائز او ناجائز دول هڅه کوي او همدا رنګه په ټولنه کي د عجیبه ډول جنګ او تاواني ځغاستي پېل سي ، نو رسول الله ﷺ ددغه صورت څخه د ساتني لپاره ذکر سوی هدایت وفرمایه، مطلب دادی چي کله یو څوک داسي یو سړی ویني چي د هغه څخه زیات شتمن وي د هغه څخه زیات ښه شکله او ښکلی وي او د هغه څخه زیات عزت او شوکت لري او تر هغه په ښه ځای کي اوسیږي او هغه ددې حقیقت څخه ناخبره وي چي د هغه سړي حاصل شده ټولي دنیاوي ښېګڼي په اصل کي د آخرت په اعتبار د هغه په حق کي د وبال درجه لري چي هغه به ددغه شیانو په وجه په آخرت

کي د مؤاخذې او عذاب مستحق وي نو هغه سړي ته پکار دي چي هغه چا ته وګوري چي د مال او متاع او دنیاوي حیثیت په اعتبار د هغه څخه دکمي درجې وي مګر خپله عقیده او خیال په اعتبار په آخرت کي دعالي درجو مستحق دی، ددغه حدیث د بین السطور څخه دا خبره څرګندیږي چي په ټولنه کي اکثره داسي کسان وي چي په اقتصادي توګه د اعتدال په حالت کي وي یعني نه خو دزیاتي لوړي درجي حیثیت لري او نه د ډېري کښتني درجې سره تعلق لري، (په اصطلاح کي داسي خلکو ته درمیانه طبقه ) ویل کیږي، دا بېله خبره ده چي هغه حالت اعتدال یو ډول نوعیت نه لري بلکه داسي وي چي یو سړی د چا په نسبت معتدل حالت لري او یو څوک د چا په نسبت بل حالت لري نو کوم څوک چي د ځان څخه لوړ ته په کتلو سره د ځان څخه کم ته ګوري نو هغه به یقینا د ښه حالت حامل وي .

په دغه حدیث کي دې ته هم اشاره ده که چیري فرضا یو څوک په هر حیثیت او هر اعتبار د خپلي ټولني پر ټولو خلکو باندي فضیلت لري نو د هغه لپاره دا مناسب نه دي چي هغه خلګو ته وګوري کوم چي د هغه څخه دکمي درجې حامل وي ځکه چي په دغه صورت کي لیري نه ده چي په هغه کي د تکبر، غرور او فخر ماده پیدا سي نو پر هغه دا واجب دي چي هغه څرنګه د الله تعالی د ورکړي نعمتونو شکر ادا کوي او خپل فضیلت د خپل کردار په ذریعه د تواضع، انکسارۍ او خدمت خلق ذریعه جوړوي ، او کوم څوک چي داسي وي چي بل څوک د هغه څخه زیات مفلس او غریب وي نو هغه ته پکار ده چي هغه د الله تعالی شکر ادا کړي چي هغه زه ددنیا په وبال کي اخته نه کړم او ددنیاداری د غمو څخه یې خوندي کړم ، د حضرت شبلي رحمه الله په اړه منقول دي چي هغه به د شتمن په لېدو سره د ژبې څخه دغه الفاظ وتل : اې الله ! زه ستا څخه په دنیا او آخرت کي د عفو او عافیت طلبګاریم .

د غربت او مفلسۍ، تنګۍ او سختۍ، فقر او فاقې تکلیفونه د حقیقت په اعتبار د الله تعالی څومره لوی نعمت دی ، ددې اندازه ددغه حکایت څخه کیدای سي چي یوه ورځ یو ډېر لوی بزرګ او ولي په خپل مجلس کي حاضرین د وعظ او نصیحت څخه مستفید کول، چي یو ډېر مفلس او نادار سړی ودرېدی او شکایت کول یې پیل کړل چي حضرت! ما په دومره اوږده وخت کي نه د چا په مخکي او نه د چا په پټه څه خوړلي او څښلي دي او په ډېر اخلاص او استقامت سره د لوږي او تندي تکلیفونه زغمم ، هغه بزرګ ورته وویل : اې د خداي دښمنه! ته څومره درواغ وایې ، تا ته معلومېدل پکار دي چي الله جل جلاله د سختي لوږي په تکلیف کي خپل هغه بندګان اخته کوي چي د هغه رسول، نبي او ولي وي، که ته د داسي بندګانو څخه یې نو دغه

پټ راز به دي هیڅکله نه ظاهرولای او د الله ﷻ دغه نعمت به دي د خلکو څخه پټ ساتلای.

د دغه ټولو خبرو خلاصه داده چي مؤمن ته د سلامتي طبع او حُسن استقلال دولت تر لاسه سي او د هغه دین د هر ډول تاوان او خلل څخه خوندي وي نو بیا هغه نه د مال او متاع پروا کوي او نه د عزت او شوکت څخه د محرومۍ هغه ته افسوس وي، او په حال یا راتلونکي زمانه کي چي هغه ته د کومو مصیبتو او پرېشانیو مخ کول وي هغه د الله ﷻ له خوا یو داسي نعمت ګڼلو سره چي هغه د آخرت په سعادتونو سره همکنار کونکی دي، په صبر او رضا او شکر او اطمینان سره برداشت کوي، منقول دي چي د امام غزالي رحمه الله یو مرید یو چا ووهی، او د بند په مصیبتو کي یې اخته کړ نو هغه امام غزالي رحمه الله ته شکایت وکړ، هغه ورته وفرمایل اې عزیزه! د الله تعالی شکر ادا کړه چي دومره د څخه لیري سوه کنه بلا خو تر دې په سخت صورت کي نازلیږي، څو ورځي وروسته هغه مرید د نورو خلکو په قصه کي وموښتی چي هغوئ په یو ځای کي بند کړ، هغه په یو ډول خلاصون تر لاسه کړ او د امام په خدمت کي حاضر سو او د پېښي شکایت یې ورته وکړ نو هغه جواب یې ورکړ کوم چي یې مخکي ورکړی وو، بیا ناڅاپه د یهودي په معامله کي وموښتی، هغه یهودي ورسره داسي چلن وکړ چي په یو زنځیریې وتړی او هره لمحه به یې تکلیف ورکوی، دا وار هغه مرید په سخت تکلیف او اذیت کي ولوېدی او ډېر زهیر سو چي د دنیا ټول مصیبتونه بس زما لپاره دي،

په پای کي د هغه یهودي څخه هم خلاص سو او د امام غزالي رحمه الله په خدمت کي حاضر سو او کوم مصیبتونه چي ورته رسیدلي وه د هغو شکایت یې وکړ نو امام ورته د صبر او شکر تلقین وکړ، اوس خبره د هغه د زغم څخه وتلې وه نو د ډیري بې قرارۍ په حالت کي یې وویل، حضرت! تر او سه چي د کومو تکلیفو او مصیبتو سره مخ سوی یم تر دې سخت مصیبت هم سته؟ امام غزالي رحمه الله جواب ورکړ: هو، تر دې هم سخت مصیبت سته او هغه دا چي ستا په غاړه کي د کفر طوق ولویږي، خلاصه دا چي د انسان لپاره د آفاتو او بلاګانو څه حد نسته که یو څوک په یو آفت کي اخته وي نو یوازي دا چي هغه ته د هغه آفت او بلا په صبر او استقامت سره مقابله کول پکار دي بلکه د الله ﷻ شکر ادا کول هم پکار دي چي د هغه څخه هم سخت آفت او مصیبت کي اخته نسي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### جنت ته پنځه سوه کاله مخکې

﴿۵۰۱۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْفُقَرَاءُ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ بِخَمْسِ مِائَةِ عَامٍ نِصْفِ يَوْمٍ. رواه الترمذي

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل: فقيران به جنت ته د شتمنو څخه پنځه سوه کاله ترمخه داخليږي چې د قيامت نيمه ورځ ده، ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴۹۹/۴، رقم: ۲۳۵۳.

**تشريح**: د نيمي ورځي څخه مراد د قيامت نيمه ورځ ده، مطلب دا دی چې هغه پنځه سوه کاله به د قيامت د نيمي ورځي برابر وي او د قيامت د ورځي د اوږدوالي وخت او د دنياوي د شپې او ورځي په اعتبار به د زرو کالو برابر وي لکه څرنګه چې الله فرمايي: (وان يوما عند ربک کالف سنة مما تعدون)، پاته سوه دا خبره چې الله جلاله په قرآن کي په يو بل ځای کي فرمايلي دي: (في يوم کان مقداره خمسين الف سنة)، او ددې څخه معلوميږي چې د قيامت په ورځ به د پنځوس زره کالو برابر وي نو پوهېدل پکار دي چې اول آيت د عموميت حامل دی او دوهم آيت يو خاص نوعيت ته اشاره کوي يعني اصل خبره داده چې د دنياوي حساب په اعتبار د قيامت ورځ به د زرو کالو برابر وي او دا د اول آيت په ذريعه څرګنده سوې ده مګر هغه د قيامت ورځ به د سختيو ورځ وي او کوم څوک چې په دنيا کي د دين او هدايت څخه څومره ليري وي هغه ته به د هغه ورځي سختي هغومره زياته محسوس کيږي ځکه د کفارو په حق کي د هغه ورځي سختي به دومره زياتي وي چې د خپلي اوږدوالي او سختۍ په اعتبار به هغه ورځ هغوئ ته د پنځوس زرو کالو برابر معلوميږي، دوهم آيت دا مفهوم بيانوي چې د قيامت ورځ به کفارو ته د پنځوس زره کالو برابر معلوميږي لکه څرنګه چې د مؤمنانو او نيکانو لپاره به هغه ورځ راونغښتل سي او د زرو کالو برابر د هغه ورځي طوالت به هغوئ ته د يوه ساعت په اندازه معلوميږي، ددې تائيد ددغه آيت څخه هم معلوميږي:

(فَإِذَا نُقِرَ فِي النَّاقُورِ فَذَلِكَ يَوْمَئِذٍ يَوْمٌ عَسِيرٌ عَلَى الْكَافِرِينَ غَيْرُ يَسِيرٍ)

ددغه حديث په ضمن کي يو مشکل پيدا کيږي چې دغه حديث په ظاهره د هغه حديث خلاف دی چې په جنت کي د فقيرانو د اول داخلېدو وخت څلوېښت کاله ظاهروي، نو شارحينو

د دواړو حدیثو په منځ کي د مطابقت پیدا کولو لپاره دا بیان کړی دی چي دا عین ممکن ده چي په وروستني حدیث کي د اغنیاء څخه مراد مهاجرین غنیان وي لکه څرنګه چي د دغه حدیث په تشریح کي هم دې ته اشاره سوې ده ، په دغه صورت کي به د هغه حدیث مطلب دا وي چي فقیران د هغه غنیانو څخه چي د هغوئ تعلق د مهاجرو صحابه کرامو سره دی څلوېښت کاله مخکي به په جنت کي داخلیږي ، او دلته په دغه حدیث کي د اغنیاء څخه مراد هغه اغنیاء چي مهاجرین به نه وي ، په دغه وضاحت سره د دواړو حدیثو په منځ کي هیڅ تعارض نه پاته کیږي، مګر څرنګه چي د حدیثو ځینو شارحینو لیکلي دي چي ددغه دواړو حدیثو په منځ کي د ذکر سوي تعلق د ختمولو لپاره دا وضاحت زیات مناسب دی چي دواړه شمېره یعني څلوېښت او پنځه سوه څخه مراد تحدید نه دی بلکه مطلقا د هغه زماني فرق بیانول مقصد دي چي په جنت کي د داخلېدو په اړه به د فقیرانو او اغنیاء په منځ کي وي،

نو ددغه فرق په ظاهرولو سره چي فقیران به جنت ته د اغنیاؤ څخه مخکي ځي د تفنن له موخي پر یوه موقع خو څلوېښت کاله فرمایل سوي دي او پر بله موقع د پنځه سوه کاله الفاظ فرمایل سوي دي حال دا چي مقصد د دواړو یو دی یا دا چي مخکي به رسول الله ﷺ د وحي په ذریعه دا معلومه سوې وي چي جنت ته به فقیران تر اغنیاء مخکي تللو وخت څلوېښت کاله وي نو رسول الله ﷺ د وحي مطابق څلوېښت کاله ذکر کړل مګر وروسته الله تعالی د رسول الله ﷺ له برکته د فقیرانو حال په خاصه توګه وفرمایه او د هغوئ د نوري تسلی لپاره دا خبر ورکړ چي فقیران به جنت ته د غنیانو څخه پنځه سوه کاله مخکي داخلیږي نو رسول الله ﷺ په دوهم وار د پنځه سوه کالو ذکر وکړ ، یا دا هم کېدای سي چي د دواړو حدیثو په مفهوم کي چي کوم اختلاف معلومیږي ددې تعلق په اصل کي خپله د فقیرانو د ذات سره وي یعني ظاهره ده چي هر غریب او هر فقیر مسلمان یو ډول نه وي بلکه ځیني فقیران داسي وي چي د صبر او شکر درجه لري او ځیني فقیران هغه دي چي په هغوئ کي د صبر او شکر ماده کمه وي نو د پنځه سوه کالو والا حدیث تعلق د اول الذکر فقیرانو سره دی او د څلوېښتو کالو حدیث تعلق د مؤخر الذکر فقیرانو سره دی ، دغه تاویل زیات مناسب هم دی او ددې تائید د جامع الاصول ددغه عبارت څخه هم کیږي چي په هغه کي د دغه دواړو حدیثو په منځ کي د مطابقت پیدا کولو لپاره دا ویل سوي دي چي په کوم حدیث کي د څلوېښتو کالو ذکر دی د هغه څخه مراد دادی چي د دنیا لذتونو او نعمتونو خواهش لرونکی فقیر به د حریص غني څخه څلوېښت کاله مخکي په جنت کي داخلیږي او په کوم حدیث کي چي د پنځه سوه کالو ذکر دی د هغه څخه مراد دادی چي د

دنياوي لذتونو او نعمتونو څخه بالکل بې نيازه او زاهد فقير به د شتمن غني څخه پنځه سوه کاله مخکي په جنت کي داخليږي.

## د مفلس او مسکين فضيلت

﴿۵۰۱۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُمَّ أَحْيِنِي مِسْكِينًا

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: اې الله ما مسکين ولرې،

وَأَمِتْنِي مِسْكِينًا وَاحْشُرْنِي فِي زُمْرَةِ الْمَسَاكِينِ فَقَالَتْ عَائِشَةُ لِمَ يَا رَسُولَ

مسکين مي وفات کړې او دحشر په ورځ مي د مسکينانو په ډله کي وپاځوه، بې بي عائشي ﷺ پوښته وکړه اې دالله رسوله! تاسو داسي ولي وفرمايل؟

اللهِ قَالَ إِنَّهُمْ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ قَبْلَ أَغْنِيَائِهِمْ بِأَرْبَعِينَ خَرِيفًا يَا عَائِشَةُ لَا

رسول الله ﷺ وفرمايل دا ځکه چي مسکينان به جنت ته د شتمنو څخه څلوېښت کاله ترمخه داخليږي، (رسول الله ﷺ) وفرمايل: اې عائشې!

تَرُدِّي الْمِسْكِينَ وَلَوْ بِشِقِّ تَمْرَةٍ يَا عَائِشَةُ أَحِبِّي الْمَسَاكِينَ وَقَرِّبِيهِمْ فَإِنَّ

هيڅ مسکين د خپلي دروازې څخه خالي لاس مه ليږه که څه هم چي د خرما يوه ټوټه وي، او اې عائشې! د مسکينانو سره مينه ساته او هغوئ ځان ته نژدې کړه چي

اللهَ يُقَرِّبُكِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ. رواه الترمذي والبيهقي في شعب الايمان رواه ابن ماجة عن ابي سعيد الى قوله زمرة المساكين.

الله تعالى دې د قيامت په ورځ ځان ته نژدې کړي. ترمذي او بيهقي.

**تخريج**: سنن الترمذي الموضع السابق رقم: ۲۳۵۲، والبيهقي في شعب الايمان ۱۷\۳۴۰، رقم: ۱۰۵۰۷.

**تشريح**: د مسکين لفظ د مسکنت څخه دی چي د هغه معنى د کمزورۍ او مفلسۍ ده، دغه لفظ د سکون او سکينة څخه هم مشتق ګرځول کېداى سي چي د هغه معنى د وقار، اطمينان او پر تقدير الهي باندي د اقرار او قبول ده او دا خبره مخکي تېره سوې ده چي د شريعت په اصطلاح کي مسکين هغه سړي ته وايي چي د هغه سره هيڅ نه وي يا د ومره ورسره نه وي چي د

خپل کورنۍ ضروري اړتیاوي په پوره کړل سي.

په ذکر سوي ارشاد کي د امت لپاره دا تعلیم دی چي د فقرانو او مسکینانو فضیلت و پېژندل سي د هغوئ سره د میني او همدردۍ چلن وکړل سي او د هغوئ سره قربت اختیار کړل سي چي د هغوئ برکت مسلمانانو ته ورسیږي او په دغه حدیث کي د فقیرانو او مسکینانو لپاره دا ډاډ دی چي هغوئ دي د خپلو حالاتو د تنګۍ او سختۍ څخه نه ناامیده کیږي بلکه د خپلو هغه لوړو دړجو څخه دي خبر سي چي الله تعالی د دوئ لپاره د دغه فاني دنیا د زوال پذیر نعمتو په عوض کي تل باقي کېدونکي جهان یعني د آخرت په ژوند کي ورکړي دي.

پاته سوه دا خبره چي رسول الله ﷺ په خپل حق کي د مسکین کېدو دعاء کول څه مفهوم لري، نو په دې اړه دا ویل مناسب دي چي د دغه دعاء څخه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي الله ﷻ رسول الله ﷺ ته دومره روزي ورکړي چي د ګزارې په اندازه وي او په هغه سره ژوند پاته سي او رسول الله ﷺ په دنیاوي مال او دولت او د هغه په نعمتونو او لذتونو کي بوخت نه کړي ځکه چي د مال او دولت زیاتوب د مقربینو په حق کي د سخت وبال درجه لري، منقول دي چي یو مسلمان پاچا یو ځای تلی چي په لاره کي د فقیرانو او مسکینانو پر یو ډله تېر سو، هغه خلکو پاچا ته هیڅ توجه ونه کړه، پاچا د دې په لېدو سره سخت حیران سو، هغه پوښتنه ځیني وکړه چي تاسو څوک یاست؟ هغوئ چي په جواب کي کومه خبره وکړه هغه خبره دلته نقل کول مقصود دي، هغوئ وویل: موږ هغه خلک یو چي د هغوئ سره مینه د ترک دنیا سبب دی او د هغوئ سره عداوت د ترک عقبی سبب دی، پاچا چي دا جواب واورېدی نو د هغوئ څخه د څه ویلو پرته مخته ولاړی او وه یې ویل چي موږ نه ستاسو مینه تر لاسه کولای سو او نه ستاسو سره د عداوت کولو توان لرو.

د رسول الله ﷺ د خپل ځان لپاره ذکر سوې دعاء کول او بیا د بي بي عائشې رضی الله عنها په پوښتنه د هغه دعاء دا توجیه کول چي زما مقصد هغه فضل او شرف تر لاسه کول دی کوم چي د قیامت په ورځ فقیرانو ته حاصل وي، هغوئ به په جنت کي د شتمنو کسانو څخه څلوېښت کاله مخکي په جنت کي داخلیږي، دا وهم پیدا کوي چي فقیران به بېله استثناء د ټولو شتمنو څخه مخکي په جنت کي داخلیږي که څه هم هغه شتمن نبي وي مګر په دې اړه قوي خبره داده چي د رسول الله ﷺ ذکر سوې دعاء او د هغه توجیه کي د ذکر سوي ارشاد اصل مقصد یو خو محض د فقیرانو او مسکینانو فضل او شرف ظاهرول دي او دوهم خپله دا طلب او خواهش ظاهرول دي چي ما ته د انبیاء علیهم السلام څخه مخکي په جنت کي د داخلېدو سعادت تر لاسه سي که څه هم هغه

انبیاء شتمن وي یا فقیران، نو د رسول اللهﷺ د ځان لپاره د فقر او فاقې د ژوند دعاء کول د غیر انبیاء فقیرانو څخه د وروسته پاته کېدو له بیري نه بلکه د هغه انبیاؤ څخه د وروسته پاته کېدو په وجه وو چي د هغوئ ژوند د فقر او فاقې څخه معمور وو ، په دغه وضاحت سره ذکر سوی وهم دفع کیږي .

یا عائشة لا تردي المسکین...الخ: اې عائشې ﷞ هیڅ مسکین نا امیده مه لېږه...الخ، د دغه ارشاد په ذریعه رسول اللهﷺ بې بي عائشې ﷞ ته دا نصیحت وفرمایه چي یو مسکین او فقیر د خپل حاجت په اخیستلو سره تا ته درسي نو هغه کم او سپک مه ګڼه ، هغه بې مراده مه استوه بلکه هغه سره په مینه او نرمي چلن کوه، د هغه پر حالت رحم کوه او څه چي موجود وي د هغه په لمن کي یې اچوه که څه هم هغه کم شی وي او که ستا سره هیڅ داسي شی نه وي چي د هغه په ذریعه ته د هغه سوال پوره کړلای سې نو په هغه صورت کي په ډېره نرمي سره معذرت ورته وکړه او په ښه انداز کي یې واستوه .

ابو الشیخ او بیهقي د حضرت عطا بن ابي رباح رحمة الله علیه څخه نقل کړي دي چي هغه د مشهور صحابي حضرت ابو سعید ﷜ څخه دا واورېدل چي اې خلکو ! ستاسو تنګدستي او غریبي دي تا سو دې ته اماده نه کړه چي تاسو خپله روزي په ناجائز وسائلو او ذرائعو سره تر لاسه کول پېل کړئ یعني که چیري خدای ﷻ تاسو په مسکیني او مجبوري کي اخته کړي یاست نو تاسو پر خپل دغه حالت صابر او شاکر اوسئ او د حالاتو مقابله کوئ ، داسي نه وي چي د روزي تر لاسه کولو لپاره داسي ذرائع اختیار کړئ چي د شریعت خلاف وي او د انساني کردار د عظمت خلاف وي ځکه چي ما د رسول اللهﷺ په اړه دغه دعاء کول اورېدلي دي چي اې الله! ته ما ته د فقر او فاقې په حالت کي مرګ راکړې، د شتمنی په حالت کي مرګ مه راکوې او زما حشر د مسکینانو په ډله کي وکړې ، نو یقینا تر ټولو لوی بدبخته هغه سړی دی چي د دنیا د فقر او افلاس ښکار هم سي او د آخرت د عذاب مستحق هم وګرځي یعني څوک چي د مسکینی او مفلسی د بیري په ناجائزه طریقه د روزی حاصلولو کوښښ کوي نو تر هغه لوی بدبخته څوک کیدای سي چي هغه د خپل فقر او مفلسی په وجه د دنیا د نعمتو څخه هم محروم وي او د روزی تر لاسه کولو په لاره کي د حرام او ناجائزو کارو کونکی هم وي او په داسي کولو سره د آخرت د عذاب وړ وګرځي .

ملا علي قاري رحمة الله علیه د دغه روایت نقل کولو څخه وروسته لیکلي دي چي زه خو دا وایم که د دغه ارشاد څخه پرته بل یو دلیل هم نه وي نو دا حدیث د دې خبري ثابتولو لپاره کافي دی چي

صبر کونکی فقیر او مسکین د شکر گزار شتمن څخه افضل دی او ملا علي قاري رحمة الله عليه په دغه ځای کي د هغه دوو حدیثو ذکر هم کړی دی چي د فقر په اړه په عوامو کي ډېر مشهور دی چي په هغو کي یو حدیث: (الفقر فخري وبه افتخر) دی، ملا علي قاري رحمة الله عليه لیکلي دي چي د حدیثو حافظان لکه علامه عسقلاني او داسي نورو صراحت کړی دی چي دغه حدیث بالکل بې اصله دی او ددې هیڅ سند نسته، دوهم حدیث دا دی: (کاد الفقر ان یکون کفرا) ، ددې په باره کي محدثینو وضاحت کړی دی چي دغه حدیث اول خو په یقیني توګه ضعیف دی دوهم دا که چیري دا صحیح ومنل سي نو ددې محمول قلبي فقر او افلاس دی چي جزع و فزع شکوه او شکایت تضاد او قدر باندي د بې اطمینانۍ او دالله تعالی پر جوړ سوي قسمت باندي د اعتراض کولو باعث کیږي کنه تر څو چي د معاشي فقر او افلاس تعلق دی نو هغه یو داسي شی دی چي د الله تعالی له خوا د هغه بندګانو ته ورکول کیږي چي د هغوئ په اخرت کي لوړو درجو ته رسول غواړي ځکه په یوه روایت کي فرمایل سوي دي چي : الفقر شین عندالناس وزین عندالله یوم القیامة (دیلمي) ژباړه: فقر او مفلسي د خلکو په نظر کي یو عیب او خرابي ده مګر د قیامت په ورځ د الله تعالی په نزد زینت ورکونکی شی دی .

## د کمزور برکت

﴿۵۰۱۶﴾: وَعَنْ اَبِي الدَّرْدَاءَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ابْغُونِي فِي ضُعَفَائِكُمْ فَإِنَّمَا تُرْزَقُونَ او تُنْصَرُونَ بِضُعَفَائِكُمْ . رواه ابوداؤد

د حضرت ابودرداء رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : زما رضامندي تاسو په کمزورو کي و لټوئ (یعني هغوئ راضي ساتئ) ځکه چي ستاسو د کمزورو په برکت تاسو ته رزق درکول کیږي او ددښمنانو په مقابله کي ستاسو مرسته کول کیږي . ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود: ۷۳\۱۳، رقم: ۲۵۹۴.

**تشریح**: د کمزورو خلکو څخه مراد فقیران او مسکینان دي او په هغوئ کي د تلاش کولو مطلب د هغه خلکو مرسته او اعانت په ذریعه دهغوئ سره احسان او ښه چلن کول دي یا د کمزورو خلکو څخه مراد مظلوم خلک دي که څه هم هغوئ شتمن وي او مطلب د ظلم د پنجې څخه په وتلو کي د هغوئ هر ډول مرسته کول دي ، خلاصه دا چي ددغه ارشاد په ذریعه رسول الله صلی الله علیه وسلم دا څرګنده کړه که چیري تاسو زما د رضا او خوشحالۍ طلبګار یاست نو د خپل مرستي

او ښه چلن په ذريعه د هغه خلكو خوښي تر لاسه كړئ كوم چي په تاسو كي كمزوري او نادار دي.

او تنصرون: دلته داو لفظ د تنويع لپاره دی او ددې تائيد د هغه روايت څخه كيږي چي په هغه كي د او پر ځای د واو حرف دی مګر دا هم كيدای سي چي دلته د او حرف په ذريعه د راوي شک ظاهرول مقصد وي چي رسول الله ﷺ يا خو د ترزقون لفظ فرمايلی دی يا د تنصرون لفظ، نو په پوره ترجمه كي دغه احتمال مد نظر ساتل سوی دی.

ددغه خلكو په بركت دی كوم چي په تاسو كي كمزوري دي، مطلب دادی چي داسي خلک چي كمزوري او نادار معلوميږي او هر ډول دنياوي طاقت او حيثيت څخه خالي معلوميږي د هغوئ وجود د پوره كائناتو لپاره د خير او بركت باعث او د هغوئ سره احسان او ښه چلن د ټولو خلكو د خير او غوره والي ضامن دی ځكه چي په دغه خلكو كي هغه لوی لوی اقطاب او اوتاد هم وي كه څه هم د دنيادارو په نظر كي خپل اصل حيثيت سره متعارف نه وي مګر په حقيقت كي د ټول عالم د كائناتو نظام د دوئ په وجه استوار وي بلكه په ځينو حالاتو كي د مختلفو علاقو او سيمو نظم او انصرام په روحاني توګه د الله تعالى له خوا دوئ ته حواله وي د هغه خلكو تصرف د دوئ په لاس كي وي.

ابن ملک رحمه الله ددغه حديث په وضاحت كي ليكلي دي چي د رسول الله ﷺ د ذكر سوي ارشاد مطلب دادی چي تاسو خلک كه چيري ما تر لاسه كول غواړئ نو ما په خپلو كمزورو خلكو كي ولټوئ په دې توګه چي پر تاسو باندې د هغوئ حقوق دي د هغه حقوقو ادا ينه كوئ او د هغوئ په مرسته كي بوخت اوسئ ځكه چي زه د هغوئ سره په ځينو وختو كي په جسماني توګه يم او په زړه سره په ټولو وختو نو كي ورسره يم نو كوم څوک چي دهغوئ احترام وكړي نو هغه ګويا زما اكرام او احترام وكړ او كوم څوک چي هغوئ ته تكليف ورسوي نو هغه ګويا ما ته تكليف ورسوی، ددې تائيد ددغه حديث قدسي څخه هم كيږي چي الله تعالى فرمايي: من عادي لي وليا فقد بارزني بالحرب: يعني كوم څوک چي زما د ولي سره عداوت او دښمني اختيار كړي نو هغه ګويا زما سره د جنګ لپاره ميدان ته راغلی.

﴿۵۰۱۷﴾: وَعَنْ أُمَيَّةَ بْنِ خَالِدِ بْنِ عَبْدِ اللهِ بْنِ أُسَيْدٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ كَانَ يَسْتَفْتِحُ بِصَعَالِيْكِ الْمُهَاجِرِيْنَ. رواه في شرح السنة.

د حضرت اميه بن خالد بن عبد الله بن اسيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ به د فقيرانو او

مهاجرینو په برکت د الله تعالی څخه د فتح تر لاسه کولو دعاء کول. شرح السنة.

**تخریج**: البغوي في شرح السنة: ۱۴\ ۲۶۴، رقم: ۴۰۶۲.

**د لغاتو حل**: صعالیک: جمع صعلوک وهو الفقیر (فقر کوونکی)

**تشریح**: صعالیک د صعلوک جمع ده، لکه څرنګه چې د عصفور جمع عصافیر ده، د صعلوک معنی د فقیر، مسکین، کمزوري او ناداري ده.

ملا علي قاري رحمه الله د دغه حدیث مطلب دا لیکلی دی چې رسول الله ﷺ به الله تعالی ته د فتح تر لاسه کولو درخواست کوی نو هغه به یې د فقیرانو او مهاجرینو په واسطه او د هغوئ د دعاء په ذریعه وفرمایه، ددې څخه وروسته هغه د ابن ملک څخه دا نقل کړي دي چې رسول الله ﷺ د الله تعالی څخه د فقیرانو مهاجرینو په واسطه اختیارولو سره د فتح خواست کوی په دې توګه چې رسول الله ﷺ به داسې دعاء کول: اللهم انصرنا علی الاعداء بعبادک الفقرا المهاجرین. شیخ عبدالحق رحمه الله هم دا مطلب بیان کړی دی او بیا یې لیکلي دي چې دغه حدیث د فقیرانو مسلمانانو هغه عظمت او فضیلت ظاهروي کوم چې رسول الله ﷺ دهغوئ لپاره ثابتوی نو رسول الله ﷺ دغه شرف یوازې فقیرانو او مسکینانو ته ورکړ چې د هغوئ په برکت او وسیله جوړولو سره الله تعالی ته به یې د فتح او نصرت لپاره خواست کوی.

## د فاسق دنیا مه غواړئ

﴿۵۰۱۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لاَ تَغْبِطَنَّ فَاجِرًا بِنِعْمَةٍ فَإِنَّكَ لاَ تَدْرِيْ مَا هُوَ لاَقٍ بَعْدَ مَوْتِهِ إِنَّ لَهُ عِنْدَ اللّٰهِ قَاتِلاً لاَ يَمُوْتُ يَعْنِي النَّارَ. رواه في شرح السنة

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل: د هیڅ فاجر او فاسق نعمت او دولت باندې ارزو مه کوه ځکه چې تا ته نه ده معلومه چې د مرګ څخه وروسته به د هغه سره څه چلن کیږي؟ د فاجر لپاره د الله جل جلاله سره یو داسې قاتل دی چې نه مري، یعني د دوزخ اور. شرح السنه

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\ ۲۹۴، رقم: ۴۱۰۳.

**د لغاتو حل**: سنته: ای قحطه وشدة معیشته. (سختي او وچ کالي)

**تشريح:** يو داسي قاتل دی...الخ: يعني الله جلاله د كفارو او فاسقانو لپاره يو داسي شی تيار کړی دی چي هغوئ ته به سخت عذاب ورکړي ، هلاک به يې کړي او په ډول ډول عذابو کي به يې اخته کړي او دهغه شي شان دادی چي خپله هغه ته مرگ او فناء نسته بلكه تل به موجود وي يعني النار، دغه الفاظ د راوي دي چي دغه حديث د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت کړی دی او د هغه نوم عبدالله ابن ابي مريم دی ، گويا هغه ددغه الفاظو په ذريعه دا وضاحت کړی دی چي رسول الله ﷺ د لفظ قاتل په ذريعه کوم شي ته اشاره فرمايلې ده هغه د دوږخ اور دی .

د حديث خلاصه داده چي د داسي كافرانو او فاسقانو په لېدو سره چي زيات اولاد لري يا د زيات عزت او شوكت خاوندان وي يا په نورو دنياوي نعمتونو سره آباد وي نو په هغو قصد كول نه دي پکار او دغه خواهش ته دي په زړه کي ځای نه ورکول کيږي چي کاش داسي نعمتونه ما ته هم حاصل وای .

## دنيا د مؤمن بنديخانه ده

﴿۵۰۱۹﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عُمَرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اَلدُّنْيَا سِجْنُ الْمُؤْمِنِ وَسَنَتُهُ وَاِذَا فَارَقَ الدُّنْيَا فَارَقَ السِّجْنَ وَالسَّنَةَ. رواه في شرح السنة.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : دنيا د مؤمن بندي خانه او قحط دی هر كله چي هغه ددنيا څخه بيل سي نو د بندي خانې او قحط څخه خلاص سي . شرح السنة.

**تخريج:** البغوي في شرح السنة ۱۴\۲۹۷، رقم: ۴۱۰۶.

**تشريح:** د بنديخانې او وچ كالۍ مطلب دادی چي مؤمن دلته د تنگۍ او سختۍ ښكار وي او په معاشي پرېشانيو کي ژوند تېروي او که چيري يو مؤمن ته ددغه ځای خوشحالي تر لاسه هم وي نو د هغه نعمتونو په نسبت کوم چي په آخرت کي تر لاسه کېدونکي دي دغه دنيا بيا هم د هغه لپاره د بنديخانې او وچ كالۍ د ځای څخه زيات ارزښت نه لري ، يا دا مراد دی چي مخلص او عبادت گزار مؤمن خپل ځان همېشه د طاعات او عبادتو مشقتونو او د رياضت او مجاهدې په سختيو کي بوخت ساتي ، عيش او راحت ته په خپل ژوند کي لار نه ورکوي او هر گړی ددې شوق لري چي ددغه محنت او مشقت څخه ډکي دنيا څخه په خلاصون تر لاسه كولو د دار البقاء

پر لار روان سي، په دې اعتبار دا دنيا دمؤمن لپاره د بنديخانې او د وچ كالې وهلې ځاى ځكه د كم صبر زمانه وي ، په يوه روايت كې داسې فرمايل سوي دي چې : لايخلو المؤمن من قلة او علة او ذلة وقد يجتمع للمؤمن الكامل جميع ذلک، داسې هيڅ مؤمن نسته چې يا خو دمال د كمۍ يا ناروغۍ، يا ذلت او خوارې ځخه خالي وي او په ځينو وختو كې په كامل مؤمن كې دغه ټول شيان جمع كيږي .

## الله ﷻ خپل دوستان د دنيا ځخه ساتي

﴿۵۰۲۰﴾: وَعَنْ قَتَادَةَ بْنِ النُّعْمَانِ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِذَا أَحَبَّ اللّٰهُ عَبْدًا حَمَاهُ الدُّنْيَا كَمَا يَظَلُّ أَحَدُكُمْ يَحْمِي سَقِيمَهُ الْمَاءَ. رواه احمد والترمذي.

د حضرت قتادة بن نعمان رضي الله عنه ځخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چې الله تعالى د يوه بنده سره مينه كوي نو هغه ددنيا ځخه وساتي لكه ځرنګه چې تاسو خپل ناروغ د اوبو ځخه ساتئ . احمد او ترمذي.

**تخريج**: لم نجده عند مسند الامام احمد. وسنن الترمذي ۴\ ۳۳۴، رقم: ۲۰۳۶.

**تشريح**: مطلب دادى چې ځرنګه تاسو يو قريب په داسې ناروغۍ كې اخته سې چې په هغه كې د اوبو استعمال سخت تاوان رسوي لكه استسقاء ، ضعف معده او داسې نور، او تا ته د هغه ژوند خوږ وي نو ته ددې خبرې پوره هڅه كوې چې هغه ناروغ د اوبو د استعمال ځخه ليرې وي چې ژر روغ سي ، همدارنګه الله تعالى چې كوم بنده خپل محبوب جوړول او د هغه د آخرت د درجو لوړول غواړي نو هغه د دنياوي مال او دولت ځخه ليرې ساتي چې د هغه دين ته په تاوان رسولو او په عقبى كې د هغه په درجو كې د كمولو سبب جوړ سي .

اشرف رحمه الله هم دا ډول خبره كړې ده او ليكلي يې دي چې الله تعالى هغه بنده د دنياوي مال او عزت او ددغه ځاى هر داسې شى نه وركوي چې د هغه دين او اخروي ژوند ته زينت او خوبي داغداره كړي ددې لپاره چې د هغه زړه دنيا او د شيانو د ميني او خواهش په حرص كې اخته نسي.

## د مال کمي لوی نعمت دی

﴿۵۰۲۱﴾: وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اثْنَتَانِ يَكْرَهُهُمَا ابْنُ آدَمَ يكره الْمَوْتُ وَالْمَوْتُ خَيْرٌ لِلْمُؤْمِنِ مِنَ الْفِتْنَةِ وَيَكْرَهُ قِلَّةَ الْمَالِ وَقِلَّةُ الْمَالِ أَقَلُّ لِلْحِسَابِ. رواه احمد.

د حضرت محمود بن لبید ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: دوه شیان دي چي انسان یې بد ګڼي: یو مرګ حال دا چي مرګ د مؤمن لپاره تر فتنې غوره دی، او دویم د مال کمي، حال دا چي د مال کمي حساب لږوي (یعني حساب کموي). احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\۴۲۷.

**تشریح**: د فتنې څخه مراد کفر او شرک دی او په ګناهو کي اخته کېدل دي، د ظالم او جابر خلکو پر داسي کار باندي مجبوره کول چي د اسلامي عقائدو او تعلیماتو خلاف وي او داسي حالاتو سره مخ کېدل چي په هغه سره دین او آخرت زخمي کیږي، حقیقت دا دی چي ژوند او د ژوندي اوسیدو ارزو خو په دغه صورت کي ښه ده کله چي د الله ﷻ او د هغه د رسول فرمانبرداري وکړل سي، د طاعت او عبادت توفیق په برخه سي، پر صراط مستقیم باندي ثابت قدمي نصیب سي او تر ټولو زیات دا چي د دغه دنیا څخه د ایمان په سلامتیٰ سره رخصت سي او که دغه شیان تر لاسه نسي او د ایمان سلامتي نصیب نسي نو بیا دغه ژوند د څه کار دی؟ د ظالمانو او جابرانو خلکو له خوا د جبر او اکراه په صورت کي که څه هم پر ایمان او عقیده باندي قائم وي مګر په ژبه سره داسي خبره ادا کول چي د ایمان او عقیدې مناسب نه وي نو دا هم یوه فتنه ده مګر که چیري د فتنې تعلق د یو دنیاوي مصائبو او د ژوند د سختو سره وي نو په داسي صورت کي د ژوند څخه نفرت او د مرګ ارزو به صحیح نه وي ځکه چي داسي فتنه د ګناهو کفاره او د اخروي درجو د لوړوالي سبب وي.

وقلة المال اقل للحساب: مطلب دا دی چي د دنیاوي مال او دولت کمي د عذاب څخه ډیر لیري او د هر مسلمان لپاره غوره دی او کوم مسلمان چي غریب وي هغه ته خوشحاله کېدل پکار دي چي الله تعالی زه د مال او دولت څخه ساتلی یم ګویا د آخرت د حساب او عذاب څخه یې ساتلی یم او ښکاره ده چي په دغه دنیا کي د عذاب او ناداریٰ په وجه چي کومي سختیٰ او پریشانیٰ زغمل وي هغه د هغه سختیو او پریشانیو څخه ډیري کمي او اسانه دي چي د مال او

دولت د وبال په وجه په آخرت کي پېښېږي .

شيخ عبدالحق دهلوي رحمه الله پر دغه ځای د حکمت څخه ډکه یوه خبره کړې ده هغه هر طالب حق ته په مخاطب کولو سره ویلي دي چي اې زما عزیزه! دا ټولي د ایمان څانګکي دي کوم څوک چي د شارع علیه السلام د ارشاداتو مطابق ایمان صحیح او سالم ساتي هغه یقینا پوهیږي چي شارع علیه السلام څه فرمایلي دي هغه برحق او عین صداقت دی او که هغه سړی عقل سلیم او صحیح تجربه لري نو هغه په دغه دنیا کي هم په دې خبره پوهیږي چي د مال او دولت تر لاسه کولو او جمع کولو او له دې سره د تعلق او میني ساتلو په اړه چي د کومو مصیبتو سره مخامخ کېدل دي او د څومره ذلت او خواري مخ کتل دي او څومره زیات محنت زغمل دي هغه ټول د فقر او افلاس د سختیو او پریشانیو څخه په هیڅ ډول کم نه دي ، نو په دنیاوي توګه محنت او مشقت او د هر ډول ذلت او خواری څخه د ساتني بلکه د نفس د پاکی او صفایي او د اخروي حساب د عذاب څخه د ساتني او د درجو دلوړوالي او رفعت انحصار پر دې خبره دی چي د مال او دولت کثرت څخه خپل لمن وساتل سي ، د دې څخه قطع تعلق کولو سره او قدرت کفایت باندي په قناعت کولو سره عزت نفس، اخلاق او استقامت اختیار کړل سي .

## د فقر لپاره تیاري

﴿۵۰۲۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مُغَفَّلٍ قَالَ جاء رَجُلٌ الى النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن مغفل رضي الله عنه څخه روایت دئ چي یو سړي د نبي کریم صلی الله علیه وسلم په خدمت کي

وَسَلَّمَ فقال إِنِّي لَأُحِبُّكَ ثَلَاثَ مَرَّاتٍ قَالَ إِنْ كُنْتَ صادقا فَأَعِدَّ لِلْفَقْرِ

وویل: چي زه ستاسو سره مینه لرم، رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمایل : پوهیږې چي ته څه وایي ؟ هغه وویل: قسم په خدای زما ستاسو سره مینه ده ، دغسي یې دري واره وویل، رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل : که ته رښتیا وایې نو د فقر لپاره

تِجْفَافًا للفقر أَسْرَعُ إِلَى مَنْ يُحِبُّنِي مِنَ السَّيْلِ إِلَى مُنْتَهَاهُ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

تجفاف (صبر) تیار کړه ځکه چي څوک زما سره مینه کوي هغه ته فقر او مفلسي ژر رسیږي د هغه اوبو څخه هم ژر چي د پر کښته لور ځي .

**تخريج:** سنن الترمذي ۴۹۸\۴، رقم: ۲۳۵۰.

**تشريح:** د تجفاف معنی ده د اوسپني زغره چي د جنګ په ميدان كي پر فيل يا آس اچول كيږي چي د هغه بدن د زخمي كېدو څخه وساتل سي لكه څرنګه چي زغره د سپاره مجاهد بدن د نېزې او توري د زخم څخه خوندي ساتي ، دلته په حديث كي د زغري په ذريعه صبر او استقامت ته اشاره كول مقصد دي لكه څرنګه چي د اوسپني زغره د فيل يا آس بدن ساتي همدارنګه صبر او استقامت اختيارول د فقر او فاقې ژوند سرپوش جوړوي، خلاصه دا چي د صبر او استقامت پر لار باندي په هر صورت تلونكى اوسه په خاصه توګه هغه وخت كله چي فقر او فاقه ستا ژوند راګير كړي چي تا ته مراتب او د درجو لوړي په برخه سي .

د حديث د آخري جملې مطلب دادی چي كوم څوک د رسول الله ﷺ د ميني څخه پوره برخمن كيږي نو هغه ته فقر او فاقه ژر رسيدل او پر هغه د دنياوي آفاتو او مصيبتو نازلېدل يو يقيني امر دی ځكه منقول دي چي په دنيا كي كومو خلكو ته تر ټولو زيات آفات او سختيو سره مخامخ كېدل وي هغه انبياء عليهم السلام دي د هغوئ څخه وروسته درجه په درجه د هغه خلكو نمبر وي چي د عقېدې او عمل په اعتبار د اعلى مرتبې وي ، رسول الله ﷺ د هغه انبياء عليهم السلام څخه وو، نو رسول الله ﷺ هغه سړي ته څرګنده كړه كه چيرې په حقيقت كي ته زما سره مينه لرې نو زما په اړه چي ستا مينه د كومي درجې وي د هغه درجې د دنياوي سختيو او پريشانيو به تا ته مخ كول وي ځكه دا اصول دي چي المرء مع من احب، كوم څوک چي د چا دوست وي نو د هغه په حالت كي به وي .

شيخ عبدالحق رحمه الله فرمايي: رسول الله ﷺ د خپل دغه ارشاد (د فقر لپاره زغره تياره كړه) په ذريعه د كنايې په توګه دا تلقين وفرمايه چي د فقر او فاقې پر وخت د صبر پر لار تللو ته تيار سه ځكه دا صبر دی چي د فقر او مفلسۍ د آفتونو او مصيبتونو زغملو طاقت وركوي، د ديني او دنياوي هلاكت او تباهۍ څخه يې محفوظ ساتي ، د شكايت د لاري څخه يې ليري كوي او د غضب الهي څخه يې ژغوري، نوموړی وايي: ددغه حديث څخه دا حقيقت څرګنديږي چي د فقر او فاقې ژوند اختيارولو پرته او د رسول الله ﷺ پر حيات باندي د عمل كېدو پرته د رسول الله ﷺ د ميني دعوه كول بالكل ناروا او درواغ دي، ځكه چي په حقيقت كي اسوه نبوي اتباع او د رسول الله ﷺ مينه دواړه د يو بل سره لازم او ملزوم دي او د محبوب د اتباع او پيروۍ څخه پرته د ميني دعوه صحيح كيدای نسي : ان المحب لمن يحب مطيع، څرګنده دي وي چي د حب نبوي دا تر ټولو اعلى مرتبه ده چي د يو مسلمان د رسول الله ﷺ د

اسوه حيات كامله اتباع خپله وظيفه جوړول ددې خبري علامه ده چي هغه د رسول الله ﷺ دعوه په مينه كي بالكل ريښتوني او د درجه كمال حامل دي كه څه هم د ميني حقيقت او ماهيت دادى چي انسان د يو چا څخه را ايستل او د هغه د زړه د هغه محبوب ښېګڼو او د هغه ذات او صفات او د هغه شكل او صورت د تعريف او توصيف څخه معمور كېدل چي هغه خپل محبوب تر ټولو ښه لېدل او ګڼل پېل كړي چي څرنګه اوس وښودل سول د ميني د تكميل انحصار د محبوب كاملي اتباع او پيروي باندي دى كه باطني تعلق او ميني سره د عمل او اتبآع دولت هم نصيب سي نو اصلي او كامل مينه دغه ته ويل كيږي كنه نو محض په زړه كي د ميني كېدل او په ژبه سره د هغه اقرار كول مګر د عمل او اتباع په لاره كي د غفلت او كوتاهي ښكار كېدل د ميني د ناقص كېدو دليل دى لكه څرنګه چي د عمل څخه پرته ايمان درجه تكميل ته نه رسيږي .

## د دعوت اسلام په لار كي

﴿۵۰۲۳﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَقَدْ أُخِفْتُ فِي

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زه د الله جل جلاله د دين په اظهار

اللَّهِ وَمَا يُخَافُ أَحَدٌ وَلَقَدْ أُوذِيتُ فِي اللَّهِ وَمَا يُؤْذَى أَحَدٌ وَلَقَدْ أَتَتْ عَلَيَّ ثَلَاثُونَ

وبيرول سوم او (زما څخه پرته) بل څوک دومره نه وو بيرول سوى او ما ته تكليف راكړل سو چي داسي تكليف هيچا ته نه وو وركړل سوى او البته ديرش

مِنْ بَيْنِ ليلة ويوم وَمَا لِي وَلِبِلَالٍ طَعَامٌ يَأْكُلُهُ ذُو كَبِدٍ إِلَّا شَيْءٌ يُوَارِيهِ إِبْطُ

شپې او ورځي پر ما داسي تيري سوي چي زما او بلال لپاره خوراک نه وو ، هغه خوراک د هر ځيګر خاوند خوري خو يو ډير لږ دول شي چي

بِلَالٍ. رواه الترمذي وقال و مَعْنَى هَذَا الْحَدِيثِ حِينَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ

بلال په خپل څنګ كي پټ كړى وو . ترمذي، ترمذي ددې حديث معنا بيان كړې ده كوم وخت

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَارِبًا مِنْ مَكَّةَ وَمَعَهُ بِلَالٌ إِنَّمَا كَانَ مَعَ بِلَالٍ مِنَ الطَّعَامِ مَا يَحْمِلُ تَحْتَ إِبْطِهِ .

چي نبي کريم ﷺ د مکې څخه د باندي ولاړی نو د رسول الله ﷺ او بلال سره د خوراک د شیانو يوازي دومره وو چي بلال په څنګ کي پټ کړي وه دا په حقیقت کي د طائف پېښه ده هلته رسول الله ﷺ تر يوې مياشتي پوري د اسلام د بلني په کار بوخت وو او سخت تکليفونه يې وزغمل.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵۵۶\۴، رقم: ۲۴۷۲.

**تشريح**: د حديث د لومړنيو جملو وضاحت طيبي رحمه الله هغه کړی دی کوم چي په ترجمه کي نقل سوی دی مګر صحيح خبره داده چي هيڅوک دومره په ېره او دهشت کي نه دی اخته سوی او دومره زياتو تکليفو سره بل هيڅوک مخ سوی نه دی، ددې څخه د رسول الله ﷺ مراد دا دی چي د الله تعالی د دين په رسولو کي څومره په ېره او دهشت کي اخته سوی يم او څومره تکليفونه ما زغملي دي بل نبي او رسول نه دي زغملي، ددې تائيد ددغه حديث څخه هم کيږي چي په هغه کي رسول الله ﷺ فرمايلي دي: ما اوذي نبي مثل ما اوذيت، څومره تکليف چي ما ته رسول سوی دی دومره بل هيڅ نبي او رسول ته نه دی رسول سوی، او ددې وجه داده چي په اصل کي د الله تعالی د دين په لاره کي تکليف رسېدل د هر سړي د همت، حيثيت او مرتبې مطابق وي، د رسول الله ﷺ همت او حيثيت د ټولو نورو رسولانو رسول الله ﷺ مرتبه تر ټولو لوړه ده د رسول الله ﷺ صداقت او حقانيت تر ټولو زيات ښکاره وو او د ايمان خپرولو او د خلکو پر سيده لار راوستلو آرزو او د هغه لپاره هڅه کول تر ټولو زيات د رسول الله ﷺ سره وو ځکه چي په دغه لار کي تر ټولو زيات تکليفونو سره مخ کېدل هم رسول الله ﷺ ته پېښ سوي دي.

ولقد اتت علي ..الخ: ددې څخه د رسول الله ﷺ د خپل فقر او فاقې د سختو ورځو ذکر چي په کوم انداز کي وفرمايه د هغه څخه يو خو سخت مصيبتو ته اشاره کول مقصد دي چي د هغه سره رسول الله ﷺ ته د سلام د دعوت په لاره کي مخ کېدل وه نو ظاهره ده چي د فقر او فاقې څخه زيات بل سخت تکليف نسي کېدای، او دوهم اصل مقصد د امت خلکو ته تعليم او تلقين وو چي د الله ﷻ د دين په لاره کي که لوی تکليف زغمل هم وي نو هغه په بنه ډول زغمل پکار دي او په هر صورت د استقامت پر لاره تلل پکار دي.

امام ترمذي رحمه الله چي دا ويلي دي چي (او هغه وخت د رسول الله ﷺ سره حضرت بلال رضي الله عنه وو) ددې څخه دا خبره ښکاريږي چي د رسول الله ﷺ د بيان سوي صورت حال تعلق د هغه وخت سره نه دی چي رسول الله ﷺ د مکې څخه د مدينې لپاره هجرت کړی وو ځکه چي هغه وخت د رسول الله ﷺ سره حضرت بلال رضي الله عنه نه وو، بلکه دا واقعه غالبا د هغه وخت ده چي د اسلام په پيل کي د مکې څخه طائف ته تشريف وړی وو، د نبوت لسم کال وو او د شوال مياشت

وه چي د رسول الله ﷺ اکا ابوطالب وفات سو، او بیا درې ورځي وروسته یا پنځه ورځي وروسته ام المؤمنین بي بي خدیجه رضي الله عنها په حق ورسېده، دغه دواړې پېښې د رسول الله ﷺ لپاره سختي وې ځکه رسول الله ﷺ دغه کال ته عام الحزن یعني د غم کال وو وایه، د مکې قریش د مخکي څخه رسول الله ﷺ ته ډول ډول تکلیفونه ورکړي وه اوس د دغه دوو هستیو په خاصه توګه د ابوطالب د وفات څخه وروسته هغوئ ته د خپلو ظالمانه اعمالو او کارو موقع تر لاسه سوه نو هغوئ رسول الله ﷺ ته په تکلیف رسولو کي نور شدت اختیار کړ،

بلي خوا ته رسول الله ﷺ د اهل مکه د اسلام قبلولو څخه د ناامیدۍ په صورت کي وو نو په دغه کال یعني لسم هجري کال د شوال د میاشتي په پای کي رسول الله ﷺ د حضرت زید ابن حارث رضي الله عنه سره پر پښو د مکې څخه طائف ته تشریف یووړ او د طائف خلکو ته یې د حق کلمې دعوت ورکړ او پر لسو یوه میاشت یې هغوئ ته تبلیغ وکړ، مګر هغوئ د رسول الله ﷺ یوه خبره نه ومنل او یوه سړي ته هم د حق قبلېدو توفیق ورنه کړل سو، بلکه ظالمانو خپل کوچنیان او بدمعاش خلک په رسول الله ﷺ پسي ولګول چي تکلیف ورته ورسوي نو هغه بدبختو په رسول الله ﷺ باندي ډبري اورول پیل کړل، د رسول الله ﷺ پښې مبارکي زخمي کېدلې او دومره ویني ځیني بهېدلې چي څپلۍ مبارکي یې په وینو ډکي سوې، رسول الله ﷺ چي به دزخمونو څخه په بې تابه کېدو ولوېدی نو هغه خلکو به د رسول الله ﷺ دواړه لاسونه ونیول او ولاړ به یې کړی رسول الله ﷺ به پر مخ تلی نو هغوئ به بیا په ډبرو ویشتی او په خوشحاله کېدو سره به یې لاسونه ټکول او په زوره به یې خندل، حضرت زید ابن حارثه رضي الله عنه چي به د کومي خوا څخه ډبره لېدل نو هغه خوا ته به ودرېدی او رسول الله ﷺ به یې ژغوری، تر دې چي د حضرت زید رضي الله عنه سر هم په ډبري ولګېدی او سخت زخمي سو، په دغه دوران کي الله جل جلاله د وریځي یوه ټوټه رالولېږل چي پر رسول الله ﷺ یې سایه وکړه او بیا حضرت جبرائیل علیه السلام د یو بلي ملائکي سره راغلی او وه یې ویل چي پروردګار ستاسو د قوم ټولي خبري واورېدلي او ستاسو سره یې چي کوم چلند کړی دی هغه یې ولېدی زما سره هغه ملائکه ده چي هغې ته د غرونو خدمت حواله دی د الله پاک هغه ته حکم دی که چیري ته وایي نو د طائف شاوخوا غرونه به په خپلو کي وجنګوي او د هغه دواړو په منځ اهل طائف دي داسي سي لکه څرنګه چي د ژرندي دواړه پلونه دانې میده کوي مګر دا ممکن نه وه چي رحمت عالم ﷺ د انتقامي کاروایي اجازه ورکړي نو رسول الله ﷺ ددې اجازه ورنه کړه او داسي یې وویل: یا ارحم الراحمین! تاسو زه سخت زړه او د بدلي اخیستلو عادي نه یم جوړ کړی زه پر خلکو ستاسو د عذاب نازولو لپاره نه یم راغلی ما د

خپل قوم د هلاکولو او تباه کولو سبب مه جوړوې که دوئ نیست او نابود سي نو په دې سره ما ته څه تر لاسه کیږي مګر که چیري دوئ ژوندي وي نو امید دی چي کیدای سي د دوئ د نسلونو څخه هغه خلک پیدا سي چي په وحدانیت سره ستا عبادت کوي او ستا د دین بیرغ لوړ کړي، اې پروردګاره! دوئ زما د مرتبې څخه ناخبره دي ، د دوئ پر سترګو د جهل او ناپوهۍ پټۍ تړلي دي که ته دوئ ته بینایي ورکړې چي په هغه سره دوئ زما شان ووینې نو امید دی چي په ایمان سره به مشرف سي . په پای کي یوه میاشت وروسته رسول الله ﷺ د طائف څخه راستون سو چي د فقر او فاقې او زخمو څخه یې بدن مبارک کمزوری سوی وو او ګوتي مبارکي یې وینو رنګ سوي وي مګر په ژبه مبارکه یې د ښېرا پر ځای د دعاء الفاظ جاري وه .

د طائف د سفر دغه پوره واقعه په تفصیل سره د تاریخ په کتابو کي ملاحظه کیدای سي دلته ددغه واقعې اجمالي ذکر سوی دی او هغه هم ددې لپاره چي د روایت په پای کي دې ته اشاره ده ، پاته سوه دا خبره چي په حدیث کي د رسول الله ﷺ د حضرت بلال رضی الله عنه ذکر دی حال دا چي په ذکر سوې واقعه کي د حضرت زید ابن حارثه رضی الله عنه ذکر دی نو په دغه دواړو کي هیڅ تضاد نسته ځکه اغلب داده چي حضرت بلال او حضرت زید بن حارثه رضي الله عنهما دواړه د رسول الله ﷺ سره وه مګر د تاریخ او سیرت په کتابو کي د حضرت زید ابن حارثه رضی الله عنه یادونه کیږي .

## د نبي ﷺ پر نس مبارک ډبري

﴿۵۰۲۴﴾: وَعَنْ أَبِي طَلْحَةَ قَالَ شَكَوْنَا إِلَى رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْجُوعَ فَرَفَعْنَا عَنْ بُطُونِنَا عَنْ حَجَرٍ حَجَرٍ فَرَفَعَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ بطنه حَجَرَيْنِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو طلحه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي موږ رسول الله ﷺ ته د لوږي شکایت وکړ او پر خپل نس مو یوه یوه ډبره تړلې وه خپل نسونه مو رسول الله ﷺ ته ښکاره کړل ، رسول الله ﷺ چي خپل نس ښکاره کړ نو پر هغه مبارک دوې ډبري تړلي وې ، . ترمذي ویلي دا حدیث غریب دئ.

**تخریج**: سنن الترمذي ۵۰۶/۴، رقم: ۲۲۷۱.

**تشریح**: کله چي د لوږي سختي وي او نس بالکل خالي وي نو په دغه صورت کي پر نس ډبري تړل نس ، معدې او کولمو ته دومره تقویت ورکوي چي سړي خپل کار کولای سي او پر ناسته ولاړه باندي لږ قادر کیږي او کله چي د لوږي شدت تر دې زیات سي او په ډبرو هم ګزاره نه

کيږي نو بيا بله دبره پر و تړل سي، پر رسول الله ﷺ باندي د لوږي شدت دومره زيات وو او هسي هم رسول الله ﷺ د زيات محنت او رياضت عادي وو ځکه رسول الله ﷺ پر خپل نس مبارک دوې دبري تړلي وې.

﴿۵۰۲۵﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّهُ أَصَابَهُمْ جُوعٌ فَأَعْطَاهُمْ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَمْرَةً تَمْرَةً. رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريرة رضی الله عنه څخه روايت دئ چي دوئ لوږي په تکليف کړل نو رسول الله ﷺ يوه يوه خرما ورکړل. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۵۷، رقم: ۲۴۷۴.

**تشريح**: ددغه حديث څخه د حضرت ابوهريره رضی الله عنه مقصد دا ښودل دي چي هغه پر صحابه کرامو باندي د فقر او فاقې او دخوراک او څښاک د تنگۍ دومره غلبه وه چي ډېره واره به هغوئ په يوه يوه خرما اکتفاء کول.

## صابر او شاکر څوک دی

﴿۵۰۲۶﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيهِ عَنْ جَدِّهِ عَنْ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ

حضرت عمرو بن شعيب رضی الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت کوي چي رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ خَصْلَتَانِ مَنْ كَانَتَا فِيهِ كَتَبَهُ اللّٰهُ شَاكِرًا صَابِرًا مَنْ نَظَرَ فِي

الله ﷺ وفرمايل: دوه عادتونه دي کوم چي په سړي کي پيدا سي نو الله تعالى هغه په شکر کونکي صبر کونکي خلکو کي ليکي: يو خو دا چي هر کله

دِينِهِ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ فَاقْتَدَى بِهِ وَمَنْ نَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ دُونَهُ فَحَمِدَ

په ديني کارونو کي څوک د ځان څخه غوره ويني نو د هغه پيروي وکړي او په دنيا وي کارونو کي که څوک ويني چي د هغه څخه د لاندي درجې وي نو د الله تعالى تعريف وکړي

اللّٰهَ عَلَى مَا فَضَّلَهُ اللّٰهُ عَلَيْهِ كَتَبَهُ اللّٰهُ شَاكِرًا صَابِرًا وَمَنْ نَظَرَ فِي دِينِهِ إِلَى مَنْ

چي ده ته يې پر هغه ښېگڼه ورکړې ده، الله تعالى دي په شکر کونکي کي ليکي، او څوک چي په دين کي دا سي کس ويني

هُوَ دُونَهُ وَنَظَرَ فِي دُنْيَاهُ إِلَى مَنْ هُوَ فَوْقَهُ فَأَسِفَ عَلَى مَا فَاتَهُ مِنْهُ لَمْ يَكْتُبْهُ

چې دده څخه کم وي او په دنيوي لحاظ سره داسې کسان ووينې چې دده څخه زيات وي او بيا هغه پر تير سوي شی د افسوس اظهار وکړي

اللَّهُ شَاكِرًا وَلَا صَابِرًا. رواه الترمذي و ذكر حديث ابي سعيد ابشروا يا معشر صعاليك المهاجرين في باب بعد فضائل القرآن.

نو الله تعالى هغه صابر او شاکر نه ليکي ، ترمذي ، د ابو سعيد حديث د فضائل قرآن څخه وروسته بيان کړل سو چې اې د فقراء مهاجرينو خوشحاله اوسئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۷۴، رقم: ۲۵۱۲.

**تشريح**: د مؤخر الذکر سړي نه شاکر او نه صابر ګرځولو سبب دادی چې د کومو دوو خصلتونو ذکر سوی دی په هغه کې يو صفت هم هغه اختيار نه کړ بلکه د هغه پر خلاف هغه د الله تعالى ناشکري وکړه او په ژبه او زړه سره د جزع او فزع او شکايت مرتکب سو .

په حديث کې فرمايل سوي دي چې الله ﷻ هغه څوک صابر او شاکر ګرځوي، مطلب دادی چې الله ﷻ هغه سړي کامل مؤمن جوړوي او د دغه آيت (ان في ذلک لايات لکل صبار شکور) څخه دا ثابتيږي چې د صابر او شاکر اطلاق پر هغه چا باندي کيږي چې کامل مؤمن وي .

په يوه حديث کې دا هم فرمايل سوي دي چې د ايمان دوه نصفه دي يو نصف صبر دی او يو نصف شکر دی ، يعني خپل ځان د خرابيو څخه منع کول په صبر سره تعبير سوی دی او د اندامو په ذريعه د طاعت کول د شکر مفهوم دی او څرګنده ده چې د بنده ژوند د دغه دواړو اجزاوو د تکميل څخه معموره وي نو هغه کامل مؤمن دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### پر فقر د صبر کولو فضيلت

﴿۵۰۲۷﴾: وَعَنْ أَبِي عَبْدِ الرَّحْمَنِ الْحُبُلِيِّ قَالَ سَمِعْتُ عَبْدَ اللَّهِ بْنَ عَمْرٍو

د عبدالرحمن حبلي رحمه الله څخه روايت دی چې د عبدالله بن عمرو رضي الله عنهما څخه يو سړي پوښتنه وکړه

وَسَأَلَهُ رَجُلٌ قَالَ أَلَسْنَا مِنْ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِينَ فَقَالَ لَهُ عَبْدُ اللَّهِ أَلَكَ امْرَأَةٌ

چي ايا موږ د هغه فقراء مهاجرينو څخه نه يو چي هغوئ ته دا زيرى ورکړل سوى دئ چي (هغوئ به د شتمنو څخه مخکي جنت ته ځي) ددې په جواب کي ما د عبد الله بن عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه دا واوريدل چي ايا ستا ښځه سته

تَأْوِي إِلَيْهَا قَالَ نَعَمْ قَالَ أَلَكَ مَسْكَنٌ تَسْكُنُهُ قَالَ نَعَمْ قَالَ فَأَنْتَ مِنَ

چي ته د هغې سره اوسيږې ؟ هغه وويل :هو، بيا عبد الله پوښتنه وکړه ايا ستا کور سته چي ته په هغه کي اوسيږې ؟ هغه وويل هو، عبد الله ورته وويل بيا ته

الْأَغْنِيَاءِ قَالَ فَإِنَّ لِي خَادِمًا قَالَ فَأَنْتَ مِنَ الْمُلُوكِ قَالَ عَبْدُ الرَّحْمٰنِ وَجَاءَ

شمتن يې، هغه سړي ويل هو زما سره يو خادم هم سته، عبد الله ورته وويل بيا خو ته د پاچاهانو څخه يې، د ابو عبد الرحمن راوي بيان دئ چي

ثَلاَثَةُ نَفَرٍ إِلَى عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو وَأَنَا عِنْدَهُ فَقَالُوا يَا أَبَا مُحَمَّدٍ إِنَّا وَاللهِ مَا

درې کسان عبد الله بن عمرو رضي الله عنه ته راغلل دغه وخت زه د هغه سره ناست وم هغوئ وويل اې عبد الله ! قسم په خداى

نَقْدِرُ عَلَى شَيْءٍ لاَ نَفَقَةَ وَلاَ دَابَّةَ وَلاَ مَتَاعَ فَقَالَ لَهُمْ مَا شِئْتُمْ إِنْ شِئْتُمْ

موږ پر هيڅ شي قدرت نه لرو نه خو زموږ سره خرڅ سته او نه سپرلى او نه سامان، عبد الله بن عمرو ورته وويل تاسو څه غواړئ ؟ که تاسو دا غواړئ (چي زه د خپل لوري څخه څه درکړم)

رَجَعْتُمْ إِلَيْنَا فَأَعْطَيْنَاكُمْ مَا يَسَّرَ اللهُ لَكُمْ وَإِنْ شِئْتُمْ ذَكَرْنَا أَمْرَكُمْ

نو بيا يو وخت راسئ زه به هغه شى درکړم چي د هغه انتظام الله تعالى وکړي، او که تاسو غواړئ نو زه به ستاسو حالت

لِلسُّلْطَانِ وَإِنْ شِئْتُمْ صَبَرْتُمْ فَإِنِّي سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

پاچا ته بيان کړم، او که تاسو خوښوئ نو صبر وکړئ، ځکه چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي

يَقُولُ إِنَّ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِينَ يَسْبِقُونَ الْأَغْنِيَاءَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ إِلَى الْجَنَّةِ

بِأَرْبَعِيْنَ خَرِيْفًا قَالُوْا فَإِنَّا نَصْبِرُ لَا نَسْأَلُ شَيْئًا. رواه مسلم.

چي فقراء مهاجرين به د شتمنو څخه څلوېښت کاله مخکي جنت ته ځي، هغوئ وويل موږ به صبر کوو او هيڅ نه غواړو. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۸۵، رقم: ۳۷-۲۹۷۹.

## د فقراء مهاجرينو فضيلت

﴿۵۰۲۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ بَيْنَمَا أَنَا قَاعِدٌ فِي الْمَسْجِدِ وحلقة

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ په مسجد نبوي کي ناست وو او د فقراء

مِّنْ فُقَرَاءِ الْمُهَاجِرِيْنَ قُعُوْدٌ إِذْ دَخَلَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَعَدَ

مهاجرينو حلقه جوړه سوې وه چي رسول الله ﷺ تشريف راوړ او د فقراء مهاجرينو سره

إِلَيْهِمْ فَقُمْتُ إِلَيْهِمْ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِيُبَشَّرْ فُقَرَاءَ الْمُهَاجِرِيْنِ

کښېنستی، زه ولاړ سوم او د فقراء مهاجرينو په لور متوجه سوم، نبي کريم ﷺ وفرمايل: فقراء مهاجرين ته هغه زيری رسول پکار دي

بِمَا يَسُرُّ وُجُوْهَهُمْ فَإِنَّهُمْ يَدْخُلُوْنَ الْجَنَّةَ قَبْلَ الْأَغْنِيَاءِ بِأَرْبَعِيْنَ عَامًا قَالَ

چي د شتمنو څخه به د هغوئ مخونه تازه وي (يعني هغوئ به خوشحاله سي او هغه زيری دا دی چي) هغوئ به جنت ته تر شتمنو څلوېښت کاله تر مخه ځي، د راوي بيان دی چي

فَلَقَدْ رَأَيْتُ أَلْوَانَهُمْ أَسْفَرَتْ قَالَ عَبْدُ اللهِ بْنِ عُمَرٍو حَتّٰى تَمَنَّيْتُ أَنْ أَكُوْنَ مَعَهُمْ أَوْ مِنْهُمْ. رواه الدارمي.

ما وليدل چي په دې اوريدو سره د فقراء مهاجرينو مخونه ځلانده سول، د عبد الله بن عمرو رضي الله عنه بيان دی چي د فقراء مهاجرينو د خوشحاله کېدو سره ما په خپل زړه کي دا آرزو وکړل چي زه هم د دوئ سره وای، يا د دوئ وای، دارمي

**تخريج**: سنن الدارمي ۲\۴۳۷، رقم: ۲۸۴۴.

**تشريح**: په (بما يسرو وجوهم) كي د وجوه د لفظ څخه مراد يا خو ذات دى يا لكه څرنګه چي په ترجمه كي ددې لحاظ ساتل سوى دى ، يا دا چي دغه لفظ په خپل اصلي معنى (مخ) كي استعمال سوى دى ، په دغه صورت كي به معنى دا وي چي د هغوئ زړونه خوشحاله كړي او دهغه خوشحالئ اثر د هغوئ پر مخونو ظاهر وي .

په (اكون معهم او منهم) كي د او حرف د تنويع لپاره دى او ددې مطلب هم بيان سوى دى يا دا چي دا يوازي د راوي شک ظاهروي چي حضرت عبدالله رضي الله عنه يا خو – ان اكون معهم – فرمايلي دي يا يې دا وفرمايل چي – ان اكون منهم – ، يعني زما په زړه كي دا ارزو پيدا سوه چي كاش زه هم د فقيرانو مهاجرينو څخه يو واى .

## د اوو خبرو حكم

﴿۵۰۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ أَمَرَنِي خَلِيلِي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِسَبْعٍ أَمَرَنِي

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زما خليل (رسول الله صلى الله عليه وسلم) ما ته دد غه اووه كارو حكم

بِحُبِّ الْمَسَاكِينِ وَالدُّنُوِّ مِنْهُمْ وَأَمَرَنِي أَنْ أَنْظُرَ إِلَى مَنْ هُوَ دُونِي وَلَا أَنْظُرَ إِلَى

راكړ چي زه (۱) د مسكينانو سره مينه وساتم او هغوئ ته نژدې اوسم (۲) او دا حكم يې راكړ چي د ځان څخه د كمي درجې خلكو ته وګورم او پورته خلكو ته نه ګورم

مَنْ هُوَ فَوْقِي وَأَمَرَنِي أَنْ أَصِلَ الرَّحِمَ وَإِنْ أَدْبَرَتْ وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَسْأَلَ أَحَدًا

(۳) او دا حكم يې راكړ چي د خپلوانو سره خپلوي قائم وساتم كه څه هم چي خپلوان يې وشكوي (۴) او دا حكم يې راكړ چي د هيچا څخه به د هيڅ شي سوال نه كوم،

شَيْئًا وَأَمَرَنِي أَنْ أَقُولَ بِالْحَقِّ وَإِنْ كَانَ مُرًّا وَأَمَرَنِي أَنْ لَا أَخَافَ فِي اللّٰهِ لَوْمَةَ

(۵) او دا حكم يې راكړ چي رښتيا خبره به كوم كه څه هم چي ترخه وي. (۶) او دا حكم يې راكړ چي امر بالمعروف او نهي عن المنكر كي به د چا د ملامتيا څخه نه بيريږم،

لَائِمٍ وَأَمَرَنِي أَنْ أُكْثِرَ مِنْ قَوْلِ لَا حَوْلَ وَلَا قُوَّةَ إِلَّا بِاللّٰهِ فَإِنَّهُنَّ مِنْ كَنْزٍ تَحْتَ الْعَرْشِ. رواه احمد.

(۷) او دا حكم يې راكړ چي ډېر لاحول ولاقوة الا بالله ، وايم ځكه چي دا كلمې د هغه خزانې ځخه دي كومه خزانه چي تر عرش الهي لاندي ده . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱۵۹۱۵.

**تشريح**: په (فانهن) كي ضمير شيخ عبدالحق رحمه الله ذكر سوو اوو خبرو ته راجع كړى دى لكه ځرنګه چي د ترجمې ځخه ځرګنده سوه، مګر ملا علي قاري رحمه الله ددغه ضمير مرجع يوازي اخري خبري يعني (لاحول ولاقوة الابالله) ګرځولى دى او فرمايلي يې دي چي دغه الفاظ په اصل كي د هغه خزانې يوه برخه ده چي د عرش الهي لاندي محفوظ ايښودل سوې ده او تر معنوي خزانې پوري د هغه سړي ځخه پرته د بل چا رسيدل نسي كيداى چي هغه ته د الله جل جلاله له خوا د حول او قوة يعني قدرت او طاقت حاصل وي يا دا معنى ده چي دغه الفاظ د جنت د الفاظو ځخه يوه خزانه ده ، په دغه صورت كي د عرش الهي لاندي مفهوم به هم بالكل ځرګند وي ځكه چي عرش تر ټولو لوړ جنت دى ، ملا علي قاري رحمه الله ويلي دي چي كومو شارحينو د (انهن) ضمير ذكر سوو اوو خبرو ته په راجع كولو سره دا ويلي دي چي دغه اووه خبري او عادتونه په هغه خزانه كي دي چي تر عرش الهي لاندي ده.

يو قول داسي دى چي د حقيقت ځخه ليري دى ځكه ددغه قول د ثابتولو لپاره يو دليل نسته ، حال دا چي د انهن ضمير يوازي اخري خبري يعني لاحول ته د راجع كولو تر ټولو لوى دليل دادى چي صحاح سته او نور مسند كتابو كي په ډېرو طريقو سره دا روايت نقل سوى دى چي لاحول ولاقوة الابالله د جنت د خزانو ځخه يوه خزانه ده ، پاته سوه دا خبره چي دغه الفاظو ته د جنت خزانه په كوم اعتبار ويل سوي دي نو په دې اړه د علماؤ مختلف قولونه دي ځينو حضراتو ويلي دي چي دغه الفاظو ته خزانه ځكه ويل سوي دي چي ځرنګه خزانه د عام خلكو د نظرو ځخه پټه وي همدارنګه دغه الفاظ دخپل حقيقت او رفعت په اعتبار د خلكو د نظرو ځخه خوندي دي ، يا دغه الفاظ ځكه په خزانې سره تعبير سوي دي چي دا د جنت د ذخېرو ځخه يوه ذخيره ده يا دا چي ځوک ددغه الفاظو ورد كوي د هغه لپاره ډېري درجې او ثواب په جنت كي خوندي كيږي، په دې اعتبار سره دغه الفاظ يوه خزانه ده ، حضرت ابن مسعود رضي الله عنه په يوه روايت كي بيان كوي چي يوه ورځ د رسول الله صلى الله عليه وسلم په مخكي ما دغه كلمه (لاحول ولاقوة الابالله) وويل، نو رسول الله صلى الله عليه وسلم پوښتنه وكړه ايا ته ددغه الفاظو په حقيقي مفهوم هم پوهېږې؟ ما وويل: الله جل جلاله او دهغه رسول ښه پوهيږي، بيا رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: ددغه الفاظو مطلب دادى چي د الله جل جلاله د نافرمانۍ او ګناهو ځخه ساتل يوازي د الله جل جلاله پر مرسته منحصر دي او د

الله ﷻ په طاعت او عبادت باندي قادر کېدل يوازي د الله تعالى له خوا په ورکونکي قدرت او طاقت باندي منحصر دي .

مشائخ شاذليه قدس الله د هغه طالبانو او د معرفت او طريقت پيروانو ددغه الفاظو (لاحول ولاقوة الابالله) د ورد ډېر وصيت کړی دی او وايي چي د عمل په توفيق کي تر دې زيات معين او مرستيال بل هيڅ شی نسته .

## ددنيا درې مرغوب شيان

﴿۵۰۳۰﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُعْجِبُهُ مِنَ الدُّنْيَا ثَلَاثَةٌ الطَّعَامُ وَالنِّسَاءُ وَالطِّيبُ فَأَصَابَ اثْنَتَيْنِ وَلَمْ يُصِبْ وَاحِدًا أَصَابَ النِّسَاءَ وَالطِّيبَ وَلَمْ يُصِبْ الطَّعَامَ. رواه احمد.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي د دنيا په شيانو کي درې شيان د رسول الله ﷺ خوښ وه، (۱) خوراک (۲) ښځې (۳)او خوشبوئي، په دغه کي دوه شيان رسول الله ﷺ ته زيات تر لاسه وه (ښځې او خوشبوئي) او دريم شی ورته تر لاسه نه سو (يعني خوراک) . احمد.

**تخريج:** مسند الامام احمد ۱\۷۲.

**تشريح:** پر طعام باندي د نفي اطلاق د مبالغې په توګه دی چي د رسول الله ﷺ خوراکي ضرورت څومره لږ او د نه تر لاسه کېدو برابر وو، مخکي دا روايت تېر سوی دی چي رسول الله ﷺ تر وفات پوري پرله پسې دوې ورځي د اوربشو ډوډۍ هم په ماړه نس نه ده خوړلې، که څه هم د خوراک دغه تنګی او قلت خپله د رسول الله ﷺ اختيار کړه وو چي رسول الله ﷺ د ځان لپاره د تنګی ژوند او فقر ته ترجيح ورکړې وه او الله تعالى دخپل حبيب لپاره دا خبره خوښه کړه نو په دې کي بې شمېره حکمتونه پټ دي .

﴿۵۰۳۱﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حُبِّبَ إِلَيَّ الطِّيبُ وَ النِّسَاءُ وَجُعِلَتْ قُرَّةُ عَيْنِي فِي الصَّلَاةِ. رواه احمد والنسائي و زاد ابن الجوزي بعد قوله حبب الى من الدنيا.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما لپاره خوشبوئي او ښځې

محبوب ګرځول سوي دي او لمونځ خو زما د سترګو يخوالی جوړ کړل سوی دی. احمد، نسائي او ابن الجوزي د حبب څخه وروسته د من الدنيا لفظ زيات بيان کړی دی.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۳\۱۹۹، والنسائي ۷\۶۲، رقم: ۳۹۴۱.

**تشريح**: زما د زړه سکون او نشاط په لمانځه کي ايښودل سوی دی: مطلب دادی چي ما ته کوم ذوق او لذت په لمانځه کي تر لاسه کيږي هغه په بل عبادت کي نه تر لاسه کيږي، پر رسول الله ﷺ باندي د لمانځه پر وخت دغه لذت بېخودي او ذوق اثر وو چي کله به د لمانځه وخت سو نو د ډېر شوق په حالت کي به يې ويل: ارحنا يا بلال! يعني اې بلاله! ژر ولاړ سه او اذان وکړه چي زه لمونځ پېل کړم او د نورو امورو د بوختيا او تفکر څخه په خلاصېدو سره په مناجات حق کي بوخت سم.

د قرة لفظ يا خو د قر څخه مشتق دی چي د هغه معنی د قرار او اثبات ده او کله چي نظر ته د محبوب دېدار نصيب سي نو نه يوازي زړه ته قرار حاصل سي چي سترګي بيا بل چا لېدو ته نه رواداري کيږي بلکه زړه او دماغ ته د راحت او اطمينان دولت حاصل سي.

لکه څرنګه چي د محبوب د دېدار په صورت کي نظر پرېشان او زړه ناقرار وي نو د نظر او زړه د اقرار او سکون رسول الله ﷺ په قرة عيني سره تعبير کړيا دا چي لفظ د قرة په اصل کي د قر څخه مشتق دی چي د هغه معنی د يخوالي او لذت ده چي د يو عزيز شي او محبوب ديدار او مشاهدې په سرور کي سترګو ته تر لاسه کيږي. لکه څرنګه چي يو ناقابل نفرت شي په لېدو سره په سترګو کي بل بخري معلومېږي همدارنګه د خپل يو عزيز او محبوب په لېدو سره سترګو ته يخوالی محسوس کيږي ځکه زوی ته قرة العين ويل کيږي.

د روايت د آخري الفاظو مطلب دادی چي ابن جوزي رحمه الله دغه حديث څرنګه نقل کړی دی په دې کي د شروع جمله داسي ده: حبب الي من الدنيا الطيب...الخ، يعني د دنيا کوم غوره شيان چي زما لپاره غوره جوړ سوي دي په هغو کي يو خو خوشبويي ده او دوهم ښځه ده، مګر دا خبره دي څرګنده وي چي د حديث هغه الفاظ کوم چي امام احمد او امام ترمذي په اتفاق سره نقل کړي دي زيات صحيح هغه دي کوم چي په پورته متن کي نقل سوي دي، طبراني په خپل درو سره معاجمو کي په خطيب تاريخ بغداد کي او ابن عدي په کامل کي هم دا روايت په دغه الفاظو سره نقل کړی دی او حاکم هم په خپل مستدرک کي همداسي نقل کړی دی او ويلي يې دي چي دغه حديث د مسلم د شرط مطابق صحيح دی مګر د هغه په روايت کي د جعلت الفاظ

نسته، د نسائي په روايت كي هم د من الدنيا الفاظ په يوه بله وجه منقول دي، د يوې بلي خبري وضاحت هم ضروري دي چي د ناقلين حديث په نزد په دغه روايت كي د : حبب الي من الدنيا ، ثخه وروسته د ثلث لفظ نقل كيږي نو څرنګه چي سخاوي رحمة الله عليه نقل كړي دي چي د تحقيق او پلټني سربېره دغه حديث په هيڅ كتاب كي ددغه روايت په دوران كي نسي تر لاسه كيداى مګر په كتاب احياء العلوم او د كشاف په تفسير سورة آل عمران كي دغه لفظ موجود دى ، شيخ ابن حجر رحمة الله عليه او شيخ ولي الدين عراقي رحمة الله عليه هم دا ليكلي دي چي د حديث په كوم كتاب كي هم دغه روايت دى د ثلث لفظ په هيڅ كتاب كي منقول نه دى نو دغه حديث په دغه الفاظو سره منقول سوى دى ددې په مفهوم كي هيڅ سوال نسته ، همدارنګه ددغه دواړو الفاظو يعني من الدنيا او ثلث څخه كه چيري يو لفظ هم شامل روايت وي بيا هم مفهوم بالكل څرګند دى مګر كه چيري دغه دواړو لفظونه يو ځاى شامل روايت وي نو په دغه صورت كي اشكال پيدا كيږي چي پر لمانځه باندي د دنياوي شي اطلاق څرنګه كيداى سي ، ځكه چي لمونځ دنياوي شى نه دى نو كوم ناقلين حديث چي په دغه دواړو الفاظو سره دا روايت بيانوي د هغوئ له خوا ددغه سوالو جواب وركول كيږي چي د دنيا څخه د رسول الله ﷺ مراد دغه عالم حيات دى يعني رسول الله ﷺ داسي وفرمايل چي په دغه دنيا كي درې شيان زما خوښ دي چي په هغو كي ځيني شيان خو طبعي او دنياوي امورو سره تعلق لري يعني خوشبو او ښځي او دريم شى يعني د لمانځه تعلق د ديني امورو سره دى .

په حديث كي د صلوة لفظ تقريبا د ټولو علماؤ په نزد پر لمانځه باندي محمول دى مګر د ځينو حضراتو قول دا هم دى چي په دغه حديث كي د صلوة د لفظ څخه پر نبي كريم ﷺ باندي درود او سلام مراد دى .

## د الله جل جلاله بندګان ارام نه كوي

﴿۵۰۳۲﴾: وَعَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا بَعَثَ بِهِ إِلَى الْيَمَنِ قَالَ إِيَّاكَ وَالتَّنَعُّمَ فَإِنَّ عِبَادَ اللّٰهِ لَيْسُوا بِالْمُتَنَعِّمِينَ. رواه احمد.

د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ هغه يمن ته وليږى نو دا نصيحت يې ورته وفرمايه چي خپل ځان د آرام او استراحت څخه وساته ځكه چي د الله جل جلاله بندګان آرام او استراحت نه تر لاسه كول . (نه خوښوي). احمد

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۴۳.

**تشریح**: د تنعیم مفهوم د نفساني خواهشاتو په تکمیل کي زیات پابندي کول او د دنیاوي لذتونو او نعمتونو په منځ کي اوسېدل او دخوراک او څښاک او د طبیعت او نفس دمرغوباتو حریص کېدل دي، خلاصه دا چي د راحت غوښتني او اسانۍ په شیانو کي لوېدل او د عیش او عشرت ژوند اختیارول د کافرانو، فاجرانو، غافلانو او ناپوهانو خلکو خاصه ده، د خاص بندګانو د داسي ژوند سره کار نه وي، الله ﷻ فرمایلي دي:

(ذَرْهُمْ يَأْكُلُواْ وَيَتَمَتَّعُواْ وَيُلْهِهِمُ الأَمَلُ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ)

ژباړه: ته دغه کافران پر خپل حال پرېږده چي هغوئ ښه وخوري او مزې وکړي او خیالي منصوبې هغوئ په غفلت کي واچوي او ژر به حقیقت ورته معلوم سي.

په بل ځای کي فرمایي:

يَتَمَتَّعُونَ وَيَأْكُلُونَ كَمَا تَأْكُلُ الأَنْعَامُ وَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ

ژباړه: او کوم خلک چي کافران دی هغوئ عیش کوي او داسي خوري لکه څرنګه چي حیوانان خوراک کوي او جهنم د دوئ ځای دی.

او په یو بل ځای کي داسي فرمایي:

إِنَّهُمْ كَانُوا قَبْلَ ذَٰلِكَ مُتْرَفِينَ

ژباړه: او دغه کافرانو تر دې مخکي (په دنیا کي) په ډېره خوشحالۍ او آرام ژوند تیروئ.

## د قناعت فضیلت

﴿۵۰۲۳﴾: وَعَنْ عَلِيٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ رَضِيَ مِنَ اللَّهِ بِالْيَسِيرِ مِنَ الرِّزْقِ رَضِيَ اللَّهُ مِنْهُ بِالْقَلِيلِ مِنَ الْعَمَلِ. رواه البیهقي.

د حضرت علي رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د الله تعالی په لږ رزق راضي سي نو الله تعالی د هغه څخه په لږ عمل راضي سي. بیهقي

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۱۳۹/۱۴، رقم: ۴۵۸۵.

## په حلاله طریقه روزي

﴿۵۰۲۴﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

جَاعَ أَوِ احْتَاجَ فَكَتَمَهُ النَّاسَ كَانَ حَقًّا عَلَى اللهِ عَزَّ وَجَلَّ أَنْ يَرْزُقَهُ رِزْقَ سَنَةٍ مِّنْ حَلَالٍ. رواهما البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي وږی يا اړ وي او خپل حالت د خلکو څخه پټوي نو پر الله تعالی د هغه دا حق ثابت سي چي په حلاله طريقه د هغه د يو کال روزي ورکړي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان: ۷\۲۱۵، رقم: ۱۰۰۵۴.

**تشريح**: د لوږي څخه مراد هغه لوږه ده چي د هغه زغمل ممکن وي او د خلکو څخه د هغه پټول جائز وي ځکه چي کومه لوږه د نه زغملو حد ته ورسيږي او د هغه په وجه د هلاکت بېره وي نو داسي لوږه پټول جائز نه دي ځکه علماؤ وضاحت کړی دی که چيري يو سړی په داسي حالت کي د لوږي په وجه مړ سي چي نه خو هغه د چا په مخکي د خپلي لوږي اظهار کړی وي چي د هغه په وجه د خوړلو او څښلو شی پيدا کړي او نه يې داسي شی خوړلی وي چي په هغه سره ژوند ژغورل کېدای سي او د مجبوري په حالت کي د کومو شيانو خوړلو اجازه چي ورکړل سوې ده که څه هم هغه مردار وي نو د هغه مرګ به د ګناه کار مرګ وي.

## تقواداره او عيالداره مسکين

﴿۵۰۳۵﴾: وَعَنْ عِمْرَانَ بْنِ حُصَيْنٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللهَ يُحِبُّ عَبْدَهُ الْمُؤْمِنَ الْفَقِيرَ الْمُتَعَفِّفَ أَبَا الْعِيَالِ. رواه ابن ماجة.

د عمران بن حصين رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالی خپل هغه مؤمن بنده خوښوي چي فقير ځان ساتونکی د حرامو او سوال څخه وي او عيالداره وي. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۱۲\۱۳۸۰، رقم: ۴۱۲۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي کوم مسلمان د عيالدار، مفلس او غريب کېدو سربېره خپل او د خپل کورنۍ د اړتياوو پوره کولو لپاره د حرام او ناجائزو ذرائعو څخه پرهېز کوي او د خلکو په مخکي د لاس غزولو څخه پرهېز کوي نو هغه کامل مسلمان دی ځکه الله تعالی هغه خوښوي.

## د حضرت عمر رضي الله عنه تقوا

﴿۵۰۳۶﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ أَسْلَمَ قَالَ اِسْتَسْقَى يَوْمًا عُمَرُ فَجِيْءَ بِمَاءٍ قَدْ شِيْبَ

د حضرت زيد بن اسلم رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت عمر رضي الله عنه يوه ورځ اوبه وغوښتلې، اوبه ورته راوړل سوې چي

بِعَسَلٍ فَقَالَ إِنَّهُ لَطَيِّبٌ لٰكِنِّيْ أَسْمَعُ اللّٰهَ عَزَّ وَجَلَّ نَعٰى عَلٰى قَوْمٍ شَهَوَاتِهِمْ

شات پکښې گډ سوي وه ، حضرت عمر رضي الله عنه وويل چي دا خو پاکي دي مګر زه د الله تعالى څخه دا اورم چي هغه پر يو قوم د نفس د خواهشاتو د پيروي کولو عيب لګولى وو ،

فَقَالَ أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا فَأَخَافُ أَنْ تَكُوْنَ حَسَنَاتُنَا عُجِّلَتْ لَنَا فَلَمْ يَشْرَبْهُ . رواه رزين.

وې فرمايل تاسو د خپلو خوندو او نعمتونو پوره پوره ګټه خپل په دنيا وي ژوند کي تر لاسه کړه ، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل : زما سره بيره ده چي زموږ نيکي داسي نه وي چي د هغه ثواب ژر (په دنيا کي) راکړل سوي وي نو هغه خوړې او به يې و نه چښلې . رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د حضرت عمر رضي الله عنه د وينا مطلب دا وو چي په عسلو کي اوبه ډېري خوندوري او ډېر لوى نعمت دى کوم چي يې نفس هم ډېر خوښوي نو که چيري زه دغه اوبه وڅښنم نو ګويا يو لوى نعمت څخه به برخمن سم او نفس په دې سره خوشحاله کوم نو زما سره دا بېره ده چي دا زموږ د اعمالو صالحه اجر و نه ګرځول سي کوم چي موږ ته په دنيا کي تر لاسه سي او د آخرت لپاره هيڅ پاته نسي لکه چي د کافرانو په اړه ده چي د هغوئ د نېکو اعمالو اجر هغوئ ته يوازي د دنيا د نعمتونو په شکل کي ورکول کيږي او په آخرت کي هيڅ نه ورکول کيږي ، څرګنده دي وي چي حضرت عمر رضي الله عنه د الله تعالى کوم ارشاد نقل کړى دى يعني :

(أَذْهَبْتُمْ طَيِّبَاتِكُمْ فِيْ حَيَاتِكُمُ الدُّنْيَا وَاسْتَمْتَعْتُمْ بِهَا)

دغه د يو آيت ټوټه ده ، همدا رنګه يو آيت دا هم دى :

(مَّنْ كَانَ يُرِيدُ الْعَاجِلَةَ عَجَّلْنَا لَهُ فِيهَا مَا نَشَاء)،

يعني څوک چي د دنيا د ګټي اميد لري نو داسي سړي ته موږ په دنيا کي چي څومره غواړي او د څه لپاره يې غواړي په دنيا کي ورکړو، دغه دواړه آياتونه چي د کافرانو په حق کي دي مګر اصل اعتبار عموم د الفاظو دی د کوم څخه چي هر څوک عبرت تر لاسه کولای سي او خاص سبب لره اعتبار نسته.

**د اسلام په شروع کي**

﴿۵۰۳۷﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ مَا شَبِعْنَا مِنْ تَمْرٍ حَتّٰى فَتَحْنَا خَيْبَرَ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي موږ هيڅکله په ماړه نس خرماوي هم نه وې خوړلې تر څو چي موږ خيبر فتح کړ. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۴۹۵، رقم: ۴۲۴۳.

===========

# بَابُ الْاَمَلِ وَالْحِرْصِ

## (د حرص او آرزوګانو بيان)

د امل معنی د اميد درلودلو ده او د حرص معنی د آرزو او ارادې پراخول، د حرص تعلق د نېکو او بنو ارادو سره هم کيدای سي لکه څرنګه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (ان تحرص علی هدهم)، او د حرص اطلاق د نفساني خواهشاتو پر زياتوب باندي هم کيږي چي يو خراب شی دی، په قاموس کي ليکلي دي چي تر ټولو بد حرص دادی چي تاسو خپله برخه هم تر لاسه کړئ او د بل د برخي طمع هم ولرئ، خلاصه دا چي نېک کارونه لکه د علم تر لاسه کول، د الله جل جلاله د دين لوړي، او نېکو اعمالو کي حريص کېدل يعني د آرزوګانو او ارادو پراخول د علماؤ په اتفاق سره ډېره ښه خبره ده ځکه رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: طوبی لمن طال عمره وحسن عمله، او رسول الله صلى الله عليه وسلم د خپل عمر په پای کي د دغه آرزو او ارادې اظهار فرمايلی وو که چيري زه تر سږ کال پوري ژوند پاته سوم نو د محرم په نهم تاريخ به خامخا روژه ونيسم، ددې پر خلاف د کومي آرزو او ارادې د پراختيا تعلق چي د دنياوي خواهشاتو لکه د مال او دولت جمع کولو او د عزت او شوکت تر لاسه کولو سره وي نو هغه ډېره بده خبره ده.

د عنوان د اول لفظ (امل)ځخه که چیري دنیاوي امور مراد وي یعني خوشحاله ژوند او محض دنیاوي پرمختګ او داسي نورو امېدونو ، آرزوګانو او د خیالي منصوبو په پراختیا کي تر دې حده اخته کېدل چي د مرګ لپاره د مستعد اوسېدو او د آخرت د توبنه تیارولو ځخه غافل سي، او دا شان د هغه خلکو کېدای سي چي د دین او اخرت ځخه غافل وي لکه ځرنګه چي الله تعالی فرمايي : (ذرهم یاکلوا و یتمتعوا ویلهم الامل) اې پېغمبره! ته دغه کافران پر خپل حال پرېږده چي هغوئ بنه خوراک کوي او ارام کوي او خیالي منصوبې هغوئ په غفلت کي واچوي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### انسان د هغه مرګ او د هغه غوښتني

﴿۵۰۳۸﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خَطًّا مُرَبَّعًا

د حضرت عبدالله ﷛ ځخه روایت دئ چي نبي کریم ﷺ یو ځلور کونجه کرښه وکښل

وَخَطَّ خَطًّا فِي الْوَسَطِ خَارِجًا مِنْهُ وَخَطَّ خُطَطًا صِغَارًا إِلَى هَذَا الَّذِي فِي الْوَسَطِ

او د هغه ځلور کنجه شکل په منځ کي یې یو بل خط وکښي چي شکل ځخه د باندي وتلی وو بیا یې کوچني کوچني خطونه (کرښې) د مینځ په کرښه کي

مِنْ جَانِبِهِ الَّذِي فِي الْوَسَطِ فَقَالَ هَذَا الْإِنْسَانُ وَهَذَا أَجَلُهُ مُحِيطٌ بِهِ وَهَذَا

د هغه دواړو خواوو ته وکښل بیا یې وفرمایل : دا درمیانی کرښه انسان دی او دا مربع د هغه مرګ دی چي د ځلورو خواوو ځخه یې راګیر کړی دی او

الَّذِي هُوَ خَارِجٌ أَمَلُهُ وَهَذِهِ الْخُطَطُ الصِّغَارُ الْأَعْرَاضُ فَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَسَهُ هَذَا وَإِنْ أَخْطَأَهُ هَذَا نَهَسَهُ هَذَا . رواه البخاري .

منځنی خط برخه د مربع ځخه دباندي ختلې ده دا د هغه آرزو ده او په درمیاني خط کي دواړو خواوو ته چي کوم کوچني کوچني خطونه دي هغه عوارض (آفات ، مصیبتونه ، ناروغیاني وغیره) دي که د یوې پېښې ځخه انسان وساتل سي نو بیا بله ده که د دویمی ځخه وساتل سي نو

يا دوهمه ده (همداسي نوري) ترڅو چي مرګ ورته راسي . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۵، رقم: ۶۴۱۷.

**د لغاتو حل:** خططا: اى خطوطا (کرښې). الاعراض: اى الافات والعاهات والبليات (ستونزي).

**تشريح:** د حديث خلاصه داده چي انسان د ليري ليري امېدونه لري او په دې وهم کي اخته وي چي د هغه امېدونه او غوښتني به کله پوره سي حال دا چي په حقيقت کي هغه د امېدونو څخه ډېر ليري او خپل مرګ ته ډېر نژدې کيږي چي نيتجه داسي سي چي هغه د خپلو امېدو منزل ته د رسېدو څخه مخکي د مرګ غېږ ته ورسيږي .

﴿۵۰۳۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ خَطَّ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خُطُوطًا فَقَالَ هَذَا الْأَمَلُ وَهَذَا أَجَلُهُ فَبَيْنَمَا هُوَ كَذَلِكَ إِذْ جَاءَهُ الْخَطُّ الْأَقْرَبُ . رواه البخاري.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ څو کرښي وکښلې (يعني يو څلور کونجه شکل يې جوړ کړ او يو خط يې د مربع د منځ څخه دباندي وکښي لکه د پورتني حديث) او وه يې فرمايل : دا کوم خط چي د مربع څخه وتلی دی دا د انسان خواهشات دي او دا خطر د انسان مرګ دی نو انسان داسي او سيږي چي ناڅاپه يې مرګ راګير کړي . بخاري .

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۶۳، رقم: ۶۴۱۸.

**تشريح:** د انسان خواهش دا وو چي هغه دغه کرښي ته ورسيږي چيري چي دهغه دنياوي آرزوي وې چي د هغه څخه ډيره ليري واقع ده مګر داسي کيږي چي ناڅاپه مرګ هغه راګير کړي او د خپلي آرزو تر لاسه کولو پرته له دې دنيا څخه رخصت سي .

## مال او عمر

﴿۵۰۴۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَهْرَمُ ابْنُ آدَمَ يشيب مِنْهُ اثْنَانِ الْحِرْصُ عَلَى الْمَالِ وَالْحِرْصُ عَلَى الْعُمُرِ . متفق عليه

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : انسان سپين ږيری سي او دوه شيان په هغه کي ځوان وي يو د مال حرص او دويم د عمر حرص . بخاري او مسلم.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۹، رقم: ۶۴۲۱، ومسلم ۲\۷۲۴، رقم: ۱۱۵- ۱۰۴۷.

**د لغاتو حل:** يشب: اى ينمو ويقوي . (نما کوي او قوي کيږي.)

**تشريح**: دا حقيقت دی چي انسان هر څومره سپين ږيری سي په هغه کي ذکر سوی دوه خصلتونه نه کميږي بلکه د عمر سره سره دغه دواړه شيان زياتيږي او په ظاهره ددې وجه داده چي د انسان نفس که د عمل او عمل په ذريعه محفوظ او پاک نسي نو هغه د خپل خواهشاتو او خپل جذباتو په گرفت کي وي او ظاهره ده چي د خواهشاتو او جذباتو تکميل چي د مال او عمر څخه پرته نسي کيدای ، دوهم دا چي انسان د سپين ږيرتوب منزل ته ورسيږي نو په هغه کي د هغه نفساني خواهشات او جذبات په وجود کي هم هغسي قائم وي مگر هغه د قوت عقليه کوم قوت شهوانيه چي په واک کي لري هغه کمزوري کيږي ځکه چي هغه قوت شهواني محرکات دفع کولای نسي ، په دې اعتبار سره دغه دواړه شيان په ځوان او قوي سره تعبير سوي دي.

﴿۵۰۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عن النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا يَزَالُ قَلْبُ الْكَبِيرِ شَابًّا فِي اثْنَيْنِ فِي حُبِّ الدُّنْيَا وَطُولِ الْأَمَلِ. متفق عليه.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د سپين ږيری زړه همېشه په دوو خبرو کي ځوان وي يو ددنيا په مينه کي او بل د عمر په اوږدوالي کي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۹، رقم: ۶۴۲۰، ومسلم ۲\۷۲۴، رقم: ۱۱۴-۱۰۴۶،

## د انسان لپاره عذر نه پاته کيږي

﴿۵۰۴۲﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْذَرَ اللَّهُ إِلَى امْرِئٍ أَخَّرَ أَجَلَهُ حَتَّى بَلَّغَهُ سِتِّينَ سَنَةً. رواه البخاري.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د هغه چا لپاره الله تعالی د عذر هيڅ موقع نه پرېږدي چي د هغه په مرگ کي يې وخت ورکړ او د شپيتو کالو عمر يې ورکړ. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۸، رقم: ۶۴۱۹.

**د لغاتو حل**: الاعذار: ازالة العذر، والمعنى ان الله لم يترک للعبد في الاعتذار يتمسک به.

**تشريح**: مطلب دادی که چيري الله جل جلاله يو چا ته دومره اوږد عمر ورکړي او تر دومره اوږده وخت پوري هغه ته مهلت ورکړي او هغه ددې سربېره د توبې او انابت لار اختيار نه کړل او د گناهو څخه منع نه سو نو اوس د هغه لپاره د عذره کومه موقع پاته ده چي د هغه په مرسته هغه په

قیامت کي د عفو او بخښني امید ولري که یو زلمي د ګناه او معصیت لار اختیار کړي نو هغه وایي چي کله زه د سپین ږیرتوب وخت ته ورسېږم نو د خپلو بدو عملو او ګناهو څخه به توبه وکړم او د خپل ژوند هغه برخه به د الله ﷻ په رضا او د هغه په عبادت کي مصرف کړم مګر کوم څوک چي د سپین ږیرتوب منزل ته رسیدلی وي او د توبې او انابت او عمل کولو آخري موقع د هغه د لاس څخه وځي نو هغه پر خپل بدعملۍ او ګناهو باندي ټه وایي که څومره بدنصیبه وي هغه خلک چي د عمر آخري منزل ته په رسېدو سره په خپلو بدو عملو او ګناهو باندي نادم او شرمنده نه وي او په دغه اخري مرحله کي هم کله چي مرګ د هغه راګېرولو ته بالکل تیار ولاړ وي هغوئ ته د خپل رحیم او کریم پروردګار د عفو او رحمت لمن نیولو توفیق نه کېږي.

د ځینو حضراتو د قول مطابق د دغه ارشاد معنی داده چي پر سپین ږیري سړي باندي د الله ﷻ له خوا دا واجب دي چي هغه د پروردګار په دربار کي عذر او توبه وکړي او په دې قطعا کوتاهي و نه کړي.

## د انسان حرص او طمع

﴿۵۰۴۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَوْ كَانَ لِابْنِ آدَمَ وَادِيَانِ مِنْ مَالٍ لَابْتَغَى ثَالِثًا وَلَا يَمْلَأُ جَوْفَ ابْنِ آدَمَ إِلَّا التُّرَابُ وَيَتُوبُ اللّٰهُ عَلَى مَنْ تَابَ. متفق علیه.

د ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که د چا سره د مال څخه ډکي دوې شیلې وي نو بیا به هم هغه د دریمي شیلې خواهش کوي او د چا نس که یو شی ډکولای سي نو هغه د قبر خاوره ده. او الله تعالی د هغه چا توبه قبلوي چي توبه وکاږي. بخاري او مسلم.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۵۳، رقم: ۶۴۳۶، ومسلم ۲\۷۲۵، رقم: ۱۱۸- ۱۰۴۹.

**تشریح**: د حدیث د آخري الفاظو مطلب دادی چي د ګناهو څخه توبه قبلول د پروردګار شان رحمت دی او د هغه ګناهو تعلق که د ظاهري بدعملو سره وي او که د باطني خرابیو سره وي ځکه په حرص کي اخته کېدونکی سړی که چیري په اخلاص سره د هغه خرابۍ څخه د خپل نفس د منع کولو عهد وکړي او خپل پروردګار ته توبه او استغفار کوي نو د هغه توبه قبلیږي یا دا معنی ده چي الله ﷻ کوم څوک د دغه خرابۍ څخه پاکول غواړي نو هغه په خپل رحمت سره متوجه کیږي په دې توګه چي هغه ته د هغه خراب خصلت د ازالې توفیق او د نفس د پاکۍ طاقت

ورکوي.

په دغه حدیث کي دا خبرداری دی چي د انسان په فطرت کي د بخل ماده ایښودل سوې ده او دا بخل دی چي د حرص، امید او طمع باعث جوړیږي نو هر چا ته پکار ده چي د انفاق او ایثار په ذریعه د بخل عادت له منځه یوسي چي د حرض د تر لاسه کېدو موقع حاصله نسي.

## په دنیا کي داسي اوسه لکه مسافر

﴿۵۰۴۴﴾: وَعَنِ بْنِ عُمَرَ قَالَ أَخَذَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِبَعْضِ جَسَدِيْ فَقَالَ كُنْ فِي الدُّنْيَا كَأَنَّكَ غَرِيبٌ أَوْ عَابِرُ سَبِيلٍ وَ عُدَّ نَفْسَكَ مِنْ اَهْلِ الْقُبُوْرِ. رواه البخاري.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ د بدن یوه برخه ونیول او وه یې فرمایل: ته په دنیا کي داسي اوسه ګویا چي ته مسافر یې او خپل ځان په هغه مړو کي وشمیره چي په قبرو کي دننه دي. بخاري.

**تخریج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۲۳۳، رقم: ۶۴۱۶.

**تشریح**: میرک رحمة الله علیه وایي: دغه روایت بخاري ته منسوب کېدل محل نظر دی ځکه چي دلته کوم الفاظ نقل سوي دي هغه بعینه د ترمذي روایت سوي الفاظ دي او بخاري چي دغه حدیث په کومو الفاظو نقل کړی دی هغه مختلف دي.

او عابر سبیل: دلته د او حرف د تنویع لپاره دی لکه څرنګه چي په ترجمه کي ظاهر سوي دي یا دا چي دلته دغه حرف د بل په معنی کي استعمال سوی دی چي د ترقي لپاره راځي، په دغه صورت کي د پوره جملې ترجمه داسي ده چي ته په دنیا کي داسي اوسه لکه ته چي مسافر یې، په داسي خبره کي زیات زور پیدا کیږي او د دغه ارشاد مقصد چي کوم مفهوم بیانول دي هغه زیات څرګندیږي کله چي مسافر تر څو ورځو یا د لږ وخت لپاره یو ځای په تم کېدو سره د هغه ځای په شیانو کي څه ناڅه بوخت کیږي او د هغو سره څه ناڅه تعلق لرل هغه ته ضروري کیږي مګر کوم څوک چي پر لاره تېرېدونکی وي هغه بس پر مخ ځي د هغه خو د هغې لاري د شیانو سره هیڅ کار نه وي او نه په هلته دلته بوختیا کي د خپل وخت په ضائع کولو سره په سفر کي خنډ خوښوي.

د حدیث آخري برخه لږ تشریح ته اړتیا لري، او په دې اړه تر ټولو مخکي په دې پوهېدل

ېکار دي چي د مرګ حقيقت څه شي دی؟ د بدن څخه د روح د تصرف منقطع کېدل د روح او بدن تعلق ماتېدل او د بدن د روح آله د کار د حيثيت څخه وتل د مرګ مفهوم دی ، د بدن په مرګ سره روح معدوم او نابود کيږي نه ، يوازي د هغه حيثيت او حالت بدل سي کوم چي د بدن سره د تعلق لرلو په صورت کي هغه ته حاصل وي، د مثال په توګه د بدن د مرګ سره د هغه بصارت د هغه سماعت د هغه وينا او همدارنګه د لاس او پښو او نورو اندامو هغه طاقتونه د هغه څخه سلب کړل سي چي د هغه په ذريعه روح پر بدن باندي خپل تصرف ظاهروي همدارنګه د هغه ټول کورنۍ، قريبان او دوستان د هغه څخه بېل کړل سي او د دنيا هغه ټول شيان د هغه څخه بېل کړل سي چي د بدن سره يې تعلق درلودی لکه کور، اسباب ، مځکه ، مينزي، غلامان، اسونه او نور ضروري او غير ضروري شيان ، نو په مړو کي خپل ځان شمېرل او د هغوئ مشابهت اختيارول ګويا دا مفهوم لري چي انسان جسماني علائق څخه حتی الامکان قطع تعلق اختيار کړي د هغه صورت دادی چي اندامونه د بدن څخه د روح هغه تصرف ختم کړي چي د هغه په پنجه کي د حرام او مکروه کارو ارتکاب کيږي او په دې کي يقين ولري چي د دنيا کوم شيان زما په تصرف او اختيار کي دي د هغه ټولو حقيقي مالک الله تعالی دی د هغه په ملکيت سره زما هيڅ تعلق نسته او دا خبره د دې علامه وګڼي که چيري د دغه شيانو څخه يو شی هم د هغه سره پاته نسي نو څه غم ورسره نه وي او که يو شی ورته راسي نو خوشحاله نسي ، همدارنګه خپل کورنۍ، قريبان او ملګري وغيره سره د تعلق او ميني هغه جذبات منقطع کړي چي د هغه په وجه د حرام او مکروه شيان کيږي نو کوم څوک چي خپل ځان په دغه وصف سره متصف کړي نو هغه د دنيا څخه بې په بې تعلقۍ کي د مړو مشابه دی او د هغه شمېر به د مړو په حکم کي وي،

د دې څخه وروسته د هغه سړي د شان مناسب دا خبره ده چي د هغه ادابو او شرائطو لحاظ وساتي چي د هغه په سبب د هغه مړو مشابه کېدل صحيح وګرځول سي د مثال په توګه يو خو دا چي د الله ﷻ څخه پرته خپل هر مطلوب څخه بېزار سي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، دوهم دا چي زهد اختيار کړي يعني دنيا ، د دنيا محبت او د دنيا لذتونو څخه ځان لېري کړي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، دريم دا چي د توکل پر لار باندي روان سي يعني د دنياوي اسبابو ناروا قيد څخه ازاد سي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، څلورم دا چي پر قناعت باندي عامل سي يعني د نفساني خواهشاتو پيروي نه کوي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، پنځم دا چي يوازي الله تعالی ته متوجه سي او پرته د الله ﷻ څخه بل چا ته نظر و نه کړي چي د الله ﷻ څخه پرته او د هغه مطلوب او محبوب بل مقصد نه وي لکه

څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي،
شپږم دا چي د صبر لار اختيار کړي يعني د رياضت او مجاهدې په ذريعه د نفس اماره ته قطع تعلق ورکړي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، اووم دا چي د رضا پر لار باندي روان سي يعني د خپل نفس د خوشحالۍ د جال څخه په وتلو سره د حق سبحانه وتعالى د رضا په دائره کي راسي، احکام ازليه بېله چون وچرا ومني او خپل ټول امور پرته د اعتراض څخه د الله تعالى تدبير او اختيار ته وسپاري لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، اتم دا چي د ذکر څخه غافل نسي يعني د الله تعالى ياد او د هغه په ذکر کي خپله زړه او خپل ژبه بوخت وساتي او پرته د الله تعالى د ياد څخه د هغه د ذکر او خيال څخه ځان ازاد کړي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي، نهم دا چي مراقبه اختيار کړي يعني هر ډول قوت او سطوت او هر مقتدر طاقت څخه بې نيازه کېدو سره او د هغه په پرېښودو سره يوازي د احکم الحاکمين د طاقت او قدرت خيال وساتي او د هغه طاقت او قدرت د خپل ټولو امورو مالک او متصرف وګڼي لکه څرنګه چي د مرګ په صورت کي وي دغه صفات او کيفيات پيدا سي، نو پوهېدل پکار دي چي د مړو مشابهت ورته تر لاسه سو او په اهل قبور کي د شمېر کېدو حکم يې پوره سو او د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد: وعد نفسک من اهل القبور، دا مفهوم دی او دا معنی د دغه حديث ده چي په هغه کي فرمايل سوي دي: موتوا قبل ان تموتوا، يعني د مرګ څخه مخکي خپل مرګ اختيار کړه چي يو مرګ خو هغه دی چي ناڅاپه د روح او بدن تعلق منقطع کړي او يو مرګ هغه دی چي انسان د ذکر سوو صفاتو او کيفيات د صورت په اختيارولو سره خپل نفس اماره ووژني او همدغه مرګ ته اختياري مرګ ويل کيږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### مرګ ژر راتلونکی دئ

﴿۵۰۴۵﴾: عَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ مَرَّ بِنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاَنَا وَ اُمِّي نُطَيِّنُ شَيْئًا فَقَالَ مَا هٰذَا يا عبدالله قُلْتُ شَيْئٌ نُصْلِحُهُ قَالَ الْأَمْرُ أَسْرَعُ مِنْ ذٰلِكَ. رواه احمد والترمذي وقال هذا حديث غريب:

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي يوه ورځ رسول الله ﷺ په داسي حال کي موږ

ته راغلی چي زما او زما مور په خاورو سره یو ځای جوړوی ، رسول الله ﷺ پوښتنه وکړه اي عبدالله دا څه کیږي ؟ ما وویل: موږ دا ځای جوړوو ، رسول الله ﷺ وفرمایل : مرګ تر دې هم زیات ژر راتلونکی دی ،احمد او ترمذي ویلي دي دا حدیث غریب دی .

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\ ۱۶۱، والترمذي ۴\ ۴۹۱، رقم: ۲۳۳۵.

**تشریح**: د ارشاد مطلب دادی چي د مرګ راتلل د دغه سرای د نړېدو او خرابۍ څخه ډېر مخکي متوقع دی ، تاسو د دغه سرای جوړېدل او سمول د دې لپاره کوی چي دغه دیوال او بام ستا په ژوند کي ونه نړیږي حال دا چي حقیقت دادی چي د دغه سرای د غرقېد و او خرابېدو څخه مخکي تاسو د مرګ غیږ ته رسیدای سي نو ستاسو لپاره د خپل عمل اصلاح ته متوجه کېدل د دغه سرای د جوړېدو څخه زیات غوره دی او په دې کي زړه لګول عبث دي .

په ښکاره دا معلومیږي چي حضرت عبدالله رضي الله عنه خپل سرای ته خاوره ورکول د سخت ضرورت په وجه نه وي کړي بلکه هغه د زیاتي ښکلا لپاره داسي کړي وي .

## مرګ په یاد لره

﴿۵۰۴۶﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَانَ يُهْرِيْقُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ به کله تشي بولي وکړلې

الْمَاءَ فَيَتَيَمَّمُ بِالتُّرَابِ فَأَقُوْلُ يَا رَسُوْلَ اللهِ إِنَّ الْمَاءَ مِنْكَ قَرِيْبٌ يَقُوْلُ مَا يُدْرِيْنِي لَعَلِّيْ لاَ أَبْلُغُهُ. رواه في شرح السنة وابن الجوزي في كتاب الوفاء.

نو په خاورو سره به یې تیمم کوی نو ما به وویل: اې د الله رسوله ! او به خو نژدې دي، رسول الله ﷺ به فرمایل : څه معلومه ده کیدای سي زه اوبو ته ونه رسیږم (یعني وفات سم) . شرح السنه او کتاب الوفاء.

**تخریج**: البغوي في شرح السنة: ۱۴\ ۲۳۲، رقم: ۴۰۳۱.

**تشریح**: یعني ما ته خو دا معلومه نه ده چي زما عمر څومره دی او هره لحظه مرګ متوقع دی ځکه زه ېېرېږم چي د تشو بولو کولو څخه وروسته ما ته دومره وخت نه راکړل سي چي زه اوبو ته ورسېږم نو سمدستي تیمم کوم چي یو ډول طهارت به تر لاسه سي .

## د انسان مرګ د هغه تر ارزو مخکي دی

﴿۵۰۴۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هٰذَا ابْنُ آدَمَ وَهٰذَا أَجَلُهُ وَوَضَعَ يَدَهُ عِنْدَ قَفَاهُ ثُمَّ بَسَطَ فَقَالَ وَثَمَّ أَمَلُهُ . رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : دا انسان دی او دا د هغه مرګ دی، ددې فرمایلو سره یې خپل لاس مبارک څټ ته نژدې کښېښودی ، بیا یې لاس مبارک وغزوی او د څټ څخه یې لیري کړ او وه یې فرمایل تر هغه ځایه پوري دده امیدونه دي . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي: ۴۹۱\۱۴، رقم: ۲۳۳۴.

**تشریح**: دا ابن آدم دی، په دغه جمله کي رسول الله ﷺ مخاطبین د یو ظاهري ارشاد په ذریعه تصوراتي وجود ته متوجه کړل او دغه طرز (دا دهغه مرګ دی) یې هم اختیار کړ، دا خبره په وضاحت سره دا بیانیږي چي مخکي خو رسول الله ﷺ خپل مخته د مځکي پر یو کونج باندي یا په هواء کي د خپل لاس مبارک په ذریعه په اشاره کولو سره وښودل چي دغه ځای داسي تصور کړه چي دلته انسان دی بیا خپل لاس مبارک یې تر شا کړ او کوم ځای ته چي یې مخکي اشاره کړې وه د هغه بالکل نژدې ته لاس مبارک په ایښودو سره یې وفرمایل چي دغه ځای هغه مقام تصور کړی چیري چي د انسان مرګ دی ، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ خپل لاس مبارک یوه لوښت یا د ګوتو په پراختیا سره خپور کړی یا د بسط معنی داده چي رسول الله ﷺ خپل لاس مبارک د هغه ځای څخه چیري چي رسول الله ﷺ مخکي اشاره کړې ده ډېر مخکي اوږد کړ او هلته په اشاره کولو سره یې وښودل چي دغه ځای هغه مقام تصور کړی چیري چي د انسان ارزو ده او همدارنګه رسول الله ﷺ دا طرز بیان او د اشارې په ذریعه خلک د غفلت د خوب څخه بېداره کړل او خبرداریې کړل چي د انسان مرګ هغه ته ډېر نژدې ولاړ دی کله چي هغه ارزوګاني او امېدونه چي په هغه پسي ګرځي د هغه څخه ډیري لیري واقع دي .

یو شاعر څومره ښه ویلي دي :

کل امري مصبح في اهله      والموت ادنی من شراک نعله

﴿۵۰۴۸﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ غَرَزَ عُوْدًا

د حضرت ابو سعید خدري رضي الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ خپل مخته یو لرګی ښخ کړی

بَيْنَ يَدَيْهِ وَآخَرَ إِلَى جَنْبِهِ وَآخَرَ أَبْعَدَ فَقَالَ أَتَدْرُونَ مَا هٰذَا قَالُوا اَللّٰهُ

بيا يې يو لرګی د هغه لرګي په څنګ کي او يو بل لرګی د هغه څخه ليري ښخ کړ بيا يې وفرمايل: تاسو پوهيږئ چي دا څه دي؟ صحابه کرامو وويل: الله ﷻ

وَرَسُولُهُ أَعْلَمُ قَالَ هٰذَا الْإِنْسَانُ وَهٰذَا الْأَجَلُ أُرَاهُ قَالَ وَهٰذَا الْأَمَلُ فَيَتَعَاطَى الْأَمَلَ فَلَحِقَهُ الْأَجَلُ دُونَ الْأَمَلِ. رواه في شرح السنة.

او د هغه رسول ښه پوهيږي، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: دا (يعني لومړی لرګی) انسان دی او دا (دويم لرګی) چي په خوا کي يې دی مرګ دی، ابو سعيد خدريؓ وايي چي د دريم لرګي په اړه زما خيال دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل او دا اميد دی، انسان په اميدو کي ګرفتار وي چي مرګ د خواهشاتو د ختميدو څخه مخکي راسي. شرح السنه.

**تخريج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۲۸۵، رقم: ۴۰۹۱.

## د امت محمديه عمر

﴿۵۰۴۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ عُمْرُ أُمَّتِي مِنْ سِتِّينَ سَنَةً إِلَى سَبْعِينَ سَنَةً. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

د حضرت ابو هريرة ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما د امت عمر د شپيتو څخه تر اويا کالو پوري دی. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي: ۴۸۹\۱۴، رقم: ۲۳۳۱.

**تشريح**: مطلب دادی چي د امت محمديه د خلکو عمر د شپېته کالو او اوويا کالو په منځ کي دی، ظاهره ده چي رسول الله ﷺ دغه خبره د اکثرو خلکو په اعتبار فرمايلې ده کنه په دغه امت کي خو داسي خلک هم دي چي د هغوئ عمر شپېته کالو ته هم ونه رسيږي او داسي خلک هم دي چي د هغوئ عمر د اوويا کالو څخه زيات وي لکه څرنګه چي د راتلونکي حديث څخه به څرګند سي.

﴿۵۰۵۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَعْمَارُ أُمَّتِي مَا بَيْنَ السِّتِّينَ إِلَى السَّبْعِينَ وَأَقَلُّهُمْ مَنْ يَجُوزُ ذٰلِكَ. رواه الترمذي وابن ماجة و

ذكر حديث عبدالله بن الشخير في باب عيادة المريض.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت عمرونه د شپيتو او اويا كالو په منځ كي دي او داسي خلک ډير كم دي چي د هغوئ عمرونه تر دې زيات وي . ترمذي او ابن ماجه او د عبدالله بن شخير حديث د ناروغ د پوښتني په باب كي بيان سوى دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۵۱۷، رقم: ۳۵۵۰، وابن ماجه ۲\ ۱۴۱۵، رقم: ۴۲۳۶.

**تشريح**: په هر دور كي په امت محمدي كي داسي خلک ډېر لږ راغلي دي چي د هغوئ عمر د سلو كالو يا تر سلو زيات وي مگر خپله د رسول اللهﷺد زمانې خلكو يعني صحابه كرامو كي هم داسي خلک تر لاسه كيږي چي هغوئ ډېر عمر درلودى د مثال په توگه حضرت انس ابن مالک رضي الله عنه د يوسل او درو كالو په عمر كي وفات سو .

بي بي اسماء بنت ابوبكر د سلو كاله وه د هغې حالت خو دا وو چي د عمر تر پايه يې غاښونه نه وه مات سوي او عقل او حواس يې خراب سوي نه وه ، تر دوئ دواړو زيات عمر د حضرت حسان ابن ثابت وو چي هغه د يو سل او شلو كالو په عمر له دنيا څخه رخصت سوى دى ، لومړني شپېته كاله يې د كفر په حالت كي او بيا وروسته شپېته كاله يې د ايمان په حالت كي تېر كړل ، تر ده هم زيات عمر د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه وو ، ويل كيږي چي كله هغه وفات كېدى نو هغه وخت يې عمر دوه نيم سوه كاله وو ، كه څه هم په يوه روايت كي د دري نيم سوه كالو ذكر هم دى مگر مخكني قول صحيح دى .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### بخل او ارزو

﴿۵۰۵۱﴾: عَنْ عَمْرِو بْنِ شُعَيْبٍ عَنْ أَبِيْهِ عَنْ جَدِّهِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَوَّلُ صَلَاحِ هٰذِهِ الْأُمَّةِ الْيَقِيْنُ وَالزُّهْدُ وَأَوَّلُ فَسَادِهَا الْبُخْلُ وَالْأَمَلِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

حضرت عمرو بن شعيب رضي الله عنه د خپل پلار څخه او هغه د خپل پلار څخه روايت كوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ددې امت لومړنى نيكي يقين او زهد ده او لومړنى فساد يې بخل او آرزو

ده. بیهقي په شعب الایمان کي.

**تخریج**: البیهقي في شعب الایمان ۷\۴۲۷، رقم: ۱۰۸۴۴.

**تشریح**: د یقین څخه مراد پر دې خبره باندي کامل اعتقاد او یقین درلودل دي چي الله ﷻ رازق دی او د رزق رسولو متکفل او ضامن دی لکه ځرنګه چي خپله الله ﷻ فرمایلي دي: (وما من دابة في الارض الا علی الله رزقها) یعني د مځکه پر مخ داسي ساه لرونکی شی نسته چي د هغه رزق د الله ﷻ پر ذمه نه وي.

د زهد اختیارولو مطلب دادی چي د دنیا په مینه کي د اخته کېدو څخه ځان وساتي او د دنیا د نعمتونو او لذتونو څخه بې پرواهي وکړي، خلاصه دا چي د دنیا او آخرت خیر او کامیابۍ دار او مدار پر تقوا باندي دی چي په زهد او یقین سره حاصلېږي او د دنیا او اخرت د خرابۍ بنیاد طمع او حرص دی چي د بخل او عمر د اوږدوالي په آرزو سره پیدا کیږي.

کله چي د الله ﷻ پر رزاقیت باندي پوره عقیده او یقین وي، نو د بخل ماده فساد نه خپروي ځکه چي د بخل سبب هغه بې یقیني وي چي د رزق رسېدو لپاره یې انسان پر خپل ځان خپروي یعني د هغه په زړه کي دا خیال پیدا کیږئ چي زما سره کوم مال او زر دي که چیري ما دغه د انفاق او ایثار په صورت کي خرڅ کړل نو بیا سبا به د کوم ځای څخه خورم همدارنګه چي د زهد لار اختیار کړل سي نو په دنیا کي د پاته کېدو آرزو یعني د عمر اوږدوالی به ختم سي ځکه فرمایل سوي دي چي د دغه امت اول فساد بخل او آرزو دي ځکه چي دغه دواړه خصلتونه د الله ﷻ پر رزاقیت باندي د یقین او زهد ضد دي.

**د یقین تعریف**: دلته دا ځرګندول ضروري دي چي د یقین اصل مفهوم څه شي دی؟ شیخ عبدالوهاب متقي رحمه الله په خپله رساله حبل المتین في تحصیل الیقین کي لیکلي دي چي د اعتقاد و جزم تر حد پوري رسیدل او د دلیل او برهان په ذریعه دومره مضبوط مستند کېدل چي حق ثابت کړي د حکیمانو او متکلمینو په اصطلاح کي یقین ورته ویل کیږي مګر د صوفیانو په اصطلاح کي پر دغه مفهوم باندي د یقین اطلاق تر هغه وخته پوري نسي کیدای تر څو چي تصدیق پر زړه باندي تر دې حده غالب نسي چي پر زړه باندي د هغه د تصرف او حکمرانۍ واک چلېدل پېل سي یا هغه زړه یوازي هغه شیانو ته مائل سي چي د شریعت مطابق وي او د هغه شیانو څخه منع سي کوم چي د شرعي احکامو خلاف وي د مثال په توګه د مرګ اعتقاد هر سړی لري او هغه عقیده نه یوازي د جزم تر حده پوري وي بلکه د دلیل او برهان په ذریعه دومره ټېنګه

او مستند وي چي هغه مرگ يو يقيني حقيقت هم ثابتوي نو د حكيمانو او متكلمينو په نزد پر دغه عقيده باندي د يقين اطلاق كېداى سي مگر د صوفيانو په نزد هغه عقيدې ته په حقيقي معنى كي يقين نسي ويل كيداى او د هغه عقيدې حامل صاحب يقين نسي شمېرل كيداى تر څو چي د هغه پر زړه د مرگ ياد غالب نه وي او د مرگ احساس تر دې حده پر هغه متصرف نه وي چي هغه د طاعاتو د بوختيا او د گناه د ترک په ذريعه هر وخت د مرگ لپاره تيار وي.

څرگنده دي وي چي څلور امور د يقين محل دی هسي خو ټول شيان د يقين متقاضي دي چي د هغه خبر رسول الله ﷺ ورکړی دی مگر د دغه ټولو شيانو اصل او بنياد کېدو په حيثيت هغه څلور امور د دې درجې دي چي پر هغه د هر سالک يقين ساتل په بنيادي توگه ضروري وي يو خو توحيد يعني دا چي عقيده درلودل چي څه واقع كيږئ د الله تعالى په قدرت سره واقع كيږي، دوهم توكل يعني پر دې خبره يقين درلودل چي الله تعالى د رزق رسولو متكفل او ضامن دی، دريم د جزاء او سزاء اعتقاد يعني دا يقين درلودل چي د هر عمل جزاء او سزاء ټاكل سوې ده او پر ټولو اعمالو باندي ثواب او عذاب مرتب كېدل لازمي امر دی او څلورم دا يقين درلودل چي الله تعالى د بندگانو ټول احوال او كيفيات او ټول حركات او سكناتو څخه په پوره توگه خبر دی نو د توحيد په اړه به د يقين دا گټه وي چي مخلوقات ته به رغبت او التفات نه لري، د الله ﷻ څخه د رزق رسېدو په اړه د يقين گټه به دا وي چي يا خو به د رزق د حصول په هڅه كي ميانه روي اختيار وي يا كه چيري د افلاس او ناداری په صورت كي غذايي اړتياوي نه پوره كيږي نو څه تاسف او خوابدتيا به نه كوي، د اعمالو د جزا او سزا په اړه د يقين گټه به دا وي چي د طاعات او عبادت بوختيا او د رضا په تر لاسه كولو كي زيات تر زيات سعي او كوشش به كوي او د گناه او معصيت ژوند څخه به پرهيز كوي او د الله تعالى د عليم او خبير كېدو په اړه د يقين گټه به دا وي چي د خپل ظاهر او باطن اصلاح ته به زيات متوجه وي، دا د شيخ عبدالوهاب د كلام خلاصه وه، اوس په پايكي دا ښودل ضروري دي چي د ذكر سوي تفصيل مطابق د الله تعالى رزاقيت رزق رسولو او الله تعالى چي د رزق وركولو كومه وعده كړې ده پر هغه كامل توكل او اعتماد درلودل د روحاني او باطني مراتبو څخه يوه ډېره لويه مرتبه ده او سالک لره د حق د لاري دغه مرتبه اختيارولو پرته څه چاره نسته او په ټول عبادت او طاعت كي د قلبي فراغ او اطمينان انحصار پر دې مرتبه دی، قطب وقت ابو الحسن شاذلي رحمه الله لويه عارفانه خبره كړې ده چي دوه شيان داسي دي چي په عامه توگه د الله تعالى او بنده په منځ كي د پردې په شان حائل كيږي يعني اول د رزق فكر، دوهم د مخلوق څخه بېره په دغه دواړو كي سخت حائل د رزق

فکر دی.

د امام اصمعي رحمه الله څخه منقول دي چي هغه ویلي دي: ما د یو صحرایي په مخکي د سورة والذاریات تلاوت پیل کړ، کله چي دغه آیت ته ورسېدم: (وفي السماء رزقکم وماتوعدون) نو هغه صحرایي چي په ډېر فکر سره زما تلاوت اورېدی ناڅاپه یې وویل چي بس یې کړه او بیا هغه خپلي اوښي ته متوجه سو او هغه اوښه یې ذبح کړه او د هغه د غوښو په پرېکولو سره یې په ټولو موجودو خلکو باندي وویشل، ددې څخه وروسته هغه خپله توره او غشي پورته کړه او هغه یې هم په ماتولو سره وغورځول او بېله څه ویلو د هغه ځای څخه ولاړ سو، ډېر وخت وروسته ما د بیت الله شریفي طواف کوی ناڅاپه مي د هغه صحرایي سره ملاقات وسو چي خپله یې طواف کوی او د هغه په لېدو سره زه حیران سوم د هغه بدن بالکل وچ سوی وو او رنګ یې ژړ سوی وو، د هغه په لېدو سره ما سلام وکړ او هغه وویل هغه سورت بیا تلاوت کړه کوم چي تا په هغه ورځ ویلی وو، نو ما هغه سورت ویل پیل کړل او کوم وخت چي دغه آیت: (وفي السماء رزقکم) ته ورسېدم نو هغه یوه چغه وکړه او وه یې ویل (قد وجدنا ما وعدنا ربنا حقا) ددې څخه وروسته هغه وویل نور ووایه، ما دغه آیت (فو رب السماء انه لحق) ووایه، هغه بیا یوه چغه وکړه او وه یې ویل اې الله پاک دی ستا ذات، هغه کوم بدبخت دی چي هغه الله تعالی دومره غصه کړ چي هغه ته قسم کول پرېوتل، د هغه سړي دبدبختۍ څه حد دی چي پروردګار ته په قسم کولو سره ددې خبري یقین ورکول پرېوتل، هغه صحرایي درې واره دغه جملې ادا کړې او په دې سره په حق ورسېدی.

## حقیقي زهد څه ته وایي

﴿۵۰۵۲﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ قَالَ لَيْسَ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا بِلُبْسِ الْغَلِيظِ وَالْخَشِنِ وَأَكْلِ الْجَشِبِ إِنَّمَا الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا قَصْرُ الْأَمَلِ. رواه في شرح السنة

د حضرت سفیان ثوري رحمه الله څخه روایت دئ چي په دنیا کي زهد ددې نوم نه دی چي غټي جامې واغوستل سي او یا وچه ډوډۍ وخوړل سي بلکه زهد په حقیقت کي د آرزوګانو او امیدونو د کمۍ نوم دئ. شرح السنه.

**تخریج**: لم نجده.

**تشریح**: د غلیظ څخه مراد هغه ټوکر دی چي د هغه صورت ډېر غټ او بدرنګه وي، او د خشن څخه مراد هغه ټوکر دی چي ډېر سخت او ځیږ وي، جشب هغه خوراک ته وایي چي ډېر بدخونده

وي او ځينو ويلي دي چي بغېر کتغ ډوډۍ ته جشب وايي، د آرزوګانو او اميدونو د کمۍ مطلب دادی چي د دنياوي شيانو حصول خواهشات او د عمر د اوږدوالي د خواهش په ختمولو سره بېله تاخيره توبه او انابت او علم او عمل لار اختيارول او هر وخت مرګ لپاره تيار اوسېدل دي.

د حضرت سفيان رحمه الله د ذکر سوې عارفانه قول مطلب دادی چي زهد د دنيا څخه د بې رغبتۍ او د بې شوقۍ هغه کيفيت دی چي پر انساني زړه باندي داسي خپور وي چي زړه د دنيا څخه بې زاره او آخرت ته راغب او متوجه وي، يعني د زهد مدار پر دې خبره نه دی چي د انسان زړه يعني بدن د دنيا جائز او مباح شيانو څخه کټه تر لاسه کوي يا نه ځکه چي د هغه حقيقت په اعتبار د زهد په معامله کي دا دواړه برابر يعني يو سړی په بدني توګه د ښه جامو والا او ښه خوراک کېدو سربېره په قلبي توګه هر وخت آخرت ته راغب او متوجه پاته کيدای سي او يو سړی په بدني توګه د ښه جامو او ښه خوراک څخه بې زاره کېدو سره هم په قلبي توګه آخرت ته زيات متوجه او راغب نه وي، که څه هم د هغه جامې بې حيثيتي او سادګي او د خوراک د بدخوندۍ د چلن او طريقې په لاره کي د بنده استقامت او استواري باندي ډېر زيات اثر کيږي، خلاصه دا چي کوم سالک په بدني توګه سره د دنيا څخه پرهيز کوي مګر د هغه په زړه کي د دنيا مينه وي نو دا شی د هغه لپاره ډېر مهلک دی ددې پر خلاف که چيري هغه په بدني توګه د دنيا جائز او مباح نعمتونو او لذتونو څخه ګټه اخلي مګر د هغه زړه د دنيا د مينې څخه خالي او آخرت ته متوجه وي نو دا د هغه په اړه ډېره غوره ده.

پوهېدل پکار دي چي د زړه مثال د کښتۍ په ډول دی که چيري اوبه په کښتۍ کي دننه سي نو هغه نه يوازي دا چي کښتۍ بلکه په هغه کي ناست خلک هم ډوبوي مګر که چيري هغه اوبه د کښتۍ څخه دباندي او د هغه شاوخوا وي نو هغه کښتۍ روانوي او منزل ته يې رسوي ځکه رسول الله ﷺ فرمايلي دي: نعم المال الصالح للرجل الصالح، او په دې وجه د صوفيانو د يو ډلي په اړه منقول دي چي هغه حضراتو به داسي جامې اغوستلې لکه څرنګه چي په عامه توګه رواج وې بلکه ځنيو به د اميرانو په ډول جامې اغوستلې چي د هغوئ د باطن حال منکشف نسي.

﴿۵۰۵۳﴾: وَعَنْ زَيْدِ بْنِ الْحُسَيْنِ قَالَ سَمِعْتُ مَالِكًا وَّسُئِلَ أَيُّ شَيْءٍ الزُّهْدُ فِي الدُّنْيَا قَالَ طِيْبُ الْكَسْبِ وَقَصْرُ الْأَمَلِ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت زيد بن حسين رحمه الله څخه روايت دئ چي د امام مالک څخه پوښتنه وسول چي په دنيا

کي زهد د څه شي نوم دئ ؟ هغه ورته په جواب کي وفرمايل : حلال کسب اختيارول او د اميدونو کمي . بيهقي په شعب الايمان کي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۷/۴۰۶۱، رقم: ۱۰۷۷۹.

**تشريح**: دلته کسب د مکسوب په معنی کي استعمال سوی دی يعني د خوراک هغه شيان چي حلال او پاک وي ، خلاصه دا چي زهد د هغه شی نوم نه دی چي انسان د هغه شيانو د خوراک او څښاک او د هغه څخه د ضرورت په اندازه ګټه تر لاسه کولو څخه پرهيز وکړي کوم چي د هغه په حق کي حلال او پاک دي ځکه که چيري د دغه شيانو څخه ګټه تر لاس کول د زهد خلاف وای نو الله تعالی به خپلو رسولانو ته دا نه فرمايلای چي : (کلوا من الطيبات واعملوا صالحا) او نه به يې مؤمنانو ته دا حکم ورکولای چي : (يا ايها الذين آمنوا کلوا من الطيبات ما رزقناکم واشکروا لله ان کنتم اياه تعبدون) بلکه زهد دادی چي انسان ته په جائز ذرائعو سره کوم حلال او پاک شيان حاصل سي د هغه څخه د ضرورت په اندازه ګټه تر لاسه کړي او غير حلال او ناپاک شيانو څخه پرهيز وکړي همدا رنګه يو بل شی چي د هغه تعلق د زهد سره دی دادی چي انسان د ازروګانو او اميدونو په بندي کېدو سره سست او اخرت څخه غافل نسي بلکه هر وخت اخرت ته متوجه وي او زيات نيک عمل کولو کي بوخت وي چي کوم وخت د اجل پيغام ورته راسي نو خپل ځان خپل پيدا کونکي ته پر حواله کولو باندي تيار وي دا هغه زهد دی چي د شريعت په نظر کي مطلوب دی چي انسان عاقبت انديښ جوړ وي او آخرت ته يې متوجه کوي .

که چيري دلته دا سوال پيدا سي چي د زهد سره د حلالي ګټي څه تعلق دی نو دد ې جواب دادی چي امام مالک د خپل دغه قول په ذريعه دد ې خيال ترديد کړی دی چي زهد محض ددغه شي نوم دی چي د دنيا څخه بې تعلقي اختيار کړل سي غټي جامې واغوستل سي او پر وچه ډوډۍ باندي اکتفاء وسي نو امام مالک دا خبره څرګنده کړې ده چي حقيقي زهد دا نه دی کوم چي تاسو په خپل ګمان کي ځا ی ورکړی دی بلکه د زهد حقيقت دادی چي الله ﷻ په جائزو طريقو سره تا ته حلال او پاک شيان درکړي دي هغه دي خوري او څښي او د هغو څخه دي ګټه ترلاسه کوي او د ضرورت په اندازه دي قناعت وکړي او د ضرورت څخه د زياتو شيانو اميد او د عمر د اوږدوالي آرزو مه کوئ لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي ، زهد اختيارول دد ې شي نوم نه دی چي حلال شيان پر ځان حرام کړي او خپل مال او اسباب ضائع کړي بلکه زهد په اصل کي ددغه شي نوم دی چي کوم شی ستاسو په لاس کي دی تر دغه شيانو پر هغه زيات باور کوه کوم چي د الله تعالی په لاس کي دی .

# بَابُ اِسْتِحْبَابِ الْمَالِ وَالْعُمُرِ لِلطَّاعَةِ

## (د الله ﷻ د عبادت لپاره د مال او عمر سره مینه کولو بیان)

د استحباب معنی ده ښه ګڼل او خوښول، د مال معنی ده هغه شی چي د هغه خواهش وکړل سي، جمع يې اموال ده او مال په اصل کي د میل څخه مشتق دی چي د هغه معنی د مائل کېدو، راغب کېدو ده نو دولت، اسباب او سامان او جائیداد وغیره ته مال ځکه ویل کیږي چي انسان دغه شیانو ته په طبعي توګه رغبت او میلان لري، د عمر معنی د ژوند ده، په دغه باب کي هغه حدیثونه نقل کیږي چي د هغو څخه معلومیږي چي د الله ﷻ د طاعت او عبادت لپاره د دین د خدمت لپاره او د اخروي فلاح او کامیابۍ لپاره د مال او دولت خواهش او طلب کول او د عمر د اوږدوالي آرزو کول جائز دي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### الله ﷻ ته خوښ بنده څوک دی؟

﴿۵۰۵۴﴾: عَنْ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللّٰهَ يُحِبُّ الْعَبْدَ التَّقِيَّ الْغَنِيَّ الْخَفِيَّ. رواه مسلم و ذكر حديث ابن عمر لا حسد الا في اثنين في باب فضائل القرآن.

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: الله تعالی متقي، غني او ګوشه نشین بنده خوښوي، مسلم. او د ابن عمر رضي الله عنه حدیث لا حسد الا في اثنین په باب فضائل القرآن کي بیان سوی دی.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۲۲۷۷، رقم: ۱۱- ۲۹۶۵.

**تشریح**: متقي هغه سړي ته وایي چي د منع شیانو څخه پرهېز کوي یا دلته د متقي څخه مراد هغه سړی دی چي خپل مال او زر بېله ضرورته په عیش او تفریح کي نه خرڅوي، ځیني حضرات وایي چي د متقي څخه مراد هغه څوک دی چي د حرام او مشتبه امورو څخه کلیةً پرهېز کوي او د هغه شیانو څخه هم پرهیز کوي چي د هغو تعلق د نفسي خواهشاتو او مباحاتو سره وي، د غني څخه مراد هغه سړی دی چي شتمن او مالدار وي او یا د زړه غني وي، مګر د دغه حدیث

دلته په دغه باب كي نقل كول دا خبره ثابتوي چي د غني څخه مراد هغه څوک دی چي مال او دولت لري او دا خبره د زړه غني كېدو خلاف نه ده ځكه چي د غناء په باب كي هغه سړی اصل او كامل غنی دی چي ظاهري مال او دولت سره د زړه غنا هم ولري او د هغه په ذريعه د لاس د غناء هغه تقاضا هم پوره كوي چي په دنيا او آخرت كي د مراتبو او درجو د لوړتيا باعث جوړيږي،

په دغه صورت كي دا خبره په هغه ځای كي ويل كيدای سي چي دلته د غني څخه مراد په اصل كي شكر گزار شتمن دی، ځيني حضرات ددغه حديث څخه استدلال كوي چي شكر گزار شتمن تر صبرناک فقير افضل دی كه څه هم دغه قول چي شاكر غني تر صابر فقير افضل دی يعني هغه قول خلاف دی كوم چي زيات د باور وړ گرځول سوی دی او هغه دا چي صابر فقير د شاكر غني څخه افضل دی، په دې اړه تفصيلي بحث مخكي تېر سوی دی.

د خفي څخه مراد يا خو كونج ناستی دی يعني هغه سړی چي د ټولو څخه د ترک تعلق په ذريعه يوازيوالي اختيار كړي او دخپل رب په عبادت كي بوخت اوسي يا دا چي په پټه توگه د خير او نيكۍ كونكی مراد دی، يعني هغه څوک چي د الله ﷻ د رضا لپاره نېک كارونه او خپل مال مصرف كولو كي داسي راز اختيار كړي چي بل چا ته د هغه علم نه وي، په دغه صورت كي د خفي اطلاق پر مفلس او غريب باندي هم كېدای سي او دوهم مراد زيات واضح دی، دغه لفظ په حاء مهمله سره يعني حفي هم روايت سوی دی چي د هغه څخه مراد هغه څوک دی چي د حق په معامله كي نرمي او مهرباني او احسان كوي مگر صحيح دادی چي دغه لفظ خفي دی چي د هغه وضاحت مخكي تېر سوی دی.

دغه حديث د هغه خلكو دليل دی چي وايي د خلكو څخه بېلوالي اختيارول د هغوئ سره د تعلق او د هغوئ په منځ كي د اوسېدو څخه افضل دی مگر كوم حضرات چي د خلكو سره تعلق او دهغوئ په منځ كي اوسېدل تر ترک تعلق او بېلوالي افضل گرځوي هغوئ دا تاويل كړی دی چي بېلوالي غوره كېدل د هغه صورت سره خاص دی كله چي د فتنو زور وي او د خلكو سره تعلق او دهغوئ په منځ كي د هستوگني اختيارول د دين او آخرت پر معاملاتو باندي خراب اثر كوي او په ايمان او عمل كي تاثير كيږي.

# اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

## د عمر اوږدوالی

﴿۵۰۵۵﴾: عَنْ أَبِي بَكْرَةَ أَنَّ رَجُلًا قَالَ يَا رَسُولَ اللهِ أَيُّ النَّاسِ خَيْرٌ قَالَ مَنْ طَالَ عُمُرُهُ وَحَسُنَ عَمَلُهُ قَالَ فَأَيُّ النَّاسِ شَرٌّ قَالَ مَنْ طَالَ عُمُرُهُ وَسَاءَ عَمَلُهُ. رواه احمد والترمذي والدارمي.

د حضرت ابوبكرة ﷺ څخه روايت دئ چي يو سړي پوښتنه وکړه اې دالله رسوله ! کوم بنده غوره دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : هغه څوک چي عمريې زيات وي او عمل يې ښه وي، بيا يې پوښتنه وکړه او څوک خراب دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : د چا چي عمر زيات او عمل يې خراب وي . احمد، ترمذي او دارمي

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۴۰، والترمذي ۴\۲۸۹، رقم: ۲۳۳۰، والدارمي ۲\۳۹۸، رقم: ۲۷۴۲.

**تشريح**: د حديث د ظاهري الفاظو څخه دا څرګنديږي چي ذکر سوی حکم د اغلب په اعتبار دی يعني ښه يا بد اعمال يې زيات وي نو هغه سړی به ښه يا بد ګرځول کيږي او که ښه او بد اعمال يې دواړه برابر وي نو بيا به هغه ته د يوې وجي خو ښه ويل کيږي او د يوې وجي به بد ويل کيږي که څه هم ددې خبري ثابتېدل نادر دي.

## ژوند د ښه اعمالو سره

﴿۵۰۵۶﴾: وَعَنْ عُبَيْدِ بْنِ خَالِدٍ أَنَّ النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ آخَى بَيْنَ رَجُلَيْنِ

د حضرت عبيد بن خالد ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ د دوو کسانو په منځ کي ورورولي قائمه کړې وه

فَقُتِلَ أَحَدُهُمَا في سبيل الله ثم مَاتَ الْآخَرُ بَعْدَهُ بجمعة او نحوها فصلوا

په هغوئ کي يو سړی د الله جل جلاله په لار کي ووژل سو د هغه څخه وروسته دويم هم (پر خپله بستره) مړ سو ، يوه اونی يا نژدې يوې اونۍ ته وروسته صحابه کرامو د هغه سړي د جنازې

عَلَيْهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا قُلْتُمْ قَالُوا دَعَوْنَا الله ان يغفر له

لمونځ وکړ، نبي کریم ﷺ د صحابه کرامو څخه پوښتنه وکړه چي تاسو په لمانځه کي څه وویل؟
صحابه کرامو وویل: موږ د هغه لپاره دعاء وکړه چي الله ﷻ هغه و بخښي

ويرحمه ويلحقه بِصَاحِبِهِ فَقَالَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَيْنَ صَلَاتُهُ

او پر هغه رحم وکړي او هغه خپل ملګري ته ورسوي، (کوم چي شهید سوی دئ) د دې اورېدو سره نبي کریم ﷺ وفرمایل د هغه هغه لمونځ څه سو

بَعْدَ صَلَاتِهِ وعَمَلُهُ بَعْدَ عَمَلِهِ او قال صيامه بعد صيامه لَمَا بَيْنَهُمَا ابعد مِمَا بَيْنَ السَّمَاءِ وَالْأَرْضِ. رواه ابوداؤد والنسائي.

چي هغه د خپل ملګري د مرګ څخه وروسته کړی وو او هغه عمل يې څه سو چي د هغه څخه وروسته يې وکړ، یا رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمایل: د هغه روژې څه سوې چي د هغه څخه وروسته يې نیولې دي (یعني هر کله چي تاسو هغه ته د شهید برابر مرتبې ته د رسولو دعاء کړې ده نو د هغه د دې اعمالو ثواب څه سو یعني دده مرتبه د شهید څخه زیاته ده) بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: په جنت کي د دنه د دوو کسانو په منځ کي چي کومه فاصله ده هغه د دې فاصلې څخه زیاته ده چي د آسمان او مځکي په منځ کي ده. ابوداؤد او نسائي.

**تخريج:** سنن ابي داود ۳\۳۵، رقم: ۲۵۲۴، والنسائي ۴\۷۴، رقم: ۱۹۸۵.

**تشريح:** د رسول الله ﷺ د ارشاد مطلب داوو چي دغه سړی د خپل ملګري د شهادت څخه وروسته څومره زیاتي ورځي ژوندی وو او په دغه ورځو کي يې کوم عبادات او اعمال صالحه وکړل د هغه په وجه د هغه مرتبه د شهید ورور او ملګري د مرتبې څخه هم لوړه سوې ده په دې وجه دلته دا سوال پیدا کیږي چي ورسته وفات کېدونکی د ذکر سوي سړي محض د هغه عباداتو او نیکو اعمالو په وجه چي هغه د یوې اونۍ په دوران کي کړي وه پر هغه سړي باندي څرنګه فضیلت تر لاسه کړ چي د هغه څخه مخکي په میدان جنګ کي شهید سوی وو او کله چي هغه د الله ﷻ په لاره کي او د دین د لوړتیا لپاره د شهادت درجه تر لاسه کړه او د شهادت جام يې په هغه زمانه کي نوش کړ کله چي رسول الله ﷺ په دغه دنیا کي تشریف فرما وو، د اسلام ابتدایي زمانه وه او د دین د مرسته کونکو هم کمي وه.

د دې جواب دادی چي هغه بل سړی د لومړي شهید سړي په مقابله کي زیات افضل ګرځول محض د هغه د نېکو اعمالو په وجه نه دی کوم چي د هغه یوې اونۍ په دوران کي کړي وه بلکه

اصل خبره داده چي هغه سړي هم د اسلامي لښکر يو فرد وو او د الله جل جلاله په لاره کي د مرابط فرائض سرته رسول او د جنګ په ميدان کي د شهد کېدو صادق نيت يې درلودی نو د هغه د نيت دا ميوه هغه ته تر لاسه سوه چي هغه ته لکه چي د شهادت درجه ورکړل سوه چي د هغه په وجه هغه د خپل ملګري هم مرتبه سو او بيا هغه د خپل ملګري د شهادت څخه وروسته چي کوم نيک اعمال وکړل د هغه په وجه د هغه مرتبه نوره هم زياته سوه.

## ضروري خبري

﴿۵۰۵۷﴾: وَعَنْ أَبِي كَبْشَةَ الْأَنْمَارِيِّ أَنَّهُ سَمِعَ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو کبشه انماري رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله صلى الله عليه وسلم څخه واوريدلي چي

يَقُولُ ثَلَاثٌ أُقْسِمُ عَلَيْهِنَّ وَأُحَدِّثُكُمْ حَدِيثًا فَاحْفَظُوهُ فاما الذي اقسم

درې خبري دي چي پر هغو زه قسم خورم چي هغه حق دي او تاته زه يو حديث بيانوم ته هغه په ياد لره ، هغه درې خبري چي پر هغه زه قسم اخلم دا دي

عليهن فانه مَا نَقَصَ مَالُ عَبْدٍ مِنْ صَدَقَةٍ وَلَا ظُلِمَ عَبْدٌ مَظْلَمَةً صَبَرَ عَلَيْهَا

(۱) دا چي د بنده مال د صدقې او خيرات کولو سره نه کميږي (۲) او پر کوم بنده چي ظلم وسي او هغه صبر وکړي

إِلَّا زَادَهُ اللّٰهُ عِزًّا وَلَا فَتَحَ عَبْدٌ بَابَ مَسْأَلَةٍ إِلَّا فَتَحَ اللّٰهُ عَلَيْهِ بَابَ فَقْرٍ واما

الله تعالى د هغه عزت زياتوي (۳) او کوم بنده چي د سوال دروازه خلاصه کړه نو الله تعالى د هغه لپاره د فقر او مفلسۍ دروازه خلاصه کړي ،

الذي أُحَدِّثُكُمْ فَاحْفَظُوهُ فقَالَ إِنَّمَا الدُّنْيَا لِأَرْبَعَةِ نَفَرٍ عَبْدٍ رَزَقَهُ اللّٰهُ مَالًا

تر دې وروسته رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل : د کوم شي چي ما ذکر کړی وو او س زه هغه بيانوم دا هم په ياد لره : دنيا د څلورو کسانو لپاره ده : (۱) يو خو د هغه بنده لپاره چي هغه ته الله تعالى مال

وَعِلْمًا فَهُوَ يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ وَيَصِلُ رَحِمَهُ وَيَعْمل لِلّٰهِ فِيهِ بحقه فَهٰذَا بِأَفْضَلِ

او علم ورکړ نو هغه مال خرڅ کولو کي د الله جل جلاله څخه بيريږي د خپلوانو سره ښه چلن کوي او د

هغه مال څخه د مال د حق سره سم د الله تعالی په لاره کي خرڅ کوي د دې کس لویه درجه ده

الْمَنَازِلِ وَعَبْدٍ رَزَقَهُ اللهُ عِلْمًا وَلَمْ يَرْزُقْهُ مَالًا فَهُوَ صَادِقُ النِّيَّةِ يَقُولُ لَوْ أَنَّ

(۲): دویم د هغه بنده لپاره چي هغه ته الله تعالی علم ورکړ او مال يې ورنه کړ دا بنده ريښتوني نيت لري او دا آرزو لري که چيري

لِي مَالًا لَعَمِلْتُ بِعَمَلِ فُلَانٍ فَأَجْرُهُمَا سَوَاءٌ وَعَبْدٍ رَزَقَهُ اللهُ مَالًا وَلَمْ يَرْزُقْهُ

زما سره مال وای نو د فلاني په ډول به مي په نيکو کارونو کي مصرف کړي وای ده ته به هم د لومړني کس په ډول اجر تر لاسه کيږي او په ثواب کي به دواړه برابر وي (۳): دريم د هغه بنده لپاره چي الله تعالی مال ورکړی وي

عِلْمًا فَهُوَ يَتخبط فِي مَالِهِ بِغَيْرِ عِلْمٍ لَا يَتَّقِي فِيهِ رَبَّهُ وَلَا يَصِلُ فِيهِ رَحِمَهُ

او علم يې نه وي ورکړی دا بنده د بې علمی په وجه خپل مال په خرابه طريقه سره خرڅ کوي نه خو په خرڅ کولو کي د الله ﷻ څخه بيريږي، نه د خپلوانو سره ښه چلن کوي او نه د خپل مال

وَلَا يَعْمل فِيهِ بحق فَهَذَا بِأَخْبَثِ الْمَنَازِلِ وَعَبْدٍ لَمْ يَرْزُقْهُ اللهُ مَالًا وَلَا

څخه د الله ﷻ حق ادا کوي، او نه د بندګانو حق ادا کوي، دا بنده د بدترينې مرتبې دي (۴): او څلورم بنده هغه دئ چي الله تعالی مال هم نه دی ورکړی او علم يې هم نه دی ورکړی، هغه

عِلْمًا فَهُوَ يَقُولُ لَوْ أَنَّ لِي مَالًا لَعَمِلْتُ فِيهِ بِعَمَلِ فُلَانٍ فَهُوَ نيته وَوِزْرُهُمَا سَوَاءٌ. رواه الترمذي وقال هذا حديث صحيح.

وايي که زما سره مال وای نو ما به د فلاني په ډول خرڅ کولای (يعني په خراب کارونو کي) دا بنده د خپل نيت په سبب مغلوب دئ او د هغه ګناه د دغه دريم بنده د ګناه په ډول ده،. ترمذي ويلي دي دا حديث صحيح دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۸۷، رقم: ۲۳۲۵.

**تشريح**: دلته بايد نيت د عزم پر معنی محمول کړل سي ځکه چي انسان د ګناه پر محض خواهش او نيت باندي نه بلکه پر عزم باندي ماخوذ دی او په اصطلاحي توګه عزم دې ته وايي

چي د انسان په زړه کي د يوې ګناه کولو خيال او اراده پيدا سي او هغه ته هغه خيال او اراده پوره کولو کي د خپلي خوا هيڅ کسر نه پرېږدي مګر په خارجي توګه يو داسي مانع واقع سي چي دهغه په وجه د هغه ګناه کولو او هغه ته پر رسېدو باندي قادر نه وي که هغه مانع نه وي او هغه ته قدرت تر لاسه سي نو هغه به بېله توقفه هغه ګناه وکړي، د مثال په توګه که يو څوک زنا کول غواړي او هغه د خپل دغه خواهش په تکميل کي تر دې حده پوري هڅه او سعي وکړي که چيري يو خارجي شی د هغه په لار کي خنډ پيدا نه کړي نو هغه به په زنا کي اخته سي نو د هغه دغه خواهش او ارادې دومره پخه اراده کولو ته به عزم ويل کيږي او هغه به پر دغه عزم باندي ماخوذ وي او هغه به د الله ﷻ په نظر کي ګناه کار ګرځول کيږي، ځکه چي عزم که څه هم واقعتا زنا نه دی مګر څرنګه چي زنا يوه ګناه ده.

همدارنګه د زنا عزم هم يوه مستقله ګناه ده، دلته مناسب ده چي په دې اړه لنډ بحث بيان کړل سي، نو پوهېدل پکار دي چي اول خو د شيطان وسوسه ده يعني بېله کسب او ارادې په زړه کي د ګناه خيال په خپله پيدا سي او تېر سي دې ته هاجس ويل کيږي او پر هاجس باندي مؤاخذه نسته، مګر هغه خيال که چيري په زړه کي ځای ونيسي او په طبيعت کي دننه ګردش کول پيل کړي نو هغه ته خاطر ويل کيږي خاطر هم ددغه امت په حق کي مرفوع او قابل معافي ګرځول سوی دی او پر هغه مؤاخذه نسته، او دا ددغه امت د خصائصو څخه دی، ددې څخه وروسته هم دی، هم دادی چي د ګناه هغه خيال په زړه کي داسي کښيني چي د هغه ګناه کولو د قصد او ارادې او نيت صورت اختيار کړي، په حسناتو کي د (هم) اعتبار کيږي چي د يوې نيکۍ محض نيت او د هغه قصد او اراده د پوره نيکۍ برابر ګرځول کيږي مګر په ګناهو کي د محض نيت او ارادې اعتبار نسته، ددې څخه وروسته عزم دی چي د هغه وضاحت مخکي تېر سوی دی او څرنګه چي بيان سوی دی چي د عزم مؤاخذه سته.

د حديث په دغه جمله کي (ويعمل لله فيه بحقه) د فيه ضمير شيخ عبدالحق مال ته ګرځولی دی لکه څرنګه چي د ترجمې څخه څرګنديږي، مګر ملا علي قاري رحمه الله د فيه ضمير د مال پر ځای علم ته ګرځولی دی په دغه صورت کي ددغه جملې مطلب به دا وي چي هغه سړی ددغه علم تعلق سره او حقوق الله او حقوق العباد ادا کولو سره د هغه علم حق ادا کوي مګر ملا علي قاري، ابن ملک ته په منسوب کولو سره دا قول هم ليکلی دی چي د فيه ضمير مال ته راجع دی نو شيخ عبدالحق دا قول اختيار کړی دی او شيخ دغه لفظ يتخبط، داسي ليکلی دی چي هغه سړی چي هغه ته يوازي مال ورکړل سوی دی او علم نه دی ورکړل سوی دی دخپلي بې

علمي او بدعقلي په وجه دخپل مال او دولت په معامله کي هيڅ صحيح لار نه اختياروي او د بنه او بدو مصارفو په منځ کي د تميز نه کولو په وجه هغه آخوا ديخوا مصرف کوي د هغه نتيجه داسي چي د هغه مال زيات په هغه کارو کي مصرف کيږي کوم چي غير شرعي او ناخوښه حق وي، نو ما بعد الفاظ لايتقي فيه ربه څخه دا خبره څرګنديږي مګر ملا علي قاري رحمه الله د دغه جملې دا معنى ليکلې ده چي هغه سړى د مال او دولت په تر لاسه کولو کي د سختي بې اعتدالي ښکار کيږي ، هغه هر وخت په مال ګټلو او جمع کولو کي مصروف وي ، د هغه ناسته ولاړه، ګرځېدل او د هر حرکت واحد محور د مال تر لاسه کول وي، ددې څخه پرته هغه د مال او دولت په اړه په ډول ډول حالاتو کي اخته کيږي چي کله خو بې پايه مصرف کوي او کله داسي بخل کوي چي بنيادي ضرورت او د حقوقو په ادا کولو کي هم بې احتياطي کوي .

## د نيکو اعمالو توفيق

﴿۵۰۵۸﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ ان الله تعالى اذا اراد بِعَبْدٍ خَيْرًا اسْتَعْمَلَهُ فَقِيلَ كَيْفَ يَسْتَعْمِلُهُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ يُوَفِّقُهُ لِعَمَلٍ صَالِحٍ قَبْلَ الْمَوْتِ. رواه الترمذي.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر کله چي الله تعالى د يو بنده سره د نيکي کولو اراده وکړي نو په هغه د نيکي کار کوي ، پوښتنه وسول اې د الله رسوله ! الله تعالى د نيکي کار څنګه په کوي ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د مرګ تر مخه هغه ته د نيکو کارونو توفيق ورکړي . ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۳۹۲، رقم: ۲۱۴۲.

**تشريح**: مطلب دادى چي پر کوم بنده باندي د الله جل جلاله کرم وسي نو هغه ته د مرګ څخه مخکي د توبې او طاعت او عبادت توفيق ورکول کيږي چي د هغه په وجه د هغه د حسن سعادت او خاتمې بالخير سعادت تر لاسه کوي . دغه حديث د ژوندي اوسېدو فضيلت او ارزښت ظاهروي چي په ژوند کي انسان د آخرت د خير او کاميابى لپاره څه ګټلاى سي .

## د عاقل او عاجز فرق

﴿۵۰۵۹﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ أَوْسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

الْكَيِّسُ مَنْ دَانَ نَفْسَهُ وَعَمِلَ لِمَا بَعْدَ الْمَوْتِ وَالْعَاجِزُ مَنْ أَتْبَعَ نَفْسَهُ هَوَاهَا وَتَمَنَّى عَلَى اللهِ. رواه الترمذي وابن ماجة.

د حضرت شداد بن اوس ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: عاقل او احتياط کونکی بنده هغه دئ چي خپل نفس ذليل کړي او په خپل واک کي يې وساتي او د مرګ څخه وروسته (ژوند) لپاره عمل وکړي او عاجز (احمق) هغه دی چي د خپل نفس د خواهشاتو غلام وي او د الله تعالی د بخښني آرزو مند وي. ترمذي او ابن ماجه.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۵۵۰، رقم: ۲۴۵۹، وابن ماجه ۲\ ۱۴۲۳،رقم: ۴۲۶۰.

**تشريح**: نووي ﷫ ليکلي دي چي امام ترمذي او نورو علماؤ او محدثينو وضاحت کړی دی چي (من دان نفسه) په اصل کي د حاسبها په مفهوم کي دی يعني عقلمند هغه څوک دی چي په خپل دنياوي ژوند کي خپل قول او فعل او خپل حالت خپله احتساب وکړي که هغه ويني چي د هغه په اعمالو، احوالو او کردار د نيکيو غلبه ده نو د الله ﷻ شکر دي ادا کړي او که هغه ته د خرابيو غلبه معلومه سي نو د توبې په ذريعه دي خپل حالت سمولو ته متوجه سي، د خرابيو ازاله دي وکړي او په تېر ژوند کي چي کوم عبادت او اعمال صالحه فوت سوي دي د هغو تدارک دي وکړي، مخکي تر دې چي د آخرت په سخت عذاب کي اخته سي، په يوه روايت کي فرمايل سوي دي: (حاسبوا انفسکم قبل ان تحاسبوا) يعني د خپل ځان محاسبه وکړه مخکي تر دې چي په آخرت کي ستا محاسبه وکړل سي او الله ﷻ فرمايلي دي: (ولتنظر نفس ما قدمت لغد) يعني نفس ته دا کتل پکار دي چي هغه سبا (آخرت) ته څه ليږلي دي.

د حديث څخه يوه خبره دا معلومه سوه چي پوه مؤمن هغه دی چي په خپل ځان کي دومره طاقت ولري چي د هغه نفس د خپل خواهشاتو په فريب کي اخته نه کړلای سي او ناپوه مؤمن هغه دی چي دومره کمزوره او ناتوان وي چي د هغه نفس هغه د خپل خواهشاتو بندي جوړ کړي، دوهمه خبره دا معلومه سوه چي د ګناه او معصيت لار نه ترک کول د توبې او استغفار او عمل خير په ذريعه خپل ژوند پاک نه جوړول او د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ د مرضی خلاف تلل او بيا اميد درلودل چي الله ﷻ د خپل رحمت دروازې پر خلاصي کړي او د دين او دنيا په کاميابی سره يې ونازو ي او په ژبه سره دا ويل چي زما رب لوی کريم او رحيم دی هغه به ما وبخښي، جنت ته به مي ورسوي دا په اصل کي د نفس يو داسي فريب دی چي د هغه په ذريعه يې شيطان د

گمراهۍ څخه وتلو ته نه پرېږدي، الله ﷻ فرمايي :

(مَا غَرَّكَ بِرَبِّكَ الْكَرِيمِ).

په يو بل ځای کي فرمايي:

(نَبِّیءْ عِبَادِي أَنِّي أَنَا الْغَفُورُ الرَّحِيمُ، وَ أَنَّ عَذَابِي هُوَ الْعَذَابُ الأَلِيمَ)

په يو بل ځای کي يې داسي څرګنده کړې ده چي :

(إِنَّ رَحْمَتَ اللهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ)،

او فرمايي:

(الَّذِينَ آمَنُواْ وَالَّذِينَ هَاجَرُواْ وَجَاهَدُواْ فِي سَبِيلِ اللهِ أُوْلَئِكَ يَرْجُونَ رَحْمَتَ اللهِ وَاللهُ غَفُورٌ رَّحِيمٌ)

د دغه آياتو خلاصه داده چي عمل نه کول او د بدۍ لار نه پرېښودل او د الله ﷻ د رحمت امېدوار کېدل بې ګټې دی، سیده لار داده چي د بدۍ لار پرېښودل سي اعتقادي او عملي ژوند په ديني او اخروي پاکۍ او سلامتي کي واچول سي او د هر نېک عمل په لاره کي کوتاهي و نه کړل سي او بيا د الله ﷻ د رحمت امېدوار هم اوسي او د هغه د عذاب څخه هم بيرېږي نو په دغه صورت کي د رحمت الهي استحقاق نصيب کيږي.

شيخ ابن عباد شاذلي رحمة الله عليه ليکلي دي چي د عارف بالله علماؤ وضاحت کړی دی چي د الله ﷻ د رحمت په اړه هغه د درواغو اميد چي پر هغه ناروا اعتماد کولو سره انسان د عمل او عبادت لار ترک کړي نو هغه اميد د هغه د ګناه او معصيت د ژوند بې باکه لاروی جوړ کړي نو دا په حقيقت کي اميد نه دی بلکه د نفس فريب او د شيطان دوکه ده،

حضرت معروف کرخي رحمة الله عليه فرمايي: بېله عمله د جنت طلب د ګناهونو څخه يوه ګناه ده د خداترسۍ او پاکۍ او عمل په ذريعه او تعلق اختيارولو پرته د شفاعت اميد د فريب يو ډول دی او د هغه ذات د رحمت اميدار کېدل چي د هغه اطاعت او فرمانبرداري نه کوي لوی جهالت او ناپوهي ده.

حضرت حسن بصري رحمة الله عليه فرمايي: اې د الله بندګانو! د هغه باطل او درواغو اميدو څخه ليري اوسئ چي د حماقت شېله ده او په هغه کي خلک لوېدلي دي، قسم په خدای! الله ﷻ هيڅ بنده محض د هغه د آرزوګانو په وجه په دنيا کي په کاميابۍ سره نه نازوي او نه يې په آخرت کي

د خیر او فلاح مستحق ګرځوي.

حضرت عمرو بن منصور رحمة الله علیه په خپلو متعلقینو کي یوه سړي ته لیکلي وه چي اې ناپوهه! ته د خپل عمر د اوږدوالي آرزو مند یې او ته د الله تعالی څخه ددې خبري امید واریې چي هغه به ستا د بدوعملو سربېره تا په خپل رحمت سره ونازوي، په هوښ کي راسه دا څه د یخي اوسپني په ټکولو بوخت یې.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د متقي لپاره دنیا بده نه ده

﴿۵۰۶۰﴾: عَنْ رَّجُلٍ مِّنْ اَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ كُنَّا فِي مَجْلِسٍ

د رسول الله ﷺ په اصحابو کي د یو صحابي څخه روایت دئ چي موږ ناست وو چي رسول الله

فَطَلَعَ عَلَيْنَا رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَعَلٰى رَأْسِهٖ أَثَرُ مَاءٍ فَقُلْنَا يَا

ﷺ تشریف راوړ، د رسول الله ﷺ پر سر مبارک د اوبو علامه وه موږ وویل: اې

رَسُوْلَ اللّٰهِ نَرَاكَ طَيِّبَ النَّفْسِ قَالَ أَجَلْ قَالَ ثُمَّ خَاضَ الْقَوْمُ فِي ذِكْرِ الْغِنٰى

دالله رسوله! دا وخت موږ تاسو خوشحاله وینو، رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، راوي وایي ددې څخه وروسته خلک په خبرو کي بوخت سول او د شتمنتوب بحث یې پیل کړ (چي دا ښه شی دئ

فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا بَأْسَ بِالْغِنٰى لِمَنِ اتَّقَى الله عزوجل

وَالصِّحَّةُ لِمَنِ اتَّقٰى خَيْرٌ مِّنَ الْغِنٰى وَطِيْبُ النَّفْسِ مِنَ النَّعِيْمِ. رواه احمد.

که بد) رسول الله ﷺ وفرمایل: څوک چي د الله تعالی څخه بیرېږي د هغه لپاره شتمنتوب بد شی نه دئ او د متقي لپاره صحت او د دولت څخه غوره دی او خوشحالي د الله تعالی د نعمتونو څخه یو نعمت دی. احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\۳۷۲.

### مال د مؤمن سپر دئ

﴿۵۰۶۱﴾: وَعَنْ سُفْيَانَ الثَّوْرِيِّ قَالَ كَانَ الْمَالُ فِيْمَا مَضٰى يُكْرَهُ فَأَمَّا الْيَوْمَ

د سفیان ثوري رحمه الله څخه روایت دئ چي په پخوا زمانه کي به مال بد ګڼل کیدی ، مګر نن سبا

فَهُوَ تُرْسُ الْمُؤْمِنِ وَقَالَ لَوْلَا هٰذِهِ الدَّنَانِيْرُ لَتَمَنْدَلَ بِنَا هٰؤُلَاءِ الْمُلُوْكُ وَقَالَ

مال د مؤمن سپر دی ، سفیان وایي که دا دنیا زموږ سره نه وای نو دغه پاچاهانو به ذلیل او خوار کړي وای او سفیان دا هم وویل چي

مَنْ كَانَ فِيْ يَدِهٖ مِنْ هٰذِهٖ شَيْءٌ فَلْيُصْلِحْهُ فَإِنَّهٗ زَمَانٌ إِنِ احْتَاجَ كَانَ أَوَّلَ مَنْ يَبْذُلُ دِيْنَهٗ وَقَالَ الْحَلَالُ لَا يَحْتَمِلُ السَّرَفَ . رواه في شرح السنة.

د چا سره مال وي هغه دي د هغه اصلاح وکړي (یعني د هغه د زیاتولو تدبیر دي وکړي او دضائع کېدو څخه دي يې وساتي )ځکه چي دا زمانه هغه زمانه ده که يې ده کي څوک اړ وي نو هغه تر ټولو لومړنی سړی دئ چي خپل دین به ددنیا په بدل کي خرڅ کړي ،. حضرت سفیان ثوري وویل : حلال مال د فضول خرڅۍ څخه نه ضائع کیږي یعني په حلال مال کي اسراف مه کوئ . شرح السنه

**تخریج**: لم نجده.

**دلغاتو حل**: التمندل: ای اجعلونا منادیل او ساخهم وهي کنایة عن الابتذال والمذلة للظلمة. (ذلت)

**تشریح**: حضرت سفیان ثوري رحمه الله د آخري قول مطلب دا بیان کړی دی چي کوم څوک په محنت او مشقت زغملو سره او په جائز وسائلو سره څه وګټي نو هغه ډېر پاک مال وي نو هغه ته پکار دي چي هغه خپل هغه پاک مال په پالتو مصارفو کي ضائع نه کړي بلکه په کفایت شعاري او احتیاط سره يې مصرف کړي او څه ناڅه د اندازه کولو هڅه هم وکړي او د هغه ساتنه وکړي چي د یو سختي اړتیا په وخت کي د چا محتاج نسي او د قلبي اطمینان او استغناء په وجه د خپل دین سلامتي ورته حاصل وي یا ددغه قول دا معنی ده چي په محنت او جائز وسائلو سره ګټلی مال دومره زیات نه وي چي په پالتو مصارفو کي ضائع کړل سي بلکه هغه لږ او مختصر وي چي په جائزو اړتیاوو کي خپل د ژوند مشکلات په پوره کړي .

## شپېته کاله عمر

﴿۵۰۶۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُنَادِيْ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنهما څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د قیامت په ورځ به یو

مُنَادٍ يَوْمَ الْقِيَامَةِ أَيْنَ أَبْنَاءُ السِّتِّيْنَ وَهُوَ الْعُمُرُ الَّذِيْ قَالَ اللهُ تَعَالٰى أَوَلَمْ

اعلان کونکی اعلان وکړي چي د شپيتو کالو عمر والا خلک په کوم ځای کي دي؟ او دا عمر هغه عمر دئ چي په دې اړه الله تعالی فرمايلي دي (ايا

نُعَمِّرْكُمْ... مَا يَتَذَكَّرُ فِيْهِ مَنْ تَذَكَّرَ وَجَاءَكُمُ النَّذِيْرُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

موږ تاسو ته داسي عمرونه درکړي نه وه چي په هغه کي نصيحت حاصلونکي نصيحت حاصل کړي حال دا چي تاسو ته بيرونکی هم راغلی وو) بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۱۷/۲۶۴، رقم: ۱۰۲۵۴.

**تشريح**: د بېرونکي څخه مراد يا خو د الله ﷻ احکام او هدايات يعني قرآن کريم او د هغه رسولان دی يا ددې څخه مراد سپين ږيرتوب او مرګ دی ، خلاصه دا چي چا ته الله ﷻ دومره اوږد عمر ورکړی وي او آخرت ته د متوجه کېدو دومره زياتي مواقع يې په برخه کړي وي نو هغه ته د عقل او پوهي څخه په کار اخيستلو د خپل آخرت د خير او کاميابۍ لپاره څه ناڅه نه وکړای سي او د عمر دومره اوږد وخت په پالتو تېرولو سره له دنيا څخه ولاړ سي او که څوک داسي وکړي نو هغه ته به د قيامت په ورځ د سخت سوال او جواب سره مخ کېدل وي او هلته يو بل عذر غوښتونکی دده په کار نه راځي نو ددغه څخه ډېر بې عقل او دده څخه ډېر بدنصيب بل څوک کېدای سي.

## د درو مسلمانانو مرګ

﴿۵۰۶۳﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ شَدَّادٍ قَالَ أَنَّ نَفَرًا مِنْ بَنِي عُذْرَةَ ثَلَاثَةً أَتَوْا

د حضرت عبدالله بن شداد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د عذره قبيلې درې کسان رسول الله ﷺ ته

النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَسْلَمُوا قَالَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ

راغلل او اسلام يې قبول کړ ، رسول الله ﷺ صحابه کرامو ته وفرمايل : څوک سته

يَكْفِنِيهِمْ قَالَ طَلْحَةُ أَنَا قَالَ فَكَانُوا عِنْدَ طَلْحَةَ انا فکانوا عنده فَبَعَثَ النَّبِيُّ

چي د دوئ خبر واخلي ، طلحه ﷺ وويل : زه به د دوئ خبر وکړم، دا دري سره د طلحه ﷺ سره وه بيا رسول الله ﷺ يو لښکر وليږئ

صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَعْثًا فَخَرَجَ فيه أَحَدُهُمْ فَاسْتُشْهِدَ ثُمَّ بَعَثَ بَعْثًا

په هغه درو کسانو کي يو سړی په هغه لښکر کي ولاړئ او شهيد سو ، بيا رسول الله ﷺ يو بل

فَخَرَجَ فِيهِ الاخر فَاسْتُشْهِدَ ثُمَّ مَاتَ الثَّالِثُ عَلَى فِرَاشِهِ قال قَالَ طَلْحَةُ

لښکر وليږئ په هغه کي دويم کس هم ولاړئ او شهيد سو ، بيا هغه دريم سړی پر بستره مړ سو ، د راوي بيان دئ چي طلحه ﷺ وويل :

فَرَأَيْتُ هَؤُلَاءِ فِي الْجَنَّةِ وَرَأَيْتُ الْمَيِّتَ عَلَى فِرَاشِهِ أَمَامَهُمْ وَ الَّذِي اسْتُشْهِدَ

ما دا دري سره (په خوب کي) په جنت کي وليدل ، کوم سړی چي په بستره کي مړ سوی وو هغه تر ټولو وړاندي وو ، او کوم چي په دويم لښکر کي شهيد سوی وو

أَخِيرًا يَلِيهِ أَوَّلَهُمْ يليه فَدَخَلَنِي مِنْ ذَلِكَ للنبي صلى الله عليه وسلم وَمَا

هغه په هغه پسي وو او تر ټولو وړاندي چي کوم سړی شهيد سوی وو هغه په آخر کي وو ، زما په زړه کي دا شبه پيدا سوه او رسول الله ﷺ ته مي يادونه وکړه ، رسول الله ﷺ وفرمايل : په دې

أَنْكَرْتَ مِنْ ذَلِكَ لَيْسَ أَحَدٌ أَفْضَلَ عِنْدَ اللهِ مِنْ مُؤْمِنٍ يُعَمَّرُ فِي الْإِسْلَامِ

لِتَسْبِيحِهِ وَتَكْبِيرِهِ وَتَهْلِيلِهِ. رواه احمد.

کي کومه خبره ستا لپاره د انکار وړ ده ، د الله ﷻ په نزد د هغه مسلمان څخه زيات غوره هيڅوک نه سته چي په اسلام کي يې زيات عمر تر لاسه کړ او هغه د تسبيح، تکبير او تهليل زياته موقع تر لاسه کړل . احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۱\۱۶۳.

**تشريح**: څرګنده ده چي کوم چا وروسته شهادت تر لاسه کړ د هغه عمر د اول شهيد کېدونکي د عمر څخه زيات وګرځيدی او کله چي د هغه عمر زيات سو نو د هغه نېک اعمال هم زيات سول نو لومړی شهيد کيدونکی سړي څخه د دغه افضل او بنه کېدل د هيڅ شک محل نه سي کيدای،

پاته سوه دا خبره چي د خپلو دواړو ملګرو څخه وروسته پر خپله بستره باندي وفات سو نو دهغه عمر ګویا د هغه دواړو څخه زیات سو او په دې اعتبار د هغه عمل هم دهغه دواړو د عمل څخه زیات سو ځکه چي هغه د خپلو دواړو ملګرو څخه که څه هم هغوئ د جنګ په میدان کي شهیدان سوي وه زیات افضل وګرځېدی مګر په دې اړه هغه توجیه په نظر کي ساتل پکار دي کوم چي په دوهم فصل کي د حضرت عبید ابن خالد ﷺ د روایت په تشریح کي بیان سوې ده چي هغه ته دلته هم د ترجمې په دوران کي اشاره سوې ده چي هغه سړی شهادت نه وو تر لاسه کړی او د جهاد صادق نیت لرلو په وجه د شهادت حامل وګرځول سو .

## د عبادت کونکي ژوند

﴿۵۰۶۴﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ أَبِي عُمَيْرَةَ وَكَانَ مِنْ أَصْحَابِ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ

د محمد بن ابي عميرة ﷺ څخه روایت دئ دی یو صحابي وو چي ویلي دي رسول الله ﷺ : که

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ أَنَّ عَبْدًا لو خَرَّ عَلَى وَجْهِهِ مِنْ يَوْمِ وُلِدَ إِلَى أَنْ يَمُوتَ هَرَمًا

یو بنده د زیږېدني د ورځي څخه تر سپینږیرتوب او مرګ پوري د الله ﷻ په عبادت او فرمانبرداري کي نسکور وي نو هغه به خپل دا عبادت

فِي طَاعَةِ اللّٰهِ لَحَقَّرَهُ فِي ذَٰلِكَ الْيَوْمَ وَلَوَدَّ أَنَّهُ رد إِلَى الدُّنْيَا كَيْمَا يَزْدَادَ مِنَ الْأَجْرِ وَالثَّوَابِ. رواه احمد.

او فرمانبرداري د قیامت په ورځ حقیر خیال کوي او دا ارمان به کوي چي هغه بیا دنیا ته ولاړ سي چي اجر او ثواب یې زیات سي .، احمد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۴\۱۸۵.

**تشریح**: مطلب دادی چي د عمر اوږدوالی د الله ﷻ د پر لوی نعمت دی په شرط د دې چي دغه اوږد عمر هغه ضائع نه کړي بلکه د الله ﷻ په طاعت او عبادت کي یې مصرف کړي نو عمر چي څومره زیات وي هغومره اعمال صالحه هم زیات وي او اعمال صالحه چي څومره زیات وي هغومره اجر او ثواب هم زیات تر لاسه کیږي چي د قیامت په ورځ به تر ټولو لویه سرمایه وي، الله ﷻ دي موږ او تاسو ټولو ته اوږد عمر په ښکو اعمالو کي را په برخه کړي . آمین .

د عبادت کونکي د ژوند دغه ارزښت بیان سوی دی که چیري دا فرض کړل سي چي یو

سړی په دغه دنیا کي په پیدا کېدو سره یا دا چي په بالغ کېدو سره دالله ﷻ په عبادت او طاعت کي مصروف سي او د سپین ږیرتوب عمر ته په رسېدو سره تر وفات کېدو پوري په سجده او لمونځ کي مصروف وي او د هغه د ژوند هیڅ برخه په دنیاوي کار کي صرف نسي نو هغه سړی هم د قیامت په ورځ د طاعت، عبادت او اعمال صالحه د اجر او ثواب د فضیلت او اهمیت په لېدو سره د خپل دغه اوږد عمر ټول عبادات او طاعات کم ګڼي او ارزو به کوي چي ارمان! ما ته د عبادت او طاعت اراده او موقع په لاس راسي او ما دنیا ته بېرته ولېږي چي هلته زیات عمل وکړم او ډېر اجر او ثواب دلته راوړم.

==========

# بَابُ التَّوَكُّلِ وَالصَّبْرِ

## (د توکل او صبر بیان)

په لغت د وَکَلَ او اُوکُول لفظ دی، چي معنی یې د سپارلو، حواله کولو ده، د دغه لفظ اسم وکالت او رکالت دی او د دغه لفظ څخه توکل وتلی دی چي د هغه معنی د خپل عجز او بې چارګی ظاهرولو او نورو باندي د اعتماد او باور کول دي، د دغه اسم تکلان دی، د شریعت په اصطلاح کي توکل دې ته وایي چي بنده خپله معامله الله ﷻ ته وسپاري، خپل تدبیر او سعي ترک کړي او خپل ذاتي طاقت او قدرت څخه په بې پرواه کېدو سره پر تقدیر الهي باندي کامل اعتماد وکړي، یعني پر دې خبره یقین ولري چي خپل تدبیر او سعي او ذاتي طاقت او قدرت د الله ﷻ مشیت او د هغه فیصله بدلولای نسي او د قسمت لیکل خرابولای نسي، څه چي لیکل سوي نه دي هغه ظاهرېدای نسي.

د توکل تعلق پر ټولو امورو او معاملاتو باندي وي مګر اکثر د دې استعمال د رزق په باره کي کېږي او خبره داده چي د توکل اصل مفهوم دی هغه پر دې خبره باور کول دي چي الله ﷻ د بندګانو د رزق ضامن دی د رزق تر لاسه کولو لپاره جائز او حلال وسائل او ذرائع ترک کول که څه هم د توکل صحیح کېدو شرط نه دی مګر دا ضروري ده چي اصل اعتماد او باور پر هغه وسائلو باندي نه وي، د توکل تعلق په اصل کي د زړه څخه دی، که چیري په زړه کي د الله ﷻ د ضامن کېدو یقین پوخ سي نو د توکل مفهوم پوره کېږي یعني د عمل اندامونه معطل کول او لاس او پښو غورځولو سره شل او ګډ جوړېدل د توکل صحیح کېدو لپاره نه وي او نه د حصول معاش لپاره ظاهري تدبیر او سعي کول د دې خلاف دی پاته سوه دا خبره چي ځینو زاهدان او

درویش صفته خلک موقت حصول معاش ظاهري اسباب او وسائل ترک کوي نو دا عمل محض یو استثنائي حیثیت لري، او ددې څخه دهغوئ مقصد دا وي چي مقام توکل ثابت سي او نفس په زیات ریاضت او مجاهده کي مشغول سي او د امید نظر د اسبابو څخه منقطع سي او په دې امر پوره یقین حاصل سي چي ظاهري اسباب د رزق رسولو لپاره د شرط درجه نه لري.

ځینو حضراتو د توکل مطلب دا بیان کړی دی چي د بنده د الله ﷻ پر رزاقیت باندي د اعتقاد د یقین سبب او حصول معاش اسباب او د کسب او عمل د پابندیو څخه مطلق ازاد کېدل دي مګر د توکل هغه مقام دی چي په ابتدائي حالت کي اختیارول کیږي یا د ازاد کېدو څخه مراد دادی چي هغه بنده هغه اسباب او کسب او عمل سره د هر ډول قلبي تعلق او باور ختم کړي یعني په خپل زړه کي دا خیال هم پیدا نه کړي چي ظاهري اسباب او وسائل او کسب او عمل رزق رسولو لپاره حقیقي مؤثر او مسبب وي نو کوم بنده چي د توکل آخري مرحلې ته ورسیږي او ددې مقام منتهي سي د هغه اسباب او وسائل او عمل اختیارول د هغه په حق کي د توکل خلاف نه دی هغه ته د الله ﷻ پر رزاقیت باندي کامل یقین هغه وخت هم تر لاسه کیږي کله چي هغه د خپل ژوند لپاره په اسبابو او کار و کسب کي بوخت اوسي او هغه وخت هم د هغه په یقین کي د ذرې فرق نه راځي کله چي هغه دغه شیان بالکل ترک کړي، د مثال په توګه که چیري هغه د خرما نوی بوټی ولګوی او د خرق عادت په توګه یعني د عادت خلاف هغه بوټی سمدستي بار وکړي نو د الله ﷻ پر قدرت صناعي باندي د هغه یقین او او عقیده او په هغه صورت کي او په دغه صورت کي چي دخرما بوټی د عادت او معمول مطابق څو کاله وروسته میوه وکړي یو ډول وي بلکه حقیقت دادی چي کله یو جز د خپل دنیاوي اسبابو او وسائلو په ذریعه او د ظاهري عواملو په وجه منځته راځي نو په دغه صورت کي د صانع د کمال قدرت مشاهده زیات په یقین او اعتماد او زیات د تاثیر په انداز کي کیږي ځکه چي د اسبابو څخه پرته یعني دخرق عادت په توګه چي کوم شی مخته راځي په هغه کي محض هغه یو فعل وي کله چي د ظاهري اسبابو په ذریعه ظاهرېدونکی شی هر څومره ټینګ او مضبوط افعالو او حالت او هر څومره محکم احکام او قوانین قدرت مظهر وي، ددې څخه پرته یوه خبره دا هم په نظر کي ساتل پکار دي چي اسباب او وسائل ترک کول یا دغه شیان معطل او بېکاره کېدل کوم چي الله تعالی د انسان لپاره پیدا کړي دي او کوم چي اختیارول د منشاء د قدرت خلاف نه دي، د صبر معنی ده منع کول د نفس د یو شي څخه، او په اصطلاح کي صبر دې ته وایي چي د نیکۍ او بدۍ په منځ کي د کشمکش په وخت کي خپل نفس پر دې خبره مجبوره کړل سي چي هغه نیکي اختیار کړي او د بدۍ

څخه منع سي.

شيخ نجم الدين كبري رحمه الله وايي: د صبر مفهوم دادی چي د رياضت او مجاهدې په ذريعه د حظوظ نفس، لذات نفس د جال څخه وتل او نفس د هغه د غوره شيانو څخه پر منع كولو باندي بندول.

په عوارف كي ليكلي دي چي د صبر كوم اقسام دي په هغو كي تر ټولو اعلی قسم هغه صبر دی چي د الله ﷻ په اړه وكړل سي په دې توګه چي هغه ته متوجه كېدل او اخلاص وي، د هغه ذات او كمال قدرت كي استغراق وي او د نفس ټول خواهشات او خيالات منقطع كړل سي او بيا يې بيان وكړ چي صبر فرض دی او نفل هم، فرض صبر هغه دی چي د فرضو ادا كول او د حرامو شيانو ترک اختيارول وي او د نفل صبر چي كوم صورتونه دي په هغو كي څو دادي:

۱. پر فقر او مفلسي او سختيو باندي صبر كول.
۲. پر يو صدمه رسېدو باندي صبر كول.
۳. خپل مصيبتونه او پريشانی پټول.
۴. د شكايت څخه پرهېز كول.
۵. باطني احوال او كرامت پټول.

څرګنده دي وي چي فرض او نفل دواړه ډوله صبر ډېر اقسام او صورتونه لري او ظاهره ده چي داسي خلک ډېر دي چي د صبر پر ټولو اقسامو باندي عمل كونكي نه دي.

لكه څرنګه چي مخكي بيان وسو چي د صبر ډېر اقسام دي او د هغه اطلاق پر ډېرو صورتو باندي كيږي مګر په عامه توګه د دې اطلاق په خصوصيت سره پر مصائبو او آفاتو او ناخوښه كارو باندي كيږي لكه څرنګه چي شكر يو وسيع المفهوم لفظ دی او د خپل اطلاق په اعتبار ډېر قسمونه لري مګر په خاصه توګه د دې استعمال د حصول نعمت او د رزق په دغه صورت كي كيږي.

## د توكل او صبر په اړه يو څو ګټوري خبري

پوه سئ! كوم شيان چي د انسان لپاره د عبادت په لاره كي خنډ جوړيږي په هغو كي تر ټولو سخت خنډ د معاشي ژوند تفكرات يعني خوراک او د نورو اړتياوو فكر او خيال دی، څرګنده ده چي انسان د خپل وجود او بقاء لپاره د كوم شيانو محتاج دی هغو ته د هغه د ميلان او مطالبې يو تقاضا ده. نو هغه پر ځای ويل كيږي چي زه د هر شي څخه منع سوم او زهد او تقوا مي اختيار كړل، د دنيا نعمتونو او لذتونو سره څه كار نه لرم مګر د هغه شيانو څه علاج وكړم چي زما د وجود او بقاء لپاره ضروري دي لكه خوراک، څښناک، جامې او داسي نور شيان، او

داهم بالكل څرګنده خبره ده چي دغه شيان په خپله نه حاصليږي بلكه ددغه شيانو د تر لاسه كولو لپاره د كسب او عمل هڅي او د خلكو سره د تعلق اختيارول ضروري دي، نو شريعت د نفس د دغه مطالبې پوره كولو لپاره تر ټولو يقيني لار ښيي چي هغه ته توكل ويل كيږي ځكه چي توكل بذات خود هغه واحد قوي ذريعه ده كه چيري پر هغه په صدق او اخلاص سره عامل سي نو د الله ﷻ له خوا د ژوند د اړتياوو تكميل په خپله پېل كيږي او ددغه لاري اختيارولو په وجه نه يوازي د نفس تشويش رفع كيږي بلكه د كمال ايمان درجه نصيب كيږي ، ددې پر خلاف توكل ترك كونكى ډېر سخت تفكرات ، وهمونو كي اخته كيږي چي د هغه نتيجه داسي چي نه هغه ته په سكون او اطمينان سره د طآعت او عبادت موقع نصيب كيږي او نه هغه په اطاعت او عبادت كي حلاوت او لذت نصيب كيږي او د روزۍ فكر او غم هغه دومره پريشان كړي چي هغه هيڅكله نيک عمل په يقين او قوت سره نه سي كولاى ، نو د توكل اختيارول د هر چا لپاره ضروري امر دى چي ددې څخه پرته هغه اعلى مراتبو ته د رسېدو طاقت نسي درلوداى لكه څرنګه چي يو اوږد حديث مخته راځي په هغه كي فرمايل سوي دي چي كوم څوک دا خبره خوښوي چي هغه په خلكو كي تر ټولو زيات قوي وي نو هغه ته پكار ده چي دتوكل لار اختيار كړي او دتوكل مفهوم دادى چي الله ﷻ دخپل ټولو كارو وكيل او دخپل خير په ضامن ګڼلو سره پر هغه باندي باور وكړل سي او په دې پوه سي چي الله ﷻ په قسمت كي څه ليكلي وي هغه هيڅكله معدوم كيږي نه ، او حكم الهي په هيڅ حالت كي نه بدليږي ، كه څه هم بنده يې غواړي يا يې نه غواړي او پر دې خبره يقين ولري چي الله ﷻ د بندګانو د روزۍ ضامن دى كله چي هغه پيدا كړي دي نو رزق به هم وركوي ، الله ﷻ په خپله فرمايي : (وما من دابة في الارض الا على الله رزقها) او په دې هم قسم كوي چي (فو رب السماء والارض انه لحق) .

نو د فكر كولو ځاى دى چي كوم څوک د الله ﷻ پر ذات باندي ايمان لري او د هغه د وعدې د صداقت د جزو ايمان كېدو عقيده لري كه هغه د هغه پر ضامن كېدو باندي عقيده ونه لري او د هغه پر وعده باور نه كوي نو د هغه ايمان چيري پاته كيږي او هغه څرنګه د الله ﷻ د بنده ويلو مستحق كيږي ، هر مؤمن ته پكار ده چي هغه دنيا او ددنيا مال او سباب يوه ظاهري وسيله وګڼي او ددې څخه نور زيات يې هيڅ ونه ګڼي او دايقين ولري چي حقيقي رزاق يوازي الله ﷻ دى هغه دومره د لوى قدرت مالک دى چي د هغه په نزد ظاهري وسائل او اسباب هيڅ اهميت نه لري هغه توكل او اعتماد لرونكو ته بې سببه او وسيلې هم روزي رسوي لكه چي فرمايي : (ومن يتوكل على الله فهو حسبه) .

همدارنګه د معاش تر لاسه کولو لپاره د وسائلو او کسب او عمل سره بوختيا د الله ﷻ له خوا د ټاکل سوي نظام يوه لړۍ او د روزۍ رسولو يو ظاهري سبب وګڼي او پر هغه په زړه سره اعتماد او باور نه کوي د الله ﷻ پر وعده باندي اطمينان لري او پوه سي که چيري کسب او کار نه کوم نو بيا هم الله ﷻ روزي را رسوي دا د توکل کمه درجه چي د ايمان لپاره ضروري ده او د عامو مسلمانانو مرتبه ده لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمايي : (وعلى الله فتوكلوا ان كنتم مؤمنين)

تر دې اعلى درجه دتسليم ده يعني د بنده خپل ټول معاملات الله ﷻ ته سپارل، د الله ﷻ په علم کفايت کول او په خپل زړه کي هيڅ ډول تردد نه درلودل دا د اولياء الله مرتبه ده .

د (وعلى الله فليتوكل المتوكلون) څخه دا خبره معلوميږي ، ددغه خبرو څخه دا نتيجه اخيستل نه دي پکار چي د معاش تر لاسه کولو لپاره اسباب او ذرائع اختيارول او په کسب او کار کي بوخت کېدل د توکل خلاف دي بلکه حقيقت دادی چي اسباب او ذرائع او کسب او کار هم د نظام قدرت يوه برخه ده او د الله له خوا تر يو حده پوري انسان ددغه شيانو مکلف هم ګرځول سوی دی مګر کوم شی چي د توکل خلاف دی هغه دادی چي د معاش تر لاسه کولو ظاهري اسباب او ذرائع او کسب او کار باندي په زړه سره اعتماد ونه کړل سي او نه دا وګڼي چي د رزق رسېدو حقيقي سبب دا شيان دی که چيري انسان کسب او کار نه کوي او محض پر الله ﷻ باندي په توکل کولو سره کښېني نو هغه ته رزق نسي رسيدلای ، دا عقيده او خيال د ايمان خلاف دی او دې ته شرک خفي ويل سوي دي نو کوم څوک چي اسباب او ذرائع اختيار کړي او په کسب او کار کي بوخت سي مګر د هغه باور يوازي پر الله ﷻ وي نو هغه سړی به هم يقينا د متوکلينو څخه وي که څه هم د توکل اعلى درجه داده چي بنده خپل لاس او پښې د ټولو اسبابو او ذرائعو څخه ليري کړي او په خپل ټولو معاملاتو کي پر الله ﷻ باندي اعتماد وکړي او خپل ټول امور هغه ته وسپاري په شرط ددې چي په هر حالت کي که تنګي وي که پراخي وي، د قوت ايمان په سبب پر الله ﷻ باندي د هغه کامل اعتماد يو ډول وي او د غير الله څخه اميد منقطع وي او په دې لاره کي که مصيبت ور پېښ سي نو هغه په صبر او رضا سره وزغمي او کوم څوک چي په دغه امورو پوره قادر نه وي نو دهغه په حق کي غوره داده چي هغه په زړه سره پر الله ﷻ په باور لرلو سره ظاهري اسباب او ذرائع اختيار کړي او د کسب او کار څخه منع کېدل قطع روا نه دي ځکه چي اکثر د انبياؤ او اولياؤ دا معمول راغلی دی چي هغوئ د معاش تر لاسه کولو لپاره ظاهري اسباب او ذرائع اختيار کړل او د کسب او عمل څخه منع نه سول چي کوم څوک د کسب او عمل په وجه په خپل ديني ژوند کي تاوان او خپل باطني احوالو کي تاوان ووينې نو د

هغه لپاره په هر صورت دا ضروري دي چي هغه د ټولو شیانو سره د تعلق منقطع کولو څخه وروسته ذکر او فکر او مجاهده کي بوخت و اوسي چي واصل بحق سي.

متوکل لره د داسي کار او ذریعې څخه منع کېدل چي د هغه څخه پرته کار کول قطعا ممکن نه وي او سنت الله ددې مطابق جاري وي دا هیڅکله روا نه دي بلکه حرام دي مثلا خوراک د لاس په ذریعه خوړل کیږي او سنت الله ددې مطابق جاري دی چي کوم څوک یو شی خوړل غواړي نو هغه په لاس سره پورته کړي او په خوله کي یې واچوي اوس که چیري یو سړی متوکل دا گمان وکړي چي ددغه شي د خوړلو لپاره د لاس ذریعه اختیارول د توکل خلاف دی او په دې امید ناست وي چي دغه شیان خپله په ولاړېدو سره زما خولې ته ولاړ سي نو زه به یې وخورم نو دا توکل نه دی بلکه دا به محض لیونتوب او حماقت وي د هغه په امورو کي توکل دادی چي په دې پوه سي چي الله ﷻ خوراک ددې لپاره پیدا کړی دی چي هغه وخوړل سي د ټولو خالق او رازق هم هغه دی او دا لاس د خوراک خوړلو سبب او ذریعه دی چي الله تعالی موږ ته راکړی دی بس لاس د خوړلو ظاهري ذریعه گڼلو سره د خوړلو لپاره دي استعمال کړي مگر په زړه سره دي په دې اعتماد نه کوي او دا دي وگڼي چي د کومو خلکو لاس نسته د هغوئ کار هم په هر حال سرته رسیږي تر څو چي د یو داسي کار تعلق دی چي د هغه د سرته د رسولو ذریعه که څه هم لاس دی مگر هغه دده داسي قطعي ذریعه نه ده چي د هغه څخه پرته کار سرته نه رسیږي لکه د سفر په دوران کي د سفر مصرف او د لاري توښه او داسي نور نو په داسي صورت کي لاسونه د ذریعې په توگه استعمالولو څخه منع کېدل روا کیدای سي ځکه چي داسي ممکن او کثیر الوقوع دي چي کوم څوک مصرف او د لاري توښه د ځان سره نه اخلي د هغوئ سفر هم پوره کیږي مگر څرگنده دي وي چي د لاري مصرف اخیستلو سره تلل د توکل خلاف هیڅکله نه دی بلکه اصل اعتماد پر الله ﷻ باندي وي نه پر هغه مصرف او د سفر پر خرچې باندي بلکه د ضرورت په اندازه د سفر د مصرف اخیستلو سره سفر کول سنت دي او د سلف د معمولاتو څخه ثابته ده مگر د حق تعالی پر ذات باندي د کامل اعتماد او باور په سبب د سفر مصارف نه اخیستل د متوکلین اعلی درجو څخه دي.

کوم څوک چي عیالدار وي او د هغه اهل او عیال پر تنگۍ باندي صبر نسي کولای او هغوئ ددې اجازه نه ورکوي چي هغه سړی دي د توکل په سبب یو کسب او عمل نه کوي او د حصول معاش د ظاهري اسبابو څخه دي منع سي نو د داسي سړي لپاره جائز نه ده چي هغه دي کسب او کار نه کوي او د ذرائعو څخه دي پرهیز کوي.

د خپل کورنۍ لپاره تر یوه کال پوري اود خپل ځان لپاره تر څلوېښت ورځو پوري د ضرورت په اندازه خوراکي توکي اېښودل د توکل خلاف نه دی مګر که چیري یو سړی د توکل له موخي خوراکي توکي د مخکي څخه په جمع کولو سره نه ایږدي او هر څه ترک کړي په شرط ددې چي پر الله ﷻ باندي د هغه پوره عقیده او اطمینان وي نو په یقین سره دا خبره ویل کیدای سي چي هغه د اعلی درجې حامل دی .

څرګنده ده چي ددغه مرتبې تر لاسه کولو لپاره د لوی قوت او همت ضرورت دی نو کوم چاته چي دومره قوت او همت میسر نه وي که هغه د خوراکي توکو نه جمع کولو په صورت کي طاعت او عبادت په اطمینان او سکون سره نسي کولای نو د هغه لپاره دا غوره ده چي د خپل کورنۍ خوراکي اړتیا لپاره غله جمع کړي .

د پریشانۍ او ناروغۍ شکایت نه کول، او کوم څوک چي طبیب او معالج نه وي د هغه په مخکي بېله ضرورته خپل مرض نه څرګندول د توکل لپاره شرط دی .

علماؤ دا هم لیکلي دي چي توکل هغه څوک کولای سي چي په توحید پوه او زاهد صفته وي، دلته د توحید څخه مراد دادی چي بنده په دې پوه سي چي ټول مخلوقات الله ﷻ پیدا کړي دي او په دې پوه سي چي د ټولو حقیقي محرک یوازي الله ﷻ دی، دده څخه پرته بل هیڅ ذات داسي نسته چي د هغه د حکم پرته یوه ذره هم وښوري ، او چیري چي کوم شی ځي او راځي د ټولو منبع او مصدر د هغه واحد ذات مرضي او مشیت دی ، د چا په زړه کي چي دغه خبره غالبه سي نو هغه ته بې اختیاره توکل حاصلیږي .

دا خو د توکل په اړه یو څو خبري سوې اوس د صبر په اړه پوهېدل پکار دي چي صبر یو داسي لار ده چي د هغه اختیارولو څخه پرته د هیڅ مؤمن لپاره چاره نسته ځکه د ایمان سلامتي او عبادت کي اطمینان او سکون سره د بوختیا انحصار پر صبر باندي دی ددې څخه څوک انکار کولای سي چي دنیا د اهل ایمان لپاره د افات او مصائبو یو کور څخه پرته نور هیڅ نه دی د مؤمن د ژوند هغه کومه لمحه ده چي په هغه کي هغه ته څه ناڅه بدني او روحاني اذیت او پریشاني مخ کېدل نه وي نو په دغه صورت کي پر هر مؤمن باندي واجب دي چي هغه د صبر لار اختیار کړي چي د هغه ایمان هم سلامت پاته سي او په طاعت او عبادت کي هم په اطمینان او سکون سره بوخت سي ځکه چي د زړه رنځ او د تاسف او حسرت په عالم کي عبادت په پوره کیف او نشاط سره ادا کېدای نسي ، ددې څخه پرته د صبر کونکي سره د دنیا او آخرت د بې شمېره شیانو او سعادتونو ورکولو وعده هم سوې ده د مثال په توګه د دښمنانو او مخالفینو په مقابله

کي او په نورو مهماتو کي فتح او کاميابي تر لاسه کيږي لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمايلي دي: (فاصبر ان العاقبة للمتقين)، دوهم د صبر په وجه بنده خپل مراد ته رسيږي لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمايي : (وتمت كلمة ربک الحسنى على بني اسرائيل بما صبروا) ، دريم دا د صبر او استقامت پر لار تلو سره د خلکو د قيادت او امامت درجه تر لاسه کيدای سي لکه چي فرمايي: (وجعلناهم ائمة يهتدون بامرنا لما صبروا)، څلورم صبر کونکی بنده د الله ﷻ له خوا په تعريف او توصيف سره نازول کيږي لکه چي فرمايي : (انا وجدناه صابرا نعم العبد انه اواب) ، پنځم صبر کونکي بندګانو ته داسي زيری ورکولو حکم سوی دی لکه چي (ان الله يحب الصابرين)، شپږم کوم بنده چي صبر کوي هغه به په جنت کي په لوړو درجو کي وي لکه چي فرمايي : (اولئک يجزون الغرفة بماصبروا)، اووم صبر کونکو ته د الله ﷻ له خوا د سلام اعزاز او شرف ورکړل سوی دی لکه چي فرمايي : (سلام عليکم بما صبرتم)، اتم دا چي کوم بندګان صبر کوي هغوئ بې شميره او زيات اجر او ثواب سره نازول کيږي لکه چي فرمايي: (انما يوفي الصابرون اجرهم بغير حساب) .

نو صبر دومره لوی فضيلت او دومره عظيم وصف دی چي پر دې باندي مؤمن ته همېشه اوسېدل پکار دي او ددغه وصف تر لاسه کولو ډېر ارزښت او غنيمت ګڼل پکار دي او صبر په اصل کي دادی چي خپل نفس د جزع څخه منع کړل سي او جزع دې ته وايي چي کله يو سړي ته پريشاني راسي نو پر هغه د اضطراب او خوف اظهار وکړل سي . او د هغه سختۍ او پريشانۍ څخه بطريق قطع او حکم د ګيلو د خلاصون اراده وکړل سي نو ددغه شيانو ترک کولو ته صبر ويل کيږي ، د صبر وصف تر لاسه کولو ډېره ګټوره او نفسياني طريقه داده چي کله داسي صورت پېښ سي چي د هغه په وجه نفس په اضطراب او بې قرارۍ کي اخته سي او په طبعي توګه غم او اذيت محسوس سي نو دا فکر کول پکار دي چي څه په قسمت کي ليکل سوي دي هغه به په هر حال کي پوره کيږي چي د هغه په وجه جزع کول يعني ژړاوي او شکايت کول قطعي بې ګټي شی دی چي په دغه خبرو سره په هغه صورت کي هيڅ تغير او تبديل نسي کيدای ، ددې څخه پرته د صبر کوم ثواب چي تلف کيږي نو هغه نور زيات تاوان دی .

دا ښودل هم ضروري دي چي د خپل حيثيت او حالت په اعتبار د صبر څلور ډولونه دي، يو هغه صبر دی چي نفس ته د طاعت او عبادت او استقامت په محنت او مشقت کولو په صورت کي تر لاسه کيږي، دوهم هغه صبر دی چي د ګناهو څخه د پرهېز کولو په صورت کي اختياريږي ، دريم هغه صبر دی چي د دنيا د اړتياوو څخه زيات شيانو څخه د قطع تعلق کولو په صورت کي

اختيارېږي، او څلورم هغه صبر دی چي د دين او دنيا د يو آفت او مصيبت او سختئ زغملو لپاره اختيارېږي، نو کوم څوک چي د صبر دغه څلور ډولونه اختيار کړي نو هغه د طاعت او عبادت په لار کي په سکون او استقامت سره روان دی، د ګناهونو څخه به خوندي وي، د دنيا د آفاتو او بلاوو څخه به سلامت او د آخرت د عذاب څخه به خلاصون تر لاسه کوي ددې څخه پرته ډېر زيات اجر او ثواب سره به نازول کيږي کوم څوک چي په ذکر سوو صورتو کي صبر اختيار نه کړي او د جزع او فزع لار اختيار کړي نو هغه د ټولو نعمتو څخه محروم کيږي اول خو په اطمينان او سکون سره عبادت نسي کولای او که يې وکړي نو د بې صبري ګناه هغه له منځه يوسي.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ　　(لومړی فصل)

### توکل کوونکي خلک

﴿۵۰۶۵﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْخُلُ الْجَنَّةَ مِنْ أُمَّتِي سَبْعُونَ أَلْفًا بِغَيْرِ حِسَابٍ هُمُ الَّذِينَ لَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَتَطَيَّرُونَ وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ. متفق عليه.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما په امت کي به اويا زره کسان بې حسابه جنت ته ځي او دا خلک وي چي نه به جادو کوي او نه بد فال اخلي، يوازي پر خپل پروردګار به يې توکل وي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۰۵، رقم: ۶۴۷۲، ومسلم ۱\ ۱۹۸، رقم: ۳۷۱- ۲۱۸.

**د لغاتو حل**: يسترقون: اى يطلبون الرقية مطلقا (دم كول)

**تشريح**: د اوويا زره د شمېر څخه مراد يوازي هغه خلک دي چي مستقل بالذات بېله حسابه په جنت کي داخليږي، په دغه شمېر کي هغه خلک شامل نه دي چي د هغه اوويا زرو خلکو د متبعينو په حيثيت سره د هغوئ سره جنت ته ځي، دا وضاحت ځکه سوی دی چي ددغه روايت د هغه بل روايت سره ټکر را نه سي چي په هغه کي ويل سوي دي چي بې حسابه جنت ته تلونکو هغه خلکو څخه هر يوه سره به د هغوئ اوويا زره متبعين هم وي.

دم نه کوي، دلته د دم څخه مراد يا مطلق دم، درود او تعويذ وغيره دی يا ددې څخه مراد

هغه دم دی چي د قرآني کلمو او ماثوره دعاوو او اسماء الهي څخه پرته وي همدارنګه بدفالي نه کوي ، ددې څخه مراد دادی چي دجاهلیت د زمانې د خلکو په ډول د مرغانو په الوتو، اواز کولو او نورو شیانو سره بدفال نه اخلي بلکه داسي کیږي چي : (اللهم لا طیر الا طیرک ولا خیر الا خیرک ولا اله غیرک اللهم لایاتي بالحسنات الا انت ولا یذهب بالسیئات الا انت) .

د نهایې مؤلف ویلي دي چي ذکر سوي اوصاف د اولیاء کاملین د خصوصیاتو څخه دي چي هغه پاک نفس د دنیا اسباب او وسائل او د هغه متعلقاتو څخه بې اعتنایي کوي او له دنیا سره تعلق لرونکي هیڅ شي ته هم نه مائل کیږي او دا درجه ده چي د خواص لپاره مخصوص ده اودغه درجې ته د عامو رسېدل نسي کیدای مګر کوم چي د عوامو تعلق دی نو د هغوئ لپاره په دې کي څه حرج نسته چي هغوئ حلال اسباب او ذرائع اختیار کړي او د دواء وغیره په ذریعه علاج وکړي مګر په دې کي دا خبره باید په ذهن کي وي چي کوم سړی د ناروغۍ په مصیبت اخته وي او هغه پر هغه ناروغۍ صبر وکړي بیا د دعاء په ذریعه د الله ﷻ له خوا د راحت منتظر او غوښتونکی وي نو یقینا هغه سړی به د الله ﷻ د خواصو څخه د شمېرل کېدو مستحق وي او کوم څوک چي پر هغه صبر کولو باندي قادر نه وي او هغه د ناروغۍ او مصیبت څخه د خلاصون لپاره ظاهري اسباب او ذرائع اختیارول غواړي نو هغه ته به ددې خبره اجازه ورکول کیږي چي هغه په دعاء، تعویذ او نورو شیانو سره د خپلي ناروغۍ او مصیبت د دفع هڅه وکړي

خلاصه دا چي کوم څوک د خپل طبعي حالت او کیفیت او باطني حیثیت په اعتبار څرنګه چي وي د هغه په حق کي به د هغه مطابق فیصله کیږي ددې تائید ددغه واقعې څخه هم کیږي چي کله حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یو وخت خپل ټول مال او اسباب د الله ﷻ په لاره کي د صرف کولو لپاره درسول الله ﷺ په خدمت کي وړاندي کړ، نو رسول الله ﷺ د هغه دغه وړاندیز رد نه کړ ځکه چي رسول الله ﷺ ته د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په اړه معلومه وه چي په هغه کي د یقین او صبر وصف په درجه کماله موجود دی، ددې پر خلاف کله چي یو سړي د کوترۍ د هګۍ په اندازه سره زر راوړل او هغه وویل زما سره ددې څخه پرته هیڅ نسته دا د الله ﷻ په لاره کي د صرف کولو لپاره تاسو ته نذر کوم نو رسول الله ﷺ نه یوازي دا چي هغه زر قبول نه کړل بلکه د هغه څخه سخت ناراض سو تر دې چي هغه یې ووهی ،

شیخ عبدالحق دهلوي رحمه الله دا لیکلي دي چي صحیح خبره دا معلومیږي چي په حدیث کي د دم کوم ذکر سوی دی د هغه څخه د جاهلیت د زمانې مشرکانه دم مراد دی چي د هغه د کتاب او سنت سره هیڅ واسطه نسته او رسول الله ﷺ قطعا روا کړي نه دي ځکه چي د هغه دمو

ساخت او د هغه الفاظ او معناوي داسي وې چي هغه اختيارونکى په شرک کي اخته کېدى ، دا خبره چي د دم څخه مراد د جاهليت د زمانې دم مراد دى د حديث د الفاظو (لا يتطيرون) څخه هم څرګنديږي چي تطير يعني بدفالي اخيستل د جاهليت د زمانې د عربو خاص معمول وو لکه څرنګه چي د جاهليت د زمانې د مشرکانو د رواج او عاداتو څخه پرهېز کول د هر مسلمان لپاره ضروري دى همدا رنګه د بدفالى څخه هم پرهېز کول لازم دى ، ډېر د افسوس خبره ده چي د نن ډېر مسلمانان هم د جهل او ناپوهى په وجه د بد فالى د اخيستلو په بدى کي اخته دي سره ددې چي د جاهليت د زمانې يو مشرکانه عادت دى او که ددې خبري څخه قطع نظر وکړل سي نو ددې څخه پرهېز کولو يوه لويه معقوله وجه دا هم ده چي بدفالي نه اخيستونکى د فضيلت حامل ګرځول سوى دى په دې وجه چي هغه هم په هغه خلکو کي شامل وي چي بې حسابه په جنت کي داخل کړل سي او د هغه څخه پرهېز يو اهم وصف دى چي د توکل په درجو کي شمېرل کيږي او ددې څخه لوړه درجه هغه ده چي د هر ډول علاج ، دم ، تعويذ او نورو تدبيرو د ترک کولو په وجه حاصليږي او د هغه مقصد حقيقي د توکل مقام ثابتوي او ظاهروي چي دتوکل متعارف مفهوم دلته بيانيږي او ځکه صوفيان د توکل وضاحت کړى دى چي د توکل مطلب دادى چي د الله تعالى پر رزاقيت باندي پوره اعتماد او باور په سبب کسب او عمل او اسباب مطلق ترک کول ، دا دوهمه او اوسطه درجه ده چي د خواصو مرتبه منل کيږي، ددغه مرتبې خلک د هغه اجر او فضيلت مستحق ګرځول کيږي چي د هغه ذکر په حديث کي دى بلکه ددې څخه پرته د يو عظيم الشان سعادت زيرى ورکړل سوى دى چي (للذين احسنوا الحسنى زيادة) .

د دې څخه وروسته دريمه درجه هغه ده چي د هغه مقام د منتهى او مقربينو لپاره مخصوص وي ، ددغه خلکو په ظاهري نظر کي اسباب او ذرائع ساقط وي چي دهغوئ په نزد د هغوئ عدم او وجود دواړه برابر دي هغوئ که اسباب او ذرائع تر يو حده اختياروي نو محض د اظهار عبوديت او مشيت الهي د فرمانبردارى په توګه يې استعمالوي او ددې حيثيت څخه دهغوئ اسباب او ذرائع اختيارول د هغوئ په حق کي د عزيمت حکم لري دغه مرتبې ته د اخص الخواص مرتبه ويل کيږي او هغه انبياء او اولياء دي چي دخپل ذات په اعتبار فاني او د الله ﷻ سره باقي دي او د توکل دا تر ټولو آخري مرتبه هم ده او ددې اصلي حقيقت هم ، او کوم خاص بندګان چي دغه مرتبې ته ورسيږي د هغوئ فضيلت تر ټولو زيات او د هغوئ اجر تر ټولو لوى وي .

په ذکر سوې مسئله کي عالمګيري دا قاعده بيان کړې ده چي تاوان ، ضرر او تکليف ليري کونکي اسباب او ذرائع پر درې ډوله دي ، يو خو هغه چي د هغه مؤثر کېدل يقيني وي لکه او به

تنده ، خوراک لوږه لیري کوي، دوهم هغه اسباب چي ظني وي لکه ښکر لګول، رګ وهل، او د طب نور قواعد ، یعني د ګرمۍ څخه پیدا کېدونکو ناروغیو کي د یخو دواوو په ذریعه او د یخ څخه پیدا کېدونکو ناروغیو کي د ګرمو دوا په ذریعه علاج کول او دغه شیان په طبي نقطه سره د ظاهري اسبابو درجه لري او دریم هغه اسباب چي د موهوم ذریعه وي لکه بدن داغل، د دعاګ په ذریعه دم او چُف کول، تعویذ او داسي نور شیان، نو کوم اسباب او ذرائع چي یقیني درجه لري هغه ترک کول نه یوازي دا چي د توکل لپاره شرط نه دي بلکه دا صورت په شرعي نقطه نظر سره هم حرام دی حال دا چي د هغه د ترک کولو په وجه د مرګ واقع کېدو بیره وي ،

ددې پر خلاف د اسبابو او ذرائعو تعلق د موهوم حقیقت لري د هغه ترک کول د توکل شرط دی ځکه چي رسول الله ﷺ داسي اسباب او ذرائع ترک کونکي د متوکلینو په ډله کي شمېرلي دي ، پاته سوه د هغه اسبابو او ذرائعو خبره چي ظني دي او د طبیبانو او حکیمانو په نزد د ظاهري اسبابو درجه لري نو هغه اختیارول یعني د طبي قواعدو سره سم علاج کول د توکل خلاف نه دی او د هغه ترک کول د یقیني اسبابو د ترک کولو په ډول منع نه دی ، په ځینو احوالو کي او د ځینو اشخاصو په اړه هغه ترک کول افضل دي نو ظني اسباب د دوو درجو په منځ کي یوه معتدله درجه وي .

﴿۵۰۶۶﴾: وَعَنْهُ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَوْمًا فَقَالَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت دئ یوه ورځ نبي کریم ﷺ تشریف راوړ او وه یې فرمایل :

عُرِضَتْ عَلَيَّ الْأُمَمُ فَجَعَلَ يَمُرُّ النَّبِيُّ و مَعَهُ الرَّجُلُ وَالنَّبِيُّ و مَعَهُ الرَّجُلَانِ

زما مخته امتونه وړاندي کړل سول (یعني په خوب یا د کشف په حالت کي) ځیني پیغمبرانو د خپلو امتونو سره تیریدل پیل کړل یو نبي تیر سو د هغه سره یو سړی وو ، (یعني یوازي یو امتي یې وو) او بل نبي تیر سو د هغه سره یوازي دوه خلک وه

وَالنَّبِيُّ و مَعَهُ الرَّهْطُ وَالنَّبِيُّ و لَيْسَ مَعَهُ أَحَدٌ فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ

او بل نبي تیر سو د هغه سره یوه ډله وه او یو نبي تیر سو د هغه سره یو سړي هم نه وو بیا ما یو لویه ډله ولیدل چي د آسمان غاړه ځیني ډکه وه

فَرَجَوْتُ أَنْ يَكُونَ أُمَّتِي فَقِيلَ هٰذَا مُوسَى فِي قَوْمِهِ ثُمَّ قِيلَ لِي انْظُرْ فَرَأَيْتُ

زما دا اميد سو چي دا به زما امت وي مگر ما ته وښودل سول چي دا موسى عليه السلام او د هغه امت دئ، بيا ما ته وويل سول وگوره، نو ما

سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ الْأُفُقَ فَقِيلَ لِي انْظُرْ هَكَذَا وَهَكَذَا فَرَأَيْتُ سَوَادًا كَثِيرًا سَدَّ

يوه لويه ډله وليدل چي د هغه څخه د آسمان غاړې ډكي وې بيا ما ته وويل سول راسته او چپه لوري ته وگوره نو ما يوه لويه ډله په خپل شا وخوا كي وليدل چي د آسمان تر غاړه پوري خپره

الْأُفُقَ فَقِيلَ هَؤُلَاءِ أُمَّتُكَ وَمَعَ هَؤُلَاءِ سَبْعُونَ أَلْفًا قدامهم يَدْخُلُونَ

سوې وه ، بيا ما ته وويل سول دا ستا امت دئ او ددوئ څخه پرته او يا زره نور دي چي بې

الْجَنَّةَ بِغَيْرِ حِسَابٍ هُمُ الَّذِينَ لَا يَتَطَيَّرُونَ وَلَا يَسْتَرْقُونَ وَلَا يَكْتَوُونَ

حسابه به په جنت كي داخليږي دا به هغه خلک وي چي نه بد فالي اخلي او نه به طلب د دم كوي او نه به پر خپل بدن داغ لگوي

وَعَلَى رَبِّهِمْ يَتَوَكَّلُونَ فَقَامَ عُكَّاشَةُ بْنُ مِحْصَنٍ فَقَالَ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي

او يوازي پر الله ﷻ به يې توكل وي، (ددې په اوريدو سره) عكاشه بن محصن ولاړ سو او عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! ما ته دعاء وكړه چي الله تعالى ما هم د دغه خلكو څخه كړي نو

مِنْهُمْ قَالَ اللَّهُمَّ اجْعَلْهُ مِنْهُمْ ثُمَّ قَامَ إِرَجُلٌ آخَرُ فَقَالَ ادْعُ اللَّهَ أَنْ يَجْعَلَنِي مِنْهُمْ قَالَ سَبَقَكَ بِهَا عُكَّاشَةُ. متفق عليه.

وه يې فرمايل : الله ﷻ دى هم د دغه ډلي څخه كړه، بيا بل سړى ولاړ سو عرض يې وكړ اې د الله رسوله ! زما لپاره هم دعاء وكړئ ، رسول الله ﷺ وفرمايل : عكاشه ستا څخه مخكي سو . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۲۱۱، رقم: ۵۷۵۲، ومسلم ۱\۱۹۹، رقم: ۲۷۴، ۲۲۰.

**تشريح**: د نبي څخه مراد رسولان دى چي د الله ﷻ د دين رسولو او د خلكو پر سيده لار راوستلو لپاره دغه دنيا ته را استول سوي دي ، امام نووي رحمه الله وايي: د اوويا زره څخه مراد دا هم كېداى سي چي د رسول الله د امت څخه اوويا زره خلک هغه دي كوم چي د دغه خلكو څخه

پرته دي او ددې څخه دا معنی هم اخيستل کيږي چي د دغه خلکو څخه اوويا زره خلک داسي هم دي چي بې حسابه به په جنت کي داخل سي ، ددغه دوهمي معنی تائيد د بخاري په روايت سوي دغه الفاظو کي هم کيږي : (هذه امتک ويدخلون الجنة من هولاء سبعون الفا)، يعني دغه ستا د امت خلک دي او په دوئ کي به اوويا زره هغه خلک وي چي بې حسابه په جنت کي داخليږي.

نه خپل بدن ته داغ ورکوي: مطلب دادی چي خلک بېله ضرورت خپل د بدن يوې برخي ته داغ نه ورکوي ، يو دا چي يو داسي مجبوري وي چي د داغ کولو څخه پرته بله چاره نه وي نو دا بېله خبره ده د ضرورت او مجبوري لپاره داغل د ځينو صحابه کرامو څخه هم ثابت دي چي په هغوئ کي حضرت سعد بن ابي وقاص ﷺ هم دی چي په عشره مبشره کي شمېرل کيږي ، يا دا معنی وي چي هغه خلک مطلق داغل نه کوي که څه هم هغوئ ته هر څومره ضرورت وي ځکه چي هغوئ پر تقدير باندي راضي او مطمئن وي هغوئ يوازي پر الله ﷻ باندي باور او اعتماد وي هغوئ د يو آفت او مصيبت د تدبر کولو پر ځای د هغه په وجه يو خاص لذت محسوس کوي او په دې خبره هغوئ ته پوره يقين وي چي فائده او تاوان رسونکی يوازي الله تعالی دی د هغه څخه پرته داسي هيڅ ذات او هيڅ شی نسته چي حقيقي مؤثر وي نو هغه خلک چي پاک نفس او پر مشهوره مرتبه باندي فائز وي او دهغوئ په نظر کي د هغوئ خپل وجود د عدم برابر وي او د نفس د لذتو او خواهشاتو په اعتبار هغوئ د فناء مقام اختيار کړی وي .

ځينو شارحينو داسي ليکلي دي چي نه خو خپل بدن ته داغ ورکوي ، معنی داده چي هغه خلک د بدن داغلو څخه پرهېز کوي مګر که چيري د يو ناروغی او تکليف په وجه هغه داسي وکړي نو د هغه د فائدې او شفاء اعتقاده يوازي پر الله تعالی باندي وي نه محض پر داغلو .

ځيني حضرات وايي چي پر بدن باندي داغ کول د هغه اسبابو څخه دی چي وهميه دي او په حديث کي ددې منع منقول ده مګر که چيري د يو ناروغی او تکليف د دفع لپاره يو حاذق معالج او ډاکټر داغل ضروري وګڼي او د هغه ګټور کېدل يقيني امر وي نو ددې اجازه هم سته .

نه دم کوي: دلته د دم څخه مراد افسون او جادو دی چي د هغه الفاظ او معنی د قرآن او احاديثو مطابق نه وي او د هغه په وجه په شرک کي د اخته کېدو بېره وي همدارنګه نه بدفالي کوي ، ددې مطلب دادی چي يو حيوان که هغه مرغه وي يا بل حيوان وي د هغوئ د الوتلو او آواز څخه هغه خلک بدفالي نه کوي .

خلاصه دا چي د کومو خلکو په اړه د ازيری ورکړی سوی دی هغوئ به بې حسابه په جنت کي داخليږي او دا په اصل کي هغه خلک دي چي خپل ايمان او اعتقاد په اعتبار ډېر پاخه او

ټینګ وي چي هغوئ هیڅ داسي عقیده او عمل نه اختیاروي چي د جاهلیت د زمانې د عقائدو او اعمالو سره مطابقت او مشابهت لري.

دلته یو سوال پیدا کیږي چي د ذکر سوو خلکو په اړه د اوویا زره شمېر ذکر دی، نو ایا د ابتداء څخه تر انتهاء پوري به په امت محمدیه کي د داسي خلکو شمېر یوازي اویا زره وي؟ حال دا چي ددغه وصف خلک د ذکر سوي شمېر څخه ډېر زیات په یوه زمانه کي تر لاسه کیږي، ددې جواب دادی چي د اوویا زره څخه مراد خاص شمېر څرګندول نه دی بلکه د اوویا زره عدد استعمالولو واحد مقصد د داسي خلکو زیاتوب ته اشاره ده.

د حدیث د آخري برخي په اړه دا سوال پیدا کیږي چي رسول الله ﷺ د دوهم سړي خواست ولي قبول نه کړ، او د هغه په حق کي یې دعاء ولي ونه کړل، ددې جواب دا ورکول کیږي چي دا د الله تعالی له خوا رسول الله ﷺ ته په هغه مجلس کي یوازي د یوه سړي په حق کي د دعاء کولو اجازه ورکول سوې وه او رسول الله ﷺ د عکاشه رضی الله عنه په حق کي دعاء کړې وه ځکه د هغه څخه وروسته د بل سړي د خپل باطني حیثیت او حالت په اعتبار ددغه مرتبې اهل او ددغه منزل مستحق نه وو ځکه رسول الله ﷺ د هغه په حق کي دعاء ونه کړل، مګر په دې اړه رسول الله ﷺ هغه ته په صراحت سره ونه فرمایل چي ته ددغه مرتبې او منزلت اهل او مستحق نه یې بلکه هغه ته یې یو عام جواب ورکړ او څرګنده یې کړه چي د عکاشه په حق کي د دعاء کولو سبب د هغه له خوا په دعاء کي التماس او سبقت دی ځیني حضرات دا هم وایي چي هغه سړی په اصل کي د منافقینو څخه وو او ظاهره ده چي د هغه دا حیثیت د رسول الله ﷺ په علم کي وو ځکه رسول الله ﷺ د هغه په حق کي دعاء ونه کړل.

مګر رسول الله ﷺ د اخلاقو او مروت له موخي هغه ته دا ونه ویل بلکه یو مجمل جواب یې ورکړ مګر ځیني نور حضرات وایي چي د عکاشه رضی الله عنه په حق کي دعاء کول په اصل کي د وحي خفي سبب وو چي په هغه کي رسول الله ﷺ ته د ذکر سوي دعاء کولو اجازه ورکړل سوې وه.

دا قول زیات صحیح دی ځکه چي په یو بل روایت کي بیان سوي دي چي په دغه موقع کي خواست کونکي بل سړي حضرت سعد بن عباده وو چي د سترو صحابه کرامو څخه دی.

دغه ارشاد پر دې دلالت کوي چي د نیکۍ لاري په اختیارولو کي سبقت کول پکار دي او اهل الله او بزرګانو ته په خپل حق کي د فلاح او سعادت د دعاء خواست کول پکار دی.

## دمؤمن شان

﴿۵۰٦٧﴾: وَعَنْ صُهَيْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَجَبًا لِأَمْرِ

د حضرت صهيب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: دمؤمن عجيبه شان دئ د

الْمُؤْمِنِ إِنَّ أَمْرَهُ كُلَّهُ له خَيْرٌ وَلَيْسَ ذَالكَ لِأَحَدٍ إِلَّا لِمُؤْمِنِ إِنْ أَصَابَتْهُ سَرَّاءُ

هغه ټول كارونه نيكي دي او دا شان يوازي د مؤمن سره خاص دئ كه خوشحالي ورته ترلاسه

شَكَرَ فَكَانَ خَيْرًا لَهُ وَإِنْ أَصَابَتْهُ ضَرَّاءُ صَبَرَ فَكَانَ خَيْرًا لَهُ. رواه مسلم.

سي د الله شكر كوي چي دا شكر د هغه لپاره نيكي ده او كه مصيبت ورته راسي نو صبر كوي او دا صبر هم د هغه لپاره نيكي ده. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۹۵، رقم: ٦۴- ۲۹۹۹.

**د لغاتو حل**: سراء: اى نعماء وسعة عيش. (عيش او عشرت)

**تشريح**: مطلب دادى چي انسان په خپل ورځني ژوند كي يا خو د داسي صورت سره مخ كيږي چي هغه په تكليف او غم كي اخته كوي يا هغه په داسي حال كي وي چي په هغه سره خوشحالي محسوس كوي، ددغه دواړو حالتو څخه هيڅوک خالي نه وي، نو د مؤمن لپاره د غم او تكليف حالت د صبر تقاضا كوي او خوشحالي وركونكي حالت د شكر، څرګنده ده چي دغه دواړه شيان يعني صبر او شكر ډېر اعلى دى او د ډېر زيات اجر او ثواب باعث دي، همدارنګه مؤمن په هر حالت كي د اعلى مقام او مرتبې او ډېر زيات اجر او ثواب مستحق وي مګر دا خبره بايد په ذهن كي وي چي په ذكر سوي حديث كي دا فرمايل سوي دي چي دا خبره يوازي د مؤمن لپاره خاص ده نو په ظاهره د مؤمن څخه مراد د مؤمن زړه دى ځكه چي دا د كامل مؤمن شان دى چي هغه د تنګۍ او سختۍ، غم او تكليف په حالت كي صبر كوي او د خوشحالۍ په صورت كي شكر ګزار وي، ددې پر خلاف د غير كامل مؤمن حال داوي كه چيري هغه ته د خوشحالۍ اسباب تر لاسه سي نو هغه مغرور سي او د شريعت خلاف خبري پيل كړي او كه په تنګۍ او تكليف كي اخته سي نو جزع او فزع، شكايت او ناشكري كول پيل كړي، نو د هرمؤمن لپاره دا ضروري ده چي هغه په كوم حالت كي وي د هغه مطابق د خپل كيفيت جائزه واخلي او وګوري چي هغه د خپل فكر او خيال، قول او فعل په اعتبار ددغه حديث پر معيار پوره دى كه يا او ديا د كامل مؤمن ويلو مستحق دى كه يا.

## یو څو خاص هدایات

﴿۵۰۶۸﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمُؤْمِنُ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: قوي مؤمن (د عقیدې او

الْقَوِيُّ خَيْرٌ وَأَحَبُّ إِلَى اللّٰهِ مِنَ الْمُؤْمِنِ الضَّعِيفِ وَفِي كُلٍّ خَيْرٌ احْرِصْ عَلَى مَا

بدن د لحاظه) تر ضعیف مؤمن د الله تعالی په نزد غوره او محبوب دئ، او په هر مؤمن کي

يَنْفَعُكَ وَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ وَلَا تَعْجِزْ وَإِنْ أَصَابَكَ شَيْءٌ فَلَا تَقُلْ لَوْ أَنِّي فَعَلْتُ كَانَ

نیکي ده، نو کوم شی چي تا ته ګټه رسوي د هغه حرص کوه او د الله جل جلاله مرسته او توفیق غواړه او د مرستي غوښتلو څخه پاته مه راځه او هر کله چي یو مصیبت درته راسي نو داسي مه وایه

كَذَا وَكَذَا وَلَكِنْ قُلْ قَدَرَ اللّٰهُ وَمَا شَاءَ فَعَلَ فَإِنَّ لَوْ تَفْتَحُ عَمَلَ الشَّيْطَانِ.

رواه مسلم.

که ما داسي کړي وای نو داسي به سوی وای بلکه داسي وایه چي الله جل جلاله همداسي لیکلي وه، او الله جل جلاله چي څه غواړي هغه کوي ځکه چي د (که یا اګر) لفظ د شیطان کار خلاصوي او په زړه کي وسوسه پیدا کوي. مسلم.

**تخریج:** صحیح مسلم ۴\۲۰۵۲، رقم: ۳۴- ۲۶۶۴.

**تشریح:** دا ویل که چیري دا فلانی تدبیر مي کړی وای، او دا کار مي داسي کړی وای نو زه به د فلاني تاوان او مصیبت څخه ساتل سوی وای، داسي وینا ځکه منع ده چي داسي ویل بالکل لاحاصل دي او ددې هیڅ ګټه نسته، کوم شی چي څرنګه پېښ سي هغه همداسي نه دی بلکه د الله تعالی پر مشیت او د هغه د حکم او فیصلې مطابق پېښېږي چي هغه ته د تقدیر لیک ویل کیږي لکه څرنګه چي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي (قل لن یصیبنا الا ما کتب الله لنا)، ته ووایه چي موږ ته نه یو ازي هغه څه رسیږي کوم چي د الله تعالی له خوا زموږ لپاره لیکل سوي دي، نو د (که چیري) لفظ ویل په هغه صورت کي منع دی کله چي ددې استعمال په یو داسي جمله کي وي چي د هغه مقصد د تقدیر الهي سره معارض او مقابل وي او دا عقیده وي چي تقدیر هیڅ شی نه دی د هر شي واقع کېدل د هغه ظاهري او مادي اسباب او وسائلو باندي

منحصر وی که چیري دا عقیده نه وي نو بیا دد ې استعمال به منع نه وي لکه څرنګه چې په قرآن کریم کي داسي وارد سوي دي (لو کنتم في بیوتکم لبرز الذین کتب علیهم القتل).

په یو بل حدیث کي په باب الحج کي نقل سوي دي چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (لو اني استقبلت من امري ما استدبرت)، که ما ته د مخکي څخه دا معلومه وای، همدارنګه په نورو ډېرو روایتو کي هم د لو لفظ نقل سوی دی نو معلومه سوه چي د لو یعني که چیري لفظ د منع تعلق د داسي خبري سره دی چي د هغه ګټه نه وي او د تقدیر الهي معارض ثابتیږي مګر څرګنده دي وي چي ذکر سوی منع د نهي تنزیهي په توګه ده نه د نهي تحریمي په توګه او که د دغه لفظ استعمال په یو داسي جمله کي وي چي د هغه مقصد د طاعت او عبادت پر فوت کېدو باندي اظهار او تاسف وي یا هغه عبادت او طاعت څخه د خپلي معذورۍ او مجبورۍ اظهار د افسوس په توګه وي نو څه حرج نسته او په مختلفو حدیثو کي چي دا لفظ نقل سوی دی هغه پردغه مفهوم باندي محمول کیږي بلکه حقیقت دادی چي د عبادت او طاعت پر فوت کېدو باندي د افسوس اظهار کول د ثواب باعث هم دی او دا په هغه شیانو کي د شمېرلو وړ دی کوم چي مستحب دی.

امام رازي رحمة الله عليه په خپل کتاب مشیخت کي د ابي عمرو څخه نقل کړي دي چي کوم څوک د خپل یو دنیاوي شي پر فوت کېدو باندي افسوس وکړي نو هغه د زرو کالو مسافت په اندازه دوږخ ته نژدې کیږي او کوم څوک چي خپل یو دیني عمل او اخروي شي پر فوت کېدو باندي افسوس وکړي نو هغه د زرو کالو د مسافت په اندازه جنت ته نژدې کیږي.

## اَلْفَصْلُ الثاني (دوهم فصل)

### پر الله جل جلاله پوره توکل کول

﴿۵۰۶۹﴾: عَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ لَوْ أَنَّكُمْ تتوكلون عَلَى اللّٰهِ حَقَّ تَوَكُّلِهِ لرزقكم كَمَا يَرْزُقُ الطَّيْرَ تَغْدُو خِمَاصًا وَتَرُوحُ بِطَانًا. رواه الترمذي و ابن ماجة.

د حضرت عمر بن خطاب رضي الله عنه څخه روایت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي فرمایل یې: که تاسو پر الله جل جلاله باور وکړی داسي باور لکه څرنګه چي د باور حق دی نو هغه به

داسي رزق درکوي لکه څرنګه چي مرغانو ته رزق ورکوي ، هغوئ په سهار کي وږي وځي او ماښام ته په ماړه نس راځي . ترمذي او ابن ماجه

**تخریج:** سنن الترمذي ۴\۴۹۵، رقم: ۲۳۴۴، وابن ماجه ۲\۱۳۹۴، رقم: ۴۱۶۴.

**د لغاتو حل:** خِماصا: ای جیاعا (وږي)

**تشریح:** توکل دادی چي اول خو پر دې خبره پوره یقین وي چي د یو شي په وجود کي راوستونکی د الله تعالی څخه پرته بل څوک نسته او هر موجود که هغه ساه لرونکي وي یا غیر ساه لرونکی وي ، یا د رزق حاصلېدل وي یا نه حاصلېدل وي ضرر وي که ګټه وي ، غربت وي او که مالداري وي، ناروغي وي او که روغتیا وي، مرګ وي که ژوند وي، غرض هر څه چي وي د ټولو مالک الله تعالی دی او ټول شیان د هغه له خوا دي بیا ددغه امر پخه عقیده وي چي د روزۍ ضامن بېله شکه الله تعالی دی او بیا په دغه یقین سره د حصول معاش سعي او هڅه کي په ښه توګه او مناسب او معقول صورت کي بوخت وي یعني کسب او ګټه کي ډېر زیات محنت او تکلیف نه زغمي ، په حرص کي نه اخته کیږي ، د ضرورت څخه زیات د حاصلولو هڅه نه کوي او د ګټي په فکر کي غرق نسي چي د حلال او حرام تمیز هم ونه کړای سي .

امام غزالي رحمه الله وایي: د چا چي دا ګمان وي چي توکل د کسب او کار ترک کولو نوم دی نو هغه لوی جاهل دی او د امام قشیري رحمه الله قول دی چي د توکل اصلي ځای زړه دی او د حصول معاش لپاره حرکت او عمل یو ظاهري فعل دی چي دتوکل خلاف نه دی په شرط ددې چي اصل اعتماد محض د الله تعالی پر ذات باندي وي ځکه چي په حدیث کي د مرغه سره تشبیه ورکړل سوې ده او هغه که څه هم د خپلي روزۍ په تلاش کي راوځي او په ټول جهان کي سرګردان ګرځي مګر د هغه اصل اعتماد پر الله تعالی وي نه د خپل طلب او هڅه باندي نو ددې څخه څرګنده سوه چي د انسان د معاش تر لاسه کولو لپاره پر معقول او مناسب طریقه باندي هڅه او سعي کول پر الله تعالی باندي د اعتماد او باور کولو خلاف نه دی لکه څرنګه چي الله تعالی فرمایي: (وکاین من دابة لاتحمل رزقها الله یرزقها وایاکم) یعني هیڅ حیوان خپل رزق نه پورته کوي بلکه الله تعالی هغه ته او تاسو ته هم رزق درکوي .

خلاصه دا چي د حدیث مفهوم ددې څخه خبردار کول دي چي سعي او هڅه او کسب او عمل په حقیقت کي رزق رسونکي نه دی بلکه رزق رسونکی یوازي الله تعالی دی همدارنګه د حدیث مقصد دا هم نه دی چي انسان دي د خپل رزق ګټلو لپاره د حرکت او عمل څخه منع کړل

سي ځکه چي پر الله تعالى باندي د توکل او اعتماد تعلق د زړه سره دی چي د اندامو ظاهري حرکت او عمل مطلقا خلاف نه دی بلکه د توکل برکت خو داوي چي متوکل ته خپل رزق لپاره حرکت کول هم نه پرېوځي بلکه د بل په حرکت کولو سره هغه ته د الله تعالى له خوا رزق رسوي لکه څرنګه چي د دغه ارشاد رباني د عمومي مفهوم څخه څرګندیږي: (وما من دابة في الارض الا على الله رزقها).

کله چي د کارګه بچی د هګۍ څخه دباندي راووځي نو هغه بالکل سپين وي او د کارګه هغه بچي چي ډېر بد ورته معلومیږي د خپلو بچیانو په پرېښودو سره کارګه ځيني ولاړ سي او هغوئ يوازي پاته سي، بيا الله تعالى هغوئ ته مچان او مېږيان استوي چي هغه بچي يې په چڼ کولو سره خوري او روزنه مومي تر دې چي هغوئ لوی سي نو خپل رنګ بدل کړي او بالکل تور سي بيا څه وخت وروسته کله چي کارګه خپل بچيانو ته راسي او هغوئ تور ويني نو ورسره کښيني او د هغوئ روزنه کول پيل کړي، ددې څخه څرګنده سوه چي الله تعالى پرته د حرکت او سعي څخه هم رزق رسوي، په دې کي ډېر حکايتونه بيانیږي مګر دا حکايت خو ډېر عجيب او غريب دی چي الله تعالى د روح قبض کونکي ملائکي عزرائيل عليه السلام څخه پوښتنه وکړه چي ايا د چا روح کښلو پر وخت تا ته پر چا رحم راځي؟، عزرائيل عليه السلام وويل: هو اې زما پروردګاره، په يو وخت کي ما ته ډېر رحم راغلی وو او دا دهغه وخت قصه ده کله چي يوه کښتۍ ماته سوې وه او د هغه خلک په اوبو کي غرق سوي وه مګر ځيني خلک د ډوبېدو څخه ژغورل سوي او د کښتۍ پر پاته تختو باندي پرېوتل او په هغوئ کي يوه ښځه هم وه چي پر يوه تخته باندي ناسته وه او خپل تی رودونکي ماشوم ته يې تی ورکوی، کله چي ستا حکم وسو چي د هغه ښځي روح دي قبض کړل سي نو ما د هغه ښځي روح قبض کړ مګر پر هغه ماشوم مي ډېر رحم راغلی چي هغه په درياب کي پر يوې ماتي تختې باندي يوازي پاته سوی وو، الله جل جلاله وفرمايل: تا ته معلومه ده چي هغه ماشوم څه سو، ما هغه تختې ته د يوې جزيرې غاړې ته د رسېدو حکم وکړ چي هلته هغه ماشوم د سند پر غاړه وغورځوی او بيا مي يو زمری هغه ماشوم ته واستوی چي هغه خپل تی ورکوی او د هغه ماشوم روزنه يې کول، کله چي هغه ماشوم لوی سو نو ما جنات وټاکل چي هغه ماشوم ته د خلکو د وينا او هستوګني تعليم ورکړي تر دې چي هغه يو ځوان زلمی سو او بيا په عمل او فضل کي يې کمال تر لاسه کړ او د علماؤ په صف کي داخل سو، په دولت او امارت سره برخمن سو او په پای کي د سلطنت مرتبې ته په رسېدو سره د ټولي نړۍ پاچا او حکمران سو او بيا هغه خپل اصل حقيقت هير کړ، هغه د عبوديت مرتبه او د ربوبيت

حقوق هیر کړل هغه ته دا په یاد نسول چي الله تعالی هغه ذات دی چي هغه یې د دریاب د څپو څخه ژوندی وساتی او په خپل قدرت سره یې د هغه روزنه وکړل او بیا یې دغه مرتبې ته راورسوي چي نن هغه د ټولي نړۍ پاچا دی ، پوهیږئ چي هغه کوم څوک وو؟ هغه په دغه دنیا کي د شد اد په نامه سره مشهور سوی دی ، په هر حال مؤمنانو ته دا هیرول نه دي پکار چي الله تعالی ډیر رحیم او کریم دی هغه پر خپلو بندګانو باندي ډېر مهربان دی کله چي هغه خپلو دښمنانو ته رزق ورکوي نو دا څرنګه کیدای سي چي خپل هغه بندګان دي هیر کړي کوم چي د هغه محبوب او غوره دي .

## د رزق حاصلولو لپاره خاص هدایت

﴿۵۰۷۰﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَيُّهَا

د حضرت ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اې

النَّاسُ لَيْسَ مِنْ شَيْءٍ يُقَرِّبُكُمْ إِلَى الْجَنَّةِ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ النَّارِ إِلاَّ قَدْ أَمَرْتُكُمْ

خلکو ! هیڅ یو داسي شی نه سته چي تاسو جنت ته نژدې کړي او د دوږخ څخه مو لیري کړي مګر هغه چي د هغه ما تاسو ته حکم درکړی دئ

بِهِ وَلَيْسَ شَيْءٌ يُقَرِّبُكُمْ مِنَ النَّارِ وَيُبَاعِدُكُمْ مِنَ الْجَنَّةِ إِلاَّ قَدْ نَهَيْتُكُمْ

او هیڅ شی داسي نه سته چي تاسو دوږخ ته نژدې کړي او د جنت څخه مو لیري کړي مګر هغه شی چي د هغه څخه ما تاسو منع کړي یاست ،

عَنْهُ وإِنَّ الرُّوحَ الْأَمِيْنَ وَفِيْ رِوَايَةٍ وَإِنَّ رُوحَ الْقُدُسِ نَفَثَ فِيْ رُوعِيْ أَنَّ نَفْسًا

او جبرائیل علیه السلام په بل روایت کي روح القدس زما په زړه کي دا خبره اچولې ده چي یو

لَنْ تَمُوْتَ حَتّٰى تَسْتَكْمِلَ رِزْقَهَا أَلاَ فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَأَجْمِلُوْا فِي الطَّلَبِ وَ لَا

سړی تر هغه وخته پوري نه مړ کیږي تر څو پوري چي (په دنیا) کي هغه خپل رزق پوره نه کړي ، خبردار! د الله جل جلاله څخه وبیریږئ او په رزق ترلاسه کولو کي د میانه روۍ څخه کار اخلئ، او په

يَحْمِلَنَّكُمُ اسْتِبْطَاءُ الرِّزْقِ أَنْ تَطْلُبُوْهُ بِمَعَاصِي اللّٰهِ فَإِنَّهُ لاَ يُدْرِكُ مَا عِنْدَ

رزق رسیدو کي تاخیر دی تاسو دې ته اماده نه کړي چي تاسو یې د گناه په ذریعه تر لاسه کړئ

اللهِ إِلاَّ بِطَاعَتِهِ . رواه في شرح السنة والبيهقي في شعب الإيمان إلا أنه لم يذكر وإن روح القدس.

ځکه چي هغه شئ کوم چي د الله ﷻ سره دي هغه د عبادت په ذریعه تر لاسه کیږي . شرح السنه، او بیهقي د روح القدس ذکر نه دی کړئ.

**تخریج**: البغوي في شرح السنة ۱۴\۲۹۹، رقم: ۴۱۱۱، والبيهقي في شعب الايمان ۱۷\۲۹۹، رقم: ۱۰۳۷۶.

**د لغاتو حل**: الروع: الجلد والنفس، والمعنى انه اوحى الي وحيا خفيا. اجملو: اى احسنوا.

**تشریح**: د حدیث د لومړنیو جملو مفهوم پر دې خبره دلالت کوي چي هغه ټولي خبري چي انسانیت ته ابدي گټه رسونکي او تاوان دفع کونکي ذرائعو سره روشناس کوي یوازي د کتاب او سنت څخه تر لاسه کېدای سي، کومي خبري او کوم شیان چي د کتاب او سنت د رڼا څخه وتلي وي هغه د انسان د صلاح او فلاح سره اړه نه لري او په هغه کي خپل وخت صرف کول د خپل عمر بې گټې ضائع کول دي .

لفظ د روح د ځان په معنی کي دی او ددې (روح) څخه ، جبرائیل او عیسی علیه السلام هم مراد اخیستل کیږي ، دلته ددغه لفظ څخه د حضرت جبرائیل علیه السلام ذات مراد دی او د هغه صفت امین په ذریعه بیانول یعني هغه ته روح الامین ویل د هغه د کمال دیانت داري په سبب دی چي د الله تعالی رسولانو ته علم او وحي رسولو کي د هغه خاص وصف دی همدا رنگه په روح القدس کي هغه ته دا قدس، پاکی نسبت د نجاست او کثافت څخه د هغه د کمال طهارت او پاکۍ په وجه دی . لفظ د اجملوا د اجمال څخه اخیستل سوی دی او معنی یې د روزی په لټه کي اعتدال اختیارول دي، مطلب دا چي تاسو د معاش په تر لاسه کولو کي په خپل کسب او عمل کي نیکي او میانه روي اختیار کړئ او د معاش په طلب کي د ضرورت څخه زیات تکلیف غیر مناسب خبره ده ځکه چي د الله تعالی له خوا تاسو د رزق د تکلانبں مکلف نه یاست گرځول سوي لکه چي الله تعالی فرمایي : (وما خلقت الجن والانس الا ليعبدون ما اريد منهم من رزق وما اريد ان يطعمون ان الله هو الرزاق ذو القوة المتين) .

ما پیریان او انسانان ددې لپاره پیدا کړي دي چي هغوئ زما عبادت کوي زه د هغوئ څخه د رزق غوښتونکی نه یم او نه دا غواړم چي هغوئ دي ما هیر کړي حقیقت دادی چي رزاق خو

يوازي الله تعالى دى او هغه ډېر زبردست او د قوت مالک دى .
په يو بل ځا يکي داسي فرمايي : (وامر اهلک بالصلوة واصطبر عليها، لا نسئلک رزقا نحن نرزقک والعاقبة للتقوى) . او خپل کورنۍ ته د لمانځه حکم کوه او پر دې صابر او قائم اوسه او موږ ستاسو څخه د رزق غوښتونکي نه يو (يعني موږ تاسو خپل او د نورو د روزۍ پيدا کولو مکلف نه یاست ګرځولي بلکه موږ تاسو ته روزي درکوو) او ښه انجام د هغه چا لپاره دى چي د الله ﷻ څخه ييريږي .
خلاصه دا چي د اجملوا لفظ په ذريعه چي کوم حکم ورکړل سوى دى د هغه مفهوم که چيري هغه واخيستل سي کوم چي مخکي ذکر سو نو دا حکم به د اباحت لپاره وي او که د دغه لفظ دا معنى مراد واخيستل سي چي تاسو خپل رزق حلال او جائز وسائلو سره تر لاسه کوى نو په دغه صورت کي به دغه حکم د وجوب لپاره وي ، ددې تائيد د وروستني عبارت (ولايحملنکم..الخ) څخه هم کيږي ، ددې مطلب دادى که چيري د حصول معاش په لار کي خنډ پيدا سي او د رزق په رسېدو کي تاخير محسوس کړي نو ددې په وجه مضطرب او بدخياله مه جوړيږي او داسي هيڅکله نه وي چي د روزي تر لاسه کولو لپاره حرام او مکروه ذرائع اختيارول شروع کړې د مثال په توګه غلا، د چا مال خوړل ، په امانت کي خيانت شروع کړي او که نور څه نه وي نو خپل سيادت او حيثيت او د خپل عبادت او ديانت په اظهار کولو سره دغه شيان د حصول رزق واسطه جوړ کړي يا د بيت المال په شان مراکز څخه خپل حق او حاجت زيات تر لاسه کولو کي کومه خرابي نه ګڼي او داسي نور، حقيقت دادى چي رزق په تاخير سره هيڅکله نه رسيږي څه چي ورسيږي او کوم وخت چي ورسيږي دغه اصل رزق دى او دومره مقدر وي بيا دا چي د ګناه او معصيت په وجه په رزق کي نه وسعت کيږي او نه ژر رسيږي دومره تر لاسه کيږي او هغه وخت رسيږي چي په مقدر کي څومره اندازه او څه رسيدل ليکل سوي وي په دې سره پرته د ګناه او اضطراب نور هيڅ نه حاصليږي او کوم رزق چي د ګناه په وجه رسيږي هغه حرام دى نو د حصول معاش په لاره کي اضطراب او بې ارامي او د ګناه او معضيت لار اختيارول په هيڅ ډول ګټور نه دى ددې څخه پرهېز کول پکار دي .
طيبي رحمه الله ليکلي دي چي د اجملوا په ذريعه چي کوم حکم ورکړل سو ى دى د هغه مطلب دادى که چيري مال ګټئ نو په ښه طريقه يې ګټئ يعني په هيڅ حال کي هم داسي ذريعه او طريقه مه اختياروئ کوم چي د شريعت خلاف وي ، د استبطاء لفظ په اصل کي د تاخير کېدو په معنى کي استعمال سوى دى او د سين حرف د مبالغې د اظهار لپاره دى لکه څرنګه چي د قرآن کريم

په دغه الفاظو كي (ومن كان غنيا فليستعفف) كي استعفف په اصل كي د عف (منع كېدو) په معنى كي دى.

## اصل زهد څه ته وايي

﴿۵۰۷۱﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ الزَّهَادَةُ فِي الدُّنْيَا

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زهد د دنيا پرېښودلو، حلال

لَيْسَتْ بِتَحْرِيمِ الْحَلَالِ وَلَا إِضَاعَةِ الْمَالِ وَلَكِنَّ الزَّهَادَةَ فِي الدُّنْيَا أَنْ لَا

حرام گرځولو او دمال د ضائع كولو نوم نه دئ بلكه زهد دادئ چي څه ستا په لاس كي دي (يعني

تَكُونَ بِمَا فِي يَدَيْكَ أَوْثَقَ مِمَّا فِي يَدَيِ اللَّهِ وَأَنْ تَكُونَ فِي ثَوَابِ الْمُصِيبَةِ إِذَا

مال او دولت) پر هغه توكل مه كوه بلكه پر هغه توكل كوه چي د الله جل جلاله په لاس كي دي، ترك دنيا (دنيا پرېښودل) دادي چي هر كله يو مصيبت درباندي راسي نو په هغه مصيبت كي ثواب

أَنْتَ أُصِبْتَ بِهَا أَرْغَبَ فِيهَا لَوْ أَنَّهَا أُبْقِيَتْ لَكَ. رواه الترمذي وابن ماجة وقال الترمذي هذا حديث غريب وعمرو بن واقد الراوي منكر الحديث.

غوښتونكى سه او دا خواهش لره چي دا مصيبت پاته وي (او ختم نه سي چي دد ي ثواب تر لاسه سي). ترمذي او ابن ماجه، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى او عمرو بن واقد راوي منكر الحديث دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۹۳، رقم: ۲۳۴۰، وابن ماجه ۲\۱۳۷۳، رقم: ۴۱۰۰.

**تشريح**: حقيقي زهد څه شي دى او زاهد چا ته وايي، دا خبره رسول الله ﷺ په وضاحت سره بيان كړېده، دد ي ارشاد مطابق د دنيا څخه زهد اختيارول د هغه شي نوم نه دى چي محض د دنيا نعمتونه او لذتونه ترك كړل سي ځكه چي داسي كول د هغه شيانو پر ځان حرامول دي كوم چي الله جل جلاله حلال كړي دي او دا خبره نه يوازي دا چي د حقيقي زهد او تقوا سره مناسبت نه لري بلكه بذات خود منع ده لكه څرنگه چي په قرآن كريم كي فرمايل سوي دي: (لاتحرموا طيبات ما احل الله لكم): هغه پاك شيان پر ځان مه حراموئ كوم چي الله جل جلاله حلال گرځولي دي.

د دې څخه پرته د رسول الله ﷺ څخه دا ثابته ده چي رسول الله ﷺ مرغوب او خوندور شيان

او د الله تعالى نازل کړي نعمتونو څخه پرهېز نه دی کړي بلکه کوم شی چي حاصل سوی دی د هغه څخه يې ګټه تر لاسه کړې ده او ظاهره ده چي د رسول الله ﷺ څخه زيات ته زهد او تقوا د بل چا نسي کيدای ، کوم په نامه صوفيان او جاهلان چي محض د لذتونو پر ترک د زهد او تقوا ګمان کوي ، د خوندورو خوراکو او مېوو وغيره څخه پرهيز کوي ، نوي جامي او د اسي نور نعمتونه ترک کوي او دې ته د زهد او تقوا نوم ورکوي هغوئ په حقيقت کي په دې نه پوهيږي چي زهد څه ته وايي او د زاهد کېدو څه مطلب دی، همدا رنګه زهد او تقوا دا هم نه دي چي الله تعالی کوم مال او دولت ور کړی دی هغه همدا رنګه ضائع کړل سي يا هغه په غير مصرف کي خرڅ کړل سي د مثال په توګه دا فکر چي زما سره کوم مال دی د زهد او تقوا په لاره کي خنډ دی هغه واخلي او په درياب کي يې وغورځوي يا د فقير او غني ، مستحق او غير مستحق د تميز کولو پرته يې په خلکو کي وويشي .

خلاصه دا چي نه خو داسي د ظاهري زهد اعتبار دی او نه دا خبره د منلو وړ ده چي د دنيا د ظاهري مال او اسباب څخه خپل لاس بالکل خالي کړي او د يو شي ګټل او د ځان سره اېښودل د تقوا خلاف وګڼي مګر د معاشي ضرورت او احتياج پر وخت زړه غير الله ته متوجه کړي بلکه اصل مراد او اعتبار د زړه پر زهد دی چي زړه په هر صورت کي يوازي الله ﷻ ته متوجه وي او په هغه کي دنيا او د دنيا هيڅ شي سره مينه نه وي .

څه چي ستاسو په لاسو کي دي: ددې څخه مراد دادی چي دنياوي مال او اسباب ، هنر او کسب مادي وسائل او اسباب دي همدا رنګه څه چي د الله تعالی سره وي ددې څخه مراد دادی چي هغه شی د هغه ظاهري او باطني خزانو کي دی ، ددې جملې مطلب دادی چي ستا اصل اعتماد او باور د الله تعالی پر وعده باندي کېدل پکار دی چي هغه ستا سره د رزق درکولو او تا ته د خپلو نعمتونو رسولو په اړه کړې ده چي هغه تاسو ته داسي رزق درکوي او د داسي ځای څخه تاسو ته خپل نعمتونه درکوي چي تاسو د هغه ګمان هم نسي کولای ،

کوم شی چي تاسو په خپل سعي او تدبير سره تر لاسه کوئ او کوم مال وغيره چي تاسو د خپل کسب او عمل په ذريعه پيدا کوئ هغه دا مه ګڼئ چي واقعتا د هغه شي په تر لاسه کولو کي او د هغه مال په تر لاسه کېدو کي يوازي ستاسو د تدبير او سعي او کسب دخل دی بلکه دا يقين ولرئ چي تاسو ته څه راغلي دي هغه ټول په اصل کي د الله تعالی له خوا د هغه د وعدې مطابق راغلي دي که الله تعالی تاسو ته هيڅ درکول نه وغواړي نو تاسو چي په لکونو تدبيرونه او هڅي وکړي او هر څومره محنت او تکليف وزغمی نو ستاسو لاس ته هيڅ هم نه راځي ، دا خبره

هم باید په ذهن کي وي چي تاسو د ظاهري اسبابو او وسائلو په ذریعه څه چي وګټل او څه چي مو تر لاسه کړي دي او ستاسو کسب او عمل په نتیجه کي چي څه تاسو ته راغلي دي که هغه منصب وي یا مال او بل څه وي یا ځمکه او جائیداد وي دغه ټول شیان د هغه نعمتونو او ګټو څخه زیات نسي کیدای کوم چي د الله تعالی په خزانه قدرت کي موجود دي او تر اوسه تاسو ته نه دي تر لاسه سوي ځکه ستاسو سره چي څه دي هغه ټول تلف او فنا کیدونکي دي ددې پر خلاف کوم شیان او نعمتونه چي د الله تعالی په خزانو کي دي هغه ټول تل پاته کېدونکي دي، لکه چي الله تعالی فرمایي: (ما عندکم ینفد وما عند الله باق) کوم چي ستاسو سره دي هغه ټول فاني دي او کوم چي د الله تعالی سره دي هغه پاته کېدونکي دي.

د حدیث د آخري برخي (وان تکون في ثواب المصیبة ..الخ) مطلب دادی چي زهد دا هم دی چي تاسو د دنیا راحت او آرام ته مه متوجه کیږئ او د دنیاوي نعمتونو او خواهشاتو ارزو مه کوئ بلکه په دې پوه سئ چي د دنیا نعمتونه او لذتونه په اصل کي هغه آفات او بلاوو کي د اخته کېدو ذریعه دي کوم چي دیني او اخروي ژوند ته تاوان رسوي ، دا ځکه ضروري دي چي ستاسو زړه دنیا ته مائل نسي او ستاسو نفس د دنیاوي شیانو سره انس او تعلق ونه لري ، کله چي یو دنیاوي مصیبت او آفت کي اخته سئ نو هغه وخت د پرېشانه کېدو پر ځای هغه مصیبت او آفت ته خوش آمدید ووایاست او د هغه په ذریعه د اجر او ثواب غوښتونکی سئ تر دې چي هغه وخت ستاسو په زړه کي هغه مصیبت ته دومره زیات رغبت او شوق وي چي هغه تر اوسه لاس ته راغلی نه دی او تاسو د هغه په انتظار کي یاست، څرګنده دي وي چي په دغه الفاظو (لو انها ابقیت) کي لفظ دابقیت په اصل کي د لم یصبه په معنی کي استعمال سوی دی او ددې جملې څرګند مفهوم لکه څرنګه چي ذکر سوی دی د اجر او ثواب په وجه هغه مصیبت ته ستاسو رغبت د عدم مصیبت د رغبت څخه زیات کېدل پکار دي.

په هر حال رسول الله ﷺ د زهد ذکر سوو دوو صورتو په بیانولو سره دا څرګنده کړه چي په یو سړي کي ددغه دواړو صفاتو کېدل د هغه په حق کي دا دلیل دی چي هغه د زهد پر مقام فائز دی. دنیا او د دنیا شیان د هغه په نظر کي کالعدم او یوازي آخرت د هغه مطلوب او مقصود دي، ددې څخه څرګنده سوه چي هسي خو په ظاهره د زهد مفهوم دادی چي د دنیا څخه بې رغبتي وي ، دنیاوي متاع او خواهشات لکه مال او دولت وغیره ترک کړل سي مګر رسول الله ﷺ ارشاد وفرمایه چي د زهد مرتبه محض په دغه شي سره نه کاملیږي تر څو چي د صبر او توکل مقام حاصل نه وي او آخرت ته رغبت او شوق تر دې حده ونه رسیږي چي په دغه دنیا کي

کوم مصیبتونه او بلاوي رسیږي هغه د آخرت د اجر او ثواب په ارزو کي محبوب او غوره جوړ سي او د هغه رسېدل د هغه د نه رسېدو څخه زيات مرغوب وي که دا مقام حاصل سي نو پوهېدل پکار دي چي د زهد صفت په پوره توگه پیدا سوی دی کنه په بل صورت کي محض د مال او دولت ترک کول او دنیاوي لذتونو او نعمتونو څخه پرهېز کول گویا خپل مال ضائع کول او د حلالو شیانو پر ځان حرامول دي.

## یوازي پر الله ﷻ توکل کوئ

﴿۵۰۷۲﴾: وَعَنِ بْنِ عَبَّاسٍ قَالَ كُنْتُ خَلْفَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابن عباس رضی الله عنهما څخه روایت دئ چي یو ځل زه د رسول الله ﷺ سره پر سپرلۍ سپور وم،

يَوْمًا فَقَالَ يَا غُلَامُ احْفَظْ اللّٰهَ يَحْفَظْكَ احْفَظْ اللّٰهَ تَجِدْهُ تُجَاهَكَ وَإِذَا سَأَلْتَ

رسول الله ﷺ راته وفرمایل: اې هلکه! د الله ﷻ احکام امر او نهي خوندي ساته، الله تعالی به تا په خپل حفاظت کي وساتي او د الله پاک خیال ساته نو الله تعالی به خپل په وړاندي تر لاسه کړې، او هر کله چي ته د سوال اراده وکړې

فَاسْأَلِ اللّٰهَ وَإِذَا اسْتَعَنْتَ فَاسْتَعِنْ بِاللّٰهِ وَاعْلَمْ أَنَّ الْأُمَّةَ لَوِ اجْتَمَعَتْ عَلَى أَنْ

نو د الله تعالی څخه سوال کوه، او کله چي مرسته غواړې نو د الله تعالی څخه مرسته غواړه او دا خبره په یاد لره که ټول مخلوق راجمع سي

يَنْفَعُوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَنْفَعُوكَ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللّٰهُ لَكَ وَلَوِ اجْتَمَعُوا عَلَى أَنْ

او تا ته گټه رسول وغواړي نو هیڅکله به گټه نه سي در رسولای مگر یوازي دومره څومره چي الله تعالی ستا په مقدر کي لیکلې وي او که ټول خلک راټول سي په دې چي

يَضُرُّوكَ بِشَيْءٍ لَمْ يَضُرُّوكَ إِلَّا بِشَيْءٍ قَدْ كَتَبَهُ اللّٰهُ عَلَيْكَ رُفِعَتِ الْأَقْلَامُ وَجَفَّتِ الصُّحُفُ. رواه احمد والترمذي.

تا ته ضرر ورسوي په یو شي سره نو ضرر به ونه رسوي تا ته مگر په هغه اندازه څومره چي الله ﷻ ستا په تقدیر کي لیکلي دي، قلمونه پورته سوي دي او صحیفې وچي سوي دي، احمد او ترمذي

**تخریج**: مسند الامام احمد ۱\۲۹۳، رقم: ۲۵۱٦.

**تشریح**: نو تاسو به الله ﷻ خپل مخته مومئ: ددې معنی یو خو هغه ده کوم چې په ترجمه کې بیان سوې ده او د ځینو حضراتو مطابق معنی یې داده که چیرې تاسو د الله تعالی د حقوقو ادا کول یعنې دهغه عبادت او طاعت او د هغه د احکامو پر فرمانبرداري باندې په پابندي سره عمل کونکی اوسیږئ نو تاسو به په خپل پناه او حفاظت کې ساتي او ستاسو سره به په معاملاتو کې مرسته کوي او ستاسو په مقصد او عزم کې به کامیابي درکړي ، یا دا چې په هغه صورت کې به تاسو د الله تعالی عنایت او مهرباني خپل مخته مومئ چې هغه به ستاسو په ټولو معاملاتو کې ستاسو رعایت کوي او قدم پر قدم بهٔ ستاسو مرسته او اعانت کوي .

یو مطلب چې د ډېر لوړ مقام ضامن دی دادی چې کله تاسو د الله تعالی د حقوقو ادا کول د هغه د اطاعت او عبادت پابندي او د هغه د رضا او خوښي په طلب کې بوخت او مستغرق سئ نو هغه وخت به ستاسو د معرفت نظر هغه خپل مخکې داسي مومي ګویا چې هغه ستاسو په مخکې موجود دی او تاسو د مقام احسان او کمال ایمان په منځ کې هغه مشاهده کوئ او بالکل داسي به محسوسوئ لکه چې تاسو هغه وینئ په دې حیثیت چې د الله تعالی څخه پرته هر شی ستاسو د نظر څخه بالکل معدوم او فناء سي نو همدارنګه به تاسو ته د مراقبې اصل کیفیت هم حاصل سي او مقام مشاهده به مو هم په برخه سي .

یوازې د الله ﷻ په مخکې د سوال لاس غزوئ: ځکه چې د ورکړې او بخښنې ټولې خزانې د هغه سره دي او د دنیا او آخرت هر هغه نعمت او راحت چې بنده ته رسیږي او هره هغه بلا او مصیبت چې د هغه څخه بنده خوندي کیږي محض د الله تعالی په رحمت سره رسیږي یا دفع کیږي بیاد هغه رحمت یوازې رحمت دی چې نه په هغه کې د غرض آمیزش دی او نه د یو علت دخل او سبب او هغه جواد مطلق او داسي غني دی چې نه د هغه سره د یو شي کمي ده او نه هغه محتاج کیږي نو یوازې هغه ذات ددې وړ دی چې خپله هر امید د هغه سره وابسته کړل سي د هغه د عذاب څخه پرته د بل چا څخه خوف کول نه دی پکار ، په خپل هر مشکل کې او هر غم کې یوازې د هغه په حضور کې د مرسته التجاء کول پکار دي او په ټولو معاملاتو کې یوازې د هغه په حضور کې د مرستي التجاء کول پکار دي او په ټولو معاملاتو کې یوازې پر هغه اعتماد وکړل سي ځکه رسول الله ﷺ حکم وکړ چې څه غوښتل وي نو یوازې د الله تعالی څخه یې غواړئ د هغه څخه پرته د بل چا په مخکې د سوال لاس مه غزوئ ځکه چې بل څوک پر ورکولو یا نه ورکولو ، ګټه رسولو او تاوان لیرې کولو باندې قادر نه دی کوم ذات چې د ځان څخه د ګټې

رسولو یا تاوان لیري کولو او د خپل مرګ او ژوند مالک نه دی هغه چا ته کله ګټه رسولای سي او د تاوان څخه یې کله خوندي کولای سي، همدارنګه په ذکر سوي حکم کي دې ته اشاره ده چي په خپل هیڅ حالت او هیڅ وخت کي د الله تعالی په مخکي د لاس غزولو څخه منع کېدل نه دي پکار ځکه چي په یو حدیث کي په وضاحت سره فرمایل سوي دي چي کوم څوک د الله تعالی په مخکي لاس نه غزوي پر هغه الله تعالی غضب کوي ددې څخه پرته د خپل خالق په مخکي لاس غزول په حقیقت کي د هغه په حضور کي د خپلي عاجزۍ او محتاجۍ اظهار کول دي چي د عبودیت شان دی، یو چا څومره ښه ویلي دي:

الله یغضب ان ترکت سواله وابناء آدم حین یسال یغضب

ژباړه: الله ﷻ هغه وخت غضب کوي چي تاسو دهغه څخه سوال نه کوئ او د آدم زامن هغه وخت غضب کوي کله چي څوک سوال ځیني وکړي.

او که ټول مخلوق په یو ځای کېدو سره تا ته تاوان رسول وغواړي ...الخ: مطلب دادی چي کله نفع او تاوان د الله تعالی له خوا دی او په هر حال کي هغه ته رجوع کیږي ځکه چي هغه ګټه رسونکی هم دی او تاوان رسونکی هم دی، او هغه ورکونکی هم دی او نه ورکونکی هم دی، د یو فرد سوال که د ټولي مځکي ټول مخلوق په یو ځای کېدو سره د الله تعالی د مرضۍ او حکم خلاف یو سړي ته تاوان یا ګټه رسول وغواړي نو دا هیڅکله ممکن نه ده چي هغه ته ګټه یا تاوان ورسوي، د الهیات په ځینو کتابو کي بیان سوی دی چي الله تعالی فرمایي: زما دي په خپل عزت او جلال قسم وي یقینا زه هغه سړي سره انقطاع کوم چي زما څخه پرته د بل چا سره خپل امید وابسته کوي او د خلکو په نظر کي هغه ته د ذلت جامه اغوندم یعني د خلکو په مخکي هغه ذلیل او خوار کوم هغه د خپل قرب څخه محروم کوم او خپل وصل یې څخه لیري کوم نو یقیني خبره داده چي زه هغه حیراني پریشاني او تکفراتو کي اخته کوم، ایا هغه سړی د خپل مشکلاتو او پریشانو په وخت کي زما څخه پرته د بل چا څخه امید لري حال دا چي پریشاني او مشکلات زما په لاس کي دی زه الحي القیوم یم، هغه سړی د فکر او پریشانۍ په عالم کي دنورو دروازې ټکوي حال دا چي د ټولو دروازو کیلیاني زما په لاس کي دي او هغه دروازې بندي دي نو زما دروازه هر هغه چا ته خلاصه ده چي ما ته راسي او زما څخه دعاء وغواړي.

قلمونه پورته سوي دي: ددې څخه مراد دادی چي کوم احکام صادرېدل هغه ټول لیکل سوي دي همدارنګه صحیفې وچي سوي دي ددې څخه مراد دادی چي تر قیامته پوري څه کېدونکي دي او د چا په حق کي څه پېښېدونکي دي هغه ټول د تقدیر په کتاب کي دي او لیکل

سوي دي او هغه لیکنه وچه سوې ده اوس پر هغه قلم نه چلیږي او څه چي لیکل سوي دي د هغه څخه وروسته هیڅ نسي لیکل کیدای، خلاصه دا چي په دغه دنیا کي څوک راغلي دي او تر قیامته پوري چي څوک راځي د هغه د تقدیر او قسمت فیصلې په لوح محفوظ کي لیکل سوي دي او ددغه کار څخه فراغت هم سوی دی اوس د چا په حق کي هیڅ نسي لیکل کیدای نو د هر سړي تقدیر او قسمت د مخکي څخه لیکل یې د قلمو په پورته کولو او د صحیفو په وچېدو سره تعبیر کړي دي او په دې کي د مشابهت اړخ دادی چي څرنګه یو کاتب د کتاب په پوره کولو سره فارغ سي نو قلم کښېږدي او کتاب بند کړي همدارنګه کاتب تقدیر د ډېر مخکي څخه د مخلوق تقدیرونه لیکلي دي او هغه صحیفې چي په هغو کي تقدیرونه لیکل سوي دي د تل لپاره بند سوي دي په هغه کي اوس هیڅ تغیر او تبدیل، کمي او زیاتوب نسي کیدای.

ددغه کتاب په پېل کي دا حدیث تېر سوی دی چي الله تعالی تر ټولو مخکي کوم شی پیدا کړ هغه قلم وو بیا یې هغه ته وویل چي ولیکه! قلم وویل : څه ولیکم؟ ورته وویل سول چي تقدیر ولیکه، نو هغه هر څه ولیکل چي تر اوسه پوري واقع کېدونکي دي او تر قیامته پوري به واقع کیږي، که چیري دلته دا مشکل پیدا سي چي دغه روایت د قرآن کریم ددغه آیت (یمحو الله مایشاء) خلاف دی نو ددې جواب دادی چي دا محو او اثبات هم په اصل کي د هغه شیانو دی کوم چي مقدر سوي دي او د هغه د لیکلو څخه وروسته قلم اینښودل سوی دی او هغه صحیفې وچي سوي دي ځکه چي د قضاء یعني هغه کلي احکام او فیصلې چي د ازل څخه الله تعالی صادري کړي دي دوه ډوله دي یو قضاء مبرم (چي په هغه کي هیڅ تغیر او تبدیل ممکن نه دی) او دوهم قضاء معلق (چي په هغه کي تغیر او تبدیل ممکن دی) ددې څخه پرته ددغه محو او اثبات تعلق د لوح محفوظ او د الله تعالی د علم سره دی یعني دا خبره د مخکي څخه په لوح محفوظ کي لیکل سوي ده چي فلانی شی به داسي کیږي او دا خبره د الله تعالی په علم کي ده نو دا مفهوم د الله تعالی د محو او اثبات په نسبت کولو سره بیان سوی دی چي په حقیقت کي مقدر امور دي او تغیر نه ورته ویل کیږي او نه تبدیل.

ځیني حضرات وایي چي د الله ﷻ سره دوه کتابونه دي یو لوح محفوظ دی چي په هغه کي هیڅ تغیر او تبدیل نه کیږي او دوهم کتاب هغه دی چي په هغه کي ملائکي د بندګانو اعمال لیکي نو د محو او اثبات تعلق ددغه کتاب سره دی.

په هر حال په دغه ارشاد کي دا ترغیب دی چي بنده باید د الله تعالی پر ذات باندي توکل او اعتماد وکړي، پر الهي رضا باندي راضي او خپل تدبیر او سعي او ذاتي قوت او طاقت

حقيقي مؤثر هيڅکله ونه ګڼي ځکه چي راتلونکی هيڅ شی هم داسي نه دی چي د الله تعالی د حکم او فيصلې څخه وتلی او د هغه د قضاء او قدر مطابق نه وي چي کاتب تقدير د مځکي او آسمان د پيدائش څخه پنځوس زره کاله مخکي ليکلي دي او د هغه شي واقع کېدل ليکل سوي دي هغه په هر حال کي او هر صورت کي واقع کيږي ،هغه نه د انساني حرکت او سکون نظام بندولای سي او نه سعي او تدبير، نو که د خوشحالۍ په حالت کي پېښ سي يا د ضرر او تکليف په حالت کي وي په هر صورت شکر ادا کول لازم دی او پر دې خبره په ښه دول پوهېدل پکار دي چي بنده خپل دښمن او مخالف خپل تکليف او مصيبت او تاوان خلاف د الله تعالی د مرستي او نصرت په هغه صورت کي مستحق کيږي کله چي هغه د هغه شيانو په وجه پېښېدونکی غم او تکليف باندي صبر وکړي او هيڅ حالت هم د خپل تقدير او حالت شکايت ونه کړي .

حضرت شيخ عبد القادر جيلاني رحمة الله عليه په خپل کتاب فتوح الغيب کي دېره ښه خبره ليکلې ده چي د هر مؤمن لپاره لازم ده چي دغه حديث د خپل زړه هنداره وګرځوئ او په خپلو ټولو حرکاتو او سکناتو کي د هغه مطابق عمل وکړئ چي په دنيا او آخرت کي سالم او محفوظ پاته سئ او په دواړو جهانو کي د الله تعالی د رحمت په سبب په عزت سره ونازول سئ .

په ځينو روايتو کي ددغه الفاظو (تجده تجاهک) څخه وروسته دا عبارت هم نقل سوی دی: (تعرف الی الله في الرخاء يعرفک في الشدائد فان استطعت ان تعمل لله بالرضاء في اليقين فافعل فان لم تستطع فان في الصبر علی ما تکره خيرا کثيرا واعلم ان النصر مع الصبر والفرج مع الکرب وان مع العسر يسرا ولن يغلب عسر يسرين) .

يعني د خوشحالۍ په حالت کي د نعمت پېژندني او طاعت په ذريعه الله تعالی و پېژنئ د هغه د ياد څخه مه غافل کېږئ او د هغه شکر ادا کوئ که داسي کوئ نو ددې په بدله کي به يقينا الله تعالی تاسو ته د تنګۍ او سختۍ په حالت کي مرسته ورسوي يعني هغه به تاسو ته ددغه تنګۍ او سختۍ طاقت او ددې څخه د خلاصون لار درکړي که تاسو د يقين پر مرتبه په رضا سره د الله تعالی د رضا لپاره يو کار کولای سئ نو هغه يقينا کوئ (ځکه چي بېله شکه هغه دېر لوی کار دی) او که تاسو يو داسي کار نه سئ کولای او د نعمت د شکر حق په پوره توګه نه سئ ادا کولای نو پوه سئ چي آفات او مصائب او د طبيعت خلاف پېښېدونکو امورو باندي صبر کول هم د نيکۍ او خير ضامن دی (يعني اصل شی په هر حالت کي د الله تعالی شکر ادا کول دی ځکه چي د الله تعالی له خوا کوم شی پېښيږي نو هغه يقينا نعمت وي او که په ظاهري يا باطني اعتبار سره د هغه د لطف ضامن وي مګر که چيري يو سړی د شکر حق په پوره توګه اداء نه

کړلای سي نو پر پېښېدونکي سختي او تنګی باندي صبر کول پکار دي ځکه چي دا هم يو لوی فضيلت لري، او پوه سئ چي بنده ته د الله تعالی مرسته او نصرت په هغه صورت کي تر لاسه کيږي کله چي هغه پر اطاعت حق او ترک معصيت باندي صابر او ثابت قدمه پاته سي او پراختيا په اصل کي د هر تکليف او غم څخه وروسته وي يعني د هري تنګی او سختی څخه وروسته پراختيا راځي او د هر غم څخه وروسته د راحت دروازه خلاصيږي او بېله شکه په سختی سره خوشحالي او اساني هم ده يعني کله چي پر يو سړي باندي سختي او تنګي راځي نو د هغه څخه وروسته الله تعالی خوشحالي او اساني هم ورکوي او يوه سختي پر دوو اسانيو باندي غالبه کېدای نسي يعني که يو انسان په تنګی او سختی کي اخته وي نو هغه بايد پوه سي چي د هغه په عوض کي بهٔ دوې اساني تر لاسه کوي يوه خو په دغه دنيا کي چي الله تعالی د هري سختي څخه وروسته اساني پيدا کوي او دوهمه اساني په آخرت کي د اجر او ثواب په صورت کي ، لکه څرنګه چي د مسلمانانو د تاريخ څخه ثابته ده کله چي هغوئ په دنيا کي په تنګی او سختی کي اخته سوي دي او هغوئ په صبر او عزيمت سره هغه سختی او تنګی زغملي دي نو د هغه څخه وروسته هغوئ ته په دغه دنيا کي د قدرتي مرستي او نصرت په ذريعه فتح او کاميابي او عزت تر لاسه سوی دی او بيا په آخرت کي به د جنت قيمتي راحتونه او لوړي درجي تر لاسه کړي .

## د انسان نيک بختي او بد بختي

﴿۵۰۷۳﴾: وَعَنْ سَعْدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ سَعَادَةِ

د حضرت سعد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د انسان نيک بختي داده چي

ابْنِ آدَمَ رِضَاهُ بِمَا قَضَى اللَّهُ لَهُ وَمِنْ شَقَاوَةِ ابْنِ آدَمَ تَرْكُهُ اسْتِخَارَةَ اللَّهِ

څه الله تعالی د هغه لپاره مقدر کړي دي په هغه راضي سي او د انسان بد بختي داده چي هغه د الله څخه خير او نيکي غوښتل (استخاره) پرېږدي

وَمِنْ شَقَاوَةِ ابْنِ آدَمَ سَخَطُهُ بِمَا قَضَى اللَّهُ لَهُ. رواه احمد والترمذي وقال الترمذي هذا حديث غريب.

او بدبختي داده چي الله تعالی د هغه په مقدر کي څه ليکلي دي په هغه ناخوښه وي . احمد، او

ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: مسند الامام احمد ١١ \ ١٦٨، رقم: ٢١٥١.

**تشريح**: د حديث د اولي برخي مطلب دادی چي د انسان سعادت او خير او د هغه د نېک بختۍ علامه داده چي هغه د الله تعالى څخه خير او نيکي غواړي د هغه په مخکي د سوال لاس غزوي او د هغه په دربار کي خپل عرض او مناجات وړاندي کړي او بيا پر خپل تقدير او قسمت باندي په هر صورت راضي اوسي او دا يقين لري چي ما ته هر څه پېښ سوي دي يا پېښيږي هغه ټول د الله تعالى د حکم او فيصلې مطابق دي چي هغه زما په مقدر کي ليکل سوي دي او په هر اعتبار زما سره غوره دي که څه هم د الله تعالى څخه دخير او نيکۍ غوښتلو خبره د انسان د نيک بختۍ په ضمن کي نه ده کتل سوې بلکه وروسته عبارت چي په هغه کي د انسان د بدبختۍ ذکر سوی دی مد نظر وساتل سي نو معلومه به سي چي مراد دادی.

د الله ﷻ څخه د خير او فلاح غوښتني څخه پرهيز کول د انسان بدبختي ګرځول دا ښکاره کوي چي انسان بايد په هر وخت کي د خپل خير او غوره والي لپاره الله تعالى ته متوجه او د هغه څخه تل د خير غوښتونکی وي.

کله چي رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي د آدم اولاده بايد په هر هغه صورت کي پر قضاء او قدر الهي باندي راضي سي، نو ددې څخه دا وهم پيدا کېدای سي چي د ګناه څخه پرته د شريعت نور خلاف امورو په صورت کي هم هغه د قسمت په ليک ګڼلو سره په هغه راضي او مطمئن کېدل پکار دي نو دا رسول الله ﷺ ښکاره کړه چي انسان بايد هر وخت د الله تعالى څخه دخير او نيکۍ غوښتونکی وي چي هغه پاک ذات هغه د خير او نيکۍ پر لار روان کړي او هغه ته يوازي د غوره امورو اختيارولو توفيق ورکړي او د بدۍ لار او د شريعت خلاف امورو څخه د هغه ساتنه وکړي، ښکاره دي وي چي په هر صورت کي او په هر حالت کي پر قضاء او قدر الهي باندي راضي کېدل ډېره لويه خبره ده او ددغه مقام نوم (افخم) يعني عظمی مرتبه ده.

دا خبره ښودل هم ضروري دي چي پر قضاء او قدر باندي راضي کېدل د خپل تقدير او قسمت خلاف ناراضګي ترک کول د انسان سعادت او نېک بختي ګرځول د دوو شيانو په وجه دي يو دا چي کوم څوک پر قضاء الهي باندي راضي وي هغه ته د زړه سکون او اطمينان په برخه کيږي او دا داسي شی دی چي ددې په وجه انسان خپل معاملات او کاروبار او په خاصه توګه د الله تعالى په طاعت او عبادت کي په ډېر سکون او اطمينان سره بوخت وي نو کوم څوک چي پر

تقدیر الهي عقیده نه لري یا د قسمت پر لیکنه باندي راضي نه وي نو هغه په ذره ذره مصیبت او پیښي باندي متفکر کیږي او په دې سره خپل مقاصد او معاملات ، طاعت او عبادت کي د زړه او دماغ د سکون او اطمینان څخه محروم کیږي چي د غه مصیبت ولي راغلی فلانی حادثه ولې پیښه سوه او دا خبره داسي ولي و نه سول.

د و همه دا چي د غه شی بنده په دې سبب د الله تعالی د غضب او غصې څخه ساتي چي هغه د الله تعالی د لیکلي تقدیر خلاف د خپل ناراضګۍ او د خپل غصې اظهار نه کوي او د تقدیر خلاف د خپل ناراضۍ او غصه داده چي هغه د هغه خبري ذکر وکړي او هغه شی په حق کي غوره وګرځوي کوم چي الله تعالی د هغه په مقدر کي نه دی لیکلی او ظاهره ده چي کوم شی الله تعالی د هغه په مقدر کي لیکلی دی هغه په یقیني توګه د هغه څخه غوره دی چي د هغه ښه او بدګڼلو سره یقیني نه وي.

استخاره یعني د الله تعالی څخه د خیر او نیکۍ طلب کولو حقیقت دا دی چي په خپل ټولو معاملو او ټولو امورو کي د الله تعالی څخه غوره والی طلب کړل سي بلکه دا یقین او عقیده ولري چي انسان په دې نه پوهیږي چي د هغه په حق کي کوم شی ښه دی او کوم شی خراب دی دا یوازي الله تعالی دی چي د خپلو بندګانو په حق کي ښه او بد شی پېژني او په عامه توګه کیږي دا چي انسان یو شی په خپل حق کي ښه ګڼي مګر په حقیقت کي هغه شی بد وي یا یو شی د خپل ځان لپاره بد ګڼي مګر په حقیقت کي هغه شی د هغه په حق کي ښه وي لکه چي فرمایل سوي دي:

(عَسَى أَن تَكْرَهُواْ شَيْئًا وَهُوَ خَيْرٌ لَّكُمْ وَعَسَى أَن تُحِبُّواْ شَيْئًا وَهُوَ شَرٌّ لَّكُمْ وَاللّهُ يَعْلَمُ وَأَنتُمْ لاَ تَعْلَمُونَ)

ژباړه: (دا لیري خبره نه ده) چي تاسو یو شی په خپل حق کي بد ګڼئ مګر په حقیقت کي هغه ستاسو لپاره ښه وي او دا هم لیري نه ده چي یو شی تاسو په خپل حق کي ښه ګڼئ مګر په حقیقت کي هغه ستاسو لپاره خراب وي ، یوازي الله ﷻ پوهیږي او تاسو نه پوهیږئ، چي ستاسو په حق کي کوم شی ښه دی او کوم شی خراب دی .

کله چي د غه یقین او عقیده پخه سي نو بیا د هغه یقین او عقیدې په ذریعه دې مخته درجه اختیار کړي چي په د غه دنیا کي زموږ په ژوند کي څه واقع کیږئ هغه ټول د الله تعالی له خوا او د هغه د حکم او فیصلې مطابق دي او کوم شی چي د الله تعالی د حکم او فیصلې مطابق وي هغه د حقیقت او انجام په اعتبار د خیر او فلاح څخه پرته نور هیڅ نسي کیدای ځکه وارد سوي دي

چي : (الخير بيديک والشر ليس اليک) اې ربه! خير او کاميابي ستا په لاس کي ده او بدي تا ته منسوب کېدای نسي .

دا مستحب دي که چيري يوه ارزښتناکه دنيوي يا ديني معامله پېښه سي نو د هغه په اړه د عالمانو او مخلصينو سره د صلاح او مشورې وروسته استخاره وکړل سي يعني الله تعالی ته په حضور قلب سره متوجه کېدل او د خير او کاميابي دعاء دي وغواړي په استخاره کي کم از کم دادی چي داسي دعاء وکړل سي . (اللهم خرلي واختر لي فلا تکلني الى اختياري) : اې الله ! زما په حق کي خير وفرمايې او کوم شی چي زما لپاره غوره وي هغه اختيار کړې نو ما زما اختيار ته مه سپاره .

د استخارې پوره طريقه داده چي مخکي دي دوه رکعته لمونځ وکړي بيا دي د استخارې هغه دعاء ووايي چي مشهوره ده او ددغه کتاب په تېرو مخونو کي نقل سوې ده .

طبراني رحمه الله په اوسط کي د حضرت انس رضي الله عنه څخه دا مرفوع روايت نقل کړی دی چي : (ما خاب من استخار ولا ندم من استشار ولا عال من اقتصد) : هغه څوک نامراده کېدای نسي چي استخاره وکړي او هغه څوک شرمنده کيدای نسي چي مشوره وکړي او هغه څوک محتاج کېدای نسي چي ميانه روي اختيار کړي .

ځيني حکيمان وايي : چا ته چي څلور شيان ترلاسه سول هغه د څلورو شيانو څخه محروم کېدای نسي ، کوم چا ته چي د شکر مرتبه حاصله سوه هغه په نعمتونو کي د زياتوب څخه محروم کېدای نسي او کوم چا ته چي د توبې توفيق په برخه سو نو هغه د قبوليت څخه محروم کيدای نسي او کوم څوک چي د استخارې لار اختيار کړي هغه د خير څخه محروم کېدای نسي او کوم څوک چي مشوره ترلاسه کړي نو هغه صحيح خبري ته د رسېدو څخه محروم کيدای نسي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د رسول ﷺ توکل

(۵۰۸۳): عَنْ جَابِرٍ اَنَّهُ غَزَا مَعَ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قِبَلَ نَجْدٍ فَلَمَّا قَفَلَ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي هغه د رسول الله ﷺ سره د نجد په لور جهاد ته تللی وو ،

رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَفَلَ مَعَهُ فَأَدْرَكَتْهُمُ الْقَائِلَةُ فِي وَادٍ كَثِيرِ الْعِضَاهِ

کله چي رسول الله ﷺ راغلی نو هغه هم ورسره راغلی ، (دغرمې په وخت) کي صحابه کرام يو

شيلې ته راورسيدل چي په هغه کي ډيري درختي وې،

فَنَزَلَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَتَفَرَّقَ النَّاسُ يَسْتَظِلُّونَ بِالشَّجَرِ فَنَزَلَ

رسول الله ﷺ هلته تم سو، صحابه کرام هم د سايې په لټه آخوا ديخوا تر درختو لاندي پريوتل،

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَحْتَ سَمُرَةٍ فَعَلَّقَ بِهَا سَيْفَهُ وَنِمْنَا نَوْمَةً فَإِذَا

رسول الله ﷺ د کيکر تر يوې غتي درختي لاندي ايسار سو او خپله توره يې پر درخته وځړول، او موږ د لږ ګړي لپاره بيده سو، ناڅاپه موږ واوريدل

رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَدْعُونَا وَإِذَا عِنْدَهُ أَعْرَابِيٌّ فَقَالَ إِنَّ هَذَا اخْتَرَطَ

چي رسول الله ﷺ موږ غواړي او د رسول الله ﷺ سره يو صحرايي ناست دئ موږ چي راټول سوو نو رسول الله ﷺ راته وفرمايل: دغه صحرائي پر ما باندي زما توره راکښلې وه

عَلَيَّ سَيْفِي وَأَنَا نَائِمٌ فَاسْتَيْقَظْتُ وَهُوَ فِي يَدِهِ صَلْتًا قَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي فَقُلْتُ

په داسي حال کي چي زه بيده وم، زه راويښ سوم وينم چي (د پوښه) راکښلې توره ده په لاس کي ده او ما ته وايي اوس به دي زما څخه څوک خلاصوي؟ ما ورته وويل:

اللهُ ثَلَاثًا وَلَمْ يُعَاقِبْهُ وَجَلَسَ. متفق عليه وفي رواية ابي بكر الاسماعيلي في

الله تعالی به مي در څخه خلاص کړي، درې واره يې دا الفاظ وفرمايل، او هغه صحرايي ته رسول الله ﷺ هيڅ سزا ورنه کړل او کښېنستی، بخاري او مسلم، او ابوبکر اسماعيلي چي کوم

صحيحه فَقَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي قَالَ اللهُ فَسَقَطَ السَّيْفُ مِنْ يَدِهِ فَأَخَذَ رسول

روايت په خپل صحيح کي نقل کړی دئ په هغه کي دا الفاظ دي چي صحرائي توره په لاس کي وويل اوس به دي زما څخه څوک خلاصوي؟ (رسول الله ﷺ) ورته وفرمايل: الله تعالی (به مي در څخه خلاص کړي) ددې اوريدو سره د صحرائي د لاس څخه توره ايله سول، بيا رسول

الله صلى الله عليه وسلم السَّيْفَ فَقَالَ مَنْ يَمْنَعُكَ مِنِّي فَقَالَ كُنْ خَيْرَ آخِذٍ

الله ﷺ هغه توره پورته کړه او هغه صحرايي ته يې وفرمايل: اوس به تا زما دلاس څخه څوک خلاصوي؟ صحرائي وويل: ته غوره نيونکی سه،

فَقَالَ تَشْهَدُ أَنْ لاَّ إِلٰهَ إِلاَّ اللهُ وَأَنِّيْ رَسُوْلُ اللهِ قَالَ لاَ وَلٰكِنِّيْ أُعَاهِدُكَ عَلٰى أَنْ لاَّ

نبي کريم ﷺ ورته وفرمايل : ته ددې شاهدي وايې چي د الله ﷻ څخه پرته بل د عبادت وړ نه سته او دا چي زه د الله ﷻ رسول يم، صحرائي وويل : زه مسلمان کيږم نه بلکه ددې وعده کوم

أُقَاتِلُكَ وَلاَ أَكُوْنُ مَعَ قَوْمٍ يُّقَاتِلُوْنَكَ فَخَلّٰى سَبِيْلَهُ فَأَتٰى أَصْحَابَهُ فَقَالَ جِئْتُكُمْ مِنْ عِنْدِ خَيْرِ النَّاسِ هٰكَذَا فِيْ كِتَابِ الْحُمَيْدِيِّ وَفِي الرِّيَاضِ.

چي نه به درسره جنگ کوم او نه به د هغه قوم سره ملگرى کيږم کوم چي ستاسو سره جنگ کوي، ددې اوريدو سره رسول الله ﷺ هغه صحرائي پرېښودى، هغه صحرائي خپلو ملگرو ته راغلى او ورته وه يې ويل : زه تاسو ته د يو غوره سړي څخه راغلى يم. په کتاب الحميدي او الرياض کي هم داسي راغلي.

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٩٦٦، رقم: ٢٩١٠. ومسلم ١١\٥٧٦، رقم: ٣١١- ٨٤٣.

**د لغاتو حل:** قفل: اى رجع (راستون سو). العِضاة: الشجر الذي له شوک (ازغي لرونکې ونه). شجرة من الطلح: وهي العظام في شجر الشوک. اخترط: اى سل. صلتا: اى مسلولا مجردا عن الغمد.

**تشريح:** نجد په لغت کي د ځمکي هغه برخي ته وايي چي د عامي سطحي څخه لوړه وي او هسي دا د جزيره عرب د يو خاص سيمي نوم دى او دغه سيمه يوه لوړه سطح ده ځکه دې ته د نجد نوم ورکړل سوى دى، په پخواني زمانه کي نجد پر يو ډېره مختصره سيمه باندي مشتمل وو مگر په اوسنۍ جغرافيه کي د جزيره العرب ټولي وسطي سيمي ته نجد ويل کيږي چي د هغه اوږدوالى تقريبا اته سوه ميله او عرض يې تقريبا دوه سوه ميله دى، په شمال کي د بادية الشام د جنوبي سر څخه په شروع کېدو په جنوب کي وادي الدوارس يا الربع انحالي پوري او عرضا د احساء څخه تر حجاز پوري خپره سوې ده.

عضاه: د عضه جمع ده او ددې اطلاق پر هغه درختي باندي کيږي چي ازغي لرونکي وي، په مجمع البحار کي ليکلي دي چي عضاه د کيکر درختي ته وايي او کومه درخته چي د عضاه څخه لويه وي هغه ته سمره ويل کيږي.

### د الله ﷻ څخه بيره او رزق

(۵۰۷۵): وَعَنْ أَبِيْ ذَرٍّ أَنَّ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنِّيْ لَأَعْلَمُ آيَةً

لَوْ أَخَذَ النَّاسُ بِهَا لَكَفَتْهُمْ مَنْ يَّتَقِ اللهِ يَجْعَلُ لَهُ مَخْرَجًا وَّيَرْزُقُهُ مِنْ حَيْثُ لاَ يَحْتَسِبُ . رواه أحمد وابن ماجه والدارمي.

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ما ته يو داسي آيت معلوم دی که خلک عمل په وکړي نو هغه ورته کافي دی، (ومن يتق الله يجعل له مخرجا ويرزقه من حيث لا يحتسب) څوک چي د خدايه بيريږي نو الله د نجات لاره ور پيدا کوي او دداسي ځای څخه رزق ورکوي چي گمان يې هم نه وي. احمد، ابن ماجه او دارمي.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۱۷۸، وابن ماجه ۲\۱۴۱۱، رقم: ۴۲۲۰، والدارمي ۲\۳۹۲، رقم: ۲۷۲۵.

**تشريح**: په حديث کي ذکر سوی پوره آيت دادی :

(وَمَن يَتَّقِ اللَّهَ يَجْعَل لَّهُ مَخْرَجًا وَيَرْزُقْهُ مِنْ حَيْثُ لاَ يَحْتَسِبُ وَمَن يَتَوَكَّلْ عَلَى اللَّهِ فَهُوَ حَسْبُهُ إِنَّ اللَّهَ بَالِغُ أَمْرِهِ قَدْ جَعَلَ اللَّهُ لِكُلِّ شَيْءٍ قَدْرًا)

ژباړه : او کوم څوک چي د الله (ﷻ) څخه بېرېږي نو الله تعالى د هغه لپاره د نجات لار پيدا کوي چي وهم او گمان يې هم نه کيږي او کوم څوک چي په خپلو امورو او معاملاتو کي پر الله ﷻ باندي توکل او باور کوي نو هغه په دواړو جهانو کي د هغه لپاره کافي دی بېله شکه الله تعالى خپل مراد ته رسېدونکی دی او بېله شکه الله تعالى د هر شي لپاره اندازه ټاکلې ده.

نو د (من يتق الله ...... حيث لايحتسب) پوري دې ته اشاره ده چي الله تعالى د هغه سړي لپاره د دنيا او آخرت د هغه ټول امور او معاملاتو کي کافي کيږي چي د هغه څخه بيريږي او څه چي د هغه په نزد ناخوښه وي په دې توگه چي هغه داسي ټولو شيانو څخه خوندي کولای سي.

(من يتوکل على الله) دلته دا اشاره کول مقصد دي که چيري هغه پر الله تعالى باندي باور او اعتماد کولو سره د دنيا او آخرت د نعمتو غوښتونکی وي نو الله تعالى د هغه لپاره کافي کيږي په دې توگه چي هغه ته هغه نعمتونه ورکوي.

ان الله بالغ امره: بېله شکه الله تعالى خپل مراد ته رسېدونکی دی ، ددې څخه مراد دادی چي هغه قادر مطلق خپل احکام او فيصلې جاري او نافذ کونکی دی يعني هغه ته د هر ډول حکم او فيصلې جاري کولو اختيار حاصل دی او هغه د خپل هر حکم او فيصلې نافذ کولو پوره طاقت او قدرت لري گويا ددغه الفاظو په ذريعه پر الله تعالى باندي توکل کول او خپل ټولي چاري هغه ته د سپارلو وجوب څرگندول مرا ددی ځکه چي سړی په دې پوه سي چي رزق او دا

دول هر شي ته د تقدير الهي سره تعلق دی چي انسان د كوم شي خواهش او طلب لري هغه د حكم او فيصلې څخه پرته تر لاسه کېدای سي نو ددې څخه پرته بل چاره نسته چي انسان د قضاء او قدر په مخکي ځان تسليم کړي او د الله تعالى پر ذات باندي توكل او اعتماد وکړي.

**رزق ورکونکی یوازي الله ﷻ دی**

﴿۵۰۷۶﴾: وَعَنِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ أَقْرَأَنِي رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ. رواه ابوداؤد والترمذي وقال هذا حديث حسن صحيح.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ ما ته دا آيت وښودی ﴿إِنِّي أَنَا الرَّزَّاقُ ذُو الْقُوَّةِ الْمَتِينُ﴾ زه رزق ورکونکی يم او طاقتور يم. ابوداؤد او ترمذي ويلي دي دا حديث حسن صحيح دی.

**تخريج:** سنن ابي داود ۴\۲۹۰، رقم: ۳۹۹۳، والترمذي ۵\۱۷۶، رقم: ۲۹۴۰.

**تشريح:** (اني انا الرزاق) دا قرائت شاذه دی، د قرائت مشهور مطابق ددغه آيت الفاظ په اصل کي داسي دي: (ان الله هو الرزاق ذو القوة المتين) بېله شکه الله تعالى رزق ورکونکی دی او غالب طاقت والا دی، خلاصه دا چي کله رزق ورکونکی او غالب طاقت لرونکی يوازي الله تعالى دی نو بيا لازمه ده چي د هغه د ذات څخه پرته په بل چا باور ونه کړل سي او د خپلو امورو کارساز او وکيل به د هغه څخه پرته بل څوک هيڅکله ونه ګڼل سي.

**کسب کونکی ورور**

﴿۵۰۷۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ كَانَ أَخَوَانِ عَلَى عَهْدِ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي دوه ورونه وه په هغوئ کي

وَسَلَّمَ فَكَانَ أَحَدُهُمَا يَأْتِي النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالْآخَرُ يَحْتَرِفُ فَشَكَا

به يو در سول الله ﷺ په خدمت کي حاضريدی او دويم به يو کسب کوی، شکايت وکړ

الْمُحْتَرِفُ أَخَاهُ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَقَالَ لَعَلَّكَ تُرْزَقُ بِهِ. رواه

الترمذي وقال هذا حديث غريب.

كسب كونكي ورور رسول الله ﷺ ته د خپل دغه ورور (يعني دا يې وويل چي هغه يو كار نه كوي) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: شايد د هغه په بركت سره تا ته رزق دركول كيږي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دی.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۹۶، رقم: ۲۳۴۵.

**د لغاتو حل**: يحترف: اى يكتسب اسباب المعيشة.

**تشريح**: د رسول الله ﷺ د جواب مطلب دا وو چي ته دا ګنه چي تا ته كوم رزق دركول كيږي هغه په حقيقت كي ستا د ګټي په وجه دی مګر كيدای سي چي د خپل ورور سره د ايثار كومه معامله كوې او د هغه د معاشي اړتياوو بار په زغملو سره هغه د غم او فكر څخه ليري ساتې نو د هغه دبركت په وجه تا ته هم رزق دركول كيږي نو په دغه صورت كي د شكايت كولو او پر هغه د احسان كولو موقع نسته.

ددغه حديث څخه معلومه سوه چي علم او عمل او ديني خدماتو ته متوجه كېدل او د عقبى د تياري لپاره د نياوي بوختياوي ترک كول جائز دي او دا حديث پر دې هم دلالت كوي چي فقيران او په خاصه توګه د خپلو اړو قريبانو خبر اخيستل او دهغوي د اړتياوو پوره كول په رزق كي د پراختيا او بركت باعث وي.

## د توكل ښودنه

﴿۵۰۷۸﴾: وَعَنْ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

إِنَّ قَلْبَ ابْنِ آدَمَ بِكُلِّ وَادٍ شُعْبَةً فَمَنْ اَتَّبَعَ قَلْبُهُ الشُّعَبَ كُلَّهَا لَمْ يُبَالِ اللّٰهُ بِأَيِّ وَادٍ أَهْلَكَهُ وَمَنْ تَوَكَّلَ عَلَى اللّٰهِ كَفَاهُ الشعب. رواه ابن ماجة.

د انسان زړه په يو ځنګل كي يو ښاخ دی، بيا چي چا زړه د ټولو ښاخونو په لور متوجه كړ (يعني په هر ډول فكرونو كي يې بوخت كړ) نو الله تعالى ددې خبري پروا نه كوي كه غواړي په يو ځنګل كي يې هلاک كړي او چا چي پر الله تعالى توكل وكړ او خپل كارونه يې الله جل جلاله ته وسپارل نو الله تعالى د هغه ټول كارونه سموي. ابن ماجه.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۹۵، رقم: ۴۱۶۶.

## پر خدای ﷻ باور

﴿۵۰۷۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ قَالَ رَبُّكُمْ عَزَّ وَجَلَّ لَوْ أَنَّ عبيدي أَطَاعُونِي لَأَسْقَيْتُهُمُ الْمَطَرَ بِاللَّيْلِ وَأَطْلَعْتُ عَلَيْهِمُ الشَّمْسَ بِالنَّهَارِ وَلَم اُسْمِعْهُمْ صَوْتَ الرَّعْدِ. رواه احمد.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: ستاسو رب فرمايي: كه زما بندګانو زما فرمانبرداري كولاى نو ما به د شپې باران پر اورولاى او د ورځي به مي لمر پر راخېژولاى او د تالندي اواز به مي په دوئ نه اورېدلاى. احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۲\۳۵۹.

## د صبر او توكل يو واقعه

﴿۵۰۸۰﴾: وَعَنْهُ قَالَ دَخَلَ رَجُلٌ عَلَى أَهْلِهِ فَلَمَّا رَأَى مَا بِهِمْ مِنَ الْحَاجَةِ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي يو سړى خپل اهل او عيال ته راغلى هر كله چي دهغوئ حاجتونه او ضرورتونه يې وليدل

خَرَجَ إِلَى الْبَرِّيَّةِ فَلَمَّا رَأَتْ امْرَأَتُهُ قَامَتْ إِلَى الرَّحَى فَوَضَعَتْهَا وَإِلَى التَّنُّورِ

نو د ځنګل په لور ولاړى آخوا چي د هغه ښځي وكتل (په دې اميد چي خاوند مي دباندي ولاړى يو څه غله به راوړي او وړه به يې كړم) نو هغه ولاړه سوه ميچني ته ورسيده هغه يې پر خپل ځاى سمه كېښېښودل بيا د تنور په لور ولاړل

فَسَجَرَتْهُ ثُمَّ قَالَتْ اللَّهُمَّ ارْزُقْنَا فَنَظَرَتْ فَإِذَا الْجَفْنَةُ قَدْ امْتَلَأَتْ قَالَ

هغه يې ګرم كړ بيا يې د الله ﷻ څخه دعاء وغوښتل چي اې الله! موږ ته رزق راكړې، بيا هغې وليدل چي د ميچن شاوخوا د اوړو څخه ډک دئ

وَذَهَبَتْ إِلَى التَّنُّورِ فَوَجَدَتْهُ مُمْتَلِئًا قَالَ فَرَجَعَ الزَّوْجُ قَالَ أَصَبْتُمْ بَعْدِي

بیا هغه تنور ته ورغلل نو وه یې لیدل چې د ډوډۍ څخه ډک وو ، د راوي بیان دی چې په دغه دوران کې د هغې خاوند راغلئ او هغې ښځې ته یې وویل ایا تا ته زما د تلو څخه وروسته

شَيْئًا قَالَتْ امْرَأَتُهُ نَعَمْ مِنْ رَبِّنَا وَقَامَ إِلَى الرَّحَى فَذَكَرَ ذَلِكَ لِلنَّبِيِّ ﷺ

یو څه د خوراک سامان تر لاسه سوی دئ ، ښځې ورته وویل هو زموږ رب دا انتظام وکړ ، ددې

فَقَالَ أَمَا إِنَّهُ لَوْ لَمْ يَرْفَعْهَا لَمْ تَزَلْ تَدُورُ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه احمد.

پېښې ذکر نبي کریم ﷺ ته وکړل سو ، رسول الله ﷺ ورته وفرمایل که هغه د میچنې پل نه وای پورته کړی نو تر قیامته پورې به میچن ګرځېدل . احمد

**تخریج**: مسند الامام احمد ۲\۵۱۳.

**د لغاتو حل**: فوضعتها: ای هیاتها ونظفتها. سجرته: ای اوقدته.

**تشریح**: د ذکر سوي واقعې په صورت کې د الله تعالی د قدرت کارنامه څرګنده سوه هغه په حقیقت کې پر فقر او فاقه باندې صبر او د الله تعالی پر ذات باندې کامل اعتماد او توکل کولو نیتجه وه ، څرګنده دې وي چې دا واقعه د تیر امت د یو سړي نه ده بلکه د امت محمدي د یو فرد وه او د رسول الله ﷺ په زمانه کې پېښه سوې وه .

## رزق د بنده طلب کوي

﴿۵۰۸۱﴾: وَعَنْ أَبِي الدَّرْدَاءِ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الرِّزْقَ لَيَطْلُبُ الْعَبْدَ كَمَا يَطْلُبُهُ أَجَلُهُ . رواه أبو نعيم في الحلية.

د حضرت ابودرداء رضی الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : رزق د بنده داسې طلب کوي لکه څرنګه چې مرګ د انسان طلب کوي . ابو نعیم.

**تخریج**: رواه ابونعیم في الحلیة۶\۸۶.

**تشریح**: مطلب دادی چې د رزق او مرګ دواړو رسېدل ضروري دي لکه څرنګه چې ددې خبرې هیڅ حاجت نه وي چې یو سړی خپل په مرګ پسې وګرځي او هغه پیدا کړي بلکه خپله مرګ هغه ته په هر صورت کې او په یقیني توګه راځي همدارنګه د رزق معامله ده چې په هغه پسې د ګرځېدو هیڅ اړتیا نسته بلکه کوم څه چې په مقدر کې لیکلي وي هغه په په هر صورت کې په

لازمي توګه رسيږي كه څه هم په هغه پسي وګرځي يانه ، ، مګر ددې مطلب دا هيڅكله نه دى چي د ګرځېدو په صورت كي رزق نه ترلاسه كيږي بلكه حقيقت دادى چي د رزق د حصول لپاره هڅه او پلټنه كول هم د تقدير الهي او نظام قدرت مطابق دى ، مګر كوم چي د قلبي اعتماد او باور تعلق دى هغه يوازي د الله ﷻ پر ذات كېدل پكار دي چي د رزق ضامن الله ﷻ دى ، همدارنګه كه چيري د رزق په تر لاسه كېدو كي ځنډ او ځنډ رامنځته سي نو د اضطراب او بې قرارۍ څرګندونه كول پكار نه دي او بيا ددغه عقيدې سره د خپل ضرورت او حاجت مطابق په معتدله او مناسبه طريقه د رزق د تر لاسه كولو پلټنه كول پكار دي چي اصلي رازق الله ﷻ دى مګر دا هم د عبوديت طريقه ده چي د خپل رزق تر لاسه كولو لپاره مناسبه هڅه او پلټنه وكړل سي.

ملا علي قاري رحمة الله عليه د حديث په خاتمه كي ليكلي دي چي څرنګه انسان ته د هغه مرګ رسېدل يقيني دي همدارنګه د هغه رزق رسيدل هم يقنيني دي بلكه انسان ته د هغه رزق د مرګ څخه هم مخكي او ژر رسيږي ځكه چي كله د چا مرګ راځي نو هغه خپل رزق د هغه څخه هم مخكي تر لاسه كوي چي هغه خپل مقدر كي اخيستى وي ، كه فكر وكړل سي نو د الله تعالى ددغه آيت كريمه :

(اللَّهُ الَّذِي خَلَقَكُمْ ثُمَّ رَزَقَكُمْ ثُمَّ يُمِيتُكُمْ ثُمَّ يُحْيِيكُمْ)

څخه دا خبره ثابتيږي، او ميرک رحمة الله عليه د منذري رحمة الله عليه څخه نقل كړي دي چي دا حديث ابن ماجه په خپل صحيح كي او بزار هم روايت كړى دى او طبراني هم په غوره سند سره نقل كړى دى چي د هغه الفاظ دادى : (ان الرزق ليطلب العبد اكثر مما يطلبه اجله) ، ددې څخه هم د ذكر سوي خبري تائيد كيږي.

ملا علي قاري رحمة الله عليه دا هم ليكلي دي چي ابونعيم په خپل كتاب (حليه) كي مرفوعا دا خبره نقل كړې ده : (لو ان ابن ادم هرب من رزقه كما يهرب من الموت لادركه رزقه كما يدركه الموت): كه انسان د خپل رزق څخه داسي تبنتي لكه څرنګه چي هغه د خپل مرګ څخه تبنتي نو يقينا د هغه رزق به هم هغه داسي تر لاسه كوي لكه څرنګه چي د هغه مرګ هغه تر لاسه كوي.

## د نبي ﷺ بې مثاله صبر

﴿۵۰۸۲﴾: وَعَنِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ كَأَنِّي أَنْظُرُ إِلَى رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَحْكِي نَبِيًّا مِنَ الْأَنْبِيَاءِ ضَرَبَهُ قَوْمُهُ فَأَدْمَوْهُ وَهُوَ يَمْسَحُ الدَّمَ عَنْ

وَجْهِهِ وَيَقُولُ اللَّهُمَّ اغْفِرْ لِقَوْمِي فَإِنَّهُمْ لَا يَعْلَمُونَ. متفق عليه.

د حضرت ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ګويا زه اوس هم نبي كريم ﷺ ته ګورم چي هغوئ د يو نبي پېښه بيانوي د هغه نبي ذكر چي خپل قوم ووهي په وينو يې رنګ كړ، هغه نبي به د خپل مخ څخه وينه وچول او ويل به يې اې الله ! زما قوم و بخښې دوئ زما د حقيقت څخه ناخبر دي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥١۴١، رقم: ٣۴٧٧، ومسلم ٣\١۴١٧، رقم: ١٠٥- ١٧٩٢.

**تشريح**: لكه زه چي هغه وينم: ددې په ذريعه حضرت ابن مسعود رضي الله عنه دا څرګنده كړه چي د رسول الله ﷺ ذكر سوې قصه بيانول ما ته په ياد دي او دا وخت هم د هغه وخت منظر زما د ستركو په مخكي دي.

زما قوم وبخښې، يعني دغه خلكو ته په دې معنى كي معافي وكړې چي دوئ زما سره كوم چلن كړى دى او كوم تكليف را رسولى دى د هغه په وجه دوئ په دغه دنيا كي په عذاب كي اخته مه كړې او نوم يې ورك مه كړې دا وضاحت ځكه ضروري دى چي د كفارو د بخښني او مغفرت دعاء په دې معنى كي هيڅكله جائز نه ده چي د هغوئ شرك او كفر معاف كړل سي او كه هغوئ خپل كفر او شرك سره مړه سي نو د آخرت په عذاب كي اخته نسي دا خلك زما د حقيقت څخه خبر نه دي دغه الفاظ د هغه نبي د كمال او صبر، حلم او حسن اخلاق مظهر دى چي كوم خلك هغه ته سخت تكليف رسوي چي هغوئ په وينو رنګ كړى دى او كوم خلك چي خپل نبي ته په اذيت رسولو سره تر ټولو لويه ګناه كوي د هغه خلكو له خوا هغه نبي د الله تعالى په دربار كي دا عذر بيانوي چي دغه خلكو څه كړي دي محض په دې وجه يې كړي دي چي د الله تعالى او رسول په باره كي د دوئ پر زړه او دماغ باندي د جهل پردې پرتې وي، ددې څخه دا خبره معلومه سوه چي د خپل ناپوهۍ په وجه كيدونكې ګناه د هغه ګناه په نسبت سپكه وي كوم چي د علم او پوهي سربېره وكړل سي ځكه فرمايل سوي دي چي: (ويل للجاهل مرة وويل للعالم سبع مرات) د جاهل لپاره يوه رسوايي او خرابي ده او د عالم لپاره اووه رسوايي او خرابۍ دي.

شيخ ابن حجر عسقلاني فرمايي: زه دا نسم ښودلاى چي په حديث كي د كوم نبي ذكر دى، او د هغه سره څه قصه پېښه سوې ده مګر په ځينو روايتو كي راغلي دي چي د حضرت نوح عليه السلام سره دا چلن سوى دى چي هغه خلك يې د هدايت لار ته بلل او د الله تعالى د حكم د اتباع تلقين يې كوى نو بدبختو به هغه وهى او دومره به يې وهى چي بدن به يې په وينو رنګ سو، د

زخمونو څخه به پر مخکه ولوېدی او په هغه حالت کي به تر ډېره وخته پوري پر مځکه پروت وو يا چي به يې توان پيدا سو نوولاړ به سو او د دعوت په دنده کي به بوخت سو، ځيني حضرات وايي چي د هغه نبي څخه د رسول الله ﷺ ذات مبارک مراد وو چي رسول الله ﷺ خپله واقعه د اجمال او ابهام په توګه بيان کړل د غه قول زيات صحيح دی او د جنګ احد پر موقع د رسول الله ﷺ د مخالفينو په حق کي چي کومه دعاء وفرمايه د هغه د غه الفاظ منقول دي.

==========

## بَابُ الرِّيَاءِ وَالسُّمْعَةِ (د ريا او شهرت بيان)

رياء د رويت څخه مشتق دی او په صراح کي ليکلي دي چي د رياء معنی ده خپل ځان د خلکو په نظر کي ښه وړاندي کول او په عين العلم کي ليکلي دي چي د رياء مطلب دادی چي د خپل عبادت او نيکۍ رعب اچول او د هغه په ذريعه د خلکو په نظر کي خپل قدر او عزت غوښتل، ددې څخه معلومه سوه چي د رياء تعلق په خاصه توګه د هغه شيانو سره وي چي د عبادت او نيکۍ ظاهري عمل ورته وايي او کوم شيان چي د عبادت څخه نه وي لکه د مال زياتوالي د علم او ذهانت اشعار په يادول، او دنشي ويشتلو مهارت او داسي نور، نو په هغه کي د ښوونې لپاره کيدونکي کار ته رياء نه ويل کيږي بلکه هغه ته افتخار ويل کيږي، همدارنګه د نيکۍ او عبادت ظاهري اعمالو کي هم که چيري په دغه صورت کي خلکو ته د ښووني لپاره وکړل سي کله چي د هغه مقصد د عزت طلب نه وي لکه څرنګه چي بعضو مشائخو خپلو مريدانو ته د تلقين او تعليم، د خلکو زړونه نيک اعمالو ته مائل کولو او هغوئ اتباع او پيروي ته راغب کولو ځيني اعمال داسي کوي چي خلک هغوئ ويني نو دې ته هم د حقيقت په اعتبار رياء نه ويل کيږي که څه هم په ظاهر کي د هغوئ د غه عمل د ريا معلوميږي په دې وجه دا ويل سوي دي: (رياء الصديقين خير من اخلاص المريدين) يعني د مشائخو او بزرګانو رياء د مريدانو تر اخلاص غوره دی.

دا خبره بايد په ذهن کي وي چي رياء په اصل کي د هغه شي نوم دی چي د يو سړي په ذات کي واقعتا يو صفت او کمال وي او د هغه خپل د غه واقعي وصف او کمال د خلکو په مخکي ظاهر کړي او دا خواهش لري چي خلک يې په دغه وصف او کمال و پېژني چي د هغوئ په نظر کي قدر او عزت تر لاسه کړي، نو کوم څوک چي داسي وصف او کمال ځان ته په منسوب کولو

سره پر خلکو ظاهر کړي چي په حقيقت کي د هغه په ذات کي نسته نو دې ته به رياء نه بلکه خالص کذب او منافقت ويل کيږي پر دې باندي په قياس کولو سره دا ويل سوي دي چي غيبت د هغه شي نوم دی چي په يو سړي پسي د هغه تر شا هغه عيب ولګول سوي دي چي په حقيقت کي د هغه په ذات کي موجود وي او که هغه ته په منسوب کولو سره داسي عيب بيان کړل سي چي د حقيقت په اعتبار د هغه په ذات کي نه وي نو دې ته افتراء او بهتان ويل کيږي.

## د رِياء ډولونه

د رياء (ځان ښووني) مختلف ډولونه او صورتونه دي او په دغه ډولو کي تر ټولو زيات خراب او د ډېر نفرت وړ هغه ډول دی چي په هغه کي د الله تعالی د عبادت قصد او د حصول ثواب اراده قطعا نه وي بلکه واحد مقصد خلکو ته ښوونه او د هغوئ په نظر کي قدر تر لاسه کول وي لکه څرنګه چي د خاص رياکارو طريقه وي چي کله د خلکو په منځ کي وي نو لمونځ کوي او مختلف ډول وظيفې او ذکر کي بوخت وي مګر کله چي يوازي وي نو نه د لمانځه سره کار لري او نه د وظيفو او ذکر سره بلکه ددغه بدبخته دا حالت وي چي هغه د خلکو سره په لمانځه کي بېله پاکۍ او بې اودسه دريږي د ريا دغه ډول تر ټولو بد دی او د الله تعالی د سخت قهر او غضب نازلېدو باعث دی او په دغه صورت کي کېدونکي هر عمل باطل دی بلکه ځينو حضراتو دا ويلي دي که چيري هغه عمل فرض وي نو د هغه کول د فرض ادا کولو په حکم کي نه کيږي بلکه د هغه قضاء به واجب وي ، دوهم ډول هغه صورت دی چي په هغه کي په يو نيک عمل کولو کي دواړه شيان وي يعني اراده د ثواب هم وي او د ريا (ځان ښووني) نيت هم وي مګر د رياء اړخ غالب او د ثواب اړخ ضعيف وي په دې توګه که چيري هغه عمل کونکی يوازي وي نو هغه عمل به نه کوی او د هغه قصد بهٔ د هغه عمل د صادرېدو باعث نه کېدی او که چيري د هغه عمل ثواب هيڅ نه وي نو هم محض د رياء کارۍ جذبه د هغه عمل اختيارولو باعث جوړيده ، ددغه ډول هم هغه حکم دی کوم چي د اول ډول حکم دی، دريم ډول هغه صورت دی چي په هغه کي د يو نيک عمل اختيارولو کي دواړه شيان يعني د ريا جذبه او د ثواب اراده برابر وي په دې توګه که چيري هغه عمل په هغه دواړو شيانو کي د يو شي څخه خالي وي نو د هغه د اختيارولو څه داعيه به نه پيدا کېدل بلکه هغه عمل ته به رغبت په دغه صورت کي وای کله چي دواړه شيان يو ځای تر لاسه سوي وای ددغه ډول په اړه په ظاهره خو دا معلوميږي چي په دې کي ګټه او تاوان دواړه برابر وي مګر د احاديثو او آثارو څخه دا ثابتيږي چي دغه ډول هم بد دی او په دغه صورت کي کېدونکی عمل به د قبول وړ نه وي.

او ځلورم هغه صورت دی چي په هغه کي د يو نيک عمل په اختيارولو کي د ثواب نيت او د الله تعالی د رضا تر لاسه کولو اراده راجح او غالب وي او په ظاهره دا معلوميږي چي دغه ډول نه خو محض باطل دی او نه په دې کي تاوان دی ، يا دا ويل کيدای سي چي ددغه صورت اختيار کېدونکی عمل د نيت او ارادې په اعتبار د ثواب او عتاب دواړو يو ډول باعث کيږي او په اراده او نيت کي چي څومره اخلاص يا عدم اخلاص وي د هغه مطابق به ثواب يا عتاب وي او په دغه صورت کي دا هم کيدای سي چي په قصد عمل کي د ريا چي کوم ګډون دی که چيري هغه د ثواب د ارادې او نيت څخه کم او ضعيف وي ، هغه کله پيدا سوی دی که د رياکار ګډون د عمل په ابتداء کي سوی دی نو دغه صورت ته بهٔ زيات بد ويل کيږي او که د عمل په منځ کي پيدا سوی وي نو دا صورت به د اول صورت څخه کم بد، حامل وي او که دغه عمل د کولو څخه وروسته راغلی وي نو دا صورت به د دريم صورت څخه هم کم خراب ګرځول کيږي او د دې په وجه اختيارونکي عمل ته به باطل نه ويل کيږي .

ددې څخه پرته يو فرق دا هم بايد په ذهن کي وي چي د ريا هغه جذبه که د پاخه مقصد او عزم په صورت کي څرګنده سوې وي نو په هغه کي به زياته خرابي وي او که محض د يو خيال په صورت کي پيدا سوې وي او د هغه خيال تر حده پوري محدوده وي او مخته هيڅ ونه سي نو دغه صورت حال ته بهٔ يقينا زيات تاواني نسي ويل کيدای .

په هر حال حقيقت دادی چي رياء يوه داسي جذبه ده چي د هغه څخه په پوره توګه خلاصون ډېر مشکل دی او په هر حالت کي د حقيقي اخلاص تر لاسه کول ډېر مشکل دي ځکه علماؤ ليکلي دي چي د چا دخولې څخه د خپل تعريف په اورېدو خوشحاله کېدل د رياء علامه ده ، همدارنګه په يو ازيوالي کي څه عمل کول په وخت کي هم د رياء خيال راسي نو هغه ته بهٔ هم رياء ويل کيږئ الله تعالی دي موږ وساتي او په هر صورت اخلاص دي راکړي چي د هغه د مرستي او توفيق څخه پرته د هغه دولت تر لاسه کول ممکن نه دی .

علماؤ يو خاص صورت او حالت بل هم بيان کړی دی او هغه دا که چيري سړی يو نيک کار وکړي او په يو عبادت او طاعت کي مصروف وي او خلک هغه پر نېک کار او عبادت کولو ووينې نو هغه ته پکار دي چي هغه وخت په ځان کي په هغه خبره د خوشحالي جذبات پيدا کړي چي الله تعالی په خپل فضل او کرم سره هغه ته د نيک عمل توفيق ورکړ او د خلکو په نظر کي باعزته کړ چي د ګناهو او عيبو څخه يې پرده پوشي وفرمايل او نيک اعمال او اخلاق يې د هغه ښکاره کړل او د خوشحالي دغه جذبات سره دا نيت او قصد وکړي چي زما د نيک عمل په

اظهار سره د دين او طاعت چرچه وي نو خلک به دين ته راغب کيږي او په هغوئ کي به هم د نيکو اعمالو اختيارولو خواهش پيدا سي دا شی نه يوازي دا چي د رياء په حکم کي داخل نه دی بلکه دې ته محمود او مستحسن هم ويل کيږي لکه څرنګه چي په دې سلسله کي وارد سوو احاديثو څخه ثابتيږي .

څرګنده دي وي چي دا مسئله ډېره دقيقه او پېچيده ده او په ځان کي ډېر تفصيل او بحث لري که ددې تحقيق په زيات وضاحت سره غواړئ نو د اهل الله او عارفينو کتابو نه او د هغوئ اقوال او ملفوظاتو څخه لاربنوونه تر لاسه کول پکار دي په خاصه توګه د مشهور کتاب احياء العلوم په دې اړه غوره لاربنوونه کولای سي .

**د سُمعَه مطلب** : سُمعه د سين په پېښ او د ميم په جزم سره هغه کار ته وايي چي خلکو ته د اورولو ، شهرت تر لاسه کولو لپاره وکړل سي ، په عامه توګه ددغه لفظ استعمال په رياء سره کيږي لکه چي ويل کيږي فلاني سړي دا کار د رياء او سمعه يعني ښووني او اوروني لپاره وکړ، ګويا د رياکار تعلق د حاسه بصر (ښووني) سره وي او د سمعة تعلق د حاسه سمع (اوروني) سره وي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### الله ﷻ زړه ته ګوري

﴿۵۰۸۳﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ اللَّهَ لَا يَنْظُرُ إِلَى صُوَرِكُمْ وَأَمْوَالِكُمْ وَلَكِنْ يَنْظُرُ إِلَى قُلُوبِكُمْ وَأَعْمَالِكُمْ. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : الله تعالى ستاسو شکلونو او مالونو ته نه ګوري بلکه ستاسو زړونو او عملونو ته ګوري . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۹۸۷\۴، رقم: ۳۴-۲۵۶۴.

### د شرک څخه بيزاري

﴿۵۰۸۴﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اللَّهُ تَعَالَى أَنَا أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ مَنْ عَمِلَ عَمَلًا أَشْرَكَ فِيهِ مَعِي غَيْرِي تَرَكْتُهُ

وَشِرْكَهُ وفي رواية فانا منه برئ هو للذي عمله. رواه مسلم.

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: الله تعالی فرمايي زه د شركاء د شرک څخه بې پروا يم (يعني لکه څرنګه چي نور شريکان په شرکت راضي وي دغسي زه راضي نه يم) بلکه زه د شرکت څخه بيزاره يم، څوک چي عبادت وکړي په هغه کي بل څوک زما سره شريک کړي نو زه هغه او د هغه شرک دواړه پرېږدم، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي زه د هغه سړي څخه بيزاره يم، هغه سړی يا د هغه عمل د هغه چا لپاره دی چي د چا لپاره يې کړی دی. مسلم.

**تخريج:** صحيح مسلم ۲۲۸۹\۴، رقم: ۴۶- ۲۹۸۵.

**تشريح:** ددغه حديث ظاهري مفهوم دا خبره څرګندوي چي خاص د رياء په جذبه سره کيدونکی عمل باطل دی مګر د هغه عمل سره چي څه فوت سي په هغه کي د رياء اميزش او د هغه دخل وي مګر علماؤ ويلي دي چي دا حکم د هغه عمل په باره کي دی چي د رياء د دوو دولو سره تعلق لري چي يا خو د هغه عمل په اختيارولو کي د ثواب نيت نه وي يا د ثواب نيت خو وي مګر د رياء قصد پر هغه نيت غالب وي او دا هم ويل کيدای سي چي ددغه حديث اصل مقصد د الله تعالی لپاره د کيدونکي عمل د رياء د ګډون او د هغه د دخل څخه پاک ساتلو لوی اهميت بيانول او د هغه د امر څخه لاپرواهي اختيارونکو ته زيات خبرداری ورکول دی.

## د ريا لپاره عمل

﴿۵۰۸۵﴾: وَعَنْ جُنْدُبٍ قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللّٰهُ بِهِ وَمَنْ يُرَائِي يُرَائِي اللّٰهُ بِهِ. متفق عليه.

د حضرت جندب رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي يو عمل ددې لپاره وکړي چي خلکو ته يې واوروي الله جل جلاله به د هغه عيب مشهور کړي او څوک چي د ريا لپاره ښه کار وکړي نو ريا کارو ته به الله تعالی جزا ورکړي. بخاري او مسلم

**تخريج:** صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۳۵، رقم: ۶۴۹۹، ومسلم ۴\۲۲۸۹، رقم: ۴۸- ۲۹۸۷.

**تشريح:** ځيني حضرات وايي د حديث مطلب دادی چي کوم څوک يو نېک کار محض د شهرت او نامه لپاره کوي نو الله تعالی به په دغه دنيا کي د هغه عيبونه او خراب کارونه دخپل مخلوق په مخکي ظاهر کړي کوم چي هغه يې پټوي او د خلکو په نظر کي به هغه ذليل او رسوا کړي يا

دا چي الله تعالى بۀ د داسي سړي فاسد نيت او خراب مقصد دنيا والا ته څرګندوي او د قيامت په ورځ به يې هم پر خپل مخلوق باندي ښکاره کړي چي دغه سړی مخلص نه وو بلکه رياء کار وو، او ځينو علماؤ دا مراد بيان کړی دی چي کوم څوک خپل عمل خلکو ته ښيي نو الله تعالى بۀ د قيامت په ورځ د هغه د نيک عمل ثواب يوازي هغه ته وښيي او ورکوي به يې نه، چي هغه افسوس زده پاته سي، يا دا مراد دی چي کوم څوک خپل دغه نيک عمل خلکو ته ښيي نو الله تعالى به د هغه د نيت مطابق د هغه عمل خلکو ته وښيي او ګويا د هغه عمل به هغه اجر او ثواب وي چي هغه ته په دنيا کي ورکړل سي او د آخرت د اجر او ثواب څخه به قطعا محروم وي.

## ښه کار خپله ښکاره کيږي

﴿۵۰۸۶﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قِيلَ لِرَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَرَأَيْتَ الرَّجُلَ يَعْمَلُ الْعَمَلَ مِنَ الْخَيْرِ وَيَحْمَدُهُ النَّاسُ عَلَيْهِ وفي رواية ويحبه الناس عليه قَالَ تِلْكَ عَاجِلُ بُشْرَى الْمُؤْمِنِ. رواه مسلم.

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وسول چي د هغه سړي په اړه ستاسو څه خيال دئ چي نيک کار کوي او خلک د هغه د کارونو تعريف کوي، او په يوه روايت کي د االفاظ دي چي خلک د هغه سره مينه کوي (ايا د هغه دا عمل ثواب لري) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل (دا تعريف کول) سمدستي زيری دی. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۰۳۴\۴، رقم: ۱۶۶- ۲۶۴۲.

**تشريح**: د ژر تر لاسه کونکي زيری مطلب دادی چي يو سعادت او زيری خو هغه دی چي پاته دی او په آخرت کي بۀ تر لاسه کيږي او يو سعادت او زيری دادی چي ژر يعني په دنيا کي به ورته تر لاسه سي، خلاصه دا چي هغه سړی د خپل عمل اصل ثواب په اخرت کي تر لاسه کولو څخه مخکي يو بل اجر او ثواب په دغه دنيا کي هم تر لاسه کوي چي خلک د هغه تعريف او توصيف کوي او خپل محبوب زړه او نظر يې جوړ کړ او د هغه په حق کي خلکو ته دا معامله ګويا د دې خبري زيری وي چي د هغه هغه عمل مقبول سو او هغه به په آخرت کي اجر او ثواب تر لاسه کوي

په هر حال رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په ذريعه دا څرګنده کړه چي د هغه سړي هغه عمل چي د هغه په وجه هغه د دنيا والاو په نظر قابل احترام او محبوب جوړ سوی دی رياء به ورته نه ويل

کیږي ځکه چي هغه ته د عزت او احترام او محبت په تر لاسه کولو کي د هغه د خپل قصد او اراده څه دخل نسته چي د هغه مطلب دادی چي هغه عمل اختیارولو کي د هغه نیت او د هغه قصد او اراده د الله تعالی درضا او ثواب اخرت څخه پرته بل هیڅ نه وه دا خو محض د الله تعالی فضل او کرم چي هغه سړی ته په دنیا کي هم د ذکر سوي سعادت په صورت کي اجر او ثواب ورکړي.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د شرک او ریا په باره کي وعید

﴿۵۰۸۷﴾: عَنْ اَبِيْ سَعِيْدِ بْنِ اَبِيْ فُضَالَةَ عَنْ رَّسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعید بن ابو فضاله ﷛ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

قَالَ إِذَا جَمَعَ اللّٰهُ النَّاسَ يَوْمَ الْقِيَامَةِ لِيَوْمٍ لَا رَيْبَ فِيهِ نَادَى مُنَادٍ مَنْ كَانَ

د قیامت په ورځ چي الله ﷻ خلک یو ځای کړي او دا ورځ داسي ورځ ده چي د هغه په راتلو کي هیڅ شک نه سته نو اعلان کونکی به اعلان وکړي چا چي په خپل هغه عمل کي چي هغه د الله

أَشْرَكَ فِي عَمَلٍ عَمِلَهُ لِلّٰهِ أَحَدًا فَلْيَطْلُبْ ثَوَابَهُ مِنْ عِنْدِ غَيْرِ اللّٰهِ فَإِنَّ اللّٰهَ أَغْنَى الشُّرَكَاءِ عَنِ الشِّرْكِ. رواه احمد.

ﷻ لپاره کړی وي د الله ﷻ څخه پرته بل څوک شریک کړی وي نو هغه ته پکار ده چي هغه د خپل هغه عمل ثواب د هغه شریک څخه وغواړي ځکه چي الله تعالی د شریکانو د شرک څخه بیزاره دی. احمد.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۳\۴۶۶.

**تشریح**: طیبي رحمه الله وايي: په لیوم کي د لام حرف د جمع سره متعلق دی چي د هغه معنی ده کله چي الله تعالی ټول خلک د هغه ورځي لپاره جمع کړي چي د هغه راتلل یقیني دي او د هغه ورځي په راتلو کي هیڅ شک او شبه نسته او دا جمع کول به ددې لپاره وي چي هر یو ته د هغه شي مطابق جزاء او سزا ورکړي چي هغه په دنیا کي اختیار کړي وه په دې اعتبار د یوم القیامة مابعد الفاظ د تمهید په توګه دي خو دا جمع ته هم ګرځول کیدای سي او ددې تائید ددغه

روايت مطابق الفاظو څخه هم كيږي كوم چي په استيعاب كي نقل سو يدي : (اذا كان يوم القيامة يجمع الله الاولين والاخرين ليوم لاريب فيه ...الخ) په دغه صورت كي د ليوم لفظ به داسي مظهر كړل سي چي د مضمر پر ځای واقع سوی وي او دا مفهوم ظاهر وي چي جمع الله الخلق يوم القيامة ليجزيهم فيه، يعني الله تعالی به د قيامت په ورځ ټول مخلوق جمع كړي چي په هغه ورځ ټولو ته جزاء او سزاء وركړي.

## د رياكارۍ بدوالی

﴿۵۰۸۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرٍو أَنَّهُ سَمِعَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ مَنْ سَمَّعَ النَّاسَ بِعَمَلِهِ سَمَّعَ اللهُ بِهِ أَسَامِعَ خَلْقِهِ وَحَقَّرَهُ وَصَغَّرَهُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت عبدالله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي څوک چي خپل عمل ته شهرت وركړي (يعني خلكو ته يې وښيي) الله تعالی به د هغه د ريا عمل د خپل مخلوق غوږو ته ورسوي او هغه به ذليل او رسوا كړي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۳۳۱، رقم: ۶۸۲۲.

**د لغاتو حل**: اسامع: ای آذانهم (غوږونه)

## د نيت اخلاص او عدم اخلاص

﴿۵۰۸۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ اَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ مَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د كوم سړي نيت چي د آخرت

الْآخِرَةِ جَعَلَ اللهُ غِنَاهُ فِي قَلْبِهِ وَجَمَعَ لَهُ شَمْلَهُ وَأَتَتْهُ الدُّنْيَا وَهِيَ رَاغِمَةٌ

طلب وي الله تعالی هغه ته د زړه غنا وركوي د هغه پريشانۍ يو ځای كړي او د زړه اطمينان وركړي، دنيا هغه ته راځي او هغه دنيا ذليله او خواره ګڼي

وَمَنْ كَانَتْ نِيَّتُهُ طَلَبَ الدُّنْيَا جَعَلَ اللهُ الفقر بَيْنَ عَيْنَيْهِ وَ شَتَّتَ عَلَيْهِ أَمْرَهُ وَلاَ يَأْتِيْهِ مِنْهَا اِلاَّ مَا كُتِبَ لَهُ. رواه الترمذي ورواه احمد والدارمي عن

ابان عن زيد بن ثابت.

او د چا نيت چي د نيا تر لاسه كول وي نو فقر د هغه په ستركو كي وي او دده كارونه به پاشلي وي او دنيا هغه ته دومره اندازه تر لاسه كيږي څومره چي الله تعالى د هغه لپاره ټاكلې وي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۵۴، رقم: ۲۴۶۵، ومسند الامام احمد ۵\۱۸۳.

**تشريح**: مطلب دادى چي د اعمالو نتائج او آثار مرتب كېدو دار او مدار پر نيت باندي دى او د كوم چا مقصد چي يوازي د آخرت مفاد وي او د خپل اعمال په اړه مخلص او صادق وي هغه د آخرت د سعادتونو او نعمتونو مستحق خو وي مگر په دغه دنيا كي هم هغه ته خپل ټول معاملات په ژوند كي اطمينان او عافيت تر لاسه كيږي او هغه ته د هغه رزق په ډېره اساني سره تر لاسه كيږي ، ددې پر خلاف كوم څوک چي محض د دنيا طلب او عزت غواړي او خپل اعمال وسيله آخرت جوړولو پر ځاى دنياوي مال او دنياوي نعمتونو وسيله ذريعه جوړوي هغه ته په اخرت كي خو به دهغه سزا وركول كيږي مگر په دغه دنيا كي هم پر هغه دا ابدي عذاب وي چي هغه د اطمينان او سكون څخه محروم كيږئ هر وخت په ډول ډول پريشانيو او مختلفو فكرو كي سرگردان وي او هغه ته هغه رزق خامخا رسيږي كوم چي د هغه په مقدر كي دى مگر د هغه د حصول لپاره هم هغه ته سخت محنت او مشقت كول وي.

### د اخروي مقصد لپاره ښه عمل

﴿۵۰۹۰﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللهِ بَيْنَا أَنَا فِيْ بَيْتِيْ فِيْ مُصَلاَّيَ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما وويل اې دالله رسوله ! زه په خپل كور كي پر

إِذْ دَخَلَ عَلَيَّ رَجُلٌ فَأَعْجَبَنِيْ الْحَالُ الَّتِيْ رَآنِيْ عَلَيْهَا فَقَالَ رَسُوْلُ اللهِ صَلَّى

مصلا (جانماز) وم چي ما ته يو سړى راغلى او ددې په ليدو سره زه خوشحاله سوم چي هغه سړي زه پر لمانځه كولو وليدم (نو زما دا خوښي ريا ده كه يا؟) رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ رَحِمَكَ اللهُ يَا أَبَا هُرَيْرَةَ لَكَ أَجْرَانِ أَجْرُ السِّرِّ وَأَجْرُ

الْعَلاَنِيَةِ. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

ابوهريره ! الله جل جلاله دي پر تا رحم وكړي تا ته به دوه برابر ثواب دركول كيږي يو په پټه توگه

دلمانځه کولو او دويم د لمانځه د اجر ځرګندولو .. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۱۲، رقم: ۲۳۸۴.

**تشريح**: په ځرګنده دا معلوميږي چي حضرت ابوهريره ﷺ په دې خبره خوشحاله سو چي هغه سړي هغه د لمانځه په حالت کي ولېدی نو د هغه سبب د حضرت ابوهريره ﷺ دا پاکه جذبه وه چي زما پر لمانځه کولو باندي په لېدو سره په هغه کي هم د هغه وخت د لمانځه تعلق زما د اتباع پيدا سي او هغه سړی به هم داسي لمونځ پېل کړي لکه ځرنګه چي يې زه کوم يا د خوشحالی سبب دا وو چي د هغه د لمانځه حالت د هغه سړي تعلق د نيکی د لاري د اظهار او اعلان باعث سو او هغه سړي ته د هغه وخت لمانځه ته د راغب کېدو ذريعه سوه او ځرنګه چي فرمايل سوي دي : (من سن سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها) ، کيدای سي هغه ته به دا توقع پيدا سوې وي چي کله چي دغه سړي لمونځ وکړي نو دهغه دلمانځه ثواب به ما ته هم تر لاسه سي مګر صحيح خبره داده چي دلته د حضرت ابوهريره ﷺ خوشحاله کېدل د هغه طبعي خواهش د تکميل په اړه وو کوم چي د شريعت په نظر کي هم غوره دي يعني د هر انسان دا طبعي خواهش وي چي څوک يې ويني نو په ښه حالت کي وي، هيڅوک دا نه خوښوي چي هغه په خراب حالت کي ولېدل سي او ځرګنده ده چي ددغه طبعي خواهش بنياد پر رياء او سمعه باندي نه وي بلکه د قلب سليم پر تقاضا او پاکی باندي وي نو دا خبره د ارشاد نبوي عين مطابق ده چي (من سرته حسنته و سائته سيئته فهو مؤمن) ،

او د الله تعالى ارشاد دی : (قل بفضل الله وبرحمته فبذلک فليفرحوا هو خير مما يجمعون) نو دمؤمن شان دادی چي هغه د نېکو اعمالو او احوالو د توفيق پر حاصلېدو باندي خوشحاله کيږي لکه ځرنګه چي يو غير مؤمن د ډېر زيات دنياوي مال په تر لاسه کېدو باندي خوشحاله کيږي ، يوه خبره دا هم کيدای سي چي د حضرت ابوهريره ﷺ خوشحاله کېدل د هغه احساس د شکر په توګه وي چي دهغه سړي په ذريعه د مسلمانانو په منځ کي په عبادت او توفيق سره متعارف سو او د يو لمونځ کونکي په توګه و پېژندل سو او په هغه خلکو کي د شمېرل کېدو موقع ورپه برخه سوه چي دلمانځه په ډول اهم عبادت او د اسلام تر ټولو لوی رکن قائموي او يو مسلمان په دې خبره شاهد سو ، دغه تفصيل د حديث ددغه الفاظو (اجر السر واجر العلانية) مفهوم ته زيات نژدې دی .

## د ریا کونکي دینداره په باره کي

﴿۵۰۹۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَخْرُجُ فِي آخِرِ الزَّمَانِ

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: په آخره زمانه کي به داسي

رِجَالٌ يَخْتِلُونَ الدُّنْيَا بِالدِّينِ يَلْبَسُونَ لِلنَّاسِ جُلُودَ الضَّأْنِ مِنَ اللِّينِ

خلک پیدا سي چي د دین په ذریعه به د دنیا طلب کوي خلکو ته د ښودلو لپاره به د پسونو د پوست جامې اغوندي یعني د هغوئ جامې به د کمبل په ډول غټې وي

أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السُّكَّرِ وَقُلُوبُهُمْ قُلُوبُ الذِّئَابِ يَقُولُ اللّٰهُ أَبِي يَغْتَرُّونَ

د هغوئ ژبې به د بورې څخه زیات خوږې او نرمې وي، مګر د هغوئ زړونه به د شرمښانو د زړونو په ډول وي، الله تعالی د هغوئ په اړه فرمایي ایا دا خلک ما ته دوکه راکوي

أَمْ عَلَيَّ يَجْتَرِئُونَ فَبِي حَلَفْتُ لَأَبْعَثَنَّ عَلَى أُولَئِكَ مِنْهُمْ فِتْنَةً تَدَعُ الْحَلِيمَ

فِيهِمْ حَيْرَانَ. رواه الترمذي.

یا زما په وخت ورکولو سره مغرور سوي دي زه په خپل قسم خوړلو سره وایم چي زه به پر هغوئ هم د هغوئ څخه بلا او فتنه مسلط کړم (یعني امیران) چي عقلمند او پوه بنده به د هغه د دفع کولو څخه عاجز او حیران پاته سي. ترمذي

**تخريج:** سنن الترمذي ۴\۵۲۲، رقم: ۲۴۰۴.

**د لغاتو حل:** يختلون: اى يطلبون (غواړي)

**تشريح:** يختلون: د خاء په جزم او د تاء په زېر سره، مطلب دادی چي هغه خلک به د هغه اعمالو په ذریعه چي د آخرت لپاره کيږي دنیا تر لاسه کوي یا دا چي هغه خلک به د دین په بدله کي دنیا ګټي، دین او اخروي مفاد او مصالح باندي به دنیاوي او مادي مفاد ته ترجیح ورکوي، صحیح معنی داده چي هغه خلک به د دین لباس اغوستلو سره نړیوالو ته دوکه ورکوي په دې توګه چي هغوئ د دنیا ګټلو لپاره خپل ظاهري اعمال او اخلاق داسي څرګندوي چي نړیوال به هغه ریښتونی عابد او زاهد ګڼي او د هغه سره به مینه کوي، او ساده مسلمانان به د هغوئ مریدان او معتقد کېدو سره د هغوئ مراد پوره کوي، دمثال په توګه هغوئ د لمانځه، روژې او نور

عباداتو پابند معلومیږي او د اورادو او ظائفو محفلونه به جوړوي ، خپل شاوخوا به د زهد او تقوا دېوالونه دروي ، غټې جامې به اغوندي، د دینداره کسانو شکل او صورت به اختیاروي او د هغوئ تحریر او تقریر به د دین او آخرت تلقین او تعلیم ، دمسلمانانو ګټه او همدردي څخه ډک معلومیږي مګر دغه ټول شیان به د صدق او اخلاص څخه خالي د ریاء او سمعه په توګه وي چي د هغه واحد مقصد به د مسلمانانو غولول او راجمع کول وي او یوازي خپل ذاتي ګټي تر لاسه کول به د دوئ مقصد وي .

نو د داسي خلکو ددغه ریاء کاره ژوند پر خلاف دا خبرداری بیان سوی دی چي دوئ دي هیڅکله په غرور کي نه وي چي د دوئ دغه دوکه به تل وي او دوئ به دخپل دغه ریاکارانه ژوند سزا په دغه دنیا کي نه خوري، الله ﷻ په قسم کولو سره فرمایي چي زه پر دغه خلکو باندي خامخا خوند وڅکم ، دوئ دي په یاد ولري چي زما غضب او قهر پر هغه خلکو باندي یقینا نازلیږي او زه به پر دوئ داسي امیران او حاکمان مسلط کړم او د دوئ به داسي خلک او ډلي ودروم چي د دوئ د ژوند کښتۍ په آفاتو او مصیبتو کي اخته کړي ، د دوئ د ریاکارانه ژوند پرده به وشکوم او دوئ به په داسي فتنو کي اخته کړم چي د خلاصون هیڅ لاره به نه وي او دوئ به خپل دغه شان او شوکت ، عزت او منصب ساتني لپاره څومره لاس او پښې وهي ، هغه قدرتي ذلت او رسوایي او د تباهۍ او بربادۍ خلقې به د دوئ چاپېره تنګي کړل سي او لوی لوی پوهان خلک به د هغه آفاتو او مصیبتو څخه د خلاصون ذریعه نسي تر لاسه کولای .

﴿۵۰۹۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ اللّٰهَ تبارك

د حضرت ابن عمر رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله پاک فرمایلي دي ما یو

تَعَالَى قَالَ لَقَدْ خَلَقْتُ خَلْقًا أَلْسِنَتُهُمْ أَحْلَى مِنَ السكر وَقُلُوبُهُمْ أَمَرُّ مِنَ

داسي مخلوق پیدا کړی دئ چي د هغوئ ژبي د بوري څخه زیاتي خوږي دي او د هغوئ زړونه د صبر (یو تریخ بوټی) څخه زیات ترخه دي ،

الصَّبْرِ فَبِي حَلَفْتُ لَأُتِيحَنَّهُمْ فِتْنَةً تَدَعُ الْحَلِيمَ فيهم حَيْرَان فَبِي يَغْتَرُّونَ أَمْ عَلَيَّ يَجْتَرِئُونَ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب.

په خپل قسم خوړلو سره وایم چي زه به پر هغوئ فتنه نازل کړم داسي فتنه چي عقلند او پوه سړی

به په هغه كي حيران وي ، ايا دا خلک ما ته دو كه راكوي يا پر ما جرئت او زړه ورتيا كوي . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۲۲، رقم: ۲۴۰۵.

**د لغاتو حل**: لاتيحنهم: الاناحة بمعنى التقدير، يقال اتاح الله لفلان كذا اى قدره . (مقدر كول)

## د ميانه روۍ فضيلت

﴿۵۰۹۳﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ لِكُلِّ شَيْءٍ شِرَّةً وَلِكُلِّ شِرَّةٍ فَتْرَةً فان صَاحِبُهَا سَدَّدَ وَقَارَبَ فَارْجُوهُ وَإِنْ أُشِيرَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ فَلَا تَعُدُّوهُ . رواه الترمذي

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : په هر شي كي حرص او نشاط (خوشحالي) دي او په هري زياتۍ كي سستي ده ، نو عمل كونكى كه ميانه روي څخه كار واخلي او ميانه روي ته نژدې وو نو د هغه د خلاصون تر لاسه كولو اميد سته او كه د هغه په لور په ګوتو سره اشاره وكړل سي نو تاسو هغه (صالح او عابد) مه شميرى (يعني افراط او تفريط مه كوى بلكه ميانه روي كوئ او د هر چا چي په نيت كي د ځان مشهورتيا وي هغه ناكاره بنده دى) . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۴۸، رقم: ۲۴۵۳.

**تشريح**: د شرة معنى د نشاط ، رغبت او په شوق كي اخته كېدل دي، دلته په حديث كي د دغه لفظ څخه مراد په يو شي كي افراط او په يو كار د حد څخه زيات بوختيا ده، او د فترة معنى د سستۍ او كمزورۍ ده، مطلب دادى چي كوم عابدان خلک په پېل كي په اطاعت او عبادت كي د حد څخه زيات بوخت وي او وروسته سست او كمزوري سي او د هغه طاعت وغيره كم سي دا خبره په اصولي انداز كي داسي بيانيږي چي يو انسان يو شى اختيارول غواړي او يو كار پېل كوي نو په پېل كي ډېر زيات بوختيا ښيي او دومره په شوق او ذوق بلكه په حرص كي اخته كيږي چي د خپل طاقت څخه زيات محنت او مشقت او د خپل طاقت او ارزښت څخه زيات بوختيا اختياروي او بيا د هغه نتيجه داسي چي وروسته ډېر ژر سست او كمزورى سي او د خپل قصد په لار كي د ستړيا ښكار سي ، كه يو عابد او زاهد په خپلو اعمالو او اشغالو كي ميانه روي اختيار كړي او د افراط او تفريط د لاري څخه په ساتني د اعتدال پر لار چي هغه ته صراط

مستقیم ویل کیږي روان سي نو دهغه په اړه امید کیدای سي چي د هغه خلکو څخه وي کوم چي په کامله توګه مراد تر لاسه کونکي دي مګر که چیري هغه د افراط پر لار روان سو او هغه په خپل عبادت ، طاعت او دیني اعمالو کي دې حد ته ورسیدی چي خپل دیني ژوند یې داسي وښودی چي هغه په عابد او زاهد سره مشهور سو او خلکو د هغه عبادت ، زهد او تقوا ته اشاره کول پیل کړل نو هغه ته توجه کول نه دي پکار او هغه نېک او صالح ګڼل نه دي پکار .

څرګنده دي وي چي د فارجوه او ولاتعدوه په ذریعه دغه دواړه ډوله خلک عافیت ته یو مبهم اشاره مقصد ده ځکه چي د یو سړي د اخروي انجام حقیقي علم یوازي الله تعالی ته کیدای سي او د هغه په اړه یو انسان اخروي فیصله نسي کولای نو د مذکوره الفاظو په ذریعه دا حدیث یوازي دا ښودل غواړي چي کوم څوک دمیانه روۍ لار اختیاروي او صحیح عمل کوي او د سیده لاري څخه نه آخوا کیږي نو په ظاهره دا امید درلودل پکار دي چي د هغه عاقبت ښه سو او هغه به خلاصون تر لاسه کړي او که هغه داسي ونه کړي بلکه د افراط او تفریط پر لاره ځي او د دوکه بازۍ طریقه خپلوي نو په ظاهر کي هغه کامیاب مه ګڼئ او د هغه شمېر په مخلصو دینداروکي مه کوئ، پاته سوه د عاقبت خبره نو هلته انجام په دواړو صورتو کي غیر واضح دی الله تعالی ښه پوهیږي چي خاتمه به په کوم حالت کي وي او آخرت کي به څه معامله وي .

حکم مستوري وهستي همه برخاتمه است کس ندانست که آخر بچه حالت ګزرد

که څه هم د عاقبت په اړه دا امید ساتل پکار دي چي د الله تعالی رحمت کوم چا ته د اطاعت او عبادت توفیق بخښلی دی او پر مستقیم لاره باندي روان کړی دی د هغه عاقبت بهٔ خامخا ښه وي او د هغه خاتمه به یقینا پر ایمان او اخلاص باندي وي دهغه د رحمت کامله دا دستور دی چي نېکان پر خرابه لاره ډېر کم روانوي ، اکثر داسي کیږي چي بدکاره هم په پای کي د نیکۍ خوا ته راوستل کیږي .

## ډېر شهرت خطر لري

﴿۵۰۹۴﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بِحَسْبِ امْرِيءٍ مِّنَ الشَّرِ أَنْ يُشَارَ إِلَيْهِ بِالْأَصَابِعِ فِيْ دِيْنٍ أَوْ دُنْيَا إِلاَّ مَنْ عَصِمَهُ اللهُ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د انسان د بدۍ لپاره دومره

بس ده چي په دين او دنيا كي هر لوري ته په ګوتو سره ده ته اشاره وكړل سي پر ته د هغه سړي څخه چي الله تعالی ددغه څخه خوندي كړی دی . بيهقي .

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۳۶۷، رقم: ۶۹۷۸.

**تشريح**: په دنياوي اعتبار سره مشهور كېدل خو ظاهر دي چي په آفتونو او فتنو كي د اخته كېدو او ايماني امن او سلامتيا د لاري څخه د لوېدو سبب دی مګر كه چيري يو سړی د خپل ژوند په اعتبار معروف وي نو هغه هم د خطري څخه خالي نه دی ځكه چي په دغه صورت كي د هغه د رياء كار كېدو ګمان كيدای سي او كيدای سي چي هغه ددغه شهرت په وجه د خپل قيادت او پيشوايي په طلب كي اخته سي او دا آرزو وكړي چي خلك هغه پېشوا او د خپل عقيدت او احترام مركز جوړ كړي او همدارنګه هغه د شيطان په لمسون او د نفس اماره د غلولو په وجه د هغه نفساني خواهشاتو په اتباع كي اخته كيدايسي چي د داسي موقعو په انتظار كي او سيږي نو داسي بندګان كم وي چي هغوئ ته عوامي شهرت او ناموري حاصله سوې وي او هغوئ ددې په نيتجه كي د پيدا سوو خرابيو څخه خوندي سي مګر هغه بندګان خاص دي چي الله تعالی هغوئ خپل مقرب او محبوب جوړوي او هغوئ د صديقيت پر مقام فائزوي هغوئ د ټول عالم شهرت سربېره ددغه خرابيو څخه خوندي وي او دهغه وجه دا وي چي هغوئ پر دغه لوړه مرتبه باندي هغه وخت فائز كيږي كله چي دهغوئ د ظاهر او باطن څخه ټولي خرابۍ ختمي سوي وي او دهغوئ نفس په پوره توګه پاك سوی وي لكه څرنګه چي مشائخ وايي: (آخرما يخرج من راس الصديقين حب الجاه) . نو د انسان غوره والی په دې كي دی او د ايمان او كردار سلامتيا او ساتني په هغه صورت كي زياته ده كله چي هغه د يوازيوالي ژوند ته د شهرت پر ژوند ترجيح وركړي مګر دا چي الله تعالی يو څوك خوندي وساتي ، د حديث ددغه جملې څخه داخبره څرګنديږي چي د شهرت تاوان او د خرابۍ باعث كېدل دهغه لپاره دي چي د هغه پر ظاهر او باطن باندي د عزت ، اقتدار او شهرت خواهش وي صحيح بندګان ددغه خواهش څخه خوندي وي او دخپل ظاهر او باطن په اعتبار مخلص او پاك وي هغوئ ددې خبري څخه مستثنی وي ځكه چي عوامي مقبوليت او شهرت بذات خود خراب شی نه دی بلكه د الله تعالی هغه نعمتونه دي چي خپل هغه پاكو بندګانو ته يې وركوي كوم چي ددغه شيانو اهل او مستحق وي او د هغوئ په اړه هغه شيان د فتنې او خرابۍ باعث نه جوړيږي لكه څرنګه چي الله ﷻ په قرآن كريم كي د خپلو بندګانو خاص نسبت داسي فرمايلی دی چي : (واجعلنا للمتقين اماما) .

نقل سوي دي چي د حضرت حسن بصري رحمة الله عليه د بې پايه شهرت او مقبوليت په لېدو سره يو سړي هغه ته وويل چي ته خو په خلكو كي دومره مشهور سوی يې او حال دا دی چي رسول الله ﷺ فرمايلي دي چي (بحسب امرئ من الشر ...الخ)، حضرت حسن بصري رحمة الله عليه جواب ورکړ چي ددغه ارشاد تعلق د هغه چا سره دی چي د دين په اعتبار بدعتي او د دنيا په اعتبار فاسق وي يعني کوم څوک چي په دنيا کي شتمني او مال لري او د هغه شمتني او دولت په وجه مشهور او معروف وي مګر په فسق او فجور کي اخته نه وي او د دين په اعتبار د کتاب او سنت پيروي کوي نو هغه سړی په دغه حکم کي داخل نه دی چي د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد څخه څرګندېږي.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د ريا د عمل بدوالی

﴿۵۰۹۵﴾: عَنْ أَبِي تَمِيمَةَ قَالَ شَهِدْتُ صَفْوَانَ وَأَصْحَابَهُ وَجُنْدَبٌ يُوصِيهِمْ

د حضرت ابو تميمه رضي الله عنه څخه روايت دئ چي زه صفوان او د هغه ملګرو ته حاضر سوم دغه وخت جندب هغوئ ته وصيت کوی،

فَقَالُوا هَلْ سَمِعْتَ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ شَيْئًا قَالَ سمعت

دوئ وويل: ايا تا د رسول الله ﷺ څخه يو خبره اوريدلې ده، جندب رضي الله عنه وويل: هو ما د رسول

رسول الله صلى الله عليه وسلم يَقُولُ مَنْ سَمَّعَ سَمَّعَ اللَّهُ بِهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ

الله ﷺ څخه دا اوريدلي دي چي څوک واوروي (يعني نيک اعمال د شهرت ورکولو لپاره) نو الله تعالى به يې د قيامت په ورځ رسوا کړي

وَمَنْ شاق شق اللَّهُ عَلَيْهِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ قَالُوا أَوْصِنَا فَقَالَ إِنَّ أَوَّلَ مَا يُنْتِنُ

او څوک چي پر خپل ځان مشقت واچوي نو د قيامت په ورځ به الله تعالى هغه په تکليف كي واچوي، خلکو ورته وويل موږ ته نصيحت وکړه هغه ورته وويل: تر ټولو لومړی شی چي

مِنَ الْإِنْسَانِ بَطْنُهُ فَمَنِ اسْتَطَاعَ أَنْ لَا يَأْكُلَ إِلَّا طَيِّبًا فَلْيَفْعَلْ وَمَنِ اسْتَطَاعَ

انسان مردار (چمل) کوي او خرابوي يې د هغه نس دئ نو څوک چي قدرت لري چي حلال مال وکړي هغه دي داسي وکړي او څوک چي ددې توان لري چي

أَنْ لَا يحول بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجَنَّةِ ملْءِ كَفّ مِنْ دَمٍ أَهْرَاقَهُ فَلْيَفْعَلْ . رواه البخاري

د هغه او جنت په منځ کي پرده نه وي نو په ناحقه دي يو ورغوی قدر وينه هم نه تويوي . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۲۸، رقم: ۷۱۵۲.

**تشريح**: د حديث د آخري خبرو مطلب دادی چي ناحقه وينه تويول يو داسي شی دی چي د هغه زياتېدل خو څه چي د يو ځاځکي په اندازه وينه هم وي نو د جنت څخه منع کونکی دی، نو دا خبره د عقل او پوهي څخه ليري ده چي داسي خراب او بد فعل دي وکړل سي چي نه يوازي د انسانيت خلاف وي بلکه په جنت کي د داخلېدو په دول عظيم او لوی سعادت څخه محروم کونکی هم وي.

په ظاهره دا معلومېږي چي د حضرت صفوان څخه مراد صفوان ابن سليم زهري دی چي دمديني منورې يو جليل القدر تابعي وو او دهغه شخصيت، علم او معرفت ، عمل ، زهد او تقوا يوه مثالي نمونه وه ، ويل کيږي چي هغه تر ځلوېښتو کالو پوري خپل اړخ پر مځکه نوو لګولی او د عبادت يې دا حال وو چي د سجدو د زياتوالي په وجه د هغه په تندي کي سوری جوړ سوی وو د هغه په حالاتو کي دا ليکلي دي چي هغه د اميرانو او پاچاهانو څخه هيڅ انعام او اکرام نه قبلوی ، غرض دا چي د هغه ډېر زيات فضائل او مناقب بيانيږي.

## ريا د شرک برابره ده

﴿۵۰۹۶﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ أَنَّهُ خَرَجَ يَوْمًا إِلَى مَسْجِدِ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى

د حضرت عمر بن خطاب ﷺ څخه روايت دئ چي يوه ورځ هغه مسجد نبوي ته ورغلئ

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَوَجَدَ مُعَاذَ بْنَ جَبَلٍ قَاعِدًا عِنْدَ قَبْرِ النَّبِيِّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ

نو معاذ بن جبل يې د نبي کريم ﷺ د قبر سره ناست وليدئ چي

وَسَلَّمَ يَبْكِي فَقَالَ مَا يُبْكِيكَ قَالَ يُبْكِينِي شَيْءٌ سَمِعْتُهُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ صَلَّى

دغه وخت يې ژړل، حضرت عمر ﷺ پوښتنه وکړه اې معاذ! په تا څه سوي دي ولي ژاړې؟ معاذ ورته وويل : ما هغه خبره ژړوي چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلې ده

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ يَسِيرَ

ما د رسول اللهﷺ څخه اورېدلي دي چي فرمايل يې: لږ

الرِّيَاءِ شِرْكٌ وَ مَنْ عَادَى لِلَّهِ وَلِيًّا فَقَدْ بَارَزَ اللَّهَ بِالْمُحَارَبَةِ إِنَّ اللَّهَ يُحِبُّ

ريا (هم) شرک دئ او څوک چي د الله ﷻ د دوست سره دښمني ساتي نو هغه ګويا د الله ﷻ سره جنګ او مقابله وکړه، الله تعالی

الْأَبْرَارَ الْأَتْقِيَاءَ الْأَخْفِيَاءَ الَّذِينَ إِذَا غَابُوا لَمْ يتفقدوا وَإِنْ حَضَرُوا لَمْ

نيک، پرهيزګاره او مخفي حال (يعني پټ) خلک خوښوي چي کله هغوئ د نظر څخه ورک سي نو د هغوئ پوښتنه نه کيږي او کله چي موجود وي نو هغوئ نه بلل کيږي (او که و بلل سي) نو د

يُدْعَوْا وَلَمْ يقربوا قُلُوبُهُمْ مَصَابِيحُ الْهُدَى يَخْرُجُونَ مِنْ كُلِّ غَبْرَاءَ مُظْلِمَةٍ. رواه ابن ماجة والبيهقي في شعب الايمان.

ځان سره نژدې نه کښېنول کيږي د دغه خلکو زړونه د هدايت ډيوې دي او داسي خلک د هر تاريک ځای څخه څرګنديږي (يعني د دغه خلکو د استوګني ځايونه وران وي او د څراغ لګولو طاقت هم نه لري)، ابن ماجه او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۳۲۰، رقم: ۳۹۸۹، والبيهقي في شعب الايمان ۵\۳۲۸، رقم: ٦٨١٢.

**تشريح**: لږ رياء هم شرک دی، مطلب دادی که چيري رياء د لږ درجې وي نو هغه هم يو لوی شرک دی يا دا چي لږ رياء د شرک د ډولو څخه يو ډول دی، او دا شی په انساني فطرت کي داسي په پټه توګه ځای سوی دی چي ښه خلک او د پاخه ايمان والا هم په خپلو اعمالو کي د هغه په دخل نه پوهيږي او ډېر کم خلک د دې څخه محفوظ وي نو حضرت معاذ ﷜ د خپلي ژړا يو سبب خو دا وښودی چي پر ما ښېره خپره ده چي په نامعلومه توګه زما پر اعمالو باندي هم د دغه بدی سايه نه وي، دوهم سبب هغه اولياء الله ته ايذاء رسول وښودل يعني هغه دا بيان وکړ چي اکثر اولياء الله د خپل اصلي حيثيت او حقيقت په اعتبار د عام نظرو څخه پټ وي او خپل په ظاهري حالت کي هغوئ د يو ډېري معمولي درجې مسلمان معلوميږي د هغوئ په لېدو سره دا اندازه لګول مشکل وي چي هغوئ پر يو لوړ مقام باندي فائز دي او د الله ﷻ په نظر کي د هغوئ

ډومره لوی حیثیت دی لکه څرنګه چي په یو حدیث قدسي کي الله ﷻ فرمايي: اولیاي تحت فناي لا یعرفهم غیرهم.

څرګنده ده چي هیڅ انسان ددې څخه خالي نه دی چي هغه د یو مسلمان وروړ سره کله هم داسي بدزباني ونه کړي چي دګناه باعث وي نو حضرت معاذ ؓ و ښودل چي زه ددې بیري څخه ژاړم چي داسي نه ما له یو مسلمان وروړ سره قولا یا فعلا یوه داسي رویه اختیار کړې وي چي د هغه لپاره د اذیت ذریعه جوړه سوې وي او د هغه په وجه ما د الله ﷻ ناراضي اخیستې وي.

د ښکانو څخه مراد هغه خلک دي چي نیکي کوي او د نیکۍ مطلب د الله ﷻ عبادت کول او د هغه د مخلوق سره ښه چلن او احسان کول دي لکه څرنګه چي عارفانو ویلي دي چي د دین دار او مدار الهي احکام ترټولو د احترام وړ ګڼل او د الله ﷻ د مخلوق سره په شفقت او مینه ژوند کول.

د پرهېزګارو څخه مراد هغه خلک دي چي د هر ډول شرک څخه ځان ساتي که هغه شرک جلي وي یا شرک خفي وي، او هر هغه شي څخه پرهیز کوي چي د الله ﷻ او د هغه د رسول له خوا منع او حرام ګرځول سوی دی یا د شریعت په نظر کي ناخوښه وي.

د مخفي خلکو څخه د الله ﷻ هغه پاک بندګان مراد دي چي هغوئ په ظاهري وجه او د هستوګني په اعتبار په ډېر بد حالت کي وي او د معاشرې خلک، دنیاداره خلک هغوئ ډېر کمزوري او سپک ګڼي مګر دخپل کردار او اخلاق په اعتبار پر ډېرو لوړو درجو باندي فائز وي یا هغه اهل الله مراد دي چي د دنیادارو د نظر څخه پټ وي او دهغوئ په منځ کي هستوګنه نه لري.

ان الله ...الخ: دغه جمله استیناف ده، ددغه جملې په ذریعه د ولي حقیقت بیانول مقصد دی مخکي خو د نیکۍ، پرهیزګارۍ او اخفاء د صفاتو په ذریعه د اولیاء الله حقیقت بیان کړل سو او بیا د دنیاوالو د تعلق سره د هغه اولیاء درې احوال بیان کړل سو چي کله هغوئ یو خوا ته ولاړ سي او په سفر کي وي نو د یو تقریب او مجلس لپاره د هغوئ پلټنه نه کیږي او هیڅوک د هغوئ انتظار نه کوي، کله چي هغوئ موجود وي نو هغه مجلس او تقریب ته نه بلل کیږي او که هغوئ یو مجلس ته ورسي نو هغوئ ته اهل مجلس نه بلکه خپل نژدې یې هم نه کښېنوي او تر شا یو ځای لیري یې کښېنوي، دا ددغه روایت تفصیل دی چي په هغه کي فرمایل سوي دي چي: (رب اشعث اغیر لا یعبابه لو اقسم علی الله لابره).

یعني ځیني خلک داسي هم وي چي په ظاهره پریشانه او په ګرد لړلي وي او هغوئ ته هیڅوک حیثیت نسي ورکولای مګر د الله تعالی په نزد د هغوئ مرتبه دومره لوړه وي که هغوئ پر الله تعالی باندي په اعتماد کولو سره قسم وکړي نو یقینا الله تعالی دهغوئ قسم رېښتیا او

پوره کوي.

د هغوئ زړونه د هدایت مشعلونه وي یعني هغه پاک نفس خلک د هدایت د لاري مشعل وي چي هغوئ د رهبرۍ او پیشوایي اهلیت لري او د هغوئ اتباع کول د هدایت د لاري ضمانت دی نو هغوئ ددې خبري پوره وړ دي چي دهغوئ لحاظ دي وکړل سي او هغوئ ددې وړ دي چي د هغوئ څخه د هدایت د لاري رڼا تر لاسه کړل سي.

تیاره د تاریکي مځکي څخه راوځي، ددغه جملې په ذریعه ددغه خلکو د مفلسۍ ژوند او د دوئ خراب حالت ته اشاره سوې ده یعني دغه خلک دومره مفلس وي چي په خپل کور کي د څراغ لګولو لپاره هم هیڅ نه لري.

په دغه حدیث کي دا خبرداری دی که چیري یو عالم، صالح او متقي سړی په ظاهري حالت سره خراب وي نو دهغه ظاهري خراب حالت څخه دو که خوړل نه دي پکار او دهغوئ تعظیم او اداب واحترام ترک کولو کي غلطي نه دی پکار ځکه چي د یو چا د ظاهر په لېدو سره څه اندازه لګېدای سي چي دهغه باطن صحیح دی که یا،

خاکساران جهان را بحقارت منګر تو چه داني که درین ګرد سواري باشد

دغه حدیث دې ته هم اشاره کوي چي محض فقر، مفلسي او دنیاوي بې حیثیتي فضیلت نه دی تر څو چي د تقوا او پرهیزګارۍ او د باطن نورانیت تر لاسه نه وي، په پای کي دا خبره ښودل ضروري دي چي ولي په اصل کي هغه سړي ته وایي چي متقي او پرهیزګار وي لکه څرنګه چي الله ﷻ فرمایلي دي: (ان اولیائه الا المتقون) یعني د الله ﷻ ولي هغه خلک وي چي متقي او پرهیزګار وي، په شرح عقائد نسفي کي لیکلي دي چي ولي هغه سړی دی چي د الله تعالی د ذات او صفاتو عرفان لري، د طاعت او عبادت پابند وي، دګناهو څخه پرهېز کوي او د نفساني خوندونو او خواهشاتو څخه ځان ساتي.

## صدق او اخلاص

﴿۵۰۹۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّ الْعَبْدَ إِذَا صَلَّى فِي الْعَلَانِيَةِ فَأَحْسَنَ وَصَلَّى فِي السِّرِّ فَأَحْسَنَ قَالَ اللّٰهُ عَزَّ وَجَلَّ هَذَا عَبْدِي حَقًّا. رواه ابن ماجة.

د حضرت ابو هریرة ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: هر کله چي بنده په ښکاره

لمونځ کوي نو په ښه ډول يې کوي او کله چي يې پټ کوي نو هم يې په ښه ډول ادا کوي نو الله تعالی فرمايي زما دا بنده ريښتونی دئ. ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۴۰۵، رقم: ۴۲۰۰.

## د رياکار په باره کي پيشگوئي

﴿۵۰۹۸﴾: وَعَنْ مُعَاذِبْنِ جَبَلٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَكُونُ فِي

د حضرت معاذ بن جبل ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

آخِرِ الزَّمَانِ أَقْوَامٌ إِخْوَانُ الْعَلَانِيَةِ أَعْدَاءُ السَّرِيرَةِ فَقِيلَ يَا رَسُولَ اللّٰهِ

په آخره زمانه کي به څو قومونه داسي وي چي په ظاهره به دوستان وي مگر په باطن کي به دښمنان وي، پوښتنه وسول اې دالله رسوله !

وَكَيْفَ يَكُونُ ذَلِكَ قَالَ ذَلِكَ بِرَغْبَةِ بَعْضِهِمْ إِلَى بَعْضٍ وَرَهْبَةِ بَعْضِهِمْ من بَعْضٍ. رواه احمد.

دا به څنگه وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : دا به داسي وي چي په هغوئ کي به ځيني د ځينو سره غرض او مقصد ساتي او ځيني د ځينو څخه به په بيره کي وي. احمد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۳۵.

**تشريح**: مطلب دادی چي په آخره زمانه کي به په مسلمانانو کي هم داسي خلک کم نه وي چي د خپل دنياوي مقصد او ذاتي مفاد د تکميل لپاره به منافقت او رياء کاري اختيار وي او د صدق او اخلاص څخه به محروم وي نه بهٔ د هغوئ پر دوستي باور وي او نه به د هغوئ پر دښمني، د چا سره چي د هغه تعلق وي هغه ته به رغبت او التفات لري او د هغه په حق کي به د دوستي اظهار کوي او که يو غرض او گټه په منځ کي نه وي نو بېگاره به سي بلکه د غرض او مقصد نه تر لاسه کېدو په صورت کي به پر دښمني او عداوت باندي ملا ترلی سي.

ددې څخه ځرگنده سوه چي د شريعت دا حکم دی چي دمسلمانانو دوستي او دښمني يوازې د الله تعالی د رضا لپاره وي او ذکر سوي خلک ددغه مرتبې څخه تېر سوي دي ځکه چي د هغوئ دوستي او دښمني تعلق د الله تعالی د رضا پر ځای د ذاتي مقاصدو او فاسده اغراضو

سره وي حال دا چي هغوئ د خپل مقاصدو سره سم يو فرد يا ډلي ته رغبت او توجه کوي نو د هغوئ په اړه به دوستي او الفت ظاهروي او کله چي په يو وجه هغه فرد يا ډله ناخوښه کړي نو د هغوئ خلاف بغض او عداوت ظاهروي ، نه به دهغوئ د دوستۍ اعتبار وي او نه د دښمنۍ، ځکه چي د هغوي دوستي او عداوت دواړو بنياد د صدق او اخلاق پر ځای د ذاتي مقاصدو، خواهشاتو، ګټي او تاوان باندي وي .

## د ريا لپاره لمونځ او روژه شرک دئ

﴿۵۰۹۹﴾: وَعَنْ شَدَّادِ بْنِ اَوْسٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ مَنْ صَلّٰى يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ وَمَنْ صَامَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ وَمَنْ تَصَدَّقَ يُرَائِي فَقَدْ أَشْرَكَ. رواه احمد.

د حضرت شداد بن اوس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چا چي د ښوونې (ريا) لپاره لمونځ وکړ نو هغه شرک وکړ او چا چي د ريا لپاره روژه ونيول نو هغه شرک وکړ او چا چي د ريا لپاره خيرات وکړ هغه شرک وکړ، احمد .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۱۲۶.

**تشريح**: خلاصه دا چي کوم کار د رياء لپاره وکړل سي هغه د شرک برابر دی که څه هم شرک خفي ورته وايي ځکه چي د شرک جلي اطلاق علی الاعلان او په ډاګه پر بت پرستۍ باندي وي، ياته سوه دا خبره چي رياء کاري په کوم اعتبار سره شرک خفي وي، نو پوه سئ چي رياء کونکی کوم کار کوي هغه په صدق او اخلاص سره د الله لپاره نه کوي بلکه د غير الله لپاره يې کوي او کله چي هغه يو نيک عمل د غير الله لپاره وکړي نو ګويا هغه بت پرستي وکړه که څه هم هغه څرګنده بت پرستي نه وي مګر په پټه توګه د بت پرستۍ برابر ده، لکه څرنګه چي ويل سوي دي: کل ما صدک عن الله فهو صنمک .

ملا علي قاري رحمه الله وايي: دا حديث دې ته اشاره کوي چي د رياء دخل په روژه کي هم کيدای سي ، په دې اعتبار دغه حديث د هغه حضرات خلاف يو دليل دی چي وايي چي د رياء تعلق د روژې سره نسي کيدای او ددې سبب دا بيانوي چي د روژې دار او مدار پر نيت دی د کوم چا نيت چي صحيح نه وي د هه خوراک او څښاک څخه د منع کېدو هيڅ اعتبار نسته او ظاهره ده چي په نيت کي رياء يعني د ښوونې عمل دخل څرنګه کيدای سي مګر زموږ وينا داده

چي په دې کي شک نسته چي په حقيقي معنی کي رياء په روژه کي متصور کيدای نسي مگر دا هم يو حقيقت دی چي ډېره واره رياء د اشتراک په توگه وي يعني دا هم کيږي چي يو سړی د يو نيک کار او عبادت قصد او اراده ددې لپاره وکړي چي د الله تعالی رضا او خوښي تر لاسه کړي مگرد هغه سره د هغه په نيت کي دا خبره هم شامله وي چي د هغه نيک کار او عبادت په ذريعه هغه ته شهرت حاصل سي يا فلانی مقصد پوره سي چي د هغه تعلق د الله تعالی د رضا او خوښي سره نه وي او دا بېله خبره ده چي دواړه مقصدونه برابر وي يا په هغو کي يو غالب وي لکه څرنگه چي د باب په پيل کي په تفصيل سره بيان سوی دی ، څرگنده سوه چي په روژه کي هم د رياء دخل کيدای سي .

﴿۵۱۰۰﴾: وَعَنْهُ أَنَّهُ بَكَى فَقِيلَ لَهُ مَا يُبْكِيكَ قَالَ شَيْئٌ سَمِعْتُ مِنْ رَسُولِ اللَّهِ

د حضرت شداد بن اوس ﷛ څخه روايت دئ چي هغه يوه ورځ زيات وژړل ، پوښتنه ځيني وسول چي ولې ژاړې ؟ هغه وويل

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فَذَكَرْتُهُ فَأَبْكَانِي سَمِعْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

ما ته پر دې خبره ژړا راغلل چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ أَتَخَوَّفُ عَلَى أُمَّتِي الشِّرْكَ وَالشَّهْوَةَ الْخَفِيَّةَ قَالَ قُلْتُ يَا

زه د خپل امت د شرک او مخفي شهواتو څخه ډيريږم ، ما وويل: اې د الله رسوله !

رَسُولَ اللَّهِ أَتُشْرِكُ أُمَّتُكَ مِنْ بَعْدِكَ قَالَ نَعَمْ أَمَا إِنَّهُمْ لَا يَعْبُدُونَ شَمْسًا

ايا ستاسو څخه وروسته به ستاسو امت شرک کوي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، خبردار! زما امت به د لمر عبادت نه کوي ،

وَلَا قَمَرًا وَلَا حَجَرًا وَلَا وَثَنًا وَلَكِنْ يُرَاءُونَ بِأَعْمَالِهِمْ وَالشَّهْوَةُ الْخَفِيَّةُ أَنْ

د سپوږمۍ عبادت به نه کوي ، د ډبرو (بتانو) عبادت به نه کوي او نه به د بتانو مخته سجده کوي مگر خپل نيک عملونه به خلکو ته ښيي ، او مخفي شهوت دا دی چي

يُصْبِحَ أَحَدُهُمْ صَائِمًا فَتَعْرِضُ لَهُ شَهْوَةٌ مِنْ شَهَوَاتِهِ فَيَتْرُكُ صَوْمَهُ . رواه

احمد والبيهقي في شعب الايمان.

په تاسو کي به څوک سهار کي روژه نيونکی ولاړېږي بيا به د نفسي خواهشاتو څخه يو خواهش ورته وړاندي سي ، او هغه به روژه ماته کړي . احمد او بيهقي

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۵\۳۲۳، رقم: ۶۸۳۰.

**تشريح**: ذکر سوي خواهش ته پټ خواهش په دې اعتبار ويل سوي دي چي هغه د روژې د نيت پر وخت د هغه په باطن کي پټ وو يعني هغه سړي چي د روژې نيت کړی وو هغه وخت هغه په خپل نفس کي دا خواهش پټ کړی وو که چيري نفساني تقاضا راغلل نو روژه به ماتوم.

څرګنده دي وي چي طيبي خو د خواهش مراد خوراک او څښناک ګرځولی دی لکه څرنګه چي بيان سول مګر صحيح خبره داده چي د پټ خواهش څخه مراد په نفساني خواهشاتو کي په خاصه توګه په نادرالوجود خواهش دی چي هر وخت نه پيدا کيږي بلکه پر يو خاص موقع باندي او په يو خاص وخت کي پيدا کيږئ او کله چي هغه خواهش را پورته سي نو هغه وخت د هغه د پوره کولو خواهش په طبعي توګه داسي غالب سي چي د هغه په لار کي ديو شرعي حکم د مخالفت خوف هم بنديز نه جوړېږي لکه څرنګه چي د روژې مثال بيان سوی دی چي الله ﷻ فرمايلي دي : (ولا تبطلوا اعمالکم)، مګر د دغه خواهش د تکميل لپاره روژه ماتونکی دا لحاظ نه ساتي چي زما د دغه فعل په وجه د الله ﷻ د حکم نافرماني کيږي ، څرګنده دي وي چي د عبادت او طاعت له دوله کوم کار پيل کيږي هغه لازميږي او د هغه پوره کول شرعا واجبيږي.

## رياکاري د دجال تر فتني خطرناکه ده

﴿۵۱۰۱﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ خَرَجَ عَلَيْنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي موږ د مسيح دجال ذکر کوئ چي رسول الله ﷺ

وَنَحْنُ نَتَذَاكَرُ الْمَسِيحَ الدَّجَّالَ فَقَالَ أَلَا أُخْبِرُكُمْ بِمَا هُوَ أَخْوَفُ عَلَيْكُمْ

تشريف راوړ او وه يې فرمايل : ايا زه تاسو ته يوه بله داسي خبره ونه ښيم چي زما په نزد ستاسو

عِنْدِي مِنَ الْمَسِيحِ الدَّجَّالِ فَقُلْنَا بَلَى يا رسول الله قَالَ الشِّرْكُ الْخَفِيُّ أَنْ

لپاره د مسيح دجال څخه زيات خطرناکه ده ، موږ وويل: هو، اې د الله رسوله! ، رسول الله ﷺ وفرمايل : شرک خفی ،

يَقُومَ الرَّجُلُ فيُصَلِّي فَيَزِيْدُ صَلَاتَهُ لِمَا يَرَى مِنْ نَظَرِ رَجُلٍ. رواه ابن ماجة

چي بنده به د لمانځه لپاره دريږي او لمونځ كوي او په لمانځه كي زياتي كوي (يعني اوږد لمونځ كوي) يوازي ددې لپاره چي يو څوک يې پر لمانځه كولو وويني . ابن ماجه

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\۱۴۰۶، رقم: ۴۲۰۴.

**تشريح**: د رياء خرابي ته د دجال د فتني څخه زيات خوفناک او د خطرې څخه ډک ځکه فرمايل سوي دي چي د دجال د دراغجن كېدو او دهغه د فتنو ظاهرولو نښي او علامې ډيري دي او بالكل څرګند دي چي د هر صاحب صدق او ايمان هغه څخه د خوندي كېدو لپاره كافي دي .

حال دا چي د رياء معامله ډېره پټه ده او د هغه خرابي او فتنې په هر عمل كي هر وخت نسي معلوميداى ، همدا وجه ده چي ښه ښه خلک هم په دغه جال كي لويږي .

## رياكاري شرک اصغر دی

﴿۵۱۰۲﴾: وَعَنْ مَحْمُودِ بْنِ لَبِيدٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ أَخْوَفَ

د محمود بن لبيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د كوم شي څخه چي زه

مَا أَخَافُ عَلَيْكُمُ الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ قَالُوا يارسول الله وَمَا الشِّرْكُ الْأَصْغَرُ يَا

ستاسو لپاره ډير بيريږم هغه شرک اصغر (كوچنى شرک) دئ ، صحابه كرامو وويل: اې دالله

رَسُولَ اللّٰهِ قَالَ الرِّيَاءُ . رواه احمد و زاد البيهقي في شعب الايمان يقول

رسوله ! شرک اصغر څه شی دئ ؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : ريا . احمد ، او د بيهقي په روايت كي دا الفاظ دي چي د قيامت په ورځ

يَقُولُ اللّٰهُ لَهُمْ يَوْمَ يُجَازِي الْعِبَادَ بِأَعْمَالِهِمْ اذْهَبُوا إِلَى الَّذِينَ كُنْتُمْ تُرَاءُونَ فِي الدُّنْيَا فَانْظُرُوا هَلْ تَجِدُونَ عِنْدَهُمْ جَزَاءً وَّخَيْرًا.

الله تعالى رياكارو ته وفرمايي تاسو هغه خلكو ته ورسئ چي هغوئ ته به په دنيا كي تاسو د خپلو اعمالو ښودنه كول او وګورئ چي د هغوئ څخه تاسو ته يو جزا يا خير رسيږي (كه نه) .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۴۲۸، والبيهقي في شعب الايمان ۵\۳۳۳، رقم: ۶۸۳۱.

﴿۵۱۰۳﴾: وَعَنْ أَبِيْ سَعِيْدِ الْخُدْرِيِّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَوْ أَنَّ رَجُلاً عَمِلَ عَمَلاً فِيْ صَخْرَةٍ لاَّ بَابَ لَهَا وَلاَ كُوَّةَ خَرَجَ عَمَلُهُ إِلَى النَّاسِ كَائِنًا مَّا كَانَ.

د حضرت ابو سعید خدري ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: که یو څوک په داسي ډبري کي (کښیني) یو عمل وکړي چي په هغه کي نه دروازه وي او نه یو کلکین د هغه د عمل به خلکو ته خبر ورسیږي که څه هم هغه عمل د هر ډول وي. بیهقي

**تخریج**: البیهقي في الشعب ۵\۳۵۹، رقم: ۶۹۴۰.

**تشریح**: صخره، په اصل کي لوی ډبري ته وایي مګر دلته ددغه لفظ څخه غار مراد دی او کیدای سي چي ددغه لفظ څخه ددغه اصل معنی یعني لویه ډبره مراد وي، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي په ذکر سوي مفهوم کي دغه لفظ د مبالغې په توګه دی چي مفهوم یې دادی که چیري دا فرض کړل سي چي یو سړی په ډبره کي دننه هم ننوځي او یو نیک کار کوي چي په هغه کي نه دروازه وي او نه کلکین وي او همدارنګه هغه ډبري ته په داخلېدو او راوتلو سره یې څوک لیدلای سي چي دننه کوم څوک دی نو په دغه صورت کي هم دهغه سړي هغه نېک کار په خلکو کي مشهور کیږي.

ګوّة، یا ګوّة هغه سوري ته وایي چي په دېوال او بام کي وي، ځینو حضراتو ددغه لفظ دا تفصیل بیان کړی دی که چیري هغه سوري دواړو خواوو ته خلاص وي نو هغه ته به ګوه ویل کیږي او که دواړه خواوو ته خلاص نه وي ګوه به ورته ویل کیږي او دا هم ویل سوي دي که چیري دغه لفظ د تاء په لفظ سره وي یعني کوة نو دهغه معنی به د هغه سوري وي چي تنګ او کوچنی وي او که د تاء بغیر یعني کو وي نو په دغه صورت کي یې معنی د هغه سوري ده چي پراخ او لوی وي، په دغه روایت کي دغه لفظ د تاء سره راغلی دی ځکه نو دلته یې معنی د هغه سوري ده چي کوچنی او دواړو خواوو ته خلاص وي، او د حدیث د مفهوم په اعتبار دغه معنی مناسب هم ده.

په هر حال د حدیث خلاصه داده چي نېک کار هر څومره پټ او یوازي وکړل سي او ددې هر څومره هڅه وکړل سي چي هغه نېک کار د خلکو په علم کي رانسي مګر بیا هم هغه په خلکو کي مشهور کیږي نو دالله تعالی مصلحت که خپله ددې تقاضا کوي چي د بندګانو نېک عمل چي

په صدق او اخلاص سره صادرېږي پر خلکو باندي ښکاره سي چي يو بل ته د نيکي لاري اختيارولو ترغيب حاصل سي نو بيا ددې څخه ضرورت دی چي يو سړی د خپل نېک عمل ظاهرولو لپاره د رياء څخه کار واخلي او د هغه د قبوليت او ثواب څخه محروم سي.

او يا د حديث دا معنی ده چي مخلص بنده بايد هغه نېک کارونه پټ کړي او په اخلاص تر لاسه کولو کي زيات احتياط او هڅه وکړي ځکه چي د بندګانو نيک عمل داسي ځايو څخه هم ظاهرېږي چي د هغه ځای څخه د ظاهرېدو دوئ خبر نه وي او د هغه په ښکار کېدو کي د هغه قصد او اختيار ته دخل هم نه وي.

## الله ﷻ هر عمل ښکاره کوي

﴿۵۱۰۴﴾: وَعَنْ عُثْمَانَ بْنِ عَفَّانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ كَانَتْ لَهُ سَرِيْرَةٌ صَالِحَةٌ أَوْ سَيِّئَةٌ أَظْهَرَ اللّٰهُ مِنْهَا رِدَاءً يُعْرَفُ بِهِ.

د حضرت عثمان بن عفان رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د چا چي يو ښه يا بد عادت پټ وي نو الله تعالى هغه عادت په يوې نښي ښرګندوي چي په هغه نښي سره خلک د هغه شناخت کوي. بيهقي

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۵\۳۵۹، رقم: ۶۹۴۲.

## د نفاق بدي ډېره خطرناکه ده

﴿۵۱۰۵﴾: وَعَنْ عُمَرَ بْنِ الْخَطَّابِ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّمَا أَخَافُ عَلٰى هٰذِهِ الْأُمَّةِ كُلُّ مُنَافِقٍ يَتَكَلَّمُ بِالْحِكْمَةِ وَيَعْمَلُ بِالْجَوْرِ. روى البيهقي الأحاديث الثلاثة في شعب الإيمان.

د حضرت عمر بن خطاب رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه پر دې امت د هر منافق د شر څخه بيرېږم چي خبري به عالمانه او حکيمانه کوي او کار به يې ظالمانه وي. بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في الشعب ۲\۲۸۴، رقم: ۱۷۷۷.

**تشريح**: دا د هغه خلکو خصلت ښودل سوی دی چي خلکو ته د ښوونی لپاره ډيري ښه ښه خبري کوي مګر خپله په هغه عمل نه کوي او دې ته نفاق ويل کيږي، رسول الله ﷺ وفرمايل: زه

د خپل امت په اړه د داسي خلکو د وجود او بدخصلت څخه بېربېږم چي داسي نه دغه ډول خلک زما په امت کي پيدا سي او دغه بدخصلت په امت محمديه کي په پيدا کېدو سره مسلمانان په فتنه او فساد کي اخته کړي.

## د ښه نيت اهميت

﴿۵۱۰۶﴾: وَعَنِ الْمُهَاجِرِ بْنِ حَبِيْبٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت مهاجر بن حبيب ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ اللّٰهُ تَعَالٰى إِنِّيْ لَسْتُ كُلَّ كَلَامِ الْحَكِيْمِ أَتَقَبَّلُ وَلٰكِنِّيْ أَتَقَبَّلُ هَمَّهُ وَهَوَاهُ

الله تعالى فرمايي چي د حکيم هره خبره زه نه قبلومه زه د هغه اراده او نيت قبلوم که د هغه نيت

فَإِنْ كَانَ هَمَّهُ وَهَوَاهُ فِيْ طَاعَتِيْ جَعَلْتُ صَمْتَهُ حَمْدًا لِّيْ وَوَقَارًا وَإِنْ لَّمْ يَتَكَلَّمْ.

رواه الدارمي

او مينه زما د اطاعت وي نو زه د هغه پټه خوله خپل (حمد) تعريف او وقار ګرځوم که څه هم هغه خبره ونه کړي. دارمي.

**تخريج**: سنن الدارمي ۱\۹۱، رقم: ۲۵۲.

**د لغاتو حل**: هواه: اى قصده المقرر في الاواخر. (هود او قصد)

**تشريح**: مطلب دادی چي د الله ﷻ په نزد محض د ويونکي ارزښت نسته، هلته دا خبره کتل کيږي چي خبره کونکی د پوهي او حکمت څخه قطع نظر په خپل نيت کي څومره مخلص دی که هغه د الله تعالى د اطاعت او فرمانبرداری په نيت او په زړه کي د الله ﷻ د احکامو محبت او عظمت ولري نو د هغه سکوت هم د علم او وقار افتخار او د الله تعالى په نزد مستحسن وګرځول سي، که چيري هغه په ژبه سره هيڅ ونه وايي نو هغه هم داسي ګڼل کيږي لکه چي د الله تعالى په حمد او ثناء کي بوخت وي که د هغه نيت د الله تعالى اطاعت او فرمانبرداري نه وي او د هغه په زړه کي د احکام الهي عظمت او مينه نه وي نو د هغه خبره لغو د توجه وړ نه ګڼل کيږي که څه هم د هغه الفاظ او معنى د علم او حکمت څخه ډک وي، ځکه چي په دغه صورت کي ما ته ددې څخه پرته نور هيڅ په پوه کي نسي راتلای چي هغه په رياء کي اخته دی او کومه خبره چي کوي نو د هغه مقصد خلکو ته ښوونه او د هغه په ذريعه شهرت تر لاسه کول دي.

# بَابُ الْبُكَاءِ وَالْخَوْفِ (دژړا او بيرې بيان)

د بُكاء معنى د ژړا او اوښکي بيولو ده، كه چيري دغه لفظ د مد څخه پرته وي نو ددې اطلاق د يو غم په وجه يوازې پر اوښكو بهېدو باندې كيږي او كه چيري دغه لفظ په مد سره يعني بكآء وي نو ددې اطلاق په اواز سره ژړا او اوښكو بيولو باندي كيږي او زيات مشهور په مد سره دى ، څرګنده ده چي په عنوان كي ددغه لفظ عام مفهوم مرا ددى ، چي معنى يې ژړا ده كه په پټه خوله د اوښكو بيولو په صورت كي وي يا په لوړ آواز سره د ژړا په صورت كي وي، ددې څخه د تباكي لفظ وتلى دى چي د هغه معنى د ژړا صورت جوړول دي او هغه خبره چي په هغه ژړا راسي په مباد بيانولو سره په زور ه ژړل ، ابكاء هم ددغه لفظ څخه مشتق دى چي د هغه معنى د ژړولو ده .

د خوف معنى د بېرولو او دهشت اچولو ده، ددغه لفظ څخه اخافت او تخويف دى چي دهغه معنى د بېرولو ده ، څرګنده دې وي چي خوف د يو خاص كيفيت او حالت نوم دى چي پيښيږي.

خلاصه دا چي د ژړلو او بېرولو څخه مراد د آخرت عذاب او د الله تعالى د عقاب او عتاب څخه بېرېدل او د هغه شيانو د بيرې څخه ژړا او زاري كول دي .

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### ډېر ژړل كم خندل

﴿۵۱۰۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ أَبُو الْقَاسِمِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهٖ لَوْ تَعْلَمُونَ مَا أَعْلَمُ لَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا وَلَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا . رواه البخاري

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي ابو القاسم ﷺ وفرمايل : په هغه ذات دي مي قسم وي د چا په لاس كي چي زما ساه ده كه تاسو ته هغه شى معلوم سي كوم چي ما ته معلوم دئ نو تاسو به ډېر ژاړئ او كم به خاندئ . بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۱۹، رقم: ۶۴۸۵.

**تشريح**: په دغه ارشاد كي دامت لپاره دا خبرداري دى چي پر ځان باندي ژړا كول پكار دي او دهغه خبرو زيات تازه كول پكار دي چي د ژړا او غم باعث كيږي، دوهم خبرداري دادى چي د غافلانو او جاهلانو په ډول ډېر زيات خندل او راحت او ارام څخه پرهېز كول پكار دي كه څه هم

د الله تعالى له خوا د عفو او مغفرت او دهغه پر رحمت باندي د امید کېدو په وجه في الجمله راحت اختیارول تر یوه حده ګنجائش لري.

## اخروي انجام چا ته نه دی معلوم

﴿۵۱۰۸﴾: وَعَنْ أُمِّ الْعَلَاءِ الْأَنْصَارِيَّةِ قَالَتْ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَاللّٰهِ لا أَدْرِي والله لا ادري وَأَنَا رَسُولُ اللّٰهِ مَا يُفْعَلُ بِي وَلَا بِكُمْ . رواه البخاري

د حضرت ام علاء انصارية (رض) څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : اګر که زه د الله رسول یم مګر قسم په خدای په دې نه پوهېږم قسم په خدای په دې نه پوهېږم چي زما سره به څه معامله کیږي او ستاسو سره به څه؟ بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۱۴، رقم: ۱۲۴۳.

**تشريح**: ددغه حدیث ظاهري مفهوم دادی چي دهر چا عاقبت او معامله غیر معلوم ده ، هیچا ته دا معلومه نه ده چي کوم څوک کوم عمل کوي او د هغه اخروي انجام به څه وي، مګر څرګنده دي وي چي نبیان او رسولان په خاصه توګه د سید المرسلین ﷺ د عاقبت په باره کي دا خبره نسي کیدای ځکه چي ددغه حضراتو په اړه داسي دلائل قطعیه منقول دي چي په څرګنده بنیي چي د انبیاؤ په خاصه توګه د رسول الله ﷺ دعاقبت په خیر کېدل یو یقیني امر دی نو د رسول الله ﷺ ارشاد چي زه په دې نه پوهېږم چي زما سره څه معامله کیږي او ستاسو سره به څه معامله کیږي، دې ته په هغه خاص نظر سره کتل پکار دي چي په هغه کي د غه حدیث ارشاد سوی دی او هغه دا چي یو صحابئ حضرت عثمان ابن مظعون چي د لوړي درجي صحابي وو هغه په مدینه کي وفات سو او خاص خبره دا چي په مدینه کي په مهاجرینو کي تر ټولو مخکي کوم صحابي وفات سوی دی هغه دغه صحابي وو، رسول الله ﷺ په خپل ذاتي څارنه کي د هغه د فن او ښخولو بندوبست وکړ ، د هغه د جنازې سره يې ډېر د عزت او اکرام معامله وکړه د هغه تندی يې مچ کړ او بیا يې د بقیع په هدیره کي خاورو ته وسپاری، په دغه وخت کي یوه ښځه چي دلته موجوده وه او د حضرت عثمان په اړه د رسول الله ﷺ دغه مینه او عنایت يې لیدی ، هغې وویل: عثمان! تا ته دي جنت مبارک وي ، ستا عاقبت او انجام په خیر دی ، هغه وخت رسول الله ﷺ د هغه ښځي خبرداری وکړ او ذکر سوی حدیث يې وفرمایه، نو ددغه حدیث مقصد په اصل کي د رسول الله ﷺ په مخکي د یو نامناسب خبري د ژبې څخه د ایستلو جرئت او پر بې

ادبۍ باندي د مبالغې په توګه خبرداری کول دی .

په نورو الفاظو کي دا خبره داسي هم کیږي چي رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي ما ته نه ده معلومه چي زما سره به څه معامله کیږي ، نو ددغه الفاظو څخه رسول الله ﷺ مراد د هغه حقیقي معنی نه ده بلکه رسول الله ﷺ ددغه الفاظو په ذریعه د کنایې په توګه وفرمایل چي د چا د عاقبت په اړه یو یقیني خبري کولو سوال هم نه پیدا کیږي ، خپله زما معامله داسي ده که څه هم زه رسول یم او زما عاقبت په خیر کېدل یو یقیني امر دی مګر د عاقبت علم د غیب سره تعلق دی ځکه زه د ادب له موخي د خپل عاقبت په اړه هم وضاحت نسم کولای او دا نسم ښودلای چي په آخرت کي به زما سره څه چلن کیږي .

ددغه ارشاد مراد دادی که څه هم زه د الله ﷻ رسول یم مګر د یو چا د عاقبت او انجام په اړه ما ته هم معلومه نه ده چي کوم سړی به په دنیا کي کوم انجام ته رسیږي او په آخرت کي د کوم حال سره مخامخ کیږي ځکه چي د داسي احوالو تعلق د علم غیب سره دی او د غیب تفصیلي خبري د الله ﷻ څخه پرته بل چا ته معلومي نه دي که څه هم په اجمالي توګه دومره معلومه ده چي د انبیاؤ عاقبت په خیر دی ، ملا علي قاري رحمه الله دغه احتمال ته صحیح ویلي دي .

یو احتمال دا هم بیانیږي چي د ذکر سوي ارشاد څخه د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چي ما ته معلومه نه ده چي زه به له دغه دنیا څخه څرنګه رخصتیږم او زما مرګ به په کوم حالت کي واقع کیږي ، ایا پر خپل مرګ به مرم یا بل څوک به ما قتل کړي همدارنګه ما ته دا هم نه ده معلومه چي څرنګه په تېرو امتونو باندي د الله تعالی عذاب نازل سوی وو همدارنګه پر تاسو هم یو هلاکونکی عذاب نازلیږي که یا .

صحیح خبره داده چي د رسول الله ﷺ ارشاد ددغه آیت: (لیغفرلک الله ما تقدم من ذنبک وما تاخر) د نازلېدو څخه مخکي دی، مګر د عاقبت په باره کي ابهام وو څه چي یقیني خبره نه سوه کېدای ددغه آیت د نازلېدو څخه وروسته دغه ابهام لیري سو او په یقین سره دا معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ عاقبت په خیر دی .

## دوه دوږخیان یې ولیدل

﴿۵۱۰۹﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُرِضَتْ عَلَيَّ

د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما ته د دوږخ اور ښکاره سو

النَّارُ فَرَأَيْتُ فِيهَا امْرَأَةً مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ تُعَذَّبُ فِي هِرَّةٍ لَهَا رَبَطَتْهَا فَلَمْ

(يعني په معراج كي يا په خوب كي) ما په هغه كي د بني اسرائيلو يوه ښځه وليدل چي هغه د
يوې پيشي په معامله كي په عذاب كېدل چي هغې تړلې وه نه به يې

تُطْعِمُهَا وَلَمْ تَدَعْهَا تَأْكُلُ مِنْ خَشَاشِ الْأَرْضِ حَتّٰى مَاتَتْ جُوْعًا وَرَاَيْتُ

خوراك وركوئ او نه به يې د هغې رسۍ خلاصول چي هغه د مځكي موږكان وغيره وخوري، تر
دې چي هغه (پيشي) دلوږي څخه مړه سوه ، او ما وليدى

عَمْرَو بْنِ عَامِرِ الْخُزَاعِيَّ يَجُرُّ قُصْبَهُ فِي النَّارِ وَكَانَ اَوَّلَ مَنْ سَيَّبَ السَّوَائِبَ.

رواه مسلم.

عمرو بن عامر خزاعي چي خپل كولمې يې د دوږخ په اور كي كشولې او دى تر ټولو لومړنى
سړى وو چي د سائبو رسم يې كېښلى وو . مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم ۲\۶۲۲، رقم: ۹- ۹۰۴.

**د لغاتو حل**: الخُشاش: حشرات الارض (د مځكي خزندې). قصبة: اي امعاءه (كولمې). السوائب: وهي ناقة يسيبها الرجل عند بُرئه من المرض و قدومه من السفر.

**تشريح**: سوائب د سائبة جمع دى او سائبه هغه اوښې ته وايي چي د جاهليت په زمانه كي د نذر وغيره لپاره پرېښودل كېدل، د عربو دا عادت وو چي كله به يوې اوښې ټول بچيان ښځي راوړل يا يو سړى به د ليرې د سفر څخه راغلى يا مريض به روغ سو نو هغه به اوښه ازادول چي نه خو به پر سپرېدى او نه به يې شيدې ځيني لوېشلې ، هر ځاى چي به هغه ګرځېدل هيچا به د خپلو وښو او اوبو څخه نه منع كول ، هغه خلكو به دغه كار د عبادت او د خپلو بتانو د رضا تر لاسه كولو يوه ذريعه ګڼل، دغه رواج تر ټولو مخكي عمرو بن عامر خزاعي رواج كړى وو، علماؤ دا هم ليكلي دي چي كوم څوک تر ټولو مخكي د بتانو د عبادت كولو رواج جوړ كړ او بت پرستي يې د تقرب تر لاسه كولو ذريعه وګرځول هغه هم دغه عمرو ابن عامر خزاعي وو، په ځينو روايتو كي دا نوم د عمرو ابن عامر پر ځاى عمرو ابن لحى بيان سوى دى او په ظاهره دغه دواړه نومونه د يوه سړي دي عامر خو د هغه د پلار نوم وو او لحى د هغه د نيكه نوم وو يا ددې برعكس وو چي د پلار نوم يې لحى او د نيكه نوم يې عامر وو، نو په يوه روايت كي پلار ته نسبت كولو سره او په بل روايت كي نيكه ته په نسبت كولو سره د هغه ذكر وكړل سو .

كرماني ليكلي دي چي د دغه حديث څخه ثرگند يږي چي ځيني خلک د او س څخه په دوږخ کي اچول سوي دي او هلته عذاب تېروي ، مگر دا هم ويل کيداى سي چي د دغه ارشاد تعلق د دې خبري سره وي چي رسول الله ﷺ د دوږخ هغه احوال منكشف كړل سو چي د قيامت په ورځ به پېښيږي او رسول الله ﷺ ته د هغه صورت وښودل سو چي د قيامت په ورځ به ذکر سوې ښځه او عمرو ابن عامر په دوږخ کي اچول کيږي او هغوئ به په داسي عذاب کي اخته کيږي .

## د فسق او فجور عذاب

﴿۵۱۱۰﴾: وَعَنْ زَيْنَبَ بِنْتِ جَحْشٍ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ دَخَلَ عَلَيْهَا

د حضرت زينب بنت جحش (رض) څخه روايت دئ چي يوه ورځ نبي كريم ﷺ په بيره کي زما

يوما فَزِعًا يَقُولُ لَا إِلَهَ إِلَّا اللّٰهُ وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدْ اقْتَرَبَ فُتِحَ الْيَوْمَ

كور ته تشريف راوړ او وه يې فرمايل: لا اله الا الله ، د عربو لپاره افسوس دئ چي شر نژدې

مِنْ رَدْمِ يَأْجُوجَ وَمَأْجُوجَ مِثْلُ هَذِهِ وَحَلَّقَ باصبعيه الْإِبْهَامِ وَالَّتِي تَلِيهَا

راورسيدى نن د ياجوج ماجوج په ديوال کي دومره سورى سوئ دى ، ددې فرمايلو سره (رسول الله ﷺ) د بټي گوتي او نژدې گوتي حلقه جوړولو سره وښودل (چي دومره سورى سوى دئ)

قَالَتْ زَيْنَبُ فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَفَنَهْلِكُ وَفِينَا الصَّالِحُونَ قَالَ نَعَمْ إِذَا كَثُرَ الْخَبَثُ . متفق عليه.

زينب ﷺ وويل: اې د الله رسوله ! ايا موږ به هلاک کړل سو ، حال دا چي په موږ کي نيک او صالح خلک هم سته ، رسول الله ﷺ وفرمايل هو هر كله چي فسق او فجور زيات سي. بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٣٨١، رقم: ٣٣٤٦، ومسلم ٤\٢٢٠٨، رقم: ٢- ٢٨٨٠.

**تشريح**: د شر څخه د رسول الله ﷺ مراد هغه فتنو ، قتل او قتال ته اشاره كول مقصد وو چي د هغه پېل په راتلونكي کي كېدونكى دى او دهغه ښكار تر ټولو مخكي عرب كېدونكى دي نو قلب نبوت چي اهل اسلام افتراق او انتشار کي اخته كېدونكي د كومو واقعاتو ډېر مخكي ادراک کړى وو او د ذکر سوي ارشاد په ذريعه د هغه په اړه وړاند ويني سوې وه د هغه پېل د خليفه ثالث حضرت عثمان بن عفان ﷺ د شهادت په پېښه سره وسو ، او د هغه لړۍ په څه ناڅه

صورت کي تر اوسه پوري جاري ده ، ځینو حضراتو دا مراد بیان کړی دی چي رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي کله اهل اسلام ته د اسلام د زیاتېدونکي طاقت په سبب د دښمنانو په مقابله کي فتوحات حاصل سي پر نورو هیوادو باندي غلبه او اقتدار حاصل سي او دمال او دولت زیاتوب وي نو دهغه یوه نتیجه به دا هم وي چي دخلکو خلوص او نیت کي به کمي راسي حکومت او اقتدار او مال به مینه او رغبت پیدا سي د دنیا طلبی، عزت غوښتني، مخالفت او افتراق په ذریعه به ټول ملت متاثر کړي .

حلقه یې جوړه کړې وه، یعني رسول الله ﷺ د خپلو ګوتو په ذریعه د حلقې په جوړولو سره وښودل چي په دغه دیوال کي دننه هیڅ سوری نه وو مګر نن په دې کي دومره لوی سوری دی لکه د دغه دوو ګوتو په ذریعه جوړه سوې حلقه ، څرګنده دي وي چي په دغه دیوال کي د سوري کېدل د قیامت د نژدې کېدو علامه ده لکه څرنګه چي د عرب په منځ کي د فتنې او فساد تخم وتل او د خرابیو خپرېدل هم دقیامت راتلو یو دلیل دی ، ځیني حضرات وایي چي رسول الله ﷺ د یاجوج ماجوج د سوري کېدو خبره د هغه علاقې څخه د پورته کېدونکي یوې ستري فتنې او دهغه په نتیجه کي مسلمانانو ته رسیدونکي سخت تاوان ته اشاره وکړه، د تاریخ علم لرونکي پوهیږي چي رسول الله ﷺ کومي فتنې ته اشاره وفرمایل هغه د چنګیزیت په صورت کي د هغه سیمي څخه پورته سوه چي لوی لوی اسلامي حکومتو ته یې تاوان ورسوی تر دې چي د هلاکو په مشرتابه کي د تاتاري ترکو سیلاب اسلامي خلافت وبیوی ، خلیفه معتصم بالله یې قتل کړ ، بغداد یې لوټ اوتباه کړ په لکونو مسلمانان یې شهیدان کړل او ټول ملت اسلامي یې د لوی لوی جهادونو سره مخ کړ .

د خبث لفظ د خاء او باء په زور سره د فسق او فجور، کفر او شرک په معنی کي دی او ځیني حضرات وایي چي ددغه لفظ معنی د بدکاري (زنا) ده، د حدیث د آخري جملې مطلب دادی چي په هر یو ځای کي اور ولګیږي نو هر شی سوځي که وچ وي او که لانده، هر څه ایري کړي ، حلال او حرام ، پاک او ناپاک کوم شی چي د هغه په شغلو کي راسي نو په سوځېدو سره خاوري سي، مؤمن او کافر ، موافق او مخالف د هیچا په منځ کي فرق نه کوي، کوم څوک چي د هغه په ګرفت کي راسي د ایرو کوټه جوړه سي او همدارنګه د عذاب الهي معامله چي کله په یو هیواد یا یو سیمه کي او د مځکي پر کومه برخه د خرابیو دور سي ، بدکاري عامه سي ، د فواحشو کثرت سي او دفسق او فجور غلبه سي او دهغه په سبب د هغه ځای پر خلکو باندي عذاب نازلیږي نو بیا د چا تخصیص نه کیږي ، بدکار او سرکښ خلک خو تباه کیږي مګر نیک او پاک

خلک هم د هغه په گرفت کي راځي، دا بېله خبره ده چي په قيامت کي به ټول مخلوق راپاڅول کيږي نو هغه وخت به د هر سړي سره د هغه د عمل مطابق چلن کيږي .

په يوه نسخه کي دغه لفظ د خ په پېښ او د ب په جزم سره يعني خُبث منقول دی، چي د هغه معنی د خواهش او فسوق دي، دا هم ويل کيږي چي د دواړو يوه معنی ده .

## د خسف او مسخ عذاب

﴿۵۱۱۱﴾: وَعَنْ ابي عَامِرٍ أَوْ أَبِي مَالِكٍ الْأَشْعَرِيِّ قَالَ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى

د حضرت عامر او يا ابو مالک اشعري (رضي الله عنهما) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله

اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَيَكُونَنَّ مِنْ أُمَّتِي أَقْوَامٌ يَسْتَحِلُّونَ الخز وَالْحَرِيرَ

ﷺ څخه دا واوريدل چي زما په امت کي به ځيني قومونه داسي وي چي ريشم، شراب او

وَالْخَمْرَ وَالْمَعَازِفَ وَلَيَنْزِلَنَّ أَقْوَامٌ إِلَى جَنْبِ عَلَمٍ يَرُوحُ عَلَيْهِمْ بِسَارِحَةٍ

سرودونه به حلال او جائز کړي او په هغوئ کي به ځيني قومونه د لوړو غرونو په لمنو کي استوګنه غوره کړي ، د شپې په وخت کي به د هغوئ حيوانان (چي پيولو ته تللي وه) بيرته

لَهُمْ يَأْتِيهِمْ رَجُلٌ لِحَاجَةٍ فَيَقُولُونَ ارْجِعْ إِلَيْنَا غَدًا فَيُبَيِّتُهُمُ اللهُ وَيَضَعُ

راسي او يو سوال کونکی به هغوئ ته د يو حاجت لپاره راسي هغوئ به هغه ته وايي چي سبا راسه بيا به الله تعالی د شپې پر هغوئ خپل عذاب نازل کړي

الْعَلَمَ وَيَمْسَخُ آخَرِينَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه البخاري وفي

،غر به پر ځينو کسانو را ولويږي او د ځينو صورتونه به مسخ کړي او بيزوګان او خنزيران به ځيني جوړ کړل سي چي تر قيامته. پوري به په دغه شکل او صورت کي وي . بخاري او د

بعض نسخ المصابيح الحر بالحاء والراء المهملتين وهو تصحيف وانما هو

مصابيح په ځينو نسخو کي بالحاء والراء المهملتين (حر) راغلی دئ او دا تصحيف دئ (يعني

بالخاء والزاء المعجمتين نص عليه الحميدي وابن الاثير في هذا الحديث

په ليكني كي غلطي ده) د حميدي او ابن اثير د بيان سره سم په دې حديث كي بالخاء والزاء المعجمتين ليكلىٰ دى

وفي كتاب الحميدي عن البخاري وكذا في شرحه للخطابي تروح عليهم سارحة لهم يأتيهم لحاجة.

د حميدي كتاب د بخاري څخه او داسي د خطابي شرح په بخاري كي تروح عليهم سارحة لهم يا تيهم لحاجة، الفاظ دي

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۰\۵۰۱، رقم: ۵۵۹۰، والبغوي في المصابيح ۳\ ۴۵۳، رقم: ۴۱۱۳ ولم نجده عند الحميدي.

**د لغاتو حل**: الخز: نوع من الحرير (يو ډول ريښم). علم: اى جبل (غر). بسارحة: اى ماشية (پر پښو).

**تشريح**: يا د حضرت ابو مالك اشعري ﷺ څخه روايت دى، د دغه عبارت په ذريعه بخاري دا حديث نقل كولو سره دا شك او تردد ظاهر كړى دى چي دغه حديث يا خو ابو عامر اشعري نقل كړى دى چي د حضرت ابو موسى اشعري ﷺ اكا او د سترو صحابه كرامو څخه دى، يا دغه روايت بيانونكى حضرت ابو مالك اشعري ﷺ دى چي هغه ته اشجعي هم ويل كيږي، او دا هم يو مشهور صحابى دى مگر څرگنده دي وي چي د يو حديث د راوي په حيثيت د صحابه كرامو په اړه دا ډول شك او تردد په هغه حديث كي د طعن موجب نه جوړيږي ځكه چي صحابه ټول ثقه او عدل والا دي نو هغه حديث چي د كوم صحابي څخه منقول دي صحيح به وي.

خَز : د خاء په زور او د زاء په شد سره، د هغه خاص جامې نوم دى چي په مخكي زمانه كي به د ريښمو او وړى څخه جوړېدل، هغه وخت دغه جامه ډېره استعمالېدل تر دې چي صحابه كرامو او تابعينو به هم اغوستل، علماؤ ليكلي دي چي په دغه حديث كي د خز په ذكر كولو سره د ذكر سوي جامې د استعمال چي كومه منع ظاهر سوې ده هغه كيداى سي په دې وجه وي چي د هغه جامې په اغوستلو سره د عجمو او غير ديندار او بت پرستانو مشابهت پيدا كيږي ، ددې څخه پرته هغه جامه د خپل جوړښت او قيمت په اعتبار يو داسي جامه وه چي شتمن، عيش پرست خلكو او اهل اسراف به استعمالول، دوهمه خبره دا هم كيږي چي د دغه حديث اصل محمول هغه خز دى كه څه هم د رسول الله ﷺ په زمانه كي رواج نه وو مگر وروسته رواج سو، چي په هغه كي يوازي ريښم وي، په دې اعتبار د رسول الله ﷺ ارشاد د معجزې په توگه خبر

ورکول دی او ددغه مطلب منلو په صورت کي پر خز باندي د حریمه عطف د تعمیم بعد تخصیص د قبیلې څخه دی.

د معازف معنی د عود طنبوره او نورو سازونو ده او دغه لفظ عزف یا د معزف جمع ده، عزف او عزیف په اصل کي د جن اواز ته وایي او هغه مخصوص اواز ته هم وایي چي د شپې په ځنګل یا صحراء کي د شپېلیو مشابه اورېدل کیږي چي د هواء په اواز سره هم تعبیر کیږي.

د حدیث خلاصه داده چي په دغه صورت کي به داسي خلک هم پیدا سي چي د مختلفو شکونو او شبهو په پېدا کولو سره به بې ګټي تاویلو او لغو دلائلو په ذریعه هغه شیان حلال کړي کوم چي شریعت حرام ګرځولي دي د مثال په توګه ځیني علماء دا وایي چي د نارینوو لپاره خالص ریشم اغوستل په هغه صورت کي حرام دي کله چي هغه د بدن سره پیوست وي یعني د هغه جامې او بدن په منځ کي بل شی حائل نه وي که چیري ریشمنه جامه د ابري په توګه استعمال کړل سي چي د بدن سره لګېدلې جامه د وړیو وي او د هغه سربېره جامه د ریشمو وي نو ددې استعمال ګنجائش سته، دا بېله خبره ده چي ددغه قول تحقیق څه شي دی او دا کوم مراد څرګندوي مګر که چیري دا قول په بنیاد جوړولو سره د نارینوو لپاره مطلق ریشم اغوستل او استعمالول جائز وګرځول سي او خلک بېله تکلیفه حریر او دیباج په ډول د رېشمو جامې اغوستل پېل کړي نو دا به څرګنده ګمراهي وي، داسي سوي دي چي کله امیرانو او عوام او خاص خلک د ریشمو استعمال کوي او هغوئ ته به وویل سول چي د نارینوو لپاره حریر او دیباج حرام دي نو هغوئ به ویل که دا حرام وای نو فلاني عالم به دا خبره کړې وای او فلاني بزرګ به ولي د ریشمو جامه استعمالول، نو هغه خلک یو حرام شي حلال ګڼلو سره په سختي خرابۍ او ګناه کي اخته سول همدا رنګه د مزامیر معامله ده، ځیني علماء او مشائخ چي سماع او مزامیر سره تعلق پاته سوی دی پر خپل ځای یو بېل بحث دی او د هغه تفصیل ډېر اوږد دی ددې خبري څخه قطع نظر چي د سماع او مزامیر سره د هغوئ تعلق په کوم حالت کي او کومو شرطو سره وو، مهمه خبره داده چي د هغوئ د غلط فعل په بنیاد جوړولو سره خلکو څومره ګمراهۍ خپرې کړي وي او ډول ډول د باجو شیطاني مجلسونه، د مجلس په سماع په نامه د شریعت حرام سوي شیان نه یوازي حلال کیږي بلکه هغه نعوذبالله د حصول ثواب ذریعه ګڼلو سره ګمراهي عامه کړل سوه.

څرګنده دي وي چي ابن ابي الدنیا ذکر سوی روایت د آلات لهو یعني مزامیر په بدۍ کي د حضرت انس رضي الله عنه څخه نقل کړی دی چي: یکونن في هذه الامة خسف وقذف ومسخ وذلک اذا

شربو الخمر واتخذت القينات وضربوا بالمعازف .

ددې مطلب هم دادی چې کله خلک دغه شيان په حلال ګڼلو سره اختيار کړي نو د خسف او مسخ په ډول عذاب کي به اخته کړل سي .

نص عليه الحميدي ...الخ: ددغه عبارت په ذريعه د مشکوة مؤلف د حميدي او ابن اثير د دليل په توګه اختيارولو سره ددې تائيد وکړ چي لفظ د الحر د حاء په زور سره د کتابت غلطي ده او صحيح لفظ د الخز يعني په خاء او زاء سره دی، نو دچا دا ګمان کول چي دغه لفظ په ح او ر سره صحيح دی د حقيقت خلاف دی مګر مؤلف د في هذا الحديث الفاظو په ذريعه دې ته اشاره کړې ده چي دهغه بحث يوازي د حديث په اړه دی چي د بخاري څخه دلته نقل سوی دی هسي الحر لفظ په يو بل روايت کي منقول دی چي ابوداؤد وغيره نقل کړی دی ، طيبي رحمه الله دغه حديث په خپل شرح کي ذکر کړی دی مګر د بخاري مشهور شارح علامه ابن حجر چي کومه خبره کړې ده هغه د مشکوة د مؤلف د قول خلاف ده هغه فرمايلي دي چي د بخاري په اکثرو روايتو کي دغه لفظ په ح او راء سره يعني الحر دی که دا خبره ومنل سي نو بيا به دا ويل کيږي چي پر خپل ځای باندي دواړه روايتونه صحيح دي .

تروح عليهم بسارحة: دلته سارحه د تروح فاعل دی او دا ددې خبري قرينه ده چي په اول روايت کي د بسارحة په لفظ کي د باء حرف زائد دی ، همدارنګه په دغه دواړو کتابو (حميدي او بخاري په شرح خطابي ) کي ياتيهم لحاجة منقول سوي دي يعني ددغه دواړو کتابو نقل سوی حديث کي په دغه جمله کي د رجل لفظ نسته يا دا مطلب دی چي دغه دواړه هم د رجل لفظ نقل کی دی مګر د لحاجة څخه وروسته .

ددغه حديث څخه دا خبره معلومه سوه چي ددغه امت خلک هم په خسف او مسخ عذاب کي اخته سوي دي لکه څرنګه چي د تېرو امتو د سرکښو او بداعمالو په وجه هغوئ په دغه عذاب کي اخته کړل سو نو هغه احاديث چي ددې خبري په نفي کي منقول دي او د هغو څخه دا څرګندېږي چي پر امت محمديه باندي به دا ډول عذاب نه نازلېږي هغه يا خو ددغه امت پر لومړنۍ زمانه باندي محمول دی او آخري زمانه د هغه د مفهوم څخه وتلې ده يا په اجتماعي توګه د پوره امت خسف او مسخ څخه نفي مراد ده نه په انفرادي توګه نه د ځينو افرادو پر نفي .

## د الهي عذاب نزول

﴿۵۱۱۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا أَنْزَلَ

اللّٰهُ بِقَوْمٍ عَذَابًا أَصَابَ الْعَذَابُ مَنْ كَانَ فِيهِمْ ثُمَّ بُعِثُوا عَلَى أَعْمَالِهِمْ . متفق عليه

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هر كله چي الله تعالى پر يو قوم عذاب نازلوي نو هغه عذاب هر هغه سړی راګيروي كوم چي په هغه قوم كي وي بيا به خلك د هغوئ د اعمالو سره را پورته كړل سي (يعني جزا او سزا به وركول كيږي). بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۶۰، رقم: ۷۱۸۰، ومسلم ۴\۲۲۰۶، رقم: ۸۴- ۲۸۷۹.

**تشريح**: مطلب دادی چي كله په يو قوم كي د الله تعالى نافرماني، سركښي ، فسق او فجور ، ظلم ، د الله تعالى د دين منونكو سره بغض او نفرت، تمسخر او استهزاء او هغه بدی د حد څخه زياتي خپري سي چي قهر الهي ته دعوت وركوي بيا د هغه په نتيجه كي پر هغه قوم د الله تعالى عذاب نازليږي نو هغه عذاب صالح او غير صالح ، نېک او بد كي هيڅ فرق نه كوي بلكه هر هغه څوك راګيروي چي د هغه قوم په منځ كي وي كه څه هم كله الله تعالى خپل نېک او صالح بندګان د هغه عذاب څخه خوندي كوي مګر د ټولو خلكو په هغه عذاب كي اخته كېدل دا معنى نه لري چي د اخروي انجام له موخي هغه ټول خلك يو حيثيت لري چي هلته په آخرت كي به هر سړی سره د هغه د اعمالو مطابق معامله كيږي، كوم چي نېک او صالح وي د هغه سره به نېک چلن كيږي او كوم چي بد او سركښ وي نو هغه به هلته هم په عذاب كي وي .

## اصل اعتبار د خاتمې دی

﴿۵۱۱۳﴾: وَعَنْ جَابِرٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُبْعَثُ كُلُّ عَبْدٍ عَلَى مَا مَاتَ عَلَيْهِ. رواه مسلم.

د حضرت جابر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت په ورځ به هر بنده په داسي حالت كي پاڅول سي په كوم حال كي چي هغه مړ سوی وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۲۰۶، رقم: ۸۳- ۲۸۷۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي كوم څوک په كوم حالت او حيثيت كي له دنيا څخه رخصت سي په هغه حالت كي به د قيامت په ورځ راپاڅي او د هغه اخروي انجام به د هغه مطابق وي ، كه د ايمان په حالت كي مړ سوی وي نو په ايماني حالت كي به راپاڅي ، كه د كفر په حالت كي مړ سوی وي نو د كفر په حالت كي به راپاڅي كه د طاعت او عبادت په حالت كي مړ سوی وي نو د

طاعت او عبادت په حیثیت کي به راپاځي که د ګناه او معصیت په حالت کي مړ سوی وي نو د نافرمانه او ګناه کار په حیثیت کي به راپاځي همدارنګه که چیري د الله تعالی د ذکر په حالت کي مړ سوی وي نو د ذاکر بنده په حیثیت کي به راپاځي او که د ذکر الهي څخه د غفلت او بې پرواهي په حیثیت کي مړ سوی وي نو د غافل او لا پروا بنده په توګه به راپاځي ، غرض دا چي د قیامت په ورځ پاځېدو او په آخرت کي د فلاح کېدو یا نامراده کېدو دار او مدار پر خاتمه باندي دی د چا په اړه هیڅ نسي ویل کیدای چي د هغه خاتمه به څرنګه وي لکه چي ویل سوي دي:

حکم مستوري و مستي همه بر خاتمه است     کس ندانست که اخر بچه حالت ګزرد

ځینو عارفینو ویلي دي چي کوم بنده د الله تعالی یاد او د هغه د حضورۍ او استغراق ملکه تر لاسه کوي او دهغه په زړه کي دذکر الله جوهر وي نو د مرګ په وخت کي د سختۍ اوشد ت په سبب یا د ناروغۍ او اضطراب په وجه د هغه د استحضاري او استغراق کي هیڅ کمي او کوتاهي لار نه تر لاسه کوي نو دا شی د هغه په حق کي تاواني نه وي بلکه د بدن څخه د روح د بېلوالي وروسته د هغه حالت کیفیت بېرته راځي نو اصل خبره داده چي په ذکر الهي تعلق مع الله کي هغه ملکه او کمال حاصل کړل سي چي په هر صورت کي د خلاصون سرمایه ده .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د انسان ناداني او غفلت

﴿۵۱۱۴﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَا رَأَيْتُ مِثْلَ النَّارِ نَامَ هَارِبُهَا وَلَا مِثْلَ الْجَنَّةِ نَامَ طَالِبُهَا . رواه الترمذي.

د حضرت ابوهریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : ما د دوږخ د اور په ډول هیڅ شی نه دی لیدلی چي ددې څخه تښتیدونکي بیده دي او د جنت په ډول عجیبه شی مي نه دی لیدلی چي ددې طلب کونکی بیده دي . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۱۴۷\۴، رقم: ۱۶۳۳.

**تشریح**: مطلب دادی که چیري یو سړی خپل طاقتور دښمن د ځان لپاره تاواني او په هلاکت کي اخته کونکی ګڼي نو ظاهره ده چي هغه د هغه دښمن څخه غافل نسي اوسیدلای او په اطمینان سره نسي بېده کېدلای بلکه هر وخت هوښیار وي او څومره چي ممکن وي د هغه څخه لیري تښتي مګر څومره عجیبه خبره ده چي د دوږخ اور چي خپل هلاکت ، سختۍ او هولناکۍ

په اعتبار د لوی طاقتور دښمن څخه هم زيات هلاکت او تاوان رسونکی دی خلک د هغه څخه غافل وي او د هغه څخه د ليري تښتېدو هڅه نه کوي او که ليري تښتي نو عين د تښتېدو په حالت کي د خوب او غفلت ښکار سي څرګنده دي وي چي د دوږخ د اور څخه ليري تښتېدل او د هغه څخه د غفلت ښکار نه کېدل دادي چي انسان د خدا شناسۍ او خدا ترسۍ اختيار کړي، ګناه او معصيت پرېږدي، طاعت او عبادت لازم کړي.

همدارنګه د دوهمي برخي مطلب دادی که چيري يو سړی د يو غوره او محبوب شي طالب وي او هغه په پوره توګه تر لاسه کول غواړي نو ظاهره ده چي هغه د هغه شي د طلب او خواهش په لاره کي د غفلت او سستۍ څخه کار نه اخلي بلکه په هغه پسي ځغلي او ځومره زيات چي کوښښ او سعي کولای سي د هغه مطابق هغه شي ته ور ځغلي او هغه تر لاسه کول غواړي، مګر ځومره عجيبه خبره ده چي جنت چي د ټولو خوبونو، راحتونو، خوشحاليو او سعادتونو مرکز او مجموعه ده د هغه څخه انسان ځومره غافل دی، د هغه د تر لاسه کولو هڅه نه کوي او هغه ته نه ور ځغلي، څرګنده دي وي چي جنت تر لاسه کول او هغه ته ځغستل دادي چي د الله ﷻ او د هغه د رسول رضا پر هر شي باندي مقدم کړل سي، د بدۍ لار پرېښودل سي او د نيکۍ لار اختيار کړل سي او په طاعت او عبادت کي غفلت و نه کړل سي.

## يو نصيحت يو ارزو

﴿۵۱۱۵﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي أَرَى مَا لَا

د حضرت ابو ذر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه چي کوم شی وينم تاسو يې

تَرَوْنَ وَأَسْمَعُ مَا لَا تَسْمَعُونَ أَطَّتِ السَّمَاءُ وَحُقَّ لَهَا أَنْ تَئِطَّ والذي نفسي

نه وينئ او کومه خبره چي زه اورم تاسو يې نه اورئ، آسمان اواز کوي او هغه ته د اواز کولو حق حاصل دئ، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده

بيده مَا فِيهَا مَوْضِعُ أَرْبَعِ أَصَابِعَ إِلَّا و مَلَكٌ واضع جبهته سَاجِدا لله والله

په آسمان کي څلور ګوتي ځای هم داسي نسته چي هلته ملائکي الله ﷻ ته سر پر سجده نه وي

لَوْ تعلمون مَا أَعْلَمُ لَضَحِكْتُمْ قَلِيلًا وَلَبَكَيْتُمْ كَثِيرًا و ما تَلَذَّذْتُمْ بِالنِّسَاءِ

پرتې، که تاسو ته هغه خبره معلومه سي کومه چي ما ته معلومه ده نو تاسو به ډير کم خاندئ او

ډیر به ژاړئ، او نه به د ښځو سره په بسترو کي خوند تر لاسه کړئ

عَلَى الْفُرُشَاتِ وَلَخَرَجْتُمْ إِلَى الصُّعُدَاتِ تَجْأَرُونَ إِلَى اللهِ قَالَ أَبُو ذَرٍّ يَالَيْتَنِي كُنْتُ شَجَرَةً تُعْضَدُ. رواه احمد والترمذي وابن ماجة

او تاسو به د ځنګلو په لور په ژړا او فریاد وځئ، ددې حدیث بیانونکی ابوذر وویل کاش چي زه یو درخته وای چي پرېکړل سوې وای. احمد ترمذي، او ابن ماجه.

**تخریج**: مسند الامام احمد ۵\۱۷۳، رقم: ۲۳۱۲، وابن ماجه ۲\۱۴۰۲، رقم: ۴۱۹۰.

**د لغاتو حل**: اطت: ای صوتت. الصعدات: ای الصحاري. تجارون: ای تتضرعون الیه بالدعاء. تعضد: ای تقطع وتستاصل.

**تشریح**: د أطت لفظ په اصل کي د أطّ څخه مشتق دی چي دهغه معنی د آواز کولو، پالان، ځین وغیره ده، د اوښ د ستړیا په وجه بړ بړ کول په دغه حدیث کي د آسمان او مځکي څخه د آواز ختلو چي کومه خبره سوې ده د هغه مفهوم بالکل ښکاره دی چي د ملائکو کثرت او دهغوئ د بار په وجه د آسمان څخه آواز خېژي لکه څرنګه چي د سپرلۍ حیوان د سپرلۍ د بار په وجه یو ډول اواز کوي یا یو تخت او پلنګ باندي چي زیات خلک کښیني نو هغه اواز کول شروع کړي، یا د آسمان څخه د آواز وتلو مطلب د آسمان د الله د خوف څخه ژړا او فریاد کول دي او ددې جملي مقصد دا خبرداری دی چي کله آسمان یو غیر ذي روح او منجمد شی دی او د مقدس ملائکو د قرارګاه حیثیت درلودلو سربېره د خوف الهي څخه ژړا او فریاد کوي نو انسان چي ساه لرونکی دی او د ګناه او معصیت چټلي لري هغوئ ددې زیات وړ دي چي د خوف الهي څخه ژړا او فریاد وکړي دا معنی د حدیث د اصل مقصد سره زیاته مناسب ده.

سرپر سجده پراته دي: ددې څخه مراد د ملائکو د الله تعالی په عبادت او پیروي کي بوخت کېدل دي، دا وضاحت ځکه ضروري دي چي هغه خبره هم ددغه جملې په مفهوم کي راسي چي په هغه کي دا ویل سوي دي چي هره ملائکه د الله تعالی په عبادت او تابعداری کي بوخت ده، ځیني د قیام په حالت کي عبادت کوي، ځیني د رکوع په حالت کي او ځیني د سجدې په حالت کي وي، یا دا خبره هم کیږي چي رسول الله ﷺ د یو خاص آسمان ذکر فرمایلی دي او په هغه آسمان کي چي کومي ملائکي دي هغوئ ټولي د سجدې په حالت کي پرتې د الله تعالی عبادت کوي.

صعدات د صعد جمع ده او صعد د صعید جمع ده لکه څرنګه چي طرقات د طرق جمعه ده

او طريقه د طريق جمع ده، د صعيد لغوي معنی د خاورو او د مځکي د لوړي برخي ده او دلته په حديث کي ددې څخه مراد ځنګل دی.

کاش چي زه درخته وای: يعني د انسان کېدو په حيثيت سره د ګناهو څخه ځان ساتل مشکل دي او شيطان هر وخت ورپسي لګيدلی وي، معلومه نه ده چي کله دهغه په واک کي راسي چي په ګناه او معصيت کي يې اخته کړي چي د هغه په وجه د الله تعالی په ناراضي او عذاب کي ولويږي، نو حضرت ابوذر ﷛ دا خواهش وکړ چي کاش زه انسان نه وای چي سبا د قيامت په ورځ په ګناهو لړلی نه راپورته کېدای او څرنګه چي يوه درخته پرې کيږي نو هغه ختم سي همدارنګه زه هم وای چي په پرېکولو سره غورځول سوی وای او په آخرت کي د شرمندګی او عذاب څخه ساتل سوی وای، څرګنده دي وي چي همدارنګه غمناک او دردناک ارزوګاني د نورو لويو لويو صحابه کرامو څخه منقول دي د مثال په توګه يو صحابي ويلي دي چي کاش زه پسه وای چي خلکو په پرېکولو سره خوړلی وی، بل صحابي وويل: کاش زه مرغه وای چي هغه چيري غواړي کښيني او چيري چي غواړي ولاړ سي هغه د څه فکر او شي په دبآو کي نه وي، دغه ټول مقدس صحابه کرام هغه کسان وه چي هغوئ ته د رسول الله ﷺ په ژوند کي د جنت زيری ورکړل سوی وو او د هغوئ عاقبت په خير کېدو کي هيڅ شک نه وو مګر کله چي ددغه پاکو حضراتو دغه احساس او فکر وو نو دنورو کسانو څه ويل کيدای سي، که څه هم د مخبر صادق ﷺ وعده ده چي هر مؤمن به انشاء الله په بخښني او مغفرت سره ونازول سي او د هغه عاقبت به په خير وي مګر د بارګاه بې نيازي بېره ملا ماتوي، يو چا ښو مره ښه ويلي دي:

کیا کیا نہ اپنے زہد واطاعت پہ ناز تھا  بس دم نکل گیا جو سنا بے نیاز ہے

## حکیمانه نصیحت

﴿۵۱۱۶﴾: وَعَنْ اَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَنْ خَافَ أَدْلَجَ وَمَنْ أَدْلَجَ بَلَغَ الْمَنْزِلَ أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللّٰهِ غَالِيَةٌ أَلَا إِنَّ سِلْعَةَ اللّٰهِ الْجَنَّةُ.

رواه الترمذي.

د حضرت ابوهريرة ﷛ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: څوک چي (په آخره شپه کي ددښمن دلوټ مار څخه بيريږي) هغه د شپې په اول کي کوچ کوي (يعني سفر کوي) او څوک چي د شپې په اول کي کوچ کوي هغه منزل ته رسيږي، خبردار! چي د الله ﷻ سامان ډير

قیمتي دی خبردار ! د الله ﷻ سامان جنت دئ. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي: ۵۴۶\۴، رقم: ۲۴۵۰.

**د لغاتو حل**: ادلج: ای سار اول اللیل (د شپې په لومړۍ برخه کي تلل).

**تشريح**: د منزل څخه مراد مطلوب او مقصد تر لاسه کول دي ، طیبي رحمة الله عليه وايي: رسول الله ﷺ د دغه الفاظو په ذریعه د اخرت د مسافر مثال فرمایلی دی چي شیطان د هغه په سفر کي دی نفس او د هغه باطل ارزوګاني د هغه شیطان مرسته کونکي وي او همدارنګه هغه د هغه چاپه ډول دی چي د هغه طاقتور او چالاک دښمن پر هغه باندي حمله کولو ته تیار وي او انتظار کوي چي د شپې آخري برخه سي نو په تیاره کي به پر هغه حمله کوي او تباه کوي به يې نو که هغه هوښیار سي د هدایت پر لار د پیل څخه تلل پیل کړي او خپل اعمالو کي د نیت اخلاص پیدا کړي نو هغه یقینا د شیطان او دهغه د مکر او فریب څخه خوندي کیږي کنه نو هغه دومره چالاک دښمن دی که لږ غفلت وسي نو د خپل مرسته کونکو په راوستلو سره سمدستي پر هغه حمله کوي او په هلاکت کي يې اچوي، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دې امر ته لارښوونه وکړه چي د آخرت په لور تلل ډېر مشکل دي او د هغه ځای نعمتونه او سعادتونه حاصلول ډېر مشکل دي په دغه لار کي لږ غفلت او سستي هم د منزل څخه لیري والی راولي تر څو چي زیات محنت او عمل ونه کړل سي نو هغه نعمتونه او سعادتونه په پوره توګه نسي تر لاسه کیدای، نو رسول الله ﷺ فرمایي: پوه سئ چي د الله تعالی مال ډېر قیمتي دی، د دغه جملې په ذریعه دې ته اشاره وفرمایل.

د حدیث د اخري جملې مطلب دادی چي د الله تعالی مال یعني د جنت که قیمت وي او که هغه د یو شي په بدله کي تر لاسه کیدای سي نو هغه د خدای ﷻ څخه خوف او د ښکو اعمالو سرمایه ده که د الله تعالی جنت تر لاسه کول غواړئ نو د نیکۍ لار اختیار کړئ د بدۍ څخه لیري اوسئ او زیات ښک کارونه کوئ، دغه مفهوم ته الله ﷻ په قرآن کریم کي په دغه الفاظو اشاره وفرمایل : (والباقيات الصالحات خير عند ربک ثوابا وخير املا): او کوم اعمال صالحه چي پاته کېدونکي دي هغه ستا د رب په نزد د ثواب په اعتبار په زرهاوو درجه غوره دي او د امید په اعتبار هم په هزار واره غوره دي .

او فرمايي : (إِنَّ اللهَ اشْتَرَى مِنَ الْمُؤْمِنِينَ أَنفُسَهُمْ وَأَمْوَالَهُم بِأَنَّ لَهُمُ الْجَنَّةَ)

ببله شکه الله تعالی د مسلمانانو څخه د هغوئ ځانونه او دهغوئ مالونه ددې خبري په عوض کي رانیولي دي چي هغوئ ته به حنت تر لاسه کیږي .

## د الله ﷻ ذکر او د الله ﷻ څخه بېره

﴿۵۱۱۷﴾: وَعَنْ أَنَسٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَقُولُ اللّٰهُ جل ذكره أَخْرِجُوا مِنَ النَّارِ مَنْ ذَكَرَنِي يَوْمًا أَوْ خَافَنِي فِي مَقَامٍ . رواه الترمذي والبيهقي في كتاب البعث والنشور.

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : الله تعالی به وفرمایي : د اور څخه هغه سړی راوکاږئ چي زه هغه یوه ورځ هم یاد کړی یم یا پر یو ځای زما څخه بیریدلی دی . ترمذي او بیهقي،

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\ ۶۱۳، رقم: ۲۵۹۴.

**تشریح**: د هغه سړي څخه مراد هغه مؤمن دی چي تر مرګه پوري په اخلاص سره پر ایمان قائم وي مګر د ګناهو او بد عملۍ په وجه په دوږخ کي اچول سوی وي .

او بیا یو وخت زما څخه بېرېدلی وي: یعني هغه د دنیا په ژوند کي په یو وخت کي په ګناه اخته کېدو سره محض زما د بیري په وجه منع سوی وي په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي:

(وَأَمَّا مَنْ خَافَ مَقَامَ رَبِّهِ وَنَهَى النَّفْسَ عَنِ الْهَوَى فَإِنَّ الْجَنَّةَ هِيَ الْمَأْوَى)

او کوم څوک چي په دنیا کي د خپل رب په مخکي د درېدو څخه وبېرېدی او نفس یې د حرام مال څخه منع کړ نو د هغه ځای به جنت وي .

طیبي رحمه الله وایي: ذکر الله یعني د الله تعالی د یاد څخه مراد هغه ذکر دی چي په هغه کي د ژبي سره زړه هم شریک وي چي هغه ته اخلاص وایي د اخلاص مطلب دی د زړه په اخلاص او نیت سره الله تعالی یو منل کنه هسي خو کافر هم په ژبه سره د الله ذکر کوي مګر ظاهره ده چي د هغه د ذکر هیڅ اعتبار نه وي ځکه چي د هغه زړه د الله تعالی د وحدانیت او صدق او اخلاص څخه خالي وي ، ددې خبري تائید د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد څخه هم کیږي چي : (من قال لااله الاالله خالصا من قلبه دخل الجنة): څوک چي د زړه په اخلاص سره لااله الاالله ووایي نو هغه به جنت ته ځي .

څرګنده دي وي چي د خوف الهي څخه مراد هغه خوف دی چي د هغه په وجه بنده خپل اندامونه د ګناهو څخه منع کوي او په طاعت او عبادت کي یې بوخت کوي ، کنه نو د داسي

خوف هيڅ اعتبار نسته چي پيدا خو سي مگر د هغه پر اندامو باندي ظاهر نسي چي نه خو هغه د گناهو څخه منع کړي او نه په عبادت او طاعت کي بوخت سي، بلکه په حقيقت کي هغه ته خوف الهي نه ويل کيږي دې ته خو خبث نفس يعني يوه داسي وسوسه او يو داسي تحريک ويل کيږي چي د يو هولناک شي اسباب او آثار په لېدو سره پر طبيعت باندي خپور سي او هر کله چي هغه اسباب او اثار غائب سي نو پر زړه باندي غفلت خپور سي ، مشهور بزرگ حضرت فضيل ډېره حکيمانه خبره کړې ده چي کله ستاسو څخه پوښتنه وسي چي تاسو د الله تعالى څخه بيريږئ، نو ددغه سوال په جواب کي سکوت اختيارول پکار دي ځکه که چيري تاسو په جواب کي وواياست چي يا نو يقينا کافر به سئ او که ووايست چي هو نو ددې مطلب به دا وي چي تاسو دروغ وويل ، يعني حضرت فضيل دې ته اشاره وفرمايل چي په اصل کي د الله تعالى خوف هغه دی چي اندامونه په گناهو کي د ملوث کېدو څخه په قطعي توگه منع کړي .

په هر حال په دغه حديث کي دا زيری دي چي کوم مسلمان يو وار هم په اخلاص سره الله ياد کړي او يو وخت په حقيقي معنى کي د الله تعالى د عذاب څخه خوف وکړي نو آخر به د دوږخ د عذاب څخه خلاصون تر لاسه کړي بلکه الله تعالى که وغواړي نو په دوږخ کي به يې داخل نه کړي او د پيل څخه به يې په جنت کي واچوي بېله شکه : يغفر لمن يشاء ويعذاب من يشاء. د هغه صفت او شان دی .

## د يو آيت تفسير

﴿۵۱۱۸﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَأَلْتُ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ هَذِهِ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي د رسول الله ﷺ څخه ددغه آيت مطلب ما

الْآيَةِ وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوْا وَقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَهُمُ الَّذِينَ يَشْرَبُونَ الْخَمْرَ

وپوښتی (والذي يؤتون......) يعني هغه خلک چي ورکوي څه چي ورکوي په داسي حال کي چي د هغوئ زړونه په بيره او لړزان کي وي، ايا دا هغه خلک دي کوم چي شراب څښي

وَيَسْرِقُونَ قَالَ لَا يَا بِنْتَ الصِّدِّيقِ وَلَكِنَّهُمُ الَّذِينَ يَصُومُونَ وَيُصَلُّونَ

او غلا کوي؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : د صديق لوري! نه ، بلکه دا هغه خلک دي چي روژې نيسي ، لمونځ کوي

وَيَتَصَدَّقُونَ وَهُمْ يَخَافُونَ أَنْ لَا يُقْبَلَ مِنْهُمْ أُولَئِكَ الَّذِينَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ. رواه الترمذي وابن ماجة.

او صدقه ورکوي او ددې سربيره هغوئ د الله ﷻ څخه بيريږي چي د هغوئ عملونه شايد قبول نه سي. دا هغه خلک دي چي په نيکو کارونو کي تلوار کوي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۵\۳۰٦، رقم: ۳۱۷۵، وابن ماجه ۲\۱۴۰۴، رقم: ۴۱۹۸.

**تشريح**: په حديث چي کوم آيت ذکر سوی دی هغه دا دی:

(وَالَّذِينَ يُؤْتُونَ مَا آتَوا وَّقُلُوبُهُمْ وَجِلَةٌ أَنَّهُمْ إِلَى رَبِّهِمْ رَاجِعُونَ أُوْلَئِكَ يُسَارِعُونَ فِي الْخَيْرَاتِ وَهُمْ لَهَا سَابِقُونَ).

ددغه آيت په اړه د حضرت عائشې رحمة الله عليها دا خيال وو چي په دې کي د کومو خلکو د بيري ذکر سوی دی د هغه څخه مراد هغه خلک دي کوم چي شراب څښي، غلا کوي، او نوري بدي کوي ځکه چي د الله تعالی د عذاب څخه هغه خلکو ته بېره پکار ده چي د هغه نافرماني کوي او په بديو کي اخته وي، بې بي عائشې رحمة الله عليها په دې اړه د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه وکړه، نو رسول الله ﷺ ښرګنده کړه چي ستا دا خيال صحيح نه دی بلکه په حقيقت کي دغه آيت د هغه خلکو په اړه دی چي طاعت او عبادت کوي او ددې سربېره د الله تعالی څخه بېرېږي او ددې تر ټولو لوی دليل خپله ددغه آيت آخري الفاظ دي.

ښرګنده دې وي چي په ذکر سوي آيت کي دوه قرائتونه دي، په مشهور قرائت کي د قراء سبعه په قرائت کي د يؤتون لفظ دی چي د ايتاء فعل مضارع دی، همدارنګه لفظ آتوا د همزه په مد سره دی چي دا يتا فعل ماضي دی او اعطاء په معنی د عطاء يعني د ورکولو په مفهوم کي استعماليږي، لکه ښرنګه چي په ترجمه کي دا معنی استعمال سوې ده او په دوهم قرائت کي چي شاذ دی دغه لفظ ياتون ما اتوا، ويل کيږي چي د ايتان څخه مشتق دی او دهغه معنی د کار کولو ده، په دغه صورت کي به معنی دا وي چي هغه خلک چي کوي او څه چي کوي د هغوئ دا حالت دی چي دهغوئ زړنه په لړزه کي وي نو بې بي عائشې رضي الله عنها چي کوم سوال وکړ هغه ددغه دوهم قرائت سره زيات مناسب دی مګر نه يوازي دلته په مشکوة کي بلکه په اصل کتاب مصابيح کي هم دغه لفظ د اول قرائت مطابق نقل سوی دی، او دا زيات صحيح معلوميږي چي دغه لفظ د دوهم قرائت مطابق وي دا خو د طيبي رحمة الله عليه د منقولاتو خلاصه وه، چي هغه د تفسير

زجاج او كشاف ځنځه نقل كړې دى ، ملا علي قاري رحمه الله په دې اړه چي څه ليكلي دي د هغه خلاصه داده كه چيري دغه لفظ رسول الله ﷺ ته د قرائت شاذه مطابق منسوب كړل سي نو هم مراد به دا وي چي هغه خلك چي د طاعت او عبادت ځنځه څه كوي ګويا ددې ځنځه مراد هغه نه دى كوم چي بي بي عائشې رضي الله عنها ګڼلى وو، چي هغه خلك كوم چي معصيت او ګناه كوي، همدارنګه دا هم نسي ويل كيداى چي ددغه لفظ ځنځه عام عمل كه هغه د طاعت وي يا د معصيت وي مراددى ځكه چي د آيت آخري الفاظ : (اولئک يسارعون في الخيرات) ددغه مراد تائيد نه كوي ،

خلاصه دا چي د رسول الله ﷺ ارشاد : (الذين يصومون ...الخ) د آيت د آخري الفاظو : (والذين ياتون ما اتوا) څرګند تفسير دى، ، كه ددغه الفاظو تعلق په دواړو قرائتو كي د هر يوه سره وي بيا هم دا خبره كيږي چي په دغه دواړو كي د يوه قرائت مطابق په الفاظو كي ډول تغليب دى نو د مشهور قرائت تعلق د آيت چي څرنګه عمل كونكو ته اشاره كوي هغه مالي عبادت دى حال دا چي د قرائت شاذه مطابق ددغه آيت تعلق د بدني عبادت ځنځه څرګنديږي ددې ځنځه پرته يو قول دا هم دى چي د مشهور قرائت مطابق چي كوم الفاظ دي د هغه په تفسير كي داسي هم ويل كيداى سي چي هغه خلك كوم چي د خپل ځانو ځنځه هغه شي وركوي چي طاعت او عبادت نه وي يعني محنت او مشقت زغملو سره لمونځ كوي، روژې نيسي او نور بدني عبادتونه كوي او د خپل مال ځنځه د الله تعالى په لار كي مصرف كوي، يعني زكوة وركوي او صدقه كوي د هغوئ دا حال وي چي د هغوئ زړونه په بېره كي وي ، ددغه تفسير او وضاحت سره دواړه ډوله عبادتونه ددغه آيت په مفهوم كي داخليږي .

## د الله جل جلاله ذاكرينو ته نصيحت

﴿۵۱۱۹﴾: وَعَنْ أُبَيِّ بْنِ كَعْبٍ قَالَ كَانَ النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا ذَهَبَ ثُلُثَا اللَّيْلِ قَامَ فَقَالَ يَا أَيُّهَا النَّاسُ اذْكُرُوا اللَّهَ اذْكُرُوا اللَّهَ جَاءَتِ الرَّاجِفَةُ تَتْبَعُهَا الرَّادِفَةُ جَاءَ الْمَوْتُ بِمَا فِيهِ جَاءَ الْمَوْتُ بِمَا فِيهِ . رواه الترمذي.

د حضرت ابى بن كعب رضي الله عنه ځنځه روايت دئ چي هر كله به د شپې دريمه برخه تيره سوه نو رسول الله ﷺ به ولاړ سو او فرمايل به يې اې خلكو ! الله جل جلاله ياد كړئ، الله جل جلاله ياد كړئ ، زلزله راغلل او ددې ځنځه وروسته راتلونكې ده ، او ددې ځنځه وروسته مرګ راغلى سره د هغې چي په هغه

کي دي، مرګ راغلی سره د هغه چې په هغه کي دئ. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۵۴۹، رقم: ۲۴۵۷.

**تشريح**: د خلکو په ذريعه رسول الله ﷺ هغه خلک مخاطب کړل چې په آرام خوب بېده وه او د تهجد د لمانځه او ذکر الله څخه غافل وه، رسول الله ﷺ هغوئ بېدار کړل چې هغه خلک په ذکر الله او تهجد کي بوخت سي نو په دې کي دې ته اشاره ده چې د شپې په آخري برخه کي ولاړېدل او په ذکر الله او نفلو کي بوخت کېدل مستحب مؤکده دي، په يوه نسخه کي (اذکرو الله) الفاظ درې واره نقل سوي دي، ګويا په درېم وار د دغه الفاظو مطلب دا وو چې د الله تعالی نعمتونه د هغه درکړي راحتونه او د هغه له خوا پېښېدونکي ضرر ياد کړي.

جاءت الرجفة: زلزله به راځي، په دې کي د قرآن کريم دغه آيت ته اشاره ده چې په هغه کي فرمايل سوي دي: (يوم ترجف الراجفة...الخ) او په دغه جمله کي جاءت د ماضي صيغه د هغه زلزلو راتللو (يعني د شپېلي پوه کولو) پر يقيني باندي استعمال سوې ده او مفهوم هغه دی کوم چې د ترجمې په ذريعه څرګند سوی دی، يعني هغه وخت راتلونکی دی نو وخت غنيمت وګڼئ او طاعت او عبادت ته تلوار کوئ، په دغه ارشاد کي يوه باريکه نکته هم پټه ده او هغه دا چې خوب په حقيقت کي د مرګ حکم لري چې د لومړي شپېلي پوکولو اثر دی او وېښېدل په دوهم وار د شپېلې پوکولو په حکم کي دی نو دغه دواړه شيان (يعني خوب او وېښه) د قيامت علامې ته اشاره کوي او د قيامت د ياد باعث دي.

## مرګ او قبر ډېر يادوئ

﴿۵۱۲۰﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ خَرَجَ النَّبِيُّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لِصَلٰوةٍ فَرَأَى

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چې رسول الله ﷺ د لمانځه لپاره تشريف راوړ او وه يې

نَاسًا كَأَنَّهُمْ يَكْتَشِرُونَ قَالَ أَمَا إِنَّكُمْ لَوْ أَكْثَرْتُمْ ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ لَشَغَلَكُمْ

ليدل چې ګويا خلک خاندي، رسول الله ﷺ وفرمايل: که تاسو د خوندونو فنا کونکی شی زيات يادوئ نو هغه به تاسو ددې (خندا) څخه منع کړي

عَمَّا أَرَى الموت فَأَكْثِرُوا ذِكْرَ هَاذِمِ اللَّذَّاتِ الْمَوْتِ فَإِنَّهُ لَمْ يَأْتِ عَلَى الْقَبْرِ

کوم چې زه اوس وينم، او هغه مرګ دئ، نو تاسو د خوندو فنا کونکی شی هميشه يادوئ چې

مرګ دی، پېښه داده چي هيڅ داسي ورځ نه تيرېږي

يَوْمٌ إِلَّا تَكَلَّمَ فَيَقُولُ أَنَا بَيْتُ الْغُرْبَةِ وَأَنَا بَيْتُ الْوَحْدَةِ وَأَنَا بَيْتُ التُّرَابِ وَأَنَا

چي په هغه کي قبر نه وايي چي زه د غربت کوریم، زه د يوازيوالي کوریم زه د خاورو کوریم او

بَيْتُ الدُّودِ وَإِذَا دُفِنَ الْعَبْدُ الْمُؤْمِنُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ مَرْحَبًا وَأَهْلًا أَمَا إِنْ كُنْتَ

زه د چينجيانو کوریم، هر کله چي مؤمن بنده قبر کي ښخ کړل سي نو قبر ورته وايي ستا راتلل دي مبارک وي ته يو پراخ ځای ته راغلې

لَأَحَبَّ مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى

ته د هغه خلکو څخه يې چي پر ما ګرځيدل زما په نزد ته ډېر غوره وې، نن ورځ زه پر تا حاکم او قادر جوړ کړل سوی يم او ته مجبور زما په لور راغلی يې، نو ته به ډېر ژر زما

صَنِيعِيَ بِكَ قَالَ فَيَتَّسِعُ لَهُ مَدَّ بَصَرِهِ وَيُفْتَحُ لَهُ بَابٌ إِلَى الْجَنَّةِ وَإِذَا دُفِنَ

هغه نيک کار ووينې چي زه به يې ستا لپاره کوم د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا د هغه مؤمن لپاره قبر پراخه کړل سي څومره چي نظر کار کوي او د جنت لور ته به يوه دروازه خلاصه سي او هر کله چي

الْعَبْدُ الْفَاجِرُ أَوِ الْكَافِرُ قَالَ لَهُ الْقَبْرُ لَا مَرْحَبًا وَلَا أَهْلًا أَمَا إِنْ كُنْتَ لَأَبْغَضَ

فاجر او يا کافر بنده ښخ کړل سي نو قبر هغه ته وايي نه دي ستا راتلل مبارک وي او نه قبر ستا لپاره پراخ ځای دئ ته په هغه ټولو خلکو کي چي پر ما ګرځيدل خراب وې،

مَنْ يَمْشِي عَلَى ظَهْرِي إِلَيَّ فَإِذْ وُلِّيتُكَ الْيَوْمَ وَصِرْتَ إِلَيَّ فَسَتَرَى صَنِيعِيَ بِكَ

نن زه پر تا حاکم جوړ کړل سوی يم او ته مجبور زما په لور راغلی يې ته به ووينې چي زه ستا سره

قَالَ فَيَلْتَئِمُ عَلَيْهِ حتى تختلف أَضْلَاعُهُ قَالَ و قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ

څنګه خراب چلن کوم، د دې ويلو سره رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا قبر هغه ګنهګاري تر دې چي د هغه پښتۍ د يوې څخه بلي خوا ته ووځي، ابو سعيد راوي وايي د دې څخه وروسته رسول

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بِأَصَابِعِهِ فَأَدْخَلَ بَعْضَهَا فِي جَوْفِ بَعْضٍ قَالَ وَيُقَيِّضُ لَهُ سَبْعون

الله ﷺ په خپلو ګوتو اشاره وکړه او يو د بله يې سره ننه ايستلې، ويلي دي رسول الله ﷺ چي بيا

تِنِّينًا لَوْ أَنْ وَاحِدًا مِنْهَا نَفَخَ فِي الْأَرْضِ مَا أَنْبَتَتْ شَيْئًا مَا بَقِيَتْ الدُّنْيَا

پر دې کافر اويا ماران وتاکل سي داسي ماران که په هغو کي يو هم پر مځکه پوه کړي نو تر قيامته پوري به پر مځکه باندي شنګيا نه وسي ،

فَيَنْهَسنه وَيَخْدِشْنَهُ حَتَّى يُفْضَى بِهِ إِلَى الْحِسَابِ قَالَ وَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ ﷺ

دا ماران به هغه چيچي تر څو چي دا بنده د حساب لپاره بوتلل سي ، د ابو سعيد راوي بيان دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

إِنَّمَا الْقَبْرُ رَوْضَةٌ مِنْ رِيَاضِ الْجَنَّةِ أَوْ حُفْرَةٌ مِنْ حُفَرِ النَّارِ. رواه الترمذي.

قبر د جنت د باغونو څخه يو باغچه ده يا د دوږخ د کندو څخه يوه کنده ده . ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۵۱، رقم: ۲۴۶۰.

**د لغاتو حل**: يكتشرون: اى يضحكون (خاندي). هاذم: اى قاطع اللذات. ينهسنه: اى يلدغنه (چيچل).

**تشريح**: لذت فنا کونکی شی ډېر يادوئ: دا په حقيقت کي د غافلانو لپاره يو ډېر لوی او مؤثر نصيحت دی او په دې کي هيڅ شک نسته چي مرګ يادول غافل زړه ژوندی کوي، د شيخ عارف الله نورالدين علي متقي رحمة الله عليه په اړه منقول دي چي هغه يو کښونه غوندي شی جوړ کړی وو او د مرګ لفظ يې پر ليکلی وو کله چي به يو څوک د هغه مريد سو نو هغه کښونه به يې د هغه مريد په غاړه کي اچول چي د هغه پر زړه باندي هر وخت دا خپور وي چي مرګ بالکل نژدې دی ليري نه دی، نو موږ په دغه طريقه سره د سالکين طريقت تربيت کولو مقصد وو چي هغه هيڅ وخت غافل نسي او په بيدارۍ سره په طاعت او عبادت کي بوخت وي، همدارنګه د يو ډېر نيک پاچا په اړه ليکل سوي دي چي هغه په خپله پاچاهي کي يو کس پر دې باندي ماموره کړی وو چي هغه هر وخت د هغه تر شا ولاړ وي او مرګ مرګ وايي، چي زړه د الله تعالی څخه د غافل کېدو موقع تر لاسه نه کړي او د هر ډول روحاني ناروغيو علاج يې کيږي .

فانه لم يات: د دغه الفاظو په ذريعه رسول الله ﷺ دا حکمت بيان کړی دی چي مرګ ډېر زيات يادول پکار دي، او زه د چينجيانو کور يم: يعني زه يو داسي ځای يم چي په هغه کي

راتلونکی انسان د چینجیانو خوراک سي نو اې انسانه! ستا لپاره دا خبره څرنګه مناسب کېدای سي چي ته د خوراک او څښناک د شیانو د لذت پلټونکی یې او ستا خواهش یو داسي یو غوره خوراک او مشروبات په ذریعه جوړولو او لذت رسولو کي بوخت وي چي هغه فنا کېدونکی دی او د حقیر چینجیانو خوراک کېدونکی دی، مګر کوم شی چي دلته ستا لپاره ګټور کېدای سي هغه یوازي نېک عمل دی که د ښه عمل سرمایه زما غېږ ته راسي نو یقینا تا ته به ګټه رسوي په دې وجه قبر ته د اعمالو صندوق ویل سوي دي ، ځینو حضراتو په قبر کي د پیدا کېدونکو چینجیانو په اړه دا تحقیق بیان کړی دی چي کله بدن خراب او د هغه د بدبویي څخه چینجی پیدا سي او هغه په بدن خوړلو سره ژوندی وي ، بیا چي کله هلته د هډوکو څخه پرته بل څه پاته نسي نو هغه چینجیان په خپلو کي یو بل خوړل پېل کړي تر دې چي په آخر کي یوازي یو چینجی پاته سي او بیا هغه د لوږي په وجه مړ سي ، علماؤ لیکلي دي چي په قبرو کي د چینجیانو خوراک کېدل او د مځکي د خوړلو څخه د انبیاؤ ، شهیدانو او اولیاء بدنونه خوندي وي لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمایلي دي : (ان الله حرم علی الارض ان تاکل اجساد الانبیاء......)

او د شهیدانو په اړه د الله تعالی ارشاد دی : (ولاتحسبن الذین قتلوا في سبیل الله امواتا بل احیاء عند ربهم)، پاته سوه د هغه علماء چي هغوئ په اولیاء الله سره تعبیر کیږي نو کله چي شهیدانو ته دا فضیلت حاصل دی نو هغه علماؤ ته په درجه اولی حاصل دی ځکه چي د هغوئ د قلم رنګ د شهیدانو د وینو څخه غوره دی .

د فاسق څخه په فجور کي اکمل ترین کس ، یعني کافر مراد دی ددې قرینه مقابله لفظ مؤمن بنده دی او یوه قرینه د هغه په حق کي د قبر دا ویل هم دي چي ته زما په نزد د هغه ټولو خلکو څخه زیات خراب وې کوم چي پر ما باندي ګرځي ، ددې تائید د قرآن کریم د آیت څخه هم کیږي چي په هغه کي د فاسق څخه کافر مراد اخیستل سوی دی ، د الله تعالی ارشاد دی: (افمن کان مؤمن کمن کان فاسقا) ، ددې څخه پرته دا خبره هم باید په ذهن کي وي چي د قرآن او حدیث اسلوب او معمول دادی چي دبرزخ او آخرت په باره کي کوم حکم او فیصلې بیانیږئ نو د هغه دوه فریق وي یو خو مؤمن او دوهم کافر، او کوم چي د فاسق مؤمن تعلق دی نو د هغه په اړه سکوت اختیاریږي او دا سکوت اختیارول یا خو پر هغه باندي د پردې اچولو په وجه وي یا ددې لپاره چي هغه د خوف او رجاء په منځ کي وساتل سي چي د هغه مقصد ددغه دواړو مرتبو (یعني کفر او ایمان) په منځ کي پر یوه بېله دریمه مرتبه کول دي لکه چي معتزله وو غلط ګمان کړی دی .

پر هغه کافر باندي اوويا ماران مسلط کيږي: دلته د اوويا شمېر يا خو د تحديد لپاره دی چي په دغه تاکل سوي شمېر سره ماران پر هغه مسلط کيږي يا د عدد څخه کثرت مراد دی چي د هغه مقصد دا مفهوم ادا کول دي چي پر هغه باندي ډېر زيات ماران مسلط کيږي، د يو بل روايت څخه ددغه دوهم احتمال تائيد کيږي چي په قبر کي پر کافر باندي د عذاب کېدو په اړه منقول دي او په هغه کي فرمايل سوي دي چي پر کافر باندي د هغه په قبر کي نهه نيوي ماران مسلط وي.

## داخرت بيري سپين ږيری کړم

﴿۵۱۲۱﴾: وَعَنْ اَبِيْ جحيفَةَ قَالَ قَالُوْا يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ شِبْتَ قَالَ شَيَّبَتْنِي سورة هُودٌ وَاَخَوَاتُهَا. رواه الترمذي.

د حضرت ابو جحيفة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي صحابه کرامو وويل: اې دالله رسوله! تاسو سپين ږيري سواست، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه سورة هود او ددې په ډول نورو سورتونو (چي په هغو کي د قيامت او عذاب ذکر دئ) سپين ږيری کړم. ترمذي.

**تخريج**: الترمذي في الشمائل المحمديه ص ۲۵، رقم: ۴۱.

**تشريح**: يعني په سورة هود او داسي نورو سورتو کي د قيامت او آخرت د عذاب ډېر ذکر دی د هغه د مضمون په لېدو سره د خپل امت له خوا دا غم ما خوري چي معلومه نه ده زما د امت د خلکو به څه حشر وي، په دغه غم خوړلو سره زما دا حال سو يدی.

﴿۵۱۲۲﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ قَالَ أَبُو بَكْرٍ يَا رَسُولَ اللهِ قَدْ شِبْتَ قَالَ شَيَّبَتْنِي هُودٌ وَالْوَاقِعَةُ وَالْمُرْسَلَاتُ وَعَمَّ يَتَسَاءَلُونَ وَإِذَا الشَّمْسُ كُوِّرَتْ. رواه الترمذي و ذكر حديث ابي هريرة لا يلج النار في كتاب الجهاد.

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه وويل: چي اې دالله رسوله! تاسو سپين ږيری سواست، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه سورة هود، سورة واقعه، سورة مرسلات، سورة نباء او سورة تکوير سپين ږيری کړم، ترمذي، او د ابو هريرة رضي الله عنه حديث په کتاب الجهاد کي بيان سوی دئ.

**تخريج**: سنن الترمذي ۱۴\۳۷۵، رقم: ۳۲۹۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### د صحابه کرامو ډېر احتیاط

﴿۵۱۲۳﴾: عَنْ أَنَسٍ قَالَ إِنَّكُمْ لَتَعْمَلُونَ أَعْمَالًا هِيَ أَدَقُّ فِي أَعْيُنِكُمْ مِنَ الشَّعَرِ إِنْ كُنَّا نعد عَلَى عَهْدِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنَ الْمُوبِقَاتِ يَعْنِي الْمُهْلِكَاتِ. رواه البخاري.

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دئ چي تاسو داسي عمل کوئ چي ستاسو په نظر کي تر وريښتانو زيات نری دئ (يعني ډير معمولي) مګر موږ به دا کارونه د رسول الله ﷺ په زمانه کي هلاکونکي کارونه شميرل. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۲۹، رقم: ۶۴۹۲.

**تشريح**: مطلب دادی چي تاسو خلک داسي داسي کارونه کوئ او داسي داسي شيان اختياروئ چي ستاسو په نظر کي ډېر معمولي وي او ډېر حقير وي او تاسو هغه په مکروهاتو کي شمېرئ مګر حقيقت دادی چي هغه کارونه او هغه شيان ډېر تاواني وي او لوي تباهی ته بېونکي وي ، د رسول الله ﷺ په زمانه کي به موږ خلکو داسي کارونه په هغه کارو کي شمېرل چي د اُخروي انجام په اعتبار په هلاکت کي اچونکي وه .

### د کوچنيو کوچنيو ګناهو څخه هم پرهيز کوئ

﴿۵۱۲۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ اَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا عَائِشَةُ إِيَّاكِ وَمُحَقَّرَاتِ الذنوب فَإِنَّ لَهَا مِنَ اللّٰهِ طَالِبًا. رواه ابن ماجة والدارمي والبيهقي في شعب الايمان.

د حضرت عائشې (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : اې عائشې ! خپل ځان د هغه ګناهو څخه وساته چي هغه حقير او معمولي ګڼل کيږي ځکه چي په دغه ګناهونو سره د الله ﷻ د لوري يو مطالبه کونکی هم سته (يعني ملائکه). ابن ماجه، دارمي او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۱۷، رقم: ۴۲۴۳، والدارمي ۲\ ۳۹۲، رقم: ۲۷۲۶، والبيهقي في الشعب ۵\ ۴۵۴، رقم: ۷۲۶۱.

**تشريح**: مطالبه كونكي هم سته: مطلب دادى چي پر داسي ګناهو باندي يو ډول عذاب تاكل سوى دى چي دد غه ګناهو كونكي په خپل واک كي اخلي ، يعني خپله هغه عذاب د الله تعالى څخه د داسي خلكو د حواله كولو مطالبه كوي او الله تعالى د هغه مطالبه نه رد كوي، په دې اعتبار سره د طالبا په لفظ كي تنوين د اظهار تعظيم لپاره دى او د جملې په اعتبار د طالبا عظيما په مفهوم كي دى نو دا خبره د هيڅا لپاره مناسب نه ده چي هغه دد دې څخه غافل وي لكه څرنګه چي اكثر خلک داسي كوچني كوچني كارونه كوي چي د صغيره ګناه په حكم كي وي او ډېر معمولي يې ګڼي او هغه ته څه ارزښت نه وركوي د هغه نتيجه داسي چي هغوئ د توبې او استغفار په ذريعه د هغه ګناهو څخه نه منع كيږي او نه د هغه په وجه په خوف كي اخته كيږئ او هغوئ دد دې څخه غافل وي چي پر يو كوچنى ګناه باندي اصرار يعني هغه په وار وار كول او د هغه څخه پرهېز نه كول صغيره ګناه نه پاته كيږي بلكه د ګناه كبيره په حكم كي راځي او هسي هم هره صغيره ګناه د الله تعالى د عظمت او كبريائي په نسبت كبيره ده چي د هغه لږ برخه هم ډېره لويه جوړيږي ځكه الله تعالى كله ګناه كبيره خو معاف كړي مګر پر صغيره ګناه باندي عذاب وركوي لكه څرنګه چي دهغه ددغه ارشاد : (ويغفر ما دون ذلک لمن يشاء) څخه مفهوم كيږي ،او د قرآن كريم ددغه آيت :

(إِن تَجْتَنِبُواْ كَبَآئِرَ مَا تُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ)

مطلب دادى چي موږ ستاسو صغيره ګناهونه ستاسو د هغه عبادتونو په ذريعه پرېولو كوم چي ګناهونه رڼوي مګر شرط دادى چي تاسو د ګناه څخه پرهېز كوئ كه هغه صغيره ګناه وي يا كبيره ګناه وي، يعني په دغه آيت كي د شرط محض كبيره ګناهو څخه د ساتني نه دى لكه څرنګه چي د معتزله ګمان دى بلكه ددغه شرط تعلق د مطلق ګناه سره دى .•

په يو بل روايت كي چي احمد او طبراني نقل كړى دى فرمايل سوي دي چي تاسو خپل ځان د كوچنيو ګناهو څخه هم وساتئ ځكه چي د كوچنيو ګناهو مثال د هغه خلكو په ډول دى چي په يوه كنده كي كښته سي او هلته هغوئ د يوه يوه لرګي په جمع كولو سره يو ځاى كړي او بيا خپله ډوډۍ پخه كړي همدا رنګه د صغيره ګناهو كونكى د كوچنيو كوچنيو ګناهو په كولو سهر دومره وبال جمع كوي چي آخر د ګناهو كښتۍ ډكه سي او هغه غرق سي او په دې كي شک نسته چي كله الله تعالى كوچني ګناهو والا ونيسي نو هغه هلاكوي .

## حضرت عمر رضی اللہ عنہ حضرت ابوموسی رضی اللہ عنہ ته څه وویل؟

﴿۵۱۲۵﴾: وَعَنْ اَبِيْ بُرْدَةَ بْنُ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ لِي عَبْدُ اللّٰهِ بْنُ عُمَرَ هَلْ تَدْرِي

د حضرت ابو بردة بن ابي موسی رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي ما ته عبد الله بن عمر رضی اللہ عنہ وويل ايا تا ته معلومه ده چي

مَا قَالَ أَبِي لِأَبِيكَ قَالَ قُلْتُ لَا قَالَ فَإِنَّ أَبِي قَالَ لِأَبِيكَ يَا أَبَا مُوسَى هَلْ يَسُرُّكَ

زما پلار ستا پلار ته څه ويلي وه؟ ما ورته وويل يا ما ته نه ده معلومه، عبد الله وويل: زما پلار ستا پلار ته ويلي وه چي اې ابو موسی! ايا دا خبره تا ته ښه معلوميږي چي

اَنَّ إِسْلَامَنَا مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَهِجْرَتَنَا مَعَهُ وَجِهَادُنَا مَعَهُ

زموږ اسلام د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د بعثت سره وو او زموږ هجرت د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره وو او زموږ جهاد د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره وو

وَعَمَلُنَا كُلُّهُ مَعَهُ بَرَدَ لَنَا وَأَنَّ كُلَّ عَمَلٍ عَمِلْنَا بَعْدَهُ نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا

او زموږ ټول اعمال د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم سره وه، چي زموږ د مال غنيمت په ډول دي (يعني ثابت او برقرار) او د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم څخه وروسته چي کوم اعمال موږ کړي دي لکه د هغه څخه چي موږ

بِرَأْسٍ فَقَالَ ابوك لابي لَا وَاللّٰهِ قَدْ جَاهَدْنَا بَعْدَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

سر په سر خلاص سو نو زموږ لپاره دا بس ده، ستا پلار ددې په اوريدو سره زما پلار ته وويل: يا داسي نه ده قسم په خدای د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم څخه وروسته موږ جهاد وکړ،

وَسَلَّمَ وَصَلَّيْنَا وَصُمْنَا وَعَمِلْنَا خَيْرًا كَثِيرًا وَأَسْلَمَ عَلَى أَيْدِينَا بَشَرٌ كَثِيرٌ وَإِنَّا

موږ لمونځ وکړ، موږ روژې ونيولې او موږ ډير نيک عملونه وکړل او زموږ په لاس ډير خلک مسلمانان سول او اميد دئ چي موږ ته ددې عملونو ثواب ترلاسه سي، ددې اوريدو سره زما

لَنَرْجُو ذٰلِكَ قَالَ أَبِي وَلٰكِنِّي أَنَا وَالَّذِي نَفْسُ عُمَرَ بِيَدِهِ لَوَدِدْتُ أَنَّ ذٰلِكَ بَرَدَ

پلار ورته وويل: مګر زه په هغه ذات قسم خورم چي د هغه په لاس کي د عمر ساه ده زه داخوښوم چي کوم اعمال موږ کړي دي هغه ثابت او برقرار دي

لَنَا وَأَنَّ كُلَّ شَيْءٍ عَمِلْنَا بَعْدَه نَجَوْنَا مِنْهُ كَفَافًا رَأْسًا بِرَأْسٍ فَقُلْتُ إِنَّ أَبَاكَ وَاللّٰهِ كَانَ خَيْرٌ مِنْ أَبِي. رواه البخاري.

او كوم اعمال چي موږ د رسول الله ﷺ څخه وروسته كړي دي د هغو څخه موږ سر په سر خلاص سوو ، ددې اوريدو سره ما وويل قسم په خداى ستا پلار زما د پلار څخه غوره وو . بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۷\۲۵۴، رقم: ۳۹۱۵.

**د لغاتو حل**: بَرَد : اى ثبت ودام (ثابت قدمه سو).

**تشريح**: سر په سر خلاص سو : ددغه الفاظو په ذريعه حضرت عمر رضي الله عنه د خپل دغه احساس اظهار وكړ چي موږ د رسول الله ﷺ څخه وروسته كوم اعمال اختيار كړل ، او كوم نيک كارونه چي مو وكړل الله جل جلاله ښه پوهيږي چي هغه په كوم ډله كي اېښودل سوي دي ايا هغه قبول سول يا د قبول وړ ونه ګرځول سول، په دغه صورت كي زموږ آرزو غوره ده چي د هغه اعمالو څخه موږ ته نه ګټه ورسيږي او نه تاوان ، نه پر هغه ثواب راكړل سي او نه د عذاب سبب وګرځول سي، يعني كه چيري هغه اعمال زموږ لپاره د ثواب سبب نسي كيداى نو الله جل جلاله دي وكړي چي هغه زموږ په حق كي د عذاب سبب هم جوړ نسي .

طاعت ناقص ما موجب غفران نشود راضيم ګر مدد علت عصيان نشود

نوموړ چي كوم اعمال د رسول الله ﷺ په روزنه او ملګرتيا كي كړي دي او د هغه د قبوليت ګمان لرو نو كه چيري هغه ثابت پاته سي نو لوى سعادت دى او كوم اعمال چي موږ د رسول الله ﷺ څخه وروسته كړي دي او هغه د خپل نقص او خرابۍ څخه خالي نه دي كه چيري د هغه څخه موږ سرا وتن خلاص سو نو دا هم لوى غنيمت دى ، د حضرت عمر رضي الله عنه ددغه احساس بنياد په اصل كي پر دغه حقيقت باندي وو چي اتباع كونكي د عمل او عمل په اړه په اخلاص كي د حجت او فساد خپله ذمه دار نه وي بلكه هغه د خپل متبوع د ذمه داري لاندي وي لكه څرنګه چي د هغوئ دلمانځه معامله ده، چي د هغه د لمانځه صحيح ادا كېدل د امام د لمانځه پر صحيح كېدو انحصار لري كه د امام لمونځ صحيح ادا نسي نو د مقتدي لمونځ هم صحيح ادا كيداى نسي همدارنګه د مقتدي د لمانځه فاسد كېدل د امام د لمانځه پر فاسد كېدو انحصار لري نو كوم اعمال چي د رسول الله ﷺ په صحبت او لارښوونه كي ادا سول د هغه صحت او خوبي سره ادا كېدل او درجه كمال ته رسېدل د شک او شبهې څخه وتلي دي همدارنګه كوم

عبادت چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته سوي دي د هغه د نیتونو د تغیر او د حالاتو د خرابۍ څخه متاثر کېدل د امکان څخه لیري نه دي ددې خبري اقرار خو د صحابه کرامو په نزد په دغه الفاظو کي کیږي چي کوم وخت رسول الله ﷺ له دنیا څخه رخصت سو نو موږ د رسول الله ﷺ پر قبر مبارک باندي د خاورو اچولو څخه وروسته خپل لاسونه څنډلي نه وه او د رسول الله ﷺ خاورو سپارلو کي بوخت وو چي موږ په خپلو زړونو کي یو لوی بدلون محسوس کړ.

ددې مطلب دا وو چي د افتاب نبوت په لوېدو سره پر پوره کائنات باندي تیاره خپره سوه، او دهغه صحابه کرامو زړونه یې هم متاثر کړل او هغوئ محسوس کړه چي موږ په زمانه رسالت کي د ایمان او اخلاص او یقین او اعتقاد کوم مقام باندي وو اوس د رسول الله ﷺ څخه وروسته هغه مقام نه دی راغلی که حضرت عمر ﷺ دا وفرمایل چي د رسول الله ﷺ څخه وروسته موږ کوم عبادتي اعمال وکړل د هغه څخه سر او تن خلاصېدل هم زموږ په حق کي لوی غنیمت دی نو هغوئ یقینا ډېره عارفانه خبره وفرمایه، څرګنده دي وي چي ددې خبري تعلق د پاکو نفسو سره دی چي جلیل القدر صحابه کرامو او د خپل ایمان او اعتقاد په اعتبار د ټول امت څخه افضل وه نو ظاهره ده چي د هغه خلکو په اړه څه ویل کېدای سي او د هغوئ به څه حال وي چي د هغه پاکو نفسو څخه هم وروسته دغه دنیا ته راغلل او د هغوئ طاعت او عبادت د غرور او ریاء څخه بالکل ډک وي، پرته ددې څخه چي الله ﷻ پر چا باندي د خپل فضل او کرم سایه وکړي یعني بد خلک د خپلو نیکو بندګانو په ډله کي په حسن عاقبت سره ونازوي، ځینو عارفینو دا هم ویلي دي چي هغه ګناه او معصیت چي په بنده کي د ندامت، پښېمانۍ او ذلت باعث سي هغه طاعت او عبادت څخه غوره دی چي په غرور او تکبر کي اخته کړي.

د روایت آخری شی یعني د حضرت ابوبرده ﷺ دا قول (قسم په خدای ستا پلار زما تر پلار غوره وو) مطلب دادی چي کله ستا پلار د دومره غوره کېدو او د زیاتو اعمالو او فضائلو سربېره د خوف او بیري پر دغه مقام وو نو په دې کي هیڅ شک نسته چي هغه زما تر پلار زیات غوره سو او د هغه مرتبه به زیاته لوړه وي یا دا مراد دی چي پر دې خبره تعجب دی چي ستا پلار سره ددې چي زما د پلار څخه افضل وو مګر هغه د اخرت په معامله کي دومره په بېره وو نو ددې څخه معلومه سوه چي د آخرت معامله ډېره نازکه ده.

### د نهو خبرو حکم

﴿۵۱۲۶﴾: وَعَنْ أَبِيْ هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَمَرَنِيْ رَبِّيْ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما پروردګار ما ته د نهو

بِتِسْعٍ خَشْيَةِ اللهِ فِي السِّرِّ وَالْعَلَانِيَةِ كلمة الْعَدْلِ فِي الْغَضَبِ وَالرِّضٰى وَالْقَصْدِ

(۹) خبرو حکم راکړی دئ (او هغه دادي): (۱): په ظاهر او باطن کي د الله جل جلاله څخه بيريدل (۲) د غصې او رضا مندی په حالت کي رښتيا ويل

فِي الْفَقْرِ وَالْغِنٰى وَأَنْ أَصِلَ مَنْ قَطَعَنِيْ وَأُعْطِيَ مَنْ حَرَّمَنِيْ وَأَعْفُوْ عَمَّنْ ظَلَمَنِيْ

(۳) په فقر او غنا کي ميانه روي کول (۴) څوک چي زما سره تعلق قطع کوي زه د هغوئ سره هم قرابت او خپلوي ساتم (۵) زه هغه سړي ته هم ورکوم څوک چي ما محروم کوي (۶) څوک چي پر ما ظلم وکړي

وَأَنْ يَّكُوْنَ صَمْتِيْ فِكْرًا وَّنُطْقِيْ ذِكْرًا وَنَظَرِيْ عِبْرَةً وَآمُرَ بِالْعُرْفِ وَقِيْلَ بِالْمَعْرُوْفِ. رواه رزين.

زه د بدلې اخيستلو سربيره هغه معاف کړم (۷) زما چُپتيا دي غور او فکر وي (۸) زما وينا دي ذکر الهي وي (۹) او زما نظر دي عبرت تر لاسه کولو لپاره وي او زما پروردګار دا حکم کړی دئ چي زه امر بالمعروف او نهي عن المنکر وکړم. رزين.

**تخريج**: رواه رزين.

**تشريح**: د آخري الفاظو مطلب دادی چي په يوه روايت کي د بالعرف پر ځای د بالمعروف الفاظ دي او د دواړو معنی يوه ده يعني ښه خبره.

پاته سوه دا خبره چي کله د امر بالمعروف ذکر سوی دی نو د نهي عن المنکر ذکر ولی ونه کړل سو، نو ددې وجه داده چي د امر بالمعروف لفظ عام دی چي د هغه په دائره کي د نهي عن المنکر مفهوم هم راځي حال دا چي يوازي د امر بالمعروف لفظ استعماليږي نو ددې څخه مراد پوره مفهوم وي يعني د نيکی حکم ورکول او د بدی څخه منع کول (يعني د نيکی حکم ورکول په حقيقت کي د بدی څخه منع کول دي). څرګنده دي وي چي د رسول الله ﷺ د امر بالمعروف حکم فرمايل د مذکوره خبرو د حکم څخه پرته دی او دا حکم د جامعيت حامل دی چي ددې په دائره کي د خالق او مخلوق سره اړوند ټولي ښه خبري او طاعات راځي چي رسول الله ﷺ په تفصيل سره د ذکر کولو څخه وروسته په اجمالي توګه ذکر کړې.

## د الهي بيري څخه ژړا

﴿۵۱۲۷﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

مَا مِنْ عَبْدٍ مُؤْمِنٍ يَخْرُجُ مِنْ عَيْنَيْهِ دُمُوعٌ وَإِنْ كَانَ مِثْلَ رَأْسِ الذُّبَابِ مِنْ

د الله جل جلاله هيڅ مؤمن بنده داسي نه وي چي د هغه د سترګو څخه د الله جل جلاله په بيره کي اوښکي و بهيږي که څه هم چي هغه اوښکي د مچ د سر برابر وي

خَشْيَةِ اللّٰهِ ثُمَّ يُصِيبُ شَيْئًا مِنْ حُرِّ وَجْهِهِ إِلَّا حَرَّمَهُ اللّٰهُ عَلَى النَّارِ. رواه ابن ماجة.

بيا هغه اوښکي د هغه د مخ يو حصې ته ورسيږي خو دا چي الله تعالى پر هغه د دوږخ اور حرام کړي . ابن ماجه .

**تخريج**: سنن ابن ماجه ۲\ ۱۴۰۴، رقم: ۴۱۹۷.

==========

## بَابُ تَغَيُّرِ النَّاسِ (د خلکو د حالاتو د بدلون بيان)

د تغير معنى دبدلون ده يعني د يوه حالت په پرېښودو سره بل حالت اختيارول، دلته په خلکو کي د تغير څخه مراد د مسلمانانو د هغه حالت بدلېدل دي کوم چي د رسول الله ﷺ په زمانه کي وو، د رسو ل الله ﷺ په زمانه کي د اهل ايمان حالت دا وو چي هغوئ د دين پر لار په سختۍ سره قائم وه ، د احکام سنت التزام وو، د حق پيروان وه ، د دنيا څخه بې شوقه وه، د شريعت غوره اعمال، نيک خصلتونه او ښه اخلاق د هغوئ عادت ثانيه وو ، د الله تعالى په لاره کي سينه سپر او سېدل د زړه د نورانيت او د باطن د پاکوالي په جوهر سره متصف وه .

مګر د رسول الله ﷺ څخه وروسته څرنګه چي زمانه تېرېدل د خلکو په حالاتو کي بدلون راتلی تر دې چي په آخره زمانه کي د هغوئ حالات او معاملات بالکل برعکس سول .

# اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

## د خلکو قحطي

﴿۵۱۲۸﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنَّمَا النَّاسُ كَالْإِبِلِ الْمِائَةِ لَا تَكَادُ تَجِدُ فِيهَا رَاحِلَةً. متفق عليه.

د حضرت ابن عمر ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : انسان د سلو اوښانو په ډول دي چي په هغو كي به ته يو د سپرلۍ وړ تر لاسه نه كړې . بخاري او مسلم

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۳۳۳، رقم: ۶۴۹۸، ومسلم ۴\۱۹۷۳، رقم: ۲۳۲- ۲۵۴۷.

**تشريح**: راحلة: هغه اوښ ته وايي چي روغ او توانا وي او د سپرلۍ لپاره ډېره ښه ګڼل كيږي، په دغه الفاظو كي د ت حرف د مبالغې د اظهار لپاره دی .

د حديث مطلب دادی چي په دغه دنيا كي خلک خو ډېر دي لكه څرنګه چي اوښان ډېر وي مګر څرنګه چي په اوښانو كي د سپرلۍ او بار وړلو قابل يو څو اوښان وي همدارنګه د كار خلک چي د رسول الله ﷺ د كار او صحبت قابل وي او د صحبت حق ادا كولای سي او د هغه په نېک مقصد كي د هغه مرستيال ثابت سي ډېر كم وي، د رسول الله ﷺ زمانه په دې اعتبار تر ټولو غوره وه چي په هغه كي د كار خلک زيات وه بيا وروسته كه څه هم د مخكي زمانې په نسبت د داسي خلكو شمېر كم وو مګر د راتلونكو زمانو په اعتبار هغه شمېر يقينا زيات وو، بيا دهغه څخه په وروسته زمانه كي د داسي خلكو شمېر كه څه هم د دوهمي زمانې د شمېر څخه هم كم وو مګر د راتلونكو زمانو په اعتبار يقينا ډېر زيات وو .

په حديث كي د سل شمېر ذكر سوی دی چي د تحديد او تعين لپاره نه دی بلكه د كثرت د اظهار لپاره دی ، خلاصه دا چي په خلكو كي داسي خلک وجود لري چي پر هغه د مخلص عالم باعمل اطلاق كېدای سي ځكه د هري زمانې ارباب حال دا وايي چي دا زمانه د قحط الرجال ده ، د حضرت سهل تستري رحمه الله په اړه منقول دي چي هغه يوه ورځ په مسجد كي خلک ډېر ولېدل چي مسجد دننه او دباندي ډک سوی وو نو وه يې فرمايل : كلمه ويونكي يقينا ډېر دي مګر په دوئ كي د مخلص خلكو شمېر ډېر كم دی دا مفهوم الله جل جلاله هم په قرآن كريم كي پر څو موقعو باندي بيان كړی دی .

## د مسلمانانو په باره کي يو پيشگويي

﴿۵۱۲۹﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَتَتَّبِعُنَّ سَنَنَ مَنْ قَبْلَكُمْ شِبْرًا بِشِبْرٍ وَذِرَاعًا بِذِرَاعٍ حَتَّى لَوْ دخلوا جُحْرَ ضَبٍّ تبعتموهم قيل يَا رَسُولَ اللّٰهِ الْيَهُودَ وَالنَّصَارَى قَالَ فَمَنْ. متفق عليه.

د حضرت ابو سعيد ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو خلک به يقينا د هغو خلکو د طريقو پيروي کوئ کوم چي ستاسو مخکي تير سوي دي، لوېشت برابر د لويشت او لاس برابر د لاس تر دې که هغوئ د سمسارې په سوري کي ننوځي نو تاسو به هم په هغه کي ننوزئ، پوښتنه وسول اې دالله رسوله! (ايا ستاسو مراد) يهود او نصارا دي، رسول الله ﷺ وفرمايل: (هغوئ نه نو) نور څوک؟ بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\ ٤٩٥، رقم: ٣٤٥٦، ومسلم ٤\ ٢٠٥٤، رقم: ٦– ٢٦٦٩.

**تشريح**: سنن د سنت جمع ده چي معنی يې د طريقې ده که هغه نېکه طريقه وي يا خرابه طريقه وي، دلته د دغه لفظ څخه د هغه خواهش پرست او دين مسخ کونکو خلکو طريقې مراد دي چي هغوئ د خپل نبي او پيغمبر تېرېدو څخه وروسته د خپل نفساني خواهشاتو او درواغجنو اغراضو لاندي خپل دين بدل کړ او د هغوئ نبي او پيغمبر هغوئ ته د الله کتاب پرې ايښی وو په هغه کي هغوئ تحريف وکړ او د هغه په احکامو او مسائلو کي يې بدلون وکړ، په ځينو نسخو کي د دغه لفظ د سين په زور سره دی.

لوېشت د لويشت برابر او لاس د لاس برابر: مطلب دا وو چي په هر کار او هره معامله کي د هغوئ مکمله اتباع او پيروي کول او د هغوئ ټولي طريقې اختيارول.

## په دنيا کي درجه په درجه ښه خلک کميږي

﴿۵۱۳۰﴾: وَعَنْ مِرْدَاسٍ الْأَسْلَمِيِّ قَالَ قَالَ رسول الله صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَذْهَبُ الصَّالِحُونَ الْأَوَّلُ فَالْأَوَّلُ و تبقى حُفَالَةٌ كَحُفَالَةِ الشَّعِيرِ أَوْ التَّمْرِ لَا يُبَالِيهِمُ اللّٰهُ بَالَةً. رواه البخاري.

د حضرت مرداس اسلمي ﷜ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نيک بخت خلک به

يو په بل پسې مړه كيږي او بيكاره خلك به پاته سي چي الله تعالى د اوربشو د پروړ يا د خرماوو د هډوكو په ډول د هغوئ پروا نه كوي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۷\۴۴۴، رقم: ۴۱۵۶.

**د لغاتو حل**: حُفالة: اى نخالة. (پروړ، بوس). بالة: اى مبالاة. (د خرما مندكي)

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### يو پيشگوئي چي صحيح ثابته سوه

﴿۵۱۳۱﴾: عَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا مَشَتْ أُمَّتِي الْمُطَيْطِيَاءَ وَخَدمتهم أَبْنَاءُ الْمُلُوكِ أَبْنَاءُ فَارِسَ وَالرُّومِ سلطَ الله شِرَارُهَا عَلَى خِيَارِهَا. رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي زما د امت خلك په تكبر سره ګرځي او خدمت وكړي د دوئ زامنو د فارس او روم د پاچاهانو د اولاد نو الله تعالى به د دې امت خراب خلك پر ښو خلكو مسلط كړي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۵۶، رقم: ۲۲۶۱.

**د لغاتو حل**: المطيطياء: وهو مشي فيه التبختر ويروى بغير الياء الاخيرة وهو لفظ الجامع.

**تشريح**: دا حديث د رسول الله ﷺ د نبوت د دليلونو څخه يو دليل دى ځكه چي رسول الله ﷺ ددغه حديث په ذريعه د يوې داسي خبري خبر وركړى دى چي په راتلونكې زمانه كي واقع كېدونكي وه او رسول الله ﷺ د وړاندويني چي كومه خبره وكړه هغه حرف په حرف صحيح ثابته سوه، دا خبره د اسلامي تاريخ يو عين حقيقت دى چي مسلمانانو د فارس او روم سيمي فتح كړې د هغه ځاى بې شمېره دولت يې د غنيمت په توګه تر لاسه كړ د هغه سيمو او ښارو خلك يې بنديان كړل او د پاچاهانو اولاد يې هم غلامان كړل او د هغوئ څخه يې د خدمت كار واخيست او همدا رنګه په هغوئ كي دا احساس پيدا سو او د اخلاص پر ځاى د عزت او منصب، مال او دولت مينه اختيار كړه، نو بيا الله تعالى پر هغوئ باندي هغه خلك مسلط كړل چي هغوئ حضرت عثمان رضي الله عنه شهيد كړ، تر دې چي بني هاشم چي تر پرونه پوري د مسلمانانو د قيادت او

سیادت امین گڼل کېدل او د هغوئ خلافت او حکمراني پر ټوله نړۍ قائمه وه پر هغوئ یې د بنو امیه مسلط کړل او بنو امیه چي څه وکړل هغه د اسلامي تاریخ یو داسي تریخ حقیقت دی چي دلته بیانول یې مناسب نه دي.

د مطیطاء معنی ده د دواړو لاسو په ښورولو سره په تکبر تلل، د لغت په مشهورو کتابو، قاموس، صحاح، صراح او مشکوة په صحیح نسخو کي داسي دي مګر په مجمع البخاري او د دغه کتاب څخه وروسته په حواشي کي لیکلي دي چي دغه لفظ د دوهمي ط څخه وروسته هم په یاء سره منقول دی چي محذوف دی یعني مطیطا پر ځای مطیطی دی، ددې څخه معلومه سوه چي د دوهمي طاء څخه وروسته هم د یاء حرف دی بلکه په یوه معنی کي دا رواج هم دی.

## قیامت به کله قائم سي

﴿۵۱۳۲﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ أَنَّ النبي ﷺ قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتُلُوا إِمَامَكُمْ وَتَجْتَلِدُوا بِأَسْيَافِكُمْ وَيَرِثَ دُنْيَاكُمْ شِرَارُكُمْ. رواه الترمذي.

د حضرت حذیفه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو پوري چي تاسو خپل امام قتل نه کړئ او په خپل منځ کي یو بل په توره ونه وهئ او ستاسو د دنیا مالکان ستاسو شریر او بد خلک نه سي. ترمذي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۰۷، رقم: ۲۱۷۰.

**د لغاتو حل**: تجتلدوا: ای تتضاربوا.

## د قیامت یوه نښه

﴿۵۱۳۳﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ ﷺ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَكُونَ أَسْعَدَ النَّاسِ بِالدُّنْيَا لُكَعُ ابْنُ لُكَعٍ. رواه الترمذي والبيهقي في دلائل النبوة.

د حضرت حذیفه رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: قیامت به تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو پوري چي په دنیا کي تر ټولو زیات نصیب خور او شتمن هغه کس نه سي چي احمق (بې عقله) وي او د بې عقل زوی وي. ترمذي او بیهقي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۴۲۷، رقم: ۲۲۰۹.

## د عيش او راحت ژوند

﴿۵۱۳۴﴾: وَعَنْ مُحَمَّدِ بْنِ كَعْبٍ الْقُرَظِيِّ قَالَ حَدَّثَنِي مَنْ سَمِعَ عَلِيَّ بْنَ أَبِي

د حضرت محمد بن كعب قرظي رحمه الله څخه روايت دئ چي ما ته يو سړي بيان وكړ چي هغه د حضرت علي بن ابي طالب رضي الله عنه څخه اوريدلي وه

طَالِبٍ قَالَ إِنَّا لَجُلُوسٌ مَعَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْمَسْجِدِ فَاطَّلَعَ

يعني حضرت علي رضي الله عنه وويل: موږ خلك په مسجد نبوي كي د رسول الله ﷺ سره ناست وو چي

عَلَيْنَا مُصْعَبُ بْنُ عُمَيْرٍ مَا عَلَيْهِ إِلَّا بُرْدَةٌ لَهُ مَرْقُوعَةٌ بِفَرْوٍ فَلَمَّا رَآهُ رَسُولُ

مصعب بن عمير راغلئ د هغه پر بدن هغه وخت يو څادر وو چي په هغه كي د پوست پيوند لگيدلى وو ، د هغه په ليدو سره

اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَكَى لِلَّذِي كَانَ فِيهِ مِنَ النِّعْمَةِ وَالَّذِي هُوَ فِيهِ الْيَوْمَ

رسول الله ﷺ په ژړا سو (او وه يې فرمايل) : په يوه زمانه كي هغه (يعني مصعب) څومره خوشحاله وو او نن د هغه څه حالت دئ ،

ثُمَّ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ كَيْفَ بِكُمْ إِذَا غَدَا أَحَدُكُمْ فِي حُلَّةٍ

بيا رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه وخت به ستاسو څه حال وي چي په سهار كي يوه جوړه (جامې)

وَرَاحَ فِي حُلَّةٍ وَوُضِعَتْ بَيْنَ يَدَيْهِ صَحْفَةٌ وَرُفِعَتْ أُخْرَى وَسَتَرْتُمْ بُيُوتَكُمْ

اغوندئ او په ماښام كي بله جوړه او ستا مخته د خوراك يوه پياله كښېښودل سي او بله پورته كړل سي ، او پر خپلو كورونو به داسي پردې واچوئ

كَمَا تُسْتَرُ الْكَعْبَةُ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللّٰهِ نَحْنُ يَوْمَئِذٍ خَيْرٌ مِنَّا الْيَوْمَ نَتَفَرَّغُ

لكه څرنگه چي پر كعبه اچول سوې ده ، صحابه كرامو وويل: اې د الله رسوله ! موږ به په هغه ورځ د نن څخه په غوره حال كي يو څكه چي موږ ته به هغه وخت د عبادت لپاره ډير وخت تر لاسه

لِلْعِبَادَةِ وَنُكْفَى الْمُؤْنَةَ قَالَ لَا انتم الْيَوْمَ خَيْرٌ مِنْكُمْ يَوْمَئِذٍ . رواه الترمذي

سي او د محنت او بوختيا څخه به بې فکره يو، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل :يا، (داسي نه ده بلکه) نن ورځ تاسو د هغه ورځي څخه غوره ياست. ترمذي

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\۵۵۸، رقم: ۲۴۷٦.

**د لغاتو حل**: لګم: اى لئيم.

**تشريح**: سيوطي رحمه الله په جمع الجوامع کي د حضرت عمر رضي الله عنه دا روايت نقل کړی دی چي يوه ورځ مصعب ابن عمير رضي الله عنه د نبي کريم ﷺ په خدمت کي حاضر سو نو هغه وخت هغه د پسه د پوست يوه تسمه پر خپل ملا تړلې وه، رسول الله ﷺ چي هغه ولېدی نو د مجلس حاضرينو ته يې وفرمايل دغه سړي ته وګورئ چي دده زړه الله تعالى منور کړی دی، حقيقت دادی چي ما دده مور او پلار په داسي حال کي ليدلي دي چي دوی به يې ښه خوراک ورکوی او ښه جامې به يې په اغوستلې، ما دده پر بدن يو داسي جامه ليدلې ده چي د دوو سوو درهمو په عوض کي يې رانيولې وه يعني دا هغه سړی دی چي خپل په تېر ژوند کي يې ډېر عيش او عشرت کړی دی، مګر د الله تعالى او رسول محبت دغه حالت ته رسولي دي چي اوس يې تاسو وينئ، د الله تعالى بې پايه رحمتونه دي نازل وي پر هغه جليل القدر صحابي باندي، چي د هغه نوم معصب ابن عمير رضي الله عنه دی، قريش الاصل دی، د لوړي درجې په صحابه کرامو کي شمېرل کېږي د مکې څخه يې هجرت وکړ د دنيا ټولو نعمتونو او راحتونو ته يې لغته ورکړه او د رسول الله ﷺ په خدمت کي مدينې ته راغلی لکه څرنګه چي رسول الله ﷺ شهادت ورکړی دی د اسلام څخه مخکي زمانه کي د مکې په لويو شتمنو کي وو، ډېري ښه جامې به يې وي او ښه خوراک بهٔ يې کوی، مګر کله چي مسلمان سو نو ټول عيش او عشرت يې پرېښود، د الله او رسول په عشق کي داسي رنګ سو چي د دنيا او د دنيا د شيانو څخه يې نفرت پيل کړ، زهد يې اختيار کړ نو کله چي دی د احد د غزا پر موقع په شهادت ورسيدی نو د شهادت په وخت کي د هغه عمر څلوېښت کاله وو يا تر دې څه زيات وو.

د حديث څخه په څرګنده دا معلومېږي چي د حضرت معصب رضي الله عنه په لېدو سره د رسول الله ﷺ په ژړا کېدل د هغه د بدحالی په وجه د رحم او شفقت له کبله وو چي دا هغه سړی دی چي دخپل قوم سترګي په ده لوړېدلې ده، دعيش او ارام ژوند يې تېروی او اوس دغه حالت ته رسيدلی دی چي پر بدن باندي پېوند سوی څادر يې پر ځان چاپېره کړی دی او په څادر باندي خپل وخت تېروي مګر دا خبره د هغه واقعې خلاف معلومېږي چي د هغه ذکر مخکي هم په يوه

روایت کي تېر سوی دی چي یوه ورځ حضرت عمر رضي الله عنه د رسول الله ﷺ په خدمت کي حاضر سو او رسول الله ﷺ یې د بوریکو پر کټ پروت ولیدی چي د بړیکو نښي د رسول الله ﷺ پر بدن مبارک لګېدلي وي نو هغه وخت په ژړا سو ، هغه د رسول الله ﷺ د شفقت څخه ډک ژوند د فارس او روم د پاچاهانو د ژوند سره مقایسه کړ چي د الله تعالی سرکښ او نافرمانه کېدو سربېره د عیش او عشرت ژوند تېروي ، په دغه وخت کي رسول الله ﷺ حضرت عمر رضي الله عنه ته وفرمایل چي ته تر اوسه د فکر او پوهي د دغه مقام څخه وړاندي سوی نه یې ، د خدای بنده! ایا ته په دې راضي نه یې چي دغه پاچاهانو ته یوازي د دنیا نعمتونه حاصل سي او موږ د آخرت په نعمتونو او سعادتونو سره ونازول سو ، غوره داده چي د حضرت معصب رضي الله عنه په لېدو سره د رسول الله ﷺ ژړا د خوښۍ پر ژړا باندي محمول کړل سي چي د خپل امت خلک د دنیا څخه په زهد اختیارولو عقبی ته متوجه دي ،

او که چیري دغه ژړا پر غم او حسرت باندي محمول کړل سي نو په هغه صورت کي به ویل کیږي چي د رسول الله ﷺ غم په اصل کي پر دې خبره وو چي زما د امت داسي خلکو ته د ژوند د اړتیا شیان هم تر لاسه نه دي چي یوازي د دغه دنیا لپاره ضروري نه دي بلکه په طاعت او عبادت کي هم معاون او مرسته کونکي دي، بلکه د ضرورت په اندازه جامه او نور شیان هم نه لري، د دغه تاویل تائید د رسول الله ﷺ د دغه الفاظو (کیف بکم اذا غدا ..الخ او انتم الیوم خیر منکم) څخه هم کیږي ځکه چي هغه مفلس او غریب سړی چي د ژوند اړتیا د کفایت په اندازه شیانو مالک وي د غني او شتمن سړي څخه غوره دی ، غني او شتمن سړی د مال تر لاسه کولو په هڅه کي د زیاتي بوختیا په وجه د طاعت او عبادت لپاره د قلبي او بدني سکون څخه لیري وي ، په دې اعتبار سره دغه حدیث په حقیقت کي پر دې خبره دلالت کوي چي صبر او استقامت اختیارونکي غریب او مفلس شکر ګزار تر شتمن زیات افضل دی نود صحابه کرامو په ډول خلکو تعلق چي د امت تر ټولو زیات په ایمان او عقیده ټینګ خلک وه چي د هغوئ په نسبت ایمان او عقیده کي ډېر زیات ضعیف دي ددې مؤید هغه حدیث هم دی کوم چي د یلمي په فردوس کي د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه مرفوعا نقل کړیدی چي رسول الله ﷺ وفرمایل: (مارویت الدنیا عن احد الا کانت خیرة له)، او ملا علي قاري رحمه الله د دغه روایت نقل کولو څخه وروسته یوه خاص خبره کړې ده چي (عن احدٍ) د هغه چا لفظ عام دی چي ددې مفهوم مؤمن او غیر مؤمن ټولو ته شامل دی نو په دوږخ کي د شتمن کافر په نسبت د فقر او مفلس کافر عذاب به سپک وي نو ددې څخه دا خبره څرګنده سوه چي کله په دغه فاني دنیا کي فقر او

افلاس كافر ته دا ګټه ورسول نو هغه مؤمن ته به دارالقرار كي ګټه ولي ونه رسوي چي په دنيا كي پر خپل فقر او مفلسي باندي صابر پاته سوى وي.

### د فسق او فجور په وخت كي به پر دين قائمېدل مشكل سي

﴿۵۱۳۵﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَأْتِي عَلَى النَّاسِ زَمَانٌ الصَّابِرُ فِيهِمْ عَلَى دِينِهِ كَالْقَابِضِ عَلَى الْجَمْرِ. رواه الترمذي و قال هذا حديث غريب اسنادا.

د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: يوه زمانه به پر خلكو داسي راسي چي په هغه كي به پر دين صبر كونكى د هغه سړي په ډول وي چي هغه په خپل موټ كي سكروټه اخيستى وي. ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى په اسنادو كي.

**تخريج**: سنن الترمذي ۴۵٦\۴، رقم: ۲۲٦۰.

**تشريح**: مطلب دادى چي په آخره زمانه كي كله چي بدي عامه سي، فسق او فجور خپور سي او په ټولنه كي د بدكارو خلكو دومره غلبه سي چي د دين خبره كونكي او ديندار كسان به نه تر لاسه كيږي نو هغه وخت دين اختيارول او ثابت قدمي سره تلل به دومره سخت وي لكه څرنګه چي يو سړى په خپل لاس كي سكروټه ونيسي او د هغه پر تكليف باندي صبر وكړي.

### ژوند كله ښه وي او مرګ كله

﴿۵۱۳٦﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا كَانَ

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: هر كله چي

أُمَرَاؤُكُمْ خِيَارَكُمْ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ سُمَحَاءَكُمْ وَأُمُورُكُمْ شُورَى بَيْنَكُمْ فَظَهْرُ

ستاسو اميران ستاسو غوره خلك وي او شتمن ستاسو سخيان وي او ستاسو كارونه په خپل منځ كي په مشورې سره كيږي نو هغه وخت به د

الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ بَطْنِهَا وَإِذَا كَانَ أُمَرَاؤُكُمْ شِرَارَكُمْ وَأَغْنِيَاؤُكُمْ

مځكي شا ستاسو لپاره د مځكي د نس څخه غوره وي (يعني ژوند به مو تر مرګ غوره وي) او

هر كله چي ستاسو اميران شرير او بد خلک وي او ستاسو شتمن

بُخَلَاءَكُمْ وَأُمُورُكُمْ إِلَى نِسَائِكُمْ فَبَطْنُ الْأَرْضِ خَيْرٌ لَكُمْ مِنْ ظَهْرِهَا . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب.

بخيل وي او ستاسو كارونه ستاسو د ښځو په لاس كي وي نو دغه وخت به ستاسو لپاره د مځكي نس د مځكي تر شا غوره وي . ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دئ .

**تخريج**: سنن الترمذي ۴۵۹\۴، رقم: ۲۲۶۶.

**تشريح**: مطلب دادی چي هغه ټولنه ډېره بد بخته ده چي په هغه كي خلک خپل معاملات ښځو ته حواله كوي ، حال دا چي ښځي د سړو په نسبت په عقل او دين دواړو كي كمزوري او د ناقص كېدو په وجه داسي صلاحيت نه لري ځكه فرمايل سوي دي چي: (شاوروا هن وخالفوا هن) يعني د ښځو سره مشوره كوئ مگر د هغوئ د رايي خلاف عمل كوئ، همدارنگه هغه سړي هم د ښځو په حكم كي داخل دی چي د هغه په ډول حال يې وي يعني پر كومو كسانو چي د مال غلبه وي چي په دې نه پوهېږي چي كوم شی دين ته تاوان رسوي او كوم كار د دين او شريعت خلاف دی د يو شي او د يوې معاملې څه انجام كيږي نو هغوئ هم يقينا د ښځو په ډول د عقل او دين دواړو په اعتبار كمزوري دي نو داسي سړي چي خپل مقتدا او رهنما جوړول او خپل اختيار هغوئ ته سپارل د ټوله ټولني د تباهی او خرابی سره مخامخ كېدل دي .

د حديث ظاهري طرز دا تقاضا كوي چي كله په اوله برخه كي دا فرمايل سوي دي چي تاسو خپل معاملات په مشوره سره فيصله كوئ نو په دوهمه برخه كي داسي فرمايل پكار وو چي ستاسي معاملات د اختلاف ښكار سي مگر د داسي فرمايلو پر ځای دا فرمايل چي ستاسو د معاملاتو واگي د ښځو په لاس كي وي ، يعني دې ته اشاره كول دي چي په خپلو كي پيدا كېدونكي اختلاف او تنازعات په عامه توگه د ښځو تابع كولو او د هغوئ پر خبره د تللو په وجه كيږي .

## د دنيا سره محبت او د مرگ څخه بېره

﴿۵۱۳۷﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ الْأُمَمُ

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د گمراه خلكو ډلي نژدې دي

أَنْ تَدَاعَى عَلَيْكُمْ كَمَا تَدَاعَى الْأَكَلَةُ إِلَى قَصْعَتِهَا فَقَالَ قَائِلٌ وَمِنْ قِلَّةٍ نَحْنُ

چي په هغوئ کي ځيني خلک به ستاسو سره د جنګېدو او ستاسو د شان او شوکت ختمولو لپاره راوغوښتل سي لکه څرنګه چي خوراک خوړونکی يو ډله بله ډله د خوراک لپاره بولي، ددې اوريدو سره صحابه کرامو کي يو چا پوښتنه وکړه ايا هغه خلک به په دې وجه پر موږ غلبه

يَوْمَئِذٍ قَالَ بَلْ أَنْتُمْ يَوْمَئِذٍ كَثِيرٌ وَلَكِنَّكُمْ غُثَاءٌ كَغُثَاءِ السَّيْلِ وَلَيَنْزَعَنَّ

وکړي چي موږ به هغه وخت په شمير کم يو؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: هغه زمانه کي به تاسو په ډير شمير کي ياست مګر داسي لکه څرنګه چي د درياب يا وياليو پر غاړه د اوبو ځګ وي (يعني تاسو به ډير کمزوري ياست)

اللَّهُ مِنْ صُدُورِ عَدُوِّكُمُ الْمَهَابَةَ مِنْكُمْ وَلَيَقْذِفَنَّ فِي قُلُوبِكُمُ الْوَهْنَ قَالَ

ستاسو رعب او هيبت به دد ښمنانو د زړونو څخه ووځي او ستاسو په زړونو کي به ضعف او سستي پيدا سي،

قَائِلٌ يَا رَسُولَ اللَّهِ وَمَا الْوَهْنُ قَالَ حُبُّ الدُّنْيَا وَكَرَاهِيَةُ الْمَوْتِ. رواه ابوداؤد والبيهقي في دلائل النبوة.

يو چا وويل: اې د الله رسوله! وهن (ضعف او سستي) څه شي ده؟ رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: ددنيا مينه او د مرګ څخه بيزاري. ابوداؤد او بيهقي.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴/۴۸۲، رقم: ۴۲۹۷.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِثُ (دريم فصل)

### يو څو بدۍ او د هغو ګناه

﴿۵۱۳۸﴾: عَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ مَا ظَهَرَ الْغُلُولُ فِي قَوْمٍ إِلَّا أُلْقِيَ اللهُ فِي قُلُوبِهِمُ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي په کوم قوم کي د غنيمت په مال کي خيانت پيدا سي نو الله تعالی د هغوئ په زړونو کي د دښمن رعب پيدا کړي

الرُّعْبُ وَلَا فَشَا الزِّنَا فِي قَوْمٍ إِلَّا كَثُرَ فِيهِمُ الْمَوْتُ وَلَا نَقَصَ قَوْمٌ الْمِكْيَالَ

او په کوم قوم کي چي زنا کاري خپره سي نو په هغوئ کي مرگونه زيا تيږي او کوم قوم چي په تول کي کمي کوي

وَالْمِيزَانَ إِلَّا قُطِعَ عَنْهُمُ الرِّزْقُ وَلَا حَكَمَ قَوْمٌ بِغَيْرِ الْحَقِّ إِلَّا فَشَا فِيهِمُ الدَّمُ وَلَا خَتَرَ قَوْمٌ بِالْعَهْدِ إِلَّا سُلِّطَ عَلَيْهِمُ الْعَدُوَّ . رواه مالك.

نو د هغوي رزق به پورته سي او کوم قوم چي ناحق حکم کوي نو په هغوئ کي به ويني تو يول يعني وژل خپريږي او کوم قوم چي قول او وعده ماتوي پر هغوئ به دښمن مسلط کيږي . مالک .

**تخريج**: موطا الامام مالک ۲\۵٦۰، رقم: ۲٦.

**د لغاتو حل**: ختر: اى غدر (چم کول)

==========

# بَابُ الْاِنْذَارِ وَالتَّحْذِيْرِ

## (د بيرو لو او نصيحت کولو بيان)

د مشکوة په صحيح نسخو کي د ذکر سوي عنوان پر ځای يوازي باب ليکل سوی دی ، مطلب دادی چي دغه باب د تېرو بابو اړوند دی مگر ابن ملک رحمه الله دلته د باب ذکر سوی عنوان قائم کړی دی او موږ هغه نقل کړی دی .

## اَلْفَصْلُ الْاَوَّلُ (لومړی فصل)

### د خدای جل جلاله احکام

﴿۵۱۳۹﴾: عَنْ عِيَاضِ بْنِ حِمَارٍ الْمُجَاشِعِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عياض بن حمار مجاشعي رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ يوه ورځ په خپله

قَالَ ذَاتَ يَوْمٍ فِي خُطْبَتِهِ أَلَا إِنَّ رَبِّي أَمَرَنِي أَنْ أُعَلِّمَكُمْ مَا جَهِلْتُمْ مِمَّا عَلَّمَنِي

خطبه کي وفرمايل : خبردار ! الله تعالى ما ته دا حکم کړی دی چي زه درته دا خبره ښيم چي تاسو ته نه ده معلومه : الله تعالى نن ما ته د کومو خبرو تعليم را کړی دئ

يَوْمِي هَذَا كُلُّ مَالٍ نَحَلْتُهُ عَبْدًا حَلَالٌ وَإِنِّي خَلَقْتُ عِبَادِي حُنَفَاءَ كُلَّهُمْ

په هغو کي ځيني خبري دادي: (۱) الله تعالی دا فرمايلي دي کوم مال چي ما خپل يو بنده ته ورکړی دی هغه حلال دی (۲) او الله تعالی دا فرمايلي دي ما خپل بندګان د حق په لور مائل

وَإِنَّهُمْ أَتَتْهُمُ الشَّيَاطِينُ فَاجْتَالَتْهُمْ عَنْ دِينِهِمْ وَحَرَّمَتْ عَلَيْهِمْ مَا أَحْلَلْتُ

کړي دي بيا هغوئ ته شيطانان راغلل او هغوئ يې د خپل دين څخه واړول، او پر هغوئ يې هغه شيان حرام کړل کوم چي ما پر حلال کړي وه

لَهُمْ وَأَمَرَتْهُمْ أَنْ يُشْرِكُوا بِي مَا لَمْ أُنْزِلْ بِهِ سُلْطَانًا وَإِنَّ اللَّهَ نَظَرَ إِلَى أَهْلِ

او شيطانانو هغوئ ته دا حکم ورکړ چي زما سره هغه شي شريک کړي چي د هغه په شريکوالي کي هيڅ دليل نه دئ نازل سوی (۳) او الله تعالی دا فرمايلي دي چي الله پاک د مځکي پر

الْأَرْضِ فَمَقَتَهُمْ عَرَبَهُمْ وَعَجَمَهُمْ إِلَّا بَقَايَا مِنْ أَهْلِ الْكِتَابِ وَقَالَ إِنَّمَا

اوسيدونکو نظر واچوئ نو عرب او عجم ټولو باندي غضب ناک سو (ځکه چي هغوئ مشرکان وه) مګر يوه ډله د اهل کتابو څخه (چي مشرکان نه وه) (۴) او الله تعالی وفرمايل چي ما

بَعَثْتُكَ لِأَبْتَلِيَكَ وَأَبْتَلِيَ بِكَ وَأَنْزَلْتُ عَلَيْكَ كِتَابًا لَا يَغْسِلُهُ الْمَاءُ تَقْرَؤُهُ

(محمد ﷺ) ته په دې سبب پيغمبر راليږلی يې چي زه تا وازمويم او ستا سره ستا قوم هم وازمويم، او ما تا ته يو داسي کتاب درليږلی دئ چي هغه او به نسي خرابولای يعني چي په زړونو

نَائِمًا وَيَقْظَانَ وَإِنَّ اللَّهَ أَمَرَنِي أَنْ أُحَرِّقَ قُرَيْشًا فَقُلْتُ رَبِّ إِذًا يَثْلَغُوا رَأْسِي

کي خوندي وي چي ته به يې په خوب او ويښه کي ويلای سې. (۵) او الله تعالی ما ته حکم راکړی دئ چي زه قريش وسوځم (يعني د قريشو کفار تباه او برباد کړم) د دې حکم اوريدو سره ما وويل: قريش خو به زما سر ميده کړي

فَيَدَعُوهُ خُبْزَةً قَالَ اسْتَخْرِجْهُمْ كَمَا أَخْرَجُوكَ وَاغْزُهُمْ نُغْزِكَ وَأَنْفِقْ

او د ډوډۍ په ډول به مي ټوټې ټوټې کړي، وويل پروردګار ته هغوئ د وطن څخه وباسه لکه

ځرنګه چي يې ته د خپل وطن ځخه ايستلی وې او د هغوئ سره جهاد وکړه موږ به ستاسو لپاره د جهاد سامان برابر کړو او په خپلو لښکر خرڅ کوه،

فَسَنُنْفِقَ عَلَيْكَ وَابْعَثْ جَيْشًا نَبْعَثْ خَمْسَةً مِثْلَهُ وَقَاتِلْ بِمَنْ أَطَاعَكَ مَنْ عَصَاكَ. رواه مسلم.

موږ به درته د خرڅ کولو انتظام وکړو تاسو د هغوئ په مقابله کي لښکر وليږئ موږ به دد ښمن د لښکر پنځه برابر توان سره ستاسو مرسته وکړو او کومو خلکو چي پر تا ايمان راوړ او ستا فرمانبردار دي هغوئ د ځان سره ملګري کړه او د هغه خلکو سره جګړه وکړه چا چي نافرماني او سرکښي کړې ده. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\۲۱۹۷، رقم: ۶۳- ۲۸۶۵.

**د لغاتو حل**: نحلته: ای اعطيته. اجتالتهم: ای صرفتهم.

**تشريح**: حق ته مائل پيدا کړل: مطلب دادی چي الله تعالی هغه ټول خلک په داسي صلاحيت او استعداد سره پيدا کړل چي د قبول حق او طاعت په لاره کي به د هغوئ مرسته کونکي وي، په دغه ارشاد کي هغه (فطرت اسلام) ته اشاره ده چي د هغه په اړه فرمايل سوي دي (يعني هر کوچنی د اسلام په استعداد او صلاحيت سره پيدا کيږي) د دغه جملې مطلب دا نه دی چي هغه په حقيقت کي مؤمن او مسلمان پيدا سوی وي مګر وروسته د شيطان د ګمراهۍ په وجه کافر سي، يا د دغه جملې په ذريعه هغه عهد ته اشاره ده چي د ميثاق په ورځ د ټولو روحو ځخه الله تعالی د خپل ربوبيت عهد اخيستی وو او ټولو دا اقرار کړی وو چي بېله شکه موږ ټول تا خپل رب منو، په عهد او اقرار کي د هغه خلکو روحونه هم وه چي دغه دنيا ته د راتلو ځخه وروسته د شيطان د ګمراه کولو په وجه د خپل هغه عهد او اقرار ځخه منکر سول، او د مؤمن کېدو پر ځای يې کفر او شرک اختيار کړ.

په خوب او وېښه کي: مطلب دادی چي داسي ملکه درکړل سوې ده چي قرآن کريم هر وخت ستا په ذهن کي حاضر وي او په هر حالت کي ستا نفس هغه ته متوجه وي نو ته نه د بيدارۍ په حالت کي د هغه ځخه غافل يې او نه د خوب په حالت کي، دا يوه محاوره ده چي کله يو سړی په يو خاص کار کي مهارت او ملکه لري او زيات په هغه کي بوخت وي نو ويل کيږي چي هغه په وېښه او خوب کي دا کار کوي، خلاصه دا چي قرآن د خوب په وخت کي هم ستا په زړه کي وي،

مګر ملا علي قاري رحمه الله وايي چي د رسول الله ﷺ د زړه مبارک په نسبت سره دا تاويل غير ضروري دی ځکه چي د رسول الله ﷺ زړه خو هر وخت بېدار وو ، دخوب په حالت کي به هم يوازي سترګي مبارکي بېده وې او پر زړه به يې هيڅ غفلت نه خپرېدی نو ددغه جملې مطلب دادی چي دخوب په حالت کي به هم د قرآن کريم څخه د رسول الله ﷺ تعلق نه قطع کېدی ، فرق يوازي دادی چي د ويښې په حالت کي به د رسول الله ﷺ پر ژبه او زړه دواړو باندي قرآن کريم جاري وو او د خوب په حالت کي به يوازي پر زړه باندي جاري وو ، د قرآن اعجاز دی چي کوم پاک نفسه خلک د کلام الله سره زيات تعلق لري نو دهغوئ ژبه د خوب په حالت کي هم تلاوت کوي لکه څرنګه چي د ډېرو بزرګانو په اړه منقول دي ، هغوئ ليدل سوي دي چي هغوئ بېده دي مګر پر ژبه يې د قرآن تلاوت جاري وي او تر دې زياته عجيبه واقعه هغه ده چي په ځينو کتابو کي منقول ده چي يو سړی به خپل شيخ سره هره ورځ سهار د قرآن لس آياتونه تلاوت کول ، کله چي شيخ وفات سو نو هغه سړي د خپل عادت سره سم سهار وختي را پورته سو د شيخ قبر ته حاضر سو او هلته يې لس آياتونه تلاوت کړل ، د تلاوت څخه د فارغه کېدو وروسته پټه خوله سو چي ناڅاپه د قبر څخه د خپل شيخ اواز واورېدی چي دخپل ژوند د معمول مطابق هغه هم لس آياتونه تلاوت کړل ، ددې څخه وروسته هغه سړي دا خپل معمول جوړ کړي چي هره ورځ به سهار قبر ته تلی او لس آياتونه به يې تلاوت کول او د قبر څخه دننه به د خپل شيخ څخه هم د لس آياتو تلاوت اورېدی او دا لړۍ تر ډېره وخته پوري جاري وه ، يوه ورځ هغه دا پېښه خپل يو ملګري ته بيان کړل نو د هغه ورځي څخه د شيخ د تلاوت آواز اورېدل موقوف سول .

## قريشو ته د اسلام دعوت

﴿۵۱۴۰﴾: وَعَنِ ابْنِ عَبَّاسٍ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ صَعِدَ

د حضرت ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دئ چي کله دا آيت نازل سو (وانذر عشيرتک الاقربين): و بيروه خپل نژدې خپلوان،

النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الصَّفَا فَجَعَلَ يُنَادِي يَا بَنِي فِهْرٍ يَا بَنِي عَدِيٍّ

نو نبي کريم ﷺ د صفا غونډۍ ته وختی او په لوړ آوازيې قومونه را بلل چي اې بني فهرو!، اې

لِبُطُونِ قُرَيْشٍ حَتَّى اجْتَمَعُوا فَقَالَ أَرَأَيْتَكُمْ لَوْ أَخْبَرْتُكُمْ أَنَّ خَيْلًا بِالْوَادِي

بني عديو !، د قريشو فرقو ته يې دعوت وركوى ، كوم وخت چي ټول خلك راجمع سول نو رسول الله ﷺ وفرمايل : كه زه تاسو ته دا ووايم چي دغه شيلې ته يو لښكر راكښته سوى دئ

تُرِيدُ أَنْ تُغِيرَ عَلَيْكُمْ أَكُنْتُمْ مُصَدِّقِيَّ قَالُوا نَعَمْ مَا جَرَّبْنَا عَلَيْكَ إِلَّا صِدْقًا

او پر تاسو حمله كول غواړي نو ايا تاسو به زما خبره رېښتونې وګڼئ ؟ قريشو وويل هو ته همېشه زموږ په تجربه كي رېښتونى ثابت سوى يې ،

قَالَ فَإِنِّي نَذِيرٌ لَكُمْ بَيْنَ يَدَيْ عَذَابٍ شَدِيدٍ فَقَالَ أَبُو لَهَبٍ تَبًّا لَكَ سَائِرَ

نو رسول الله ﷺ ورته وفرمايل : زه د الله ﷻ د لوري په بيرولو مامور سوى يم ، ستاسو په وړاندي سخت عذاب موجود دئ ، ددې اوريدو سره ابولهب وويل پر تا دي ټوله ورځ هلاكت

الْيَوْمِ أَلِهَذَا جَمَعْتَنَا فَنَزَلَتْ تَبَّتْ يَدَا أَبِي لَهَبٍ وَتَبَّ مَا أَغْنَى عَنْهُ مَالُهُ وَمَا

وي ايا تا ددې لپاره موږ راجمع كړي يو ، پر دې خبره باندي سورة نازل سو (تبت يدا ابي لهب) : د ابولهب دواړه لاسونه دي هلاک سي ،

كَسَبَ. متفق عليه. وفي رواية نادى يا بني عبد مناف انما مثلي ومثلكم

بخاري او مسلم ، او په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ قريش يو ځاى كړل او ورته وه يې فرمايل : اې د عبدمناف اولاده ! زما او ستاسو حال د هغه چا په ډول دئ

كمثل رجل راى العدو فانطلق يربا اهله فخشي ان يسبقوه فجعل يهتف يا صباحاه.

چي هغه دد ښمن لښكر وويني بيا هغه خپل قوم دد ښمن څخه د ژغورولو لپاره پر يو غره باندي وخيژوي مگر بيا ددې بيري څخه چي دښمن د هغه ترمخه ونه رسيږي د هغه غره څخه دا ويل شروع كړي يا صباحاه (يعني د دښمن څخه ځان وساتئ) بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۸\۵۰۱، رقم: ۴۷۷۰، ومسلم ۱\۱۹۳، رقم: ۳۵۵-۲۰۸.

**د لغاتو حل**: يربا : اى يحفظ من العدو (د دښمن څخه ساتنه). يا صباحاه: كلمة تقال لانذار امر مخوف (د يو داروونكي شي څخه بهرول).

**تشريح**: بطن په اصل کي نس ته وايي مګر د ډلي يا ښاخ په معنی کي هم استعماليږي چي د قبيلې لاندي درجه ده، د بطن څخه لاندي چي کومه درجه وي هغه ته فخذ وايي ، يعني په عربو کي د نسب لوړي درجي ته قبيله وايي ، د هغه څخه وروسته درجې ته بطن او د هغه څخه وروسته درجې ته فخذ وايي، قريش د قبيلې نوم دی چي د هغه مورث اعلی نضر بن کنانه وو، د نضر ابن کنانه څخه وروسته چي کوم ښاخونه وه هغه په بطن سره تعبير کيږي او بيا د بطون څخه وروسته ښاخو ته فخذ ويل کيږي ، په اصطلاحي الفاظو کي ددې خلاصه داسي ده چي قبيله په منزله د جنس ، بطن په منزله د نوع او فخذ په منزله د فصل دی .

د وادي (شيلې) څخه مراد د حجاز هغه خاص سيمه ده چي د مکې شمالي خوا ته تقريبا پر شپاړلس ميله فاصله باندي واقع ده او هغه ته وادي فاطمه ويل کيږي، دا يوه نخلستاني سيمه ده او ددغه ځای مځکه زرغونه او د کرني وړ ده، ددغه شيلې يو پخوانی نوم مرالظهران هم دی ، د مکې او مدينې په منځ کي دغه پخوانۍ لار ددغه خوا څخه هم شمېرل کېدل .

د ابولهب دواړه لاسونه دي مات سي: دلته دلاسو ماتېدو او هلاکېدو څخه مراد د هغه د ذات هلاکېدل دي لکه څرنګه چي د قرآن کريم ددغه الفاظو : (ولا تلقوا بايديكم الى التهلكة) څخه ثابتيږي، چي په عربي کي د ذات هلاکت د لاسو په هلاکت سره هم تعبير کيږي، ځيني حضرات وايي چي د هغه د دواړو لاسو څخه مراد د هغه دواړه جهانه يعني دنيا او آخرت تباه او برباد سول، ځينو حضراتو دا تحقيق هم بيان کړی دی چي په خاصه توګه د هغه د لاسو ذکر ځکه سوی دی چي کله رسول الله ﷺ حاضرين د اسلام د دعوت په وړاندي کولو سره د الله ﷻ د عذاب څخه وېرول نو ابولهب هغه وخت يوازي پر ذکر سوې خبره اکتفاء ونه کړل بلکه هغه په خپلو لاسو ډبره پورته کړل او د رسول الله ﷺ ويشتل يې غوښتل .

عبد مناف د قريشو د هغه دوو ښاخو د جد اعلی نوم دی چي د رسول الله ﷺ د پېغمبر کېدو پر وخت تر ټولو مشهور مقتدر او غالب ښاخونه وه ،د عبد مناف دوه زامن يعني هاشم او عبد شمس چي کوم ښاخونه وه په هغوئ کي د يوه يعني د هاشم اولاد ته بنو هاشم ويل کيږي او دا د رسول الله ﷺ کورنۍ ده ، ددغه کورنۍ په ممتازو کسانو کي د رسول الله ﷺ څخه پرته حضرت علي رضي الله عنه او حضرت عباس رضي الله عنه هم دي ، د حضرت علي او حضرت عباس رضي الله عنهما څخه چي کومه لړۍ روانه ده (علوي) او هغه ته عباسي ويل کيږئ، د عبد مناف دوهم زوی عبد شمس وو د هغه ښاخ د هغه زوی اميه څخه وچلېدی او هغه کورنۍ بنوامیه اهم اشخاصو کي حضرت ابوسفيان ، مروان او سيدنا عثمان غني رضي الله عنه دي .

صباحاه: دا یو داسي لفظ دی چي په عربو کي د یو خطرې په وخت کي د بیرې لپاره ویل کیږي او ددې اصل دادی چي لفظ د صباح د سهار څخه مشتق دی او په عامه توګه دښمن د سهار په وخت کي په حمله کولو سره چپاو راوړي ځکه چي د یو حملې د خطرې پر وخت چوکیدار او محافظ ددغه لفظ په ذریعه چغې وهي چي خلک د حملې د خطرې څخه خبر کړي او د مقابلې لپاره تیار سي، نو ددغه لفظ معنی دا کیږي چي اې خلکو! هوښیار سئ مخکي تر دې چي دښمن ستاسو د تباه کولو سره حمله وکړي، د خپل ساتني لپاره ددغه ځای څخه ووځئ یا د مقابلې لپاره تیار سئ، نو رسول الله ﷺ د خپلو قریشو په مخکي د ذکر سوي مثال په بیانولو سره دا وفرمایل چي زه هم تاسو د یو داسي عذاب د خطرې څخه خبروم چي تاسو به تباه او برباد کړي نو مخکي تر دې چي هغه عذاب نازل سي تاسو د اسلام په قبلولو سره د هغه عذاب څخه خپل ځانونه وساتئ.

﴿۵۱۴۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ لَمَّا نَزَلَتْ هَذِهِ الْآيَةُ وَأَنْذِرْ عَشِيرَتَكَ الْأَقْرَبِينَ

د حضرت ابو هریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي کله دا آیت نازل سو (وانذر عشیرتک الاقربین): یعني خپل نژدې خپلوان ویروه،

دَعَا النبي صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قُرَيْشًا فَاجْتَمَعُوا فَعَمَّ وَخَصَّ فَقَالَ يَا بَنِي كَعْبِ

نو رسول الله ﷺ قریش را جمع کړل، کله چي هغوئ یو ځای سول نو رسول الله ﷺ په خطاب کي تعمیم وکړ او تخصیص هم (یعني د لیري نیکه چي ټول پکښي شامل وه او په نامه د نژدې نیکه چي ځیني پکښي شامل وه را وه بلل) هغوئ یې مخاطب کړل او ورته وه یې فرمایل: اې د کعب

بْنِ لُؤَيٍّ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا بَنِي مُرَّةَ بنِ كَعْبٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ

بن لؤی اولادې! خپل ځان ددوږخ داور څخه وساتئ، اې د مُره بن کعب اولاده! ځان ددوږخ

النَّارِ يَا بَنِي عَبْدِ شَمْسٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا بَنِي عَبْدِ مَنَافٍ أَنْقِذُوا

څخه وساتئ، اې د عبد شمس اولادې! ځانونه ددوږخ څخه وساتئ، اې د عبد مناف اولادې!

أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا بَنِي هَاشِمٍ أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا بَنِي عَبْدِ الْمُطَّلِبِ

خپل ځان د اور څخه وژغوری، اې د هاشم اولادې! ځانونه خپل مو د دوږخ څخه وساتئ، اې د

عبد المطلب اولادي!

أَنْقِذُوا أَنْفُسَكُمْ مِنَ النَّارِ يَا فَاطِمَةُ أَنْقِذِي نَفْسَكِ مِنَ النَّارِ فَإِنِّي لَا أَمْلِكُ لَكُمْ

ځانونه مو د دوږخ څخه وساتئ، اې فاطمې! خلاصه کړه ځان خپل د دوږخ څخه، ځکه چې زه د الله ﷻ د لوري د يو شي مالک نه يم،

مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا غَيْرَ أَنَّ لَكُمْ رَحِمًا سَأَبُلُّهَا بِبَلَالِهَا. رواه مسلم. وفي المتفق عليه

البته پر ما ستاسو د خپلوۍ حق دئ چې زه يې د خپلوۍ په لوندوالي لوندوم. مسلم او په متفق

قَالَ يَا مَعْشَرَ قُرَيْشٍ اشْتَرُوا أَنْفُسَكُمْ لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا و يَا بَنِي

عليه حديث کې دا الفاظ دي چې رسول الله ﷺ وفرمايل: اې د قريشو ډلې! خپل ځانونه (په ايمان راوړلو سره) رانيسي زه تاسو څخه د دوږخ اور نه سم ليرې کولای او اې

عَبْدِ مناف لَا أُغْنِي عَنْكُمْ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا عَبَّاسَ بْنَ عَبْدِ الْمُطَّلِبِ لَا أُغْنِي

د عبد مناف اولادې! زه ستاسو څخه د الله عذاب نه سم دفع کولای او اې عباس بن عبد المطلب

عَنْكَ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا صَفِيَّةُ عَمَّةَ رَسُولِ اللّٰهِ لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا يَا

زه تا د الله ﷻ د عذاب څخه خلاصولای نه سم او اې صفيې! (د محمد ﷺ عمه) زه تا د الله ﷻ د عذاب څخه خلاصولای نه سم

فَاطِمَةُ بِنْتَ رَسُولِ اللّٰهِ سَلِينِي مَا شِئْتِ من مالي لَا أُغْنِي عَنْكِ مِنَ اللّٰهِ شَيْئًا.

او اې د محمد لوري! فاطمې زما د مال څخه چې څومره غواړې وه يې غواړه مګر تا د الله ﷻ د عذاب څخه نه سم خلاصولای.

**تخريج**: صحيح مسلم ۱۹۲۱۱، رقم: ۲۰۴ ۳۴۸۰.

**د لغاتو حل**: ببلالها: اى بصلتها والاحسان اليها (ښېګڼه او احسان).

**تشريح**: لُؤي: د لام په پېښ او د همزه په زبر سره دی مګر کله همزه په واو سره بدليږي او اخر يې د ياء په تشديد سره راځي، لوی د قريشو د جد اعلی نوم دی چې د غالب ابن فهم زوی وو، او دا هغه فهر دی چې د هغه په اړه د ځينو حضراتو وينا ده چې د قريش نضر ابن کنانه پر ځای د

هغه لقب وو او په دې اعتبار د قریشو د نسب لړۍ د ابتداء څخه د فهر په نامه کیږي ، څرګنده دې وي چې قریش په اصل کې د القرش څخه وتلی دی چې د هغه معنی د تجارت ده، مګر ځینې حضرات وایي چې قریش په اصل کې د قرش څخه وتلی دی چې معنی یې د یو خطرناک ماهي ده چې هغه ته کلب البحر هم وایي، دغه ماهی په اوبو کې دننه حیوان په خپل غابښ سره د توري په ډول پرېکوي.

مرة ابن کعب هم د قریشو د یو ښاخ د جد اعلی نوم دی ، د خپل ښاخ د نسب په لړۍ کې د عبدمناف نوم دعبدشمس مخکې راځي ځکه چې هغه د عبدشمس پلار وو مګر دلته په روایت کې د هغه ذکر د عبد شمس څخه وروسته سوی دی ، د رسول الله ﷺ د جد اعلی هاشم پلار هم عبدمناف وو .

اې د هاشم زامنو ! ددغه الفاظو په ذریعه رسول الله ﷺ خپل اکاګان او د اکا زامن ټول مخاطب کړل ، خلاصه دا چې رسول الله ﷺ د قریشو ټول ښاخونه جمع کړه او د اسلام دعوت یې ورکړ او هغوئ یې دالله ﷻ د عذاب څخه وېرول تر دې حده چې خپل اولاد یې هم په هغه کې شامل کړ ، د رسول الله ﷻ د ځیګر ټوټه حضرت فاطمه رضي الله عنها چې د ټولو ښځو سرداره وه او پر هغې د دوږخ اور حرام دی هغه یې هم د الله ﷻ د عذاب څخه وېرول .

د یو شي مالک نه یم: مطلب دادی که چیري الله تعالی تاسو ته د عذاب درکولو اراده وکړي نو زه پر دې قادر نه یم چې تاسو د هغه د عذاب څخه وساتم ، یعني د رسول الله ﷺ دا فرمایل د الله تعالی ددغه ارشاد په بناء وو چې :

(قُلْ فَمَن يَمْلِكُ لَكُم مِّنَ اللَّهِ شَيْئًا إِنْ أَرَادَ بِكُمْ ضَرًّا أَوْ أَرَادَ بِكُمْ نَفْعًا) .

بلکه الله تعالی فرمایلي دي:

(قُل لاَّ أَمْلِكُ لِنَفْسِي نَفْعًا وَلاَ ضَرًّا إِلاَّ مَا شَاءَ اللَّهُ) .

چې زه یې د خپلوۍ په لوندوالي لوندوم : دلته د لوندوالي څخه مراد قرابت ساتل دي او د هغه قریبانو سره احسان او ښه چلن کول دي، ددغه جملې خلاصه داده چې زه د خپلو قریبانو سره ښه چلن کوم د هغوئ مرسته او کومک کوم او هغوئ د ظلم او تاوان څخه ساتم .

په نهایه کې لیکلي دي چې بلال په اصل کې د بل جمع ده چې د هغه معنی د لوندوالي ده او عربو په داسي ځایو کې د لوندوالي اطلاق پر احسان او ښه چلن کولو باندې کوي، لکه څرنګه چې بیس یعني د وچوالي اطلاق پر قطع تعلق او بد چلن باندې کوي، او ددې وجه داده چې کله

هغوئ ولېدل چي ځيني شيان داسي دي چي دهغه برخي د لوندوالي په ذريعه د يو بل سره منسلک وي نو کله چي د وچوالي پيدا کېدل هغه برخي د يو بل څخه بېلي کړي نو هغوئ د استعارې په توګه لوندوالی په وصل يعني يو ځای کېدو او وچوالی په منقطع کېدو سره تعبير کړ.

رسول الله ﷺ چي ټول قريش او دهغوئ سره خپل خاندان او نژدې قريبان په کوم انداز کي د الله جل جلاله د عذاب څخه وېرول هغه د الله جل جلاله د حکم په تعميل کي او د مقصد د عظمت په لحاظ ډېر سخت او ډېر زور وو، او خپله خبره په زيات ازښت سره د بيانولو په وجه وو چي الله جل جلاله، رسول الله ﷺ ته د بېرولو حکم وکړ او رسول الله ﷺ د ټولو په جمع کولو سره و بېرول، کنه نو په هغه مخاطبينو کي ډېر خلک داسي هم وه چي دهغوئ فضيلت او دهغوئ په جنت کي داخلېدل په ډېرو رواياتو کي ثابت دي ددې څخه پرته کله چي دخپل امت د نورو خلکو په حق کي د رسول الله ﷺ شفاعت کول او دهغه شفاعت قبلېدل يو يقني امر دی نو بيا خاص قريبان لکه حضرت عباس، بي بي صفيه، بي بي فاطمه او داسي نور د زيات شفاعت او خاص رحمت مستحق دي مګر څرنګه چي ښودل سوي دي چي دا وخت په هر حال ددې خبري متقاضي وو چي د بېرولو فريضه په زيات ارزښت سره ادا کړل سي او د الله جل جلاله د بې نيازۍ خوف په هر صورت کي باقي وي ځکه رسول الله ﷺ ټولو مخاطبينو ته خاص قريبانو ته هم دا وفرمايل چي ستاسو خلکو هم د الله جل جلاله د عذاب څخه پر ساتنه باندي قادر نه يم، ددې څخه پرته دا هم ويل کيدای سي چي د بېرولو دغه واقعه د مخکي ده حال دا چي ددغه خاص قريبانو فضيلت او د رسول الله ﷺ د شفاعت زيری وروسته وارد سوی دی.

زما د مال څخه څه چي غواړې وه يې غواړه: ددغه جملې په اړه ځينو حضراتو ته دا سوال پيدا سوی دی چي د رسول الله ﷺ اقتصادي ژوند د تنګۍ او مفلسۍ څخه ډک وو، د دې په لېدو سره دا ويل کيږي چي د رسول الله ﷺ سره مال چيري وو، په خاصه توګه د مکې د ژوند په وخت کي خو رسول الله ﷺ په سختو مصيبتو او مشکلاتو کي وو، په داسي صورت کي بي بي فاطمې رضي الله عنها ته د رسول الله ﷺ ددغه فرمايلو څه مطلب کېدای سي چي د مال څخه څه غواړې زما څخه يې وغواړه زه هغه شی تا ته درکوم، مګر که چيري په فکر کي وکتل سي نو ددغه سوال هيڅ حقيقت نه پاته کيږي، اول خو په دې وجه چي په قرآن کريم کي فرمايل سوي دي: (ووجدک عائلا فاغنی) يعني موږ ته محتاج او مفلس ترلاسه کړې نو شتمن مو کړې، مفسرين وايي چي د شتمنتوب څخه مراد د حضرت خديجې رضي الله عنها مال او دولت ته اشاره ده چي د هغې سره د نکاح وروسته د رسول الله ﷺ په واک او تصرف کي مال راغلی او رسول الله ﷺ چي څرنګه غوښتل

هغه مال او دولت يې مصرفوى، نو معلومه سوه چي هغه وخت رسول الله ﷺ بالكل خالي لاس نه وو، دوهم دا چي د مال اطلاق پر لږ مال او زيات مال دواړو باندي كيږي نو دا خبره د كوم ځاى څخه معلومه سوه چي د رسول الله ﷺ سره هيڅ شی هم نه وو، او دريم دا چي د ذكر سوې جملې صحيح كېدل په هغه صورت كي ضروري دي كله چي رسول الله ﷺ سره هغه وخت مال موجود وو، ددغه جملې په ذريعه د رسول الله ﷺ مراد دا وو چي كله ما ته مال او اسباب راسي او الله تعالى ما ته څه راكړل نو ته د هغه څخه چي څه غواړې وغواړه تا ته به يې دركړم مګر كوم چي د آخرت د خلاصون تعلق دى نو د هغه زما د ملكيت او قدرت سره هيڅ تعلق نسته او زه د دغه شي تا ته پر دركولو باندي قادر نه يم.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د محمدي امت فضيلت

﴿۵۱۴۲﴾: عَنْ أَبِي مُوسَى قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أُمَّتِي هَذِهِ أُمَّةٌ مَرْحُومَةٌ لَيْسَ عَلَيْهَا عَذَابٌ فِي الْآخِرَةِ عَذَابُهَا فِي الدُّنْيَا الْفِتَنُ وَالزَّلَازِلُ وَالْقَتْلُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو موسى رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زما امت امت مرحومه (رحمت كړل سوئ) دئ، په آخرت كي به پردوئ عذاب نه وي د دوئ عذاب په دنيا كي فتنې دي، زلزلې دي او قتل دئ. ابوداؤد،

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۶۸، رقم: ۴۲۷۸.

**تشريح**: په اخرت كي به پر دوئ عذاب نه وي: مطلب دادى چي په اخرت كي به همېشنى عذاب يا سخت عذاب چي د كفارو او مشركانو لپاره دى هغه به پر دغه امت نه وي بلكه ددغه امت عذاب دادى چي كوم خلك خراب اعمال كوي او د دين او شريعت پر لار نه ځي هغوئ ته به د سزا په توګه په دنيا كي په مختلفو فتنو، ناروغيو او ډول ډول ستونزو كي اخته كيږي، دا خبره ددغه آيت كريمه: (من يعمل منكم سوء يجز به) د مراد څخه هم ښكاريږي چي د هغه يادونه مخكي سوې ده او د حديث د الفاظو (عذابها في الدنيا ...الخ) څخه ددې تائيد كيږي.

ځينو حضراتو ويلي دي چي دا حديث په خاصه توګه د هغه مسلمانانو په اړه دى چي لوى

ګناهونه نه کوي او دا هم ممکن ده چې ددغه حدیث محمول د امت یو خاص ډله یعني صحابه کرام رضي الله عنهم وي، مظهر رحمة الله علیه ویلي دي چې دا حدیث ډېر پېچېده دی ځکه چې ددې څخه دا مفهوم اخیستل کېږي چې د رسول الله ﷺ دامت هیڅ کس ته به په آخرت کې عذاب نه ورکول کېږي که هغه لوی ګناه وکړي یا څه چې غواړي وکړي، او دا یوه داسې خبره ده چې د هغه په اړه د الله تعالی له خوا د لاربښوونې او توفیق څخه پرته هیڅ نسې ویل کېدای، پرته ددې څخه چې دا تاویل وکړل سې چې دلته د امت څخه مراد هغه ځوک دي چې د نورو احکامو د فرمانبردرای سره د رسول الله ﷺ پوره پیروي هم وکړي او دهغه شیانو څخه په پوره توګه پرهیز وکړي د کومو شیانو د اختیارولو څخه چې منع سوی دي.

د دوئ عذاب په دنیا کې...الخ: مطلب دادی چې زما د امت خلک د زمانې د کومو پېښو سره مخامخ کېږي لکه زلزلې، په مال کې تاوان، سیلابونه، تباهی، غلاوي، د مسلمانانو مال او عزت ته تاوان رسېدل یا داسې نور آفتونه او مصیبتونه نازلیږي او دا ټول شیان د هغه خلکو د ګناهو او بدو عملو کفاره کېږي او په آخرت کې د هغوئ د درجو د لوړتیا باعث کېږي، همدارنګه کوم قتل او قتال چې د هغوئ په منځ کې وي که د هغه صورت دا وي چې هغه مسلمانان د کفارو او د دین د نورو دښمنانو په لاس قتل کېږي نو ظاهره ده چې دهغوئ قتل کېدل خپله د شهادت موجب دی یعني هغه مسلمانانو ته د شهید درجه تر لاسه کېږي چې دا یو ډېر لوی سعادت دی او که چیرې د هغه صورت دا وي چې مسلمانان په خپلو کې جنګیږي او د یو بل وینې بیوي نو کتل کېږي چې د هغوئ په خپلو کې قتل او قتال په څه وجه دی که داسې وي چې دواړي ډلې په یو داسې معامله کې جنګ کوي چې دهغه حیثیت په شرعي نقطه نظر سره څرګند نه وي او د اشتباه او تاویل په سبب دد واړو پر حق کېدل ثابت کېدای سي نو په دغه صورت کې به ویل کېږي چې دواړي ډلې پر سلامتیا باندې دي او په هغوئ کې یو ظالم نسې ګرځول کېدای او که چیرې د هغوئ په خپلو کې جنګ کول او د یو بل وینه تویول د یو داسې معاملې په وجه وي چې د هغه حیثیت او حقیقت بالکل څرګند وي او یوه ډله پر ظلم باندې وي نو کومه ډله چې مظلومه وي هغه به معذور کرځول کېږي.

ځینو حضراتو دا هم ویلي دي چې د قبر عذاب ددغه امت د خصائصو څخه دی یعني مسلمانان د قبر په عذاب کې ځکه اخته کېږي چې د هغوئ په عمل نامه کې د ګناه او معصیت چټلې پرېوللې سي او هغه مسلمان د قبر د عذاب په صورت کې د خپلو ګناهو څخه پاک سي او د آخرت د عذاب څخه خلاصون تر لاسه کړي.

## د مختلفو زمانو په باره کي پيشگوئي

﴿۵۱۴۳﴾: وَعَنْ أَبِي عُبَيْدَةَ وَمُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ عَنْ رَسُوْلِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت ابو عبيده او معاذ بن جبل (رض) څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

وَسَلَّمَ قَالَ إِنَّ هٰذَا الْأَمْرَ بَدَأَ نُبُوَّةً وَّرَحْمَةً ثُمَّ يَكُوْنُ خِلَافَةً وَّرَحْمَةً ثُمَّ مُلْكًا

دا امر (يعني دين) په نبوت او رحمت سره شروع شوی دئ بيا به د خلافت او رحمت زمانه وي

عَضُوْضًا ثُمَّ كَائِنٌ جَبَرِيَّةٌ وَعُتُوًّا وَفَسَادًا فِي الْأَرْضِ يَسْتَحِلُّوْنَ الْحَرِيْرَ

بيا به د ظالم پاچا دوروي او د هغه څخه وروسته دا کيدونکي دئ چي تکبر ، له حده تېرېدل او فساد في الارض به وي هغه وخت به خلک د ريښمينو جامو اغوستل حلال ګڼي، د ښځو

وَالْفُرُوْجَ وَالْخُمُوْرَ يُرْزَقُوْنَ عَلٰى ذٰلِكَ وَيُنْصَرُوْنَ حَتّٰى يَلْقَوُا اللّٰهَ. رواه البيهقي في شعب الإيمان.

شرمګاوي او شراب به جائزوګرځوي او سربيره ددې چي هغوئ ته به رزق ورکول کيږي او د هغوئ مرسته به کيږي تر دې چي هغوئ به د الله جل جلاله سره يو ځای سي . بيهقي.

**تخريج**: البيهقي في شعب الايمان ۵\۱۶ – ۱۷، رقم: ۵۶۱۶.

**تشريح**: د بدا لفظ په الف سره دی چي معنی يې د شروع کېدو ده، په ځينو نسخو کي دغه لفظ په همزه سره دی چي معنی يې د پېل کېدو ده، په دغه صورت کي به ترجمه دا وي چي دغه امر يعني د دين اسلام ابتدائي زمانه د نزول وحي څخه پېل سوه او د ذات رسالت ددغه دنيا څخه د رخصتېدو تر وخته پوري وه.

په دغه ارشاد کي د اسلامي تاريخ د هغه زمانو په اړه وړاند وينه سوې ده چي د هغه څخه د مسلمانانو کاروان تېر سو يا تيريږي، اوله زمانه خو به هغه وي چي په هغه کي د دين اسلام پېل او د هغه ظهور سوی دی او د نزول وحي د وخت څخه په شروع کېدو سره د رسول الله ﷺ تر آخري ژوند پوري پاته وه، دغه زمانه د اسلام او مسلمانانو په حق کي د رحمت، نورانيت او خير زمانه وه ، د رسول الله ﷺ د شتون په وجه په دين کي شک او شبهات ، د مسلمانانو په نظرياتي او عملي ژوند کي د ګمراهی او ضلالت او په عام حالت کي د فتنې او فساد پيدا کېدو بېره نه

وه د رسول الله ﷺ څخه وروسته چي کومه زمانه راغلل هغه د خلافت زمانه وه د رسول الله ﷺ د صحبت او ملګرتيا څخه په فيض تر لاسه کولو د ذات رسالت پناه يافته کسانو کي تر ټولو زيات افضل، تر ټولو زيات باعظمت او د ايمان او عمل په اعتبار تر ټولو زيات کامل انسان د رسول الله ﷺ نائب او خليفه جوړ سو، د مسلمانانو اقتدار د هغه لاس ته راغلی او هغه د دين او ملت د معاملاتو والي او څارونکی جوړ سو، دد غه پاک نفسه حضراتو يو د بل پسي پر خلافت باندي متمکن پاته کېدو سره تر څومره ورځو پوري چي د مملکت او ملت نظم وچلېدی هغه په پوره زمانه کي يو وار د رحمت او نورانيت زمانه وه چي خلفاء راشدينو د الله تعالی د رحمت پر مسلمانانو سايه او د خير او برکت د نزول بآعث جوړ سوی وو او د هغوئ په زمانه کي د نېکيو او خير دور وو ، مسلمانان د اخلاص او ايثار او د عمل او کردار د پختيا نمونه جوړ سوي وه او د هغوئ په برکت دا مځکه په عامه توګه د سکون او اطمينان ځای وو ، هغه زمانه چي هغه ته د خلافت او رحمت زمانه ويل سوې ده پر دېرش کاله شپه او ورځ باندي مشتمل وه ،

په دغه دېرشو کالو کي نهه ويشتم نيم کاله څلور سره خلفاء راشدينو د مجموعي خلافت زمانه وه او د پاته شپږو مياشتو وخت هغه وو چي په هغه کي حضرت حسن رضي الله عنه پر خلافت باندي متمکن سو ، ددې تفصيل دادی چي حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د وصال څخه وروسته په ربيع الاول يوولسم هجري کال کي خليفه سو او په جمادي الثاني ديارلسم هجري کال کي وفات سو، حضرت ابوبوبکر صديق رضي الله عنه په خپل مرض الموت کي د صاحب الرايه مسلمانانو په مشوره حضرت عمر فاروق رضي الله عنه خپل جانشين وټاکی نو حضرت عمر رضي الله عنه په جمادي الثاني ديارلسم هجري کال کي د خلافت دنده سنبال کړه او تر آخرذي الحجې درويشتم هجري کال پوري پر دغه منصب فائز وو، په اووه ويشتم ذي الحجه يو نصراني غلام ابولؤلؤ چي اصل نوم يې فيروز وو، پر نوموړي باندي د سهار د لمانځه د امامت په حالت کي په خنجر سره حمله وکړه او سخت يې زخمي کړ چي د هغه په وجه ژوندي پاته نه سو او پر اول د محرم اووه ويشتم هجري کال کي په وفات کېدو سره دفن سو ، حضرت عمر رضي الله عنه په خپل آخري ورځو کي دغه جليل القدر او غوره صحابه کرام لکه حضرت عبدالرحمن بن عوف، حضرت سعد ابن ابي وقاص، حضرت زبير ابن عوام، حضرت طلحه، حضرت علي، حضرت عثمان رضي الله عنهم اجمعين ټاکلي وه چي دغه حضرات په خپلو کي په مشوره کولو سره يو خليفه جوړ کړي نو دغه حضراتو د ډېر فکر او غور او مشورې څخه وروسته حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه خپل امير او دريم خليفه وټاکی ، د حضرت عثمان رضي الله عنه خلافت د محرم د مياشتي اووه

ویشتم هجري کال څخه شروع سو او تر ذي الحجې پنځه دېرشم هجري کال پوري وو، کله چي ددغه میاشتي په اتلسم تاریخ د باغیانو یو لوی ډلي حضرت عثمان ﷺ محصور کړ او په ډېره بې دردي سره یې شهید کړ، د حضرت عثمان ﷺ د شهادت څخه یوه اونۍ وروسته پر پنځه ویشتم ذي الحجې پنځه دېرشم هجري کال حضرت علي ابن ابي طالب ﷺ په لاس په مدینه منوره کي عام بیعت وسو او همدارنګه هغه څلورم خلیفه وټاکل سو او په ۱۷ رمضان ۴۰ هـ کال کي د هغه د خلافت دور ختم سو، کله چي د عبدالرحمن ابن ملجم د زخمي کولو په وجه هغه وفات سو نو د حضرت علي ﷺ د وفات څخه وروسته خلکو د هغه د مشر زوی حضرت امام حسن ﷺ په لاس بیعت وکړ او د هغه خلافت قائم سو مګر د امیر معاویه له خوا چي کومه لړۍ د حضرت علي ﷺ د زمانې څخه پېل سوې وه د هغه د وفات څخه وروسته نوره زیاته سوه او کله چي د سیاست او امامت پر مسئله باندي په مسلمانانو کي اختلاف زیات سو او د مخالف ډلو په منځ کي د ویني تویولو خطره زیاته سوه نو امام حسن ﷺ د امیرمعاویه په حق کي د خلافت څخه د لاس اخیستلو فیصله وکړه نو تر دغه وخت پوري دغه زمانه تر ۴۱ هجري کال پوري دېرش کاله سوه، او دا هغه زمانه ده چي په دغه حدیث کي د خلافت او رحمت زمانه ورته ویل سوې ده او په دغه زمانه کي هغه خلفاء راشدین د رسول الله ﷺ د نائب او خلیفه په حیثیت سره په اخلاص او دیانت سره او د رسول الله ﷺ پر اسوه حسنه مشعل راه وه او ددین اسلام خدمت یې سرته ورسوی، د مسلمانانو د مذهبي او سیاسي قیادت او سیاست ذمه داري یې په ښه ډول سرته ورسول او د اسلام بېرغ، عظمت او شوکت یې لوړ کړ.

ځکه دا خبره څرګندېږي چي دکوم خلافت فضیلت په دغه حدیث کي بیان سوی دی چي په حقیقت کي د رسالت نیابت وو په دې کي د امیر معاویه هیڅ برخه نسته چي دهغه د حکمرانۍ دور د هغه زمانې څخه جلا دی کوم ته چي د خلافت او رحمت زمانه فرمایل سوي دي.

د عض معنی دچیچلو ده او عضوض دعین په زور سره ددغه لفظ څخه وتلی دی چي دمبالغې صیغه ده او په یوه روایت کي ملکا عضوضا پر ځای ملوکا عضوضا دعین په پېښ سره منقول دي چي د عض د عین په زېر سره جمع ده او د هغه معنی د شریر او بد اخلاقه ده، مطلب دادی چي د خلافت او رحمت د زمانې څخه وروسته چي کوم دور راځي هغه به د ملوکیت دوروي او د داسي خلکو پاچاهي او حکمراني به وي چي د هغوئ په زړو کي به نه د الله تعالی خوف او نه د آخرت د مؤاخذې بېره وي و نه به د مخلوق سره د همدردۍ، عدل او انصاف احساس وي، ځکه هغه پر خپل مالک او د قوم پر خلکو ظلم کوي، هغوئ په ناحقه سزا وو اخته

کوي او هغوئ ډول ډول په تکلیف کوي ، مگر څرګنده دي وي چي دغه خبره د غالب او اکثریت په اعتبار سوې ده یعني زیات پاچاهان داسي وي ، او څرنګه چي پر شاذ او نادر باندي حکم نه کیږي چي (النادر کالمعدوم)، ځکه نو دا اشکال نه سي پیدا کېدای چي په حدیث کي د خلافت راشده وروسته د حکمرانانو او پاچهانو د زمانې په باره کي چي څه فرمایل سوي دي ایا د هغه اطلاق پر دغه حکمرانانو باندي هم کیږي چي په عدل او انصاف ، مذهب او ملت په خدمت په پوره توګه ښکلي وه؟ د مثال په توګه د حضرت عمر ابن عبدالعزیز د حکمرانۍ وخت، هغه چي په کوم عدل او انصاف سره پاچاهي وکړه او د اسلام او مسلمانانو په حق کي یې څرنګه د خیر او ښېګڼي سبب سو د دغه پر بنیاد ورته عمر ثاني ویل سوي دي، خلاصه دا چي د خلافت راشده وروسته کومو کسانو چي پر مسلمانانو حکمراني وکړل او کوم کسان پاچاهان سول په هغوئ کي زیات داسي وي چي د هغوئ حکمراني د مذهب او ملت په حق کي ګټوره ثابته سول او د خپل عوام لپاره یې د خیر ، برکت او اطمینان باعث سول ، هغوئ استثنایي حکم لري.

د ظلم، زور، قهر، تکبر او فتنو زمانه به وي، مطلب دا دی چي په آخر کي کومه زمانه راسي هغه بهٔ د اسلام او مسلمانانو په حق کي زیاته سخته وي نااهل خلک به د حکومت پر تخت ظلم او زیاتي کوي ، هري خوا ته به لوټ ما راو دقتل بازار ګرم وي، لکه څرنګه چي موږ په خپله زمانه کي وینو چي دغه وړاند وینه ټکي په ټکي صحیح ثابتیږي ځکه چي حکومت او اقتدار د داسي خلکو په لاس کي راغلی وي چي ظالمان او د دین څخه سر غړونکي دي او مسلمان هیوادونه چیري چي د مذهب او ملت د اصولو فرمانبرداري کول پکار دي هلته سرکښ طاقتونه پر واک دي ، ظالمانو خلګو په زور او چم سره پر اقتدار قبضه کړې ده ، هغوئ نه د مشرتوب اصول او شرائط پوره کوي او نه د خپلو خلګو دیني او دنیاوي ښېګڼو سره د هغوئ تعلق سته، هغوئ د خپل اقتدار ساتلو لپاره د فتنې او فساد تخم کري ، تباه کونکي فلانونه کوي، پر عامو خلګو ظلم کوي ، کوم خاص بندګان چي هغوئ ته سېده لار ښودل غواړي هغوئ ته ډول ډول تکلیفونه ورکوي ، پر دندو باندي د وړ او لائق کسانو پر ځای خو د غرضه او نااهل خلګ ناست دي، علماء، صالحان او اکابر دین چي د هر ډول احترام او عزت مستحق وي ، نه یوازي دا چي هغوئ ته هیڅ توجه نه کیږي بلکه د مختلفو ذرائعو او اقداماتو په ذریعه د هغوئ سپکاوی کیږي او د امر بالمعروف او نهي عن المنکر په لاره کي له سختیو سره مخامخ کیږي .

او دا چي تقریبا ټولو مسلمانانو حکمرانانو د دین د دښمنانو پر خلاف د جهاد فریضه پرېښې ده مګر د خپلي حکمرانۍ له کبله او دملک په هوس کښي خپله د مسلمانانو خلاف

درېدلي دي او خپلي توري يې دهغوئ په وينو رنګي کړي دي او په دې وجه ځيني علماء دا وايي چي کوم څوک دغه حکمرانانو او پاچاهانو ته عادل وايي نو هغه کافر کيږي .

خلاصه دا چي د دغه حکمرانانو او پاچاهانو په وجه د مځکي پر مخ فتنې او فساد ورځ په ورځ زياتيږي تر دې چي تاريخ د داسي حکمرانانو د خرابو کارو څخه ډک دی چي د مسلمان کېدو سربېره د هغه ښارو د لوټولو او قتل عام باعث سوه چيري چي لوی لوی اولياء، صالحان او مشائخ وه، چيري چي کمزوري، ضعيف خلک او ښځي وې چي د هغوئ د قتلولو هيڅ د جواز وجه نه وه ، نور ظلم دا چي دهغه ښار خلکو د حنفيه ملت سره تعلق درلودی او په اهل سنت والجماعت کي شامل وه او دهغوئ قتل عام کونکي مدعی سطلنت ددې خبري اظهار کوی چي موږ دين او شريعت مرسته کونکي يو .

علماء کرام وايي که چيري مسلمان د دين د ښمنانو يوه داسي قلعه فتح کړي چي په هغه کي په زرګونو اهل حرب او دښمنان وي مګر په هغه زرګونو کي يو مجهول الحال ذمي هم موجود وي نو محض دهغه يوه ذمي په وجه په مفتوحه قلعه کي قتل عام کول هيڅکله صحيح نه دی ، هغه حکمران او پاچا به د حشر په ورځ څه جواب ورکوي چي هغه محض دخپل اقتدار او پاچاهۍ قائمولو لپاره د مسلمانانو قتل عام کړی دی او دهغوئ ښارونه او سيمي يې د سترګو په رپ کي برباد کړي دي .

دا خبره په ياد ولرئ چي زموږ د ناوړه او نااهله مسلمانانو حکمرانانو په وجه داسي داسي فتنې او فسادات ظاهر سول ، په اسلامي سلطنتو کي داسي تباهۍ وسوې او دومره ويني توی سوې چي د مځکي مخ ځيني پناه غواړي تر دې چي حرمين شريفين هم د دغه فتنې او فساد څخه خوندي نه سول او په دغه مقدسو ښارو کي دومره تباه کونکي واقعې څرګند ه سوې چي قلم ته د بيانولو مجال نسته او دهغه تفصيل په تحرير کي راوستل ممکن نه دي .

الله تعالی د خپلو بندګانو او دخپل دين غوره کار ساز او دخپل نبي او دهغه د امت حامي او مرسته کونکی دی ، حقيقت دا دی چي راتلونکی هر کال هره ورځ بلکه هره لمحه د مخکي په نسبت بد تره تيريږي .

## د شرابو په باره کي يو پيشګوئي

﴿۵۱۴۴﴾: وَعَنْ عَائِشَةَ قَالَتْ سَمِعْتُ رَسُوْلَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُوْلُ

د حضرت عائشي (رض) څخه روايت دئ چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل

إِنَّ أَوَّلَ مَا يُكْفَأُ قَالَ زَيْدُ بْنُ يَحْيَى الرَّاوِيُّ يَعْنِي الإِسْلَامَ كَمَا يُكْفَأُ الإِنَاءُ

يې : تر ټولو مخکې چې په اسلام کې کوم شی به واړول سي لکه څرنګه چې ډک لوښی اړول کيږي هغه به شراب وي (يعني په اسلام کې تر ټولو مخکې چې د خدای د کوم حکم خلاف

يَعْنِي الْخَمْرَ قِيلَ فَكَيْفَ يَا رَسُولَ اللهِ وَقَدْ بَيَّنَ اللهُ فِيهَا مَابَيَّنَ قَالَ يُسَمُّونَهَا بِغَيْرِ اِسْمِهَا فَيَسْتَحِلُّونَهَا . رواه الدارمي.

ورزي به کيږي ) پوښتنه وسول چې اې د الله رسوله ! دا به څنګه وي ؟ حال دا چې د شرابو په اړه د الله ﷻ احکام بيان سوي دي او ټولو ته څرګند ده ، رسول الله ﷺ وفرمايل : داسي به وي چې خلک به د شرابو دويم نوم کښيږدي او هغه به حلال وګرځوي . دارمي .

**تخريج**: سنن الدارمي ١٥٥\٢، رقم: ٢١٠٠.

**د لغاتو حل**: يکفا : ای قلبته واملته لافراغ مافيه .

**تشريح**: مايکفا : دغه لفظ په اصل کې د کفاء صيغه مجهول دی چې د هغه معنی د لوښي د اړولو ده، چې په هغه کې اوبه يا بل څه وي او هغه توی سي .

يعني د الاسلام لفظ د حديث يو راوي زيد بيان کړی دی او په هغه کې هم د الاسلام څخه مخکې د في لفظ وو چې د راوي څخه ساقط سوی دی ، په يو مجلس کې رسول الله ﷺ د شرابو ذکر او د هغه حکم بيان کړ چې رسول الله ﷺ په دغه وخت کې اول مايکفا ارشاد وفرمايه نو راوي هغه ارشاد څرګندولو لپاره د دغه جملې خپل الفاظ الخمر په ذريعه بيان کړ نو يعني الخمر، الفاظ هم د راوي دي چې دا مراد بيانوي چې په اسلام کې کوم شيان تر ټولو مخکې توی کړل سول هغه شراب دي، په هر حال د حديث خلاصه دا ده چې کله په آخره زمانه کې د مسلمانانو په ديني ژوند کې ډېر لاندي والي (چپه والی) راسي او د مذهب سره د هغوئ تعلق کمزوری سي نو هغه وخت به حرام او ناجائز شيانو کې تر ټولو لومړی چې کوم شی چې په ډاګه کيږي او د اسلام د احکامو تر ټولو مخکې چې کوم حکم ساقط کيږي هغه شراب او د هغه حکم دی چې خلک به نه شراب څښل اختياروي بلکه په مختلفو بهانو او تاويلو په ذريعه به د هغه حلال او جائز ګرځولو کوشش هم کوي مثلا د هغه د نامه په بدلولو سره به د يو داسي مشروب نوم ورکوي چې د هغه څښل به جائز وي او هغه به په حقيقت کې شراب وي ، يا هغه به د نورو

اجزاوو لکه عسل، وريجي او نورو سره جوړوي او وايي چي په اسلام کي کوم شي ته خمر يعني شراب ويل سوي دي او د هغه څښل حرام دي هغه د انګورو اوبه دي چي په هغه سره نشه پيدا کيږي او دغه مشروب خو د انګورو څخه نه دي جوړ سوی ځکه نو د هغه څښل حرام نه دي حال دا چي هغوئ نه پوهيږي چي کوم شی نشه پيدا کوي هغه حرام دی او د خمر په حکم کي دی.

او هغه به حلال ګرځوي: ددې به دوه صورتونه وي يو خو دا چي هغه خلک به هغه واقعتا حلال ګڼل ګڼي په دغه صورت کي به هغوئ کافر کيږي ځکه چي شريعت کوم شی په وضاحت سره حرام ګرځولی دی د هغه حلال ګڼل کفر دی ، دوهم صورت دادی چي هغه به په حقيقت کي حلال نه ګرځوي بلکه داسي به څرګندوي او دا به ظاهروي چي موږ حلال شی وڅښئ په دغه صورت کي به پر هغوئ د کفر نه بلکه د فسق حکم لګول کيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### د مسلمانانو د مختلفو زمانو .....

﴿۵۱۴۵﴾: عَنِ النُّعْمَانِ بْنِ بَشِيْرٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ

حضرت نعمان بن بشير رضي الله عنه د حذيفة رضي الله عنه څخه روايت کوي چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَكُوْنُ النُّبُوَّةُ فِيْكُمْ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُوْنَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ تَعَالٰى

په تاسو کي به د نبوت وجود تر هغه وخته پوري پاته وي تر څو پوري چي الله تعالی غواړي بيا به الله تعالی نبوت پورته کړي

ثُمَّ تَكُوْنُ خِلَافَةٌ عَلٰى مِنْهَاجِ النُّبُوَّةِ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُوْنَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ

او د هغه څخه وروسته به د نبوت پر طريقه خلافت وي تر څو پوري چي الله تعالی ته منظوره وي

تَعَالٰى ثُمَّ تَكُوْنُ مُلْكًا عَاضًا فَتَكُوْنُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ تَكُوْن ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ

او د هغه څخه وروسته به چيچونکي پاچاهان قائم وي ، تر څو پوري چي الله تعالی ته منظور وي بيا به الله تعالی هغه هم پورته کړي

تَعَالٰى ثُمَّ تَكُوْنُ مُلْكًا جَبَرِيَّةً فَيَكُوْنُ مَا شَاءَ اللهُ أَنْ يَّكُوْنَ ثُمَّ يَرْفَعُهَا اللهُ

بيا به د غلبې او تکبر حکومت قائم وي تر څو پوري چي د الله تعالى خوښه وي او د هغه څخه

تَعَالٰى ثُمَّ تَكُوْنُ خِلَافَةً عَلٰى مِنْهَاجِ نُبُوَّةٍ ثُمَّ سَكَتَ قَالَ حَبِيْبٌ فَلَمَّا قَامَ عُمَرُ

وروسته به د نبوت پر طريقه خلافت قائم سي (يعني د حضرت عيسى عليه السلام او امام مهدي حکومت به وي) په دو مره فرمايلو سره رسول الله ﷺ پټه خوله سو ، د حبيب بن سالم د هغه حديث د يو راوي بيان دئ کله چي

بْنُ عَبْدِ الْعَزِيْزِ كَتَبْتُ إِلَيْهِ بِهٰذَا الْحَدِيْثِ أُذَكِّرُهُ إِيَّاهُ وَقُلْتُ أَرْجُوْ أَنْ تَكُوْنَ

عمر بن عبد العزيز خليفه سو نو ما ورته دا حديث وليکی او ور په ياد مي کړل او وه مي ويل چي ...... زما اميد دی چي تاسو هغه خليفه ياست

أَمِيْرَ الْمُؤْمِنِيْنَ بَعْدَ الْمُلْكِ الْعَاضِّ وَالْجَبْرِيَّةِ فَسُرَّ بِهِ وَأَعْجَبَهُ يَعْنِيْ عُمَرَ بْنَ عَبْدَ الْعَزِيْزِ. رواه أحمد والبيهقي في دلائل النبوة.

چي د هغه ذکر چيچونکي (يعني ظالم) پاچا او د تکبر د غلې د حکومت څخه وروسته راغلی دی ، عمر بن عبد العزيز په دې سره ډير خوشحاله سو او په دې تشريح سره هغه ډير خوشحاله سو . احمد او بيهقي په دلائل النبوة کي .

**تخريج**: مسند الامام احمد ۴\۲۷۳.

===========

بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# كِتَابُ الْفِتَنِ

## (د فتنو بيان)

فِتَن: د فتنة جمع ده لکه ځرنګه چي محن د محنة جمع ده، د فتنة مختلفي معناوي دي د مثال په توګه امتحان، ابتلاء، نصيحت، عذاب، ناروغي، جنون، محنت، عبرت، ګمراه کول او ګمراه کېدل او يو شی خوښول او په هغه درېدل او د خلکو په رايه کي پر اختلاف باندي هم د فتني اطلاق کيږي.

ځرګنده دي وي چي د مشکوة هغه برخه چي د دغه ځای څخه شروع کيږي او ترپايه ده، دي ته د کتاب مؤلف د کتاب الفتن نوم ورکړی دی او په دې کي يې مختلف بابونه قائم کړي دي، په ظاهره د دې وجه نه معلوميږي په خاصه توګه د فضائلو او مناقبو په کتاب الفتن کي د شاملولو معقول وجه نه معلوميږي، که چيري دا وويل سي چي په دغه بابو کي د کومو پاکو کسانو يعني رسول اللهﷺ، خلفاء راشدين او اکابر صحابه کرامو فضائل او مناقب بيان سوي دي مو ږ د هغوئ د عظمت او غوره والي او د هغوئ د بزرګي د اعتقاد لرلو مکلف او دغه اعتقاد د خپل عمل څخه د ثابتولو په امتحان کي اخته يو او په دې اعتبار دغه بابونه په کتاب الفتن کي شامل سوي دي نو دا خبره هم صحيح معلوميږي ځکه که چيري د دغه اعتبار لحاظ وساتل سي نو په ټول کتاب کي چي منقول او مذکور دي هغه ټول د دغه قبيل څخه دي او په دغه صورت کي محض د کتاب الفتن تخصيص به لاحاصل وي، په هر حال الله ﷻ ښه پوهيږي چي دلته د مشکوة د مؤلف په ذهن کي څه خبره ده او هغه د کومي وجه د کتاب دغه برخي ته د کتاب الفتن نوم ورکړی دی.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړی فصل)

### رسول الله ﷺ تر قيامته پوري د ظاهر ېدونکو ټولو فتنو پېشګوئي فرمايلې ده

﴿۵۱۳۶﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قَامَ فِينَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مَقَامًا

د حضرت حذيفه ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ د خطبې فرمايلو لپاره ودريدی او

مَا تَرَكَ شَيْئًا يَكُونُ فِي مَقَامِهِ ذَلِكَ إِلَى قِيَامِ السَّاعَةِ إِلَّا حَدَّثَ بِهِ حَفِظَهُ مَنْ

د دغه وخت څخه تر قيامت پوري چي څه کېدل وه د هغو ذکر يې وکړ چا چي ياد کړل هغه ياد

حَفِظَهُ وَنَسِيَهُ مَنْ نَسِيَهُ قَدْ عَلِمَهُ أَصْحَابِي هَؤُلَاءِ وَإِنَّهُ لَيَكُونُ مِنْهُ الشَّيْءُ

کړل، چا چي هير کړل هغه هير کړل، زما ملګري په دې خبره باندي پوهيږي په دغه کي چي کوم

قَدْ نَسِيتُهُ فَأَرَاهُ فَأَذْكُرُهُ كَمَا يَذْكُرُ الرَّجُلُ وَجْهَ الرَّجُلِ إِذَا غَابَ عَنْهُ ثُمَّ إِذَا

رَآهُ عَرَفَهُ . متفق عليه

شی ظاهريږي کوم چي ما هير کړی وي نو چي هغه ووينم ما ته را ياد سي لکه څوک چي د مخامخ ياد ساتي هر کله چي هغه غائب سي بيا چي کله هغه ويني نو وه يې پيژني . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۴۹۴، رقم: ۶۶۰۴، ومسلم ۴\ ۲۲۱۷، رقم: ۲۳ - ۲۸۹۱.

## پر انساني زړه باندي د فتنو وار

﴿۵۱۴۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ تُعْرَضُ

د حضرت حذيفة رضي الله عنه څخه روايت دی چي ما د نبي کريم ﷺ څخه اوريدلي دي چي فرمايل يې:

الْفِتَنُ عَلَى الْقُلُوبِ كَالْحَصِيرِ عُودًا فَأَيُّ قَلْبٍ أُشْرِبَهَا نُكِتَ فِيهِ نُكْتَةٌ سَوْدَاءُ

فتنې پر زړونو خپرې سي لکه څرنګه چي په بوريا کي هره نښه جلا جلا وي په کوم زړه کي چي دغه فتنه ګډه سي په هغه کي يو تور ټکی ولګول سي

وَأَيُّ قَلْبٍ أَنْكَرَهَا نُكِتَ فِيهِ نُكْتَةٌ بَيْضَاءُ حَتَّى يَصِيرَ عَلَى قَلْبَيْنِ عَلَى أَبْيَضَ

او کوم زړه چي انکار وکړي د فتنې څخه نو په هغه زړه کي د سنګ مرمر په ډول سپينه نښه وسي تر دې حده چي زړونه دوه قسمه سي تک سپين

مِثْلِ الصَّفَا فَلَا تَضُرُّهُ فِتْنَةٌ مَا دَامَتِ السَّمَاوَاتُ وَالْأَرْضُ وَالْآخَرُ أَسْوَدُ

د سنګ مرمر په مثل تر څو پوري چي مځکه او آسمان موجود وي ده ته هيڅ فتنه تاوان نه سي

رسولای او دویم زړه د ایرو

مُرْبَادًّا کَالْکُوزِ مُجَخِّيًا لَا يَعْرِفُ مَعْرُوفًا وَلَا يُنْكِرُ مُنْكَرًا إِلَّا مَا أُشْرِبَ مِنْ هَوَاهُ. رواه مسلم.

دلوښي په ډول دی هیڅ یو نیک کار نه پیژني او نه یو بد کار بد ګڼي مګر خواهش د نفس کوم چي په ده وچښل سي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم ۱\۱۲۸، رقم: ۲۳۱- ۱۴۴.

**د لغاتو حل**: نُکتت: اي نقطت واثرت (نقطه پیدا سي). مربادا: ای صار کلون الرماد (لکه رنګ داسي سي). مُجخیا: ای مائلا منکوسا.

**تشریح**: د فتنو څخه مراد بلاوي، افات او هغه شیان دي چي د انسان ذهن، فکر او بدن په تکلیف او تاوان کي اخته کوي مګر ځینو حضراتو د فتنو څخه مراد فاسد او ګمراه نظریات، باطل افکار او نفساني خواهشات ګرځولي دي.

لفظ د عودا دري ډوله نقل سوی دی، په یوه روایت کي د عین په پېښ او په دال مهمله سره دی او څرنګه چي د بل روایت څخه هم ثابته ده دا زیات مشهور دی په دغه صورت کي د حدیث د دغه جملې مطلب به دا وي چي په زړونو کي به فتنې داسي یو په بل پسې راځي لکه څرنګه چي د چټائي جوړونکی د هغه غاشې یو په بل پسې ایږدي، ځیني حضرات وايي چي د دغه تشبیه څخه مراد دادی چي هغه فتنې به پر زړه داسي اثر کوي او په هغه سره به داسي موښلي لکه څرنګه چي د چټایي لرګي په بدن پوري موښلي او د هغه پر بدن اثر وي، په دوهم روایت کي دغه لفظ د عین په زبر او په ذال سره دی یعني عوذا، په دغه صورت کي دغه لفظ د هغه فتنو څخه د الله تعالی په پناه کي معنا استعمال سوی دی لکه څرنګه چي د خبرو په دوران کي د کفر او معصیت کولو څخه وروسته نعوذ باالله یا معاذ الله ویل کیږي، په دریم روایت کي دغه لفظ د عین په زور او دال مهمله سره دی یعني عودا، ددې څخه مراد عود او تکرار دی، په دغه صورت کي به مطلب دا وي چي هغه فتنې به پر زړه په وار وار واقع کیږي، څرګنده دي وي چي په اول روایت کي خو دغه لفظ منصوب او مرفوع دواړه ډوله نقل سوی دی او په دوهم او دریم روایت کي یوازي منصوب منقول دی.

په اشربها کي د مشرب صیغه مجهول ده لکه چي ویل کیږي: اشرب فلان حب فلان، یعني

د فلاني سړي په زړه کي د فلاني مینه ځای سوې ده، یا د فلاني سړي په زړه کي د فلاني سړي د مینې فتنه ده یا د فلاني سړي پر زړه باندي د فلاني د مینې رنګ دی لکه څرنګه چي پر جامو باندي یو رنګ وي، د شرب اصل معنی د څښلو ده ځکه پر جامو باندي د رنګ کېدو مفهوم دا کېږي چي هغه جامه هغه رنګ څښني او هغه ته رنګ ورکوي نو کوم زړه چي دا فتنې قبولي کړي ، ددې مطلب دادی چي په کوم کي کوږوالی وي او د هغه میلان بدی ته وي په هغه کي فتنې ځای سي او ګویا هغه زړه هغه فتنې داسي قبولي کړي لکه څرنګه چي سپینه جامه یو رنګ سمدستي قبلوي .

نکتة داغ ته وايي او دهغه نښي په معنی هم دی چي د لرګي وغیره په ګرووللو او مس کولو سره پر مځکه باندي پیدا کیږي او د نکته لفظ د نقطه په معنی کي هم استعمالیږي او په خاصه توګه د هغه نقطې (داغ) په معنی کي استعمالیږي چي په مخالف رنګه شي کي وي لکه په سپین شي کي تور داغ او په تور شي کي سپین داغ .

حتی تصیر علی قلبین: دلته د تصیر حرف په تاء سره هم دی او په یاء سره هم دی، که دغه لفظ په یاء سره وي یعني یصیر وویل سي نو په دغه صورت کي به ضمیر انسان ته راجع وي لکه څرنګه چي د سیاق کلام څخه مفهوم کیږي او که چیري دغه لفظ په تاء سره یعني تصیر وویل سي نو ددې ضمیر به قلوب ته راجع کیږي چي صریحا هم مذکور دی .

مربادا: د میم په پېښ او د دال په تشدید سره دی او معنی یې سپیره او تور رنګه ده، رمد هم د سپیره په معنی کي استعمالیږي نو د ارمداد معنی د سپیره ده .

## کله چي امانت د زړو څخه ووځي

﴿۵۱۴۸﴾: وَعَنه قَالَ حَدَّثَنَا رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ حَدِيثَيْنِ رَأَيْتُ

د حضرت حذیفة رضی الله عنه څخه روایت دی چي رسول الله ﷺ موږ ته دوې خبري بیان کړي دي، په

أَحَدَهُمَا وَأَنَا أَنْتَظِرُ الْآخَرَ حَدَّثَنَا أَنَّ الْأَمَانَةَ نَزَلَتْ فِي جَذْرِ قُلُوبِ الرِّجَالِ

هغو کي مي یوه لیدلې ده او د دویمي انتظار کوم، رسول الله ﷺ وفرمایل: امانت (یعني ایمان) د خلکو د زړونو په ریښو کي اچول سوی دی

ثُمَّ عَلِمُوا مِنَ الْقُرْآنِ ثم عَلِمُوا مِنَ السُّنَّةِ وَحَدَّثَنَا عَنْ رَفْعِهَا قَالَ يَنَامُ

بیا هغوئ (د ایمان په نور سره) قرآن کریم و پیژندی بیا هغوئ سنت وپیژندل ، ددې وروسته رسول الله ﷺ د ایمان د لوړیدو حدیث بیان کړ او وه یې فرمایل: انسان به د معمول سره سم بیده

الرَّجُلُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ الْأَمَانَةُ مِنْ قَلْبِهِ فَيَظَلُّ أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْوَكْتِ ثُمَّ

سي او امانت به د هغه د زړه څخه ووځي، او د ایمان د وکت په اندازه اثر به پاته سي بیا چي هغه

يَنَامُ النَّوْمَةَ فَتُقْبَضُ فَيَبْقَى أَثَرُهَا مِثْلَ أَثَرِ الْمَجْلِ كَجَمْرٍ دَحْرَجْتَهُ عَلَى

دویم وار بیده سي نو د هغه د زړه څخه به د امانت پاته اثر هم ووځي او په زړه کي به یې د تناکي نښه پاته سي لکه د یو چا پر بدن چي تودې او به توی سي

رِجْلِكَ فَنَفِطَ فَتَرَاهُ مُنْتَبِرًا وَلَيْسَ فِيهِ شَيْءٌ وَيُصْبِحُ النَّاسُ يَتَبَايَعُونَ وَلَا

او هغه ځای تناکي سي چي په ظاهره را پړسیدلې او راختلې وي مگر دننه خالي وي بیا (د داسي کیدو څخه وروسته) چي خلک سهار راکښیني نو په خپل منځ کي به حسب معمول رانیول او خرڅول کوي او

يَكَادُ أَحَدٌ يُؤَدِّي الْأَمَانَةَ فَيُقَالُ إِنَّ فِي بَنِي فُلَانٍ رَجُلًا أَمِينًا وَيُقَالُ لِلرَّجُلِ

په هغوئ کي به یو کس داسي نه وي چي امانت ادا کړي (یعني شرعي حقوق ادا کړي، لوړ او خور ته برخه ورکړي) تر دې چي دا به وویل سي چي فلانی قبیله کي یو امین او دیانتدار کس

مَا أَعْقَلَهُ وَمَا أَظْرَفَهُ وَمَا أَجْلَدَهُ وَمَا فِي قَلْبِهِ مِثْقَالُ حَبَّةٍ مِنْ خَرْدَلٍ مِنْ إِيمَانٍ . متفق عليه

دی او په هغه زمانه کي به یو سړي ته (چي په دنیا داري کي کمال لري) ویل کیږي چي څومره عقلمند او هوښیار دی او ښکلی دی او څومره چالاکه دی حال دا چي د هغه په زړه کي به د سپلني د دانې په اندازه ایمان نه وي، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\ ۳۳۳، رقم: ۶۴۹۷، ومسلم ۱\ ۱۲۶، رقم: ۲۳۰- ۱۴۳.

**د لغاتو حل**: الوكت: وهو الاثر اليسير كالنقطة في الشئ. (کوچنی داغ). المجل: وهو اثر العمل في اليد (تناکه). منتبرا: اى منتفخا.

**تشريح**: د امانت دار څخه مراد يا خو مشهوره معنى ده يعني د يو چا په حق کي يا د يو چا په ملکيت کي خيانت نه کول يا هغه ټولي شرعي ذمه داری مراد دي چي پر هر سړي باندي عائد کيږي يعني ټول اسلامي احکام او تعليمات منل او په هغه عمل کول او د امانت دا هغه معنى ده چي د قرآن کريم په دغه آيت : (انا عرضنا الامانة على السموات والارض ...الخ) کي مذکور دی، بيا هم ددغه دواړو معناوو اصل او بنياد ايمان دی ځکه په زيات وضاحت سره داسي ويل کيږي چي دلته د امانت څخه مراد ايمان دی لکه څرنګه چي خپله د حديث د آخري الفاظو (وما في قلبه مثقال حبة من خردل من ايمان) څخه دا مفهوم اخيستل کيږي، همدا رنګه د حديث دغه جمله: (ولا يکاد احد يودي الامانة) کي د امانت چي کوم لفظ دی هغه هم پر ذکر سوي وضاحت باندي مبني دی ، نو رسول الله ﷺ چي کوم دوه حديثونه بيان کړل په هغو کي د اول حديث خلاصه داده چي الله تعالى د انسانيت د هدايت او کاميابۍ لپاره ايمان او امانت نازل کړل او د هغه مورد يې قلب انساني وګرځوی چي مخکي د ايمان نور او جوهر د انسان په زړه کي دننه سو او راسخ او مستحکم سو چي هغه کتاب هدايت قرآن کريم او سنت نبوي باندي د عمل لار منور کړل نو انسان د نور ايمان په سبب لافاني تعليمات او احکام و پيژندل کوم چي د کتاب الله څخه اخذ سوي دي او هغه احکام او مسائل که فرض وي، که واجب ، سنت او يا مباح وي يا حرام او مکروه وي، بيا دي نور د سنت نبوي حقيقت او صداقت څرګند کړ چي معمولات نبوي د کتاب الله تعليمات او منشاء حق چي کوم وضاحت او تفسير بيان کړ هغه بېله چون وچرا قبلولو سره د عمل لاره هواره کړل دلته دا خبره څرګنده سوه چي د الله تعالى له خوا د نور هدايت پيدا کېدل او د هغه په ذريعه انسانيت عامه نازول او د فلاح رسولو اراده فرمايل د کتاب الله نازلولو او رسولانو د را استولو څخه مخکي وه يعني مخکي خو الله تعالى نور هدايت پيدا کړ او دا اراده يې وکړه چي خپل بندګان ددغه نور هدايت په ذريعه د سعادت او خير لوړ مقام ته ورسوي ددې څخه وروسته هغه خپل کتاب په دنيا کي نازل کړ او خپل پيغمبران او رسولان يې را واستول نو د انساني نسل څخه کوم ته چي د الله تعالى ددغه عنايت او هدايت مورد او محل نصيب سول هغه خوشبخته د کتاب او سنت څخه برخمن سول .

دلته يوه بله نکته هم بيانيږي هغه دا چي فرمايل سوي دي چي بيا هغوئ قرآن و پيژندی او بيا هغوئ سنت و پيژندی ، ددې په ذريعه د ايمان او امانت حيثيت او د هغه عظمت بيانول هم مقصد دي سره ددې چي الله تعالى نور هدايت يعني ايمان يې نازل کړ او په انساني زړو کي يې راسخ کړ مګر بيا د کتاب الله نازلولو او دخپل پيغمبر او رسول را استولو په ذريعه يې هم دا

مؤکد کړ ، په هر حال دا هغه حدیث دی چي رسول الله ﷺ صحابهٔ کرامو ته وفرمایه او حضرت حذیفه ﷛ وایي: ما ددې مصداق په خپلو سترګو سره هم لیدلی دی په دې توګه چي د رسول الله ﷺ زمانه او ملګرتیا کي صحابه کرامو ددغه ارشاد عین مصداق وه او دوهم حدیث چي په هغه کي رسول الله ﷺ د امانت کم کېدو او پورته کېدو ذکر وفرمایه هغه د رسول الله ﷺ د زمانې مبارکي څخه وروسته پر خلکو باندي صادقیږي .

سړی به بېدیږي ...الخ: ددې څخه مراد یا خو حقیقتا بېده کېدل دي او یا دغه جمله د غفلت او کوتاهۍ څخه کنایه ده یعني د یاد الهي څخه غافل ، د آیات الهي څخه بې خبر، په قران کریم کي د تفکر څخه بې پروا او په اتباع سنت کي کوتاه وي، او دغه دوهم مراد زیات صحیح دی ځکه چي دا مخکنۍ جمله د وروستنۍ جملې مخالف مفهوم ددغه مراد متقاضي دی .

فیظل اثره مثل اثر الوکت: نو دامانت اثر یعني د نشان وکت د نښبي په ډول سي ، دلته باید په دې پوه سو چي د یو اثر هغه نښبي ته وایي چي دهغه شي د علامت په توګه ظاهروي او د هغه شي څخه یو برخه د هغه په صورت کي باقي وي او د وکت د عکسي شي هغه داغ ته وایي چي د هغه شي د مخالف رنګ په صورت کي ښکاره سي لکه په سپین شي کي تور داغ ښکاره کېدل ، ځیني حضرات وایي چي وکت په اصل کي هغه سپین داغ ته وایي چي د سترګو په تور کي پیدا سي ، ددغه حدیث ددغه جملې خلاصه داده چي د دین او شریعت له خوا غافل سي او د ګناهو کولو په وجه په زړه کي د ایمان نور کم سي او هغه غافل کېدونکي چي ددغه صورت حال څخه خبردار سي او د خپل زړه حالت او کیفیت کي غور او فکر وکړي نو دا به محسوس کړي چي په هغه کي د یو ټکي دمقدار څخه پرته د نور امانت څخه نور هیڅ پاته نه دي ، بیا چي دوهم وار بېده سي ددې په ذریعه دې ته اشاره سوې ده چي کله هغه د دین او شریعت څخه د غفلت په خوب بېده سي او ګناهونه کول یې زیات سي نو د زړه څخه به یې د نور د ایمان پاته برخه هم ووځي او هلته یوازي د نښبي په ډول صورت پاته سي ، څرګنده دي وي چي د مجل په معنی تڼاکه کېدل او د کار کولو په وجه دلاس پوست سخت کېدلو ته وایي ، پر دې باندي د مجل اطلاق هم کیږي نو څرنګه چي انسان دبدن پر یو برخه باندي تڼاکه راوخیژي نو هغه که څه هم سربېره ډکه معلومیږي مګر په حقیقت کي دننه د خرابو او چټلو اوبو څخه پرته بل هیڅ نه وي، همدارنګه دکوم سړي د زړه څخه چي د امانت هغه پاته اثر او نښه هم وایستل سي نو که څه هم هغه په ظاهره بالکل صالح معلومیږي مګر په حقیقت کي په هغه کي دننه سعادت او خیر رسونکی هیڅ شی نه وي ، د ذکر سوي وضاحت څخه دا معلومیږي چي وکت او مجل د نور

امانت د هغې برخه تمثيل دی چي په زړه كي پاته سي ، ددغه دواړو شيانو د مثال په ذريعه دې ته اشاره كول مقصد دي چي په دغه زمانه كي د اسلام دنامه اخيستونكي په زړه كي د ايمان او دين ددغه كمزوري، سربېره د هغوئ په زړو كي د ايمان او امانت نور څه ناڅه پاته كيږي كه څه هم هغه د وكت او مجل د نښې په ډول وي مګر ددغه وضاحت څخه يو سوال پيدا كيږي هغه دا چي د مجل نښه د وكت د نښې څخه زياته ژوره وي نو د كلام د طرز تقاضا داوه چي مخكي د مجل د نښئ ذكر راغلی وای او دهغه څخه وروسته د وكت د نښئ ذكر سوی وای، ځكه چي د وروسته درجې نښې د مخكي درجې د نښې څخه كمه وي ، ددې جواب دادی چي وكت كه څه هم يوه لږ نښه وي مګر هغه په اصل كي د كم حيثيت والا نه وي ځكه چي مجل د بالكل ښكاره كېدو په وجه د سره هيڅ حيثيت نه لري مګر دا جواب زيات ټينګ نه دی .

يو شارح پر دغه بحث په بل انداز كي رڼا اچولې ده ، دهغه د منقولاتو سره سم ددغه دوهم حديث مطلب دادی چي د كوم اهل ايمان پر فكر او عمل باندي غفلت او بې حسي خپره سي او دګناه كولو په صورت كي د دين او شريعت سره د هغه تعلق ډېر كمزوری سي نو د هغوئ د زړو څخه امانت وځي، كله چي د هغه يوه برخه زائله سي نو دهغوئ د زړونو څخه د هغه نور هم زائل سي او دلته دوكت په ډول ظلمت او تياره پيدا سي او ددې مثال په يو شي كي د هغه مخالف رنګ ظاهر سي د مثال په توګه په سپين شي كي د سپين رنګ ظاهرېدل او كله چي د دين او شريعت په اړه غفلت او كوتاهي زياته سي او د ګناهو كول د مخكي څخه هم زيات سي نو د نور امانت كومه برخه چي پاته سوې وه د هغه څخه نور زائل سي او ددې مثال داسي دی لكه پر بدن چي تناكه راوخېژي او دغه نښه دومره ژوره او سخته وي چي ژر نه زائليږي ، نو په دوهم وار چي په زړه كي كومه تاريكي پيدا كيږي هغه د اول وار پيدا كېدونكي تاريكۍ څخه زياته خپره او ژوره وي، د ذكر سوي صورت حال ددغه مثال په ذريعه بيانولو څخه وروسته يې وويل چي د انسان په زړه كي د ايمان او امانت د نور پيدا كېدل او بيا وتل يا په زړو كي د هغه نور ځای نيول او بيا د هغه د زائل كېدو څخه وروسته د تاريكۍ راتلل داسي تشبيه لري لكه څرنګه چي څوك د اور سكروټه پر خپلي پښې باندي ايږدي او سكروټه د پښې په سوځلو سره زائله سي او بيا پر سوځېدلي ځای باندي تناكه راوخيژي .

يو بل شارح دا ليكلي دي چي ددغه ارشاد څخه مراد دادی چي الله تعالی د خلكو په زړو كي د امانت نور پيدا كړ چي هغه په رڼا كي د فلاح او صلاح پر لار روان سي او د دين او شريعت پيروان سي مګر كله چي هغه خلك د هغه نعمت څخه بې پروا سي ، د دين او شريعت په اړه په

غفلت او کوتاهی کي لويږي او ګناهونه کول پيل کړي نو الله تعالی د سزا په توګه د هغه خلکو څخه دغه نعمت بېرته واخلي په دې توګه چي د هغوئ د زړونو څخه امانت وځي تر دې چي کله هغوئ د غفلت د خوب څخه بيدار سي نو محسوس کړي چي د هغوئ د زړه هغه حالت نه دی کوم چي د امانت په شتون کي وو مګر د هغوئ په زړو کي د هغه امانت نښه پاته وي چي کله د وکت په ډول وي او کله د مجل په ډول وي نو لفظ د مجل که څه هم مصدر دی مګر دلته د نفس تنها که مراد ده او دا يعني مجل د اولي مرتبې يعني وکت څخه د کمي درجې وي ځکه چي د وکت په ذريعه دې ته اشاره مقصد ده چي که څه هم امانت د زړه څخه وځي نو د نښي په صورت کي د هغه څه نا څه برخه پاته کيږي .

د حديث آخري الفاظ: حال دا چي د هغه په زړه کي د ذرې په اندازه ايمان نه پاته کيږي، دغه جمله دوه احتماله لري يا خو ا اصل ايمان نفي مراد ده يعني د هغه سړي به هيڅ ايمان نه وي ،او يا د کمال ايمان نفي مراد ده چي دغه ارشاد ددغه برخي خلاصه داده چي خلک د هغه سړي د عقل او پوهي زيات تعريف کوي او دهغه په اړه د تعجب او تحسين اظهار کوي مګر د يو داسي سړي تعريف او توصيف نه کوي چي په هغه کي ډېر زيات علم او فضل وي او د عمل صالح په دولت برخمن وي ، ددې څخه معلومه سوه چي اصل شی ايمان او د فکر او عمل پاکي ده که په يو سړي کي د ايمان او پاکۍ دولت نه وي که څه هم د دنيا ټول نعمتونه د هغه سره وي مګر د هغه هيڅ حقيقت نه وي که څه هم د دنيا خلک د هغه هر څومره تعريف او تحسين وکړي، او د هغه ښېګڼو او کاميابيو په وجه هغه هر څومره غوره وګڼي مګر تعريف او تحسين د هغه سړي په حق کي معتبر دی چي د ايمان او تقوا حامل وي .

## کله چي فتنې ظاهري سي نو عافيت لټوئ

﴿۵۱۴۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ كَانَ النَّاسُ يَسْأَلُونَ رَسُولَ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَنْ

د حضرت حذيفة ﷺ څخه روايت دی چي خلکو به اکثر د رسول الله ﷺ څخه د نيکۍ په اړه پوښتني کولې (يعني نيک کارونه او نيکي خبري به يې پوښتلې)

الْخَيْرِ وَكُنْتُ أَسْأَلُهُ عَنِ الشَّرِّ مَخَافَةَ أَنْ يُدْرِكَنِي فَقُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ إِنَّا كُنَّا

او ما به د رسول الله ﷺ څخه د بديو او فتنو په اړه پوښتنه کول ، په دې خيال چي زه په فتنه کي اخته نه سم ، يوه ورځ حذيفه ﷺ وويل: اې د الله رسوله! موږ

فِي جَاهِلِيَّةٍ وَشَرٍّ فَجَاءَنَا اللَّهُ بِهَذَا الْخَيْرِ فَهَلْ بَعْدَ هَذَا الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ قَالَ

په جاهليت كي اخته وو او د بدی په زمانه كي وو بيا الله تعالى موږ ته دا خير عطا كړ (يعني اسلام) ايا ددې خير څخه وروسته هم يو بدي پيښيدونكې ده ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

نَعَمْ قُلْتُ وَهَلْ بَعْدَ ذَلِكَ الشَّرِّ مِنْ خَيْرٍ قَالَ نَعَمْ وَفِيهِ دَخَنٌ قُلْتُ وَمَا

هو، ما وويل: ايا ددې بدی او خرابی څخه وروسته به هم خير وي، رسول الله ﷺ وفرمايل :هو، او په هغه خير كي خړوالی وي، ما وويل:

دَخَنُهُ قَالَ قَوْمٌ يَسْتَنُّونَ بِغَيْرِ سُنَّتِيْ وَ يَهْدُونَ بِغَيْرِ هَدْيِي تَعْرِفُ مِنْهُمْ

هغه خړوالی به څه وي؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: د خرابی څخه مراد هغه قوم دی چي زما د طريقې خلاف طريقه اختيار كړي او خلكو ته زما د لاري خلاف لار ښيي، ته به په هغوئ كي دين

وَتُنْكِرُ قُلْتُ فَهَلْ بَعْدَ ذَلِكَ الْخَيْرِ مِنْ شَرٍّ قَالَ نَعَمْ دُعَاةٌ إِلَى أَبْوَابِ جَهَنَّمَ

هم وويني او ددين خلاف كارونه هم، (يعني په هغوئ كي به د شرع سره سم او د شرعي خلاف دواړي خبري ووينې) ما وويل: ايا ددې خير څخه وروسته به هم بدي وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:هو، داسي خلک به وي چي د دوږخ پر دروازه به ولاړ خلک بلي (يعني څرګنده ګمراهي به خپروي)

مَنْ أَجَابَهُمْ إِلَيْهَا قَذَفُوهُ فِيهَا قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ صِفْهُمْ لَنَا قَالَ هُمْ مِنْ

څوک چي د هغه جهنمي دعوت قبول كړي هغوئ به جهنم ته بوزي ، ما وويل: اې د الله رسوله ! د هغوئ صفت حال كړئ، (يعني هغوئ به كوم خلک وي او څنګه به وي؟) رسول الله ﷺ وفرمايل: هغوئ به

جِلْدَتِنَا وَيَتَكَلَّمُونَ بِأَلْسِنَتِنَا قُلْتُ فَمَا تَأْمُرُنِي إِنْ أَدْرَكَنِي ذَلِكَ قَالَ تَلْزَمُ

زموږ د قوم يا جنس څخه وي او زموږ په ژبو به خبري كوي ما وويل: كه هغه زمانه پر ما راسي نو تاسو څه حكم راكوئ.(يعني كه هغه خلک زما په ژوند كي ظاهر سي نو هغه وخت ما ته څه كول په كار دي؟) رسول الله ﷺ وفرمايل:

جَمَاعَةَ الْمُسْلِمِينَ وَإِمَامَهُمْ قُلْتُ فَإِنْ لَمْ يَكُنْ لَهُمْ جَمَاعَةٌ وَلَا إِمَامٌ قَالَ

د مسلمانانو ډله لازم ونيسه او د هغوئ د امام اطاعت کوه، ما وويل: که هغه وخت د مسلمانانو جماعت نه وي او امام هم نه وي نو څه وکړم؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

فَاعْتَزِلْ تِلْكَ الْفِرَقَ كُلَّهَا وَلَوْ أَنْ تَعَضَّ بِأَصْلِ شَجَرَةٍ حَتَّى يُدْرِكَكَ الْمَوْتُ

ته د ټولو ډلو څخه بيل سه که څه هم چي تا ته د درختو په ريښو کي پناه تر لاسه سي، تر دې چي

وَأَنْتَ عَلَى ذٰلِكَ، متفق عليه و في رواية لمسلم قال يَكُونُ بَعْدِي أَئِمَّةٌ لَا

مرګ درته راسي، بخاري او مسلم، او د مسلم په يوه روايت کي داسي دي چي رسول الله ﷺ داسي وفرمايل: زما څخه وروسته به امامان (خليفه ګان يا پاچاهان) وي، چي

يَهْتَدُونَ بِهُدَايَ وَلَا يَسْتَنُّونَ بِسُنَّتِي وَسَيَقُومُ فِيهِمْ رِجَالٌ قُلُوبُهُمْ قُلُوبُ

زما طريقه به خلکو ته نه ښيي او زما طريقه به نه اختياروي، او په هغوئ کي به ځيني خلک داسي ظاهر سي چي د هغوئ زړونه به

الشَّيَاطِينِ فِي جُثْمَانِ إِنْسٍ قَالَ قُلْتُ كَيْفَ أَصْنَعُ يَا رَسُولَ اللّٰهِ إِنْ أَدْرَكْتُ

د شيطانانو په ډول وي او صورتونه به يې د انسانانو په ډول وي، ما وويل: اې د الله رسوله! که زه دا زمانه تر لاسه کړم نو څه وکړم؟

ذٰلِكَ قَالَ تَسْمَعُ وَتُطِيعُ لِلْأَمِيرِ وَإِنْ ضُرِبَ ظَهْرُكَ وَأُخِذَ مَالُكَ فَاسْمَعْ وَأَطِعْ.

رسول الله ﷺ وفرمايل: امير چي څه وايي هغه اوره او د هغه اطاعت کوه که څه هم چي پر ملا وَوهل سې او ستا مال په زور واخيستل سي خو بيا هم اوره (حکم يې) او اطاعت يې کوه.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٦١٥، رقم: ٢٦٠٦، ومسلم ٣\١٤٧٥، رقم: ٥١- ١٨٤٧.

**د لغاتو حل**: دخن: لايكون خيرا صفوا بل يكون مشوبا بكدورة وظلمة. (خيرن).

**تشريح**: علماؤ ويلي دي چي د شر څخه مراد فتنه او د اسلام په ارکانو کي سستي او کوتاهي واقع کېدل دي، د بدۍ غلبه، د بدعت خپرېدل دي، او د خير څخه مراد د دې برعکس معنی ده، موږ په جاهليت او بدۍ کي اخته وو: د دغه قول په ذريعه حضرت حذيفه ؓ د رسول الله ﷺ د پيغمبرۍ څخه مخکي زمانې ته اشاره وکړه کله چي د توحيد لمر د جهالت پر وريځو خپور سوی وو، د نبوت او رسالت رڼا څرګنده سوې نه وه او پر احکام الهي باندي د عمل لار د نظرو

ثخه پته وه .

في جاهلية وشر: دلته د شر لفظ عطف تفسيري دی چي ددغه لفظ په ذریعه د جاهلیت وضاحت بیانول مقصد دي یا دا هم ویل کیږي چي په دغه جمله کي د شر لفظ د تخصیص په توګه استعمال سوی دی .

دخن: یعني خیرنتوب، او د دُخان معنی د دود ده، مطلب دادی چي ثرنګه په فضاء کي خپور سوی دود پاک شیان خیرن کوي همدارنګه هغه وخت چي کوم خیر مخته راسي هغه به د بدی او خرابی په ګرد لړلي وي ، په دې توګه چي دخلکو په زړونو کي به پاکي او خلوص نه وي کوم چي د اسلام په لومړنی زمانه کي وي او عقیدې به صحیح او اعمال به صالح نه وي ، د امیرانو او پاچاهانو نظم به د هغوئ پر عدل او انصاف باندي مبني نه وي کوم چي په مخکي زمانه کي وو، د مسلمانانو مشران به مخلص او ریښتوني خادم نه وي ، د بدیو ظهور به وي ، بدعتونه به پیداسي ، بدکاره خلک به د نیکانو سره او اهل بدعت به د اهل سنت سره ګډ وډ سي .

ته به په هغوئ کي دینداره هم وویني او بې دینه هم: مطلب دادی چي هغه خلک به په نیکی او بدی دواړو سره د ګډېدو په وجه د متضاد او مختلف اعمالو حامل وي د هغوئ په ژوند کي به د منکر یعني خرابو خبرو چلن هم وي او د معروف یعني ښو کارو دخل هم وي، نو دغه جمله هم هغه مفهوم ثرګندوي کوم چي د مخکنی جملې (نعم وفیه دخن ویستنون بغیر سنتي) ثخه مراد اخیستل سوی دی .

ځینو حضراتو وضاحت کړی دی چي په دغه اراشاد کي د اسلام او هدایت د رڼا ثخه وروسته پیښېدونکي کومي بدی ته چي اشاره سوې ده د هغه ثخه د بدی فتنه مراد ده کوم چي د حضرت عثمان ﷺ د شهادت پر وخت ظاهره سوې وه او بیا پیښېدونکي دوهم خیر ته چي اشاره سوې ده نو دهغه ثخه مراد د حضرت عمر ابن عبدالعزیز ﷺ د خلافت زمانه وه، او منهم وتنکر یعني تاسو به په هغوئ کي دینداره هم وویني او بې دینه هم ، دلته چي کومو خلکو ته اشاره سوې د هغه ثخه هغه امیران او پاچاهان مراد دي چي د حضرت عمر ابن عبدالعزیز ﷺ ثخه وروسته حکمرانان سول ، په هغوئ کي ځیني داسي حکمرانان تېر سوي دي چي په خپل ذاتي ژوند کي هم او خپل پاچاهي کي هم د کتاب او سنت په هدایت کي عادل او انصاف داره وه ، او په هغوئ کي ځیني داسي وه چي کله به یې نیک کارونه کول او کله به په نفساني خواهشاتو کي په لوېدو سره خراب کارونه کول ، هغه وخت به د هغوئ په مخکي د آخرت د مفادو او د آخرت لپاره د تیاري جذبه نه وه بلکه د هغوئ اصل مفاد ذاتي مفاد پوره کول وو، او

په هر صورت کي د خپل اقتدار او خپلي حکمرانۍ پاته ساتل وو، ځيني حضرات وايي چي د اولي بدۍ څخه مراد هغه فتنه او فساد دی چي د حضرت عثمان غني رضي الله عنه د قتل په صورت کي او د هغه څخه وروسته ظاهر سول او د ذوهم خير څخه مراد هغه صلح ده چي د حضرت امير معاويه او حضرت امام حسين رضي الله عنه په منځ کي وسوه ، د دُخن يعني دود څخه مراد هغه افسوسناکه واقعې دي چي د حضرت معاويه په زمانه کي د ځينو اميرانو په ذريعه ظاهره سوې لکه په عراق کي د زياد فتنه او فساد .

چي د دوږخ پر درواز باندي په درېدو سره به خلک رابولي: يعني د هغه مفاد پرست او خود غرضه خلکو يوه ډله به وي چي خلک به د ډول ډول فريب او حرص د غلولو په ذريعه ګمراهۍ ته رابولي او هغوئ به د هدايت څخه ليري ساتي نو رسول الله ﷺ د ګمراهۍ د عوت ورکونکو دعوت ته او چا ته چي دعوت ورکول کيږي د هغوئ له خوا هغه دعوت قبلول يو داسي سبب ګرځولی دی چي د هغه په ذريعه به دعوت ورکونکی د عوت قبلونکی دوږخ ته واچوي همدارنګه هغه خلک به د هغوئ د مکر او فريب په ښکار کېدو سره دوږخ ته مخکي ولاړ سي او رسول الله ﷺ د مکر او فريب ټول اقسام او ټول صورتونه د دوږخ د دروازو قائم مقام ګرځولي دي .

ځينو حضراتو ويلي دي چي دلته کومو کسانو ته اشاره سوې ده چي هغوئ به خلک ګمراهي ته رابولي ، ددې څخه هغه د عزت، حکومت او اقتدار غوښتونکی مراد دي چي پر ملک او قوم باندي خپل واک قائمولو لپاره ډلي جوړي کړي او عامو خلکو ته په ډول ډول فريب ورکولو سره خپل چاپيره راجمع کړي چي د هغوئ د اجتماعي طاقت په ذريعه ملي سيادت او ملک باندي قبضه وکړل سي لکه څرنګه چي د خوارج او روافض په ډول ګمراه ډلي د دغه ناپاک مقصد لپاره پيدا سوي دي، حال دا چي د امارت ، سيادت، امانت او ولايت هيڅ شرط او خصوصيت به هم په هغوئ کي موجود نه وي، يوه خبره دا هم د وضاحت وړ ده چي فرمايل سوي دي چي هغوئ به د دوږخ پر دروازو په درېدو سره خلک ځان ته رابولي نو د دوږخ پر دروازو درېدل د مال په اعتبار فرمايل سوي دي يعني ګمراهي ته د رابللو کار به دا وي چي کوم خلک د هغوئ پر بلنه هغوئ ته ورځي هغوئ به د دوږخ د عذاب مستحق ګرځي ، همدارنګه ګمراهۍ ته د هغوئ بلني ته د دوږخ پر دروازو باندي په بلني سره تعبير سوي دي نو دغه ارشاد د اسلوب په اعتبار د قرآن کريم د دغه آيت په ډول دی :

(ان الذين ياكلون اموال اليتمى ظلما انما ياكلون في بطونهم نارا) .

د مسلم د روایت د آخري الفاظو مطلب دادی که چیري تاسو په داسي هیواد کي اوسئ چیري چي د مسلمانانو نظم او پاچاهي قائم وي او د مسلمانانو امیر او امام موجود وي نو دهغه ځای په سیاسي حالت کي ستاسو لپاره هر څومره سختي او تنګي وي او دهغه امیر او امام له خوا ستاسو مال او ځان په اړه ظلم کیږي یا تاسو وهل کیږئ او ستاسو مال او اسباب په زور اخیستل کیږي تاسو دهغه امیر او امام د بغاوت بیرغ هیڅکله مه پورته کوئ او دفتني او فساد دروازې هیڅکله مه خلاصوه بلکه د صبر او تحمل لار اختیاروئ او په سختو حالاتو کي هم د وخت د امام په بغاوت کولو سره د دین او ملت منتشر کولو سبب مه جوړیږئ ، پاته سوه دا خبره که چیري هغه امیر او امام د مشروع امورو د کولو حکم ورکړي نو په دغه صورت کي مسئله داده چي د هغه اطاعت دي وکړل سي مګر که چیري د مشروع امورو حکم ورکړي چي د هغه حکم په عدولي صورت کي ځان او خلکو ته تاوان رسوي یا په هلاکت کي د اخته کېدو نوبت راسي نو دا بېله خبره ده ، که چیري په دغه صورت کي هم د اولی اختیارولو جواز باقي دی یعني د حکم عدولي په صورت کي بېره ده نو دغیر مشروع امر کول کېدای سي مګر که چیري یو سړی د سر په بایلني سره هم دغیر مشروع امر کولو څخه انتظار وکړي نو دا به تر ټولو ښه خبره وي او ددې تر ټولو د لوی درجې اختیارولو جواز دی .

په پای کي د فاسمع واطع الفاظ چي دوهم وار فرمایل سوي دي ، ددې څخه دهغه حکم موکد کېدل مقصد دي چي ځان د امام د اطاعت څخه بېل نه کړل سي او د سرکښۍ او بغاوت په ذریعه په هیواد او ملت کي د انتشار فتنه خپره نسي .

## د فتنو څخه مخکي خپل دیني ژوند مستحکم کړئ

﴿۵۱۵۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ بَادِرُوا بِالْأَعْمَالِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا أَوْ يُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا يَبِيعُ دِينَهُ بِعَرَضٍ مِنَ الدُّنْيَا. رواه مسلم .

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : (په نیکو) اعمالو کي تلوار کوئ او ددې فتنو د راتلو څخه مخکي چي د تاریکي شپې د ټکړو په ډول به وي چي (هغه وخت به) څوک په سهار کي د ایمان په حالت کي پورته کیږي او مابنام ته به کافر سي او په مابنام کي به مؤمن وي او سهار ته به کافر سي ، خپل دین به د دنیا په لږ سامان خرڅ کړي . مسلم .

**تخریج**: صحیح مسلم ۱۱۰/۱، رقم: ۱۸٦ – ۱۱۸.

**تشریح**: په نیکو اعمالو کي تلوار کوئ: ددغه لاربنوونی خلاصه داده چي ددغه تغیر خورونکي دنیا پر یوه رخ باندي قرار نسته او د وختي حالاتو تبدیل یوړ خوا ته نه وي اوس که داسي حالات دي چي دعقیدې او عمل رخ صحیح ساتلو کي مرسته کونکي جوړیږي نو وروسته داسي حالات هم پیدا کیدای سي چي د فکر او نظریاتو او عقیدې سفر پر صحیح خوا باندي په جاري ساتلو کي سخت خنډ پیدا کړي او داسي کم انسانان وي چي د هغوئ په اعماله صالحه کي خنډ نه پیدا کیږي نو کوم چا ته چي کومه موقع تر لاسه سي په هغه کي د ښه کار کولو او نېک عمل کولو تلوار دي کوي او څومره اعمال چي کولای سي وه دي یې کړي ځکه چي دا هیچا ته معلومه نه ده چي په راتلونکي وخت کي به څه فتنې راځي او بیا به د نیکو اعمالو اختیارولو موقع هم نه وي او یا فتنې په تیاره شپو سره تعبیر سوي دي ، مطلب دادی چي د راتلونکو فتنو په اړه چا ته داسي معلومېدای نه سي چي هغه به کله او ولي ظاهریږي او دهغه څخه د خلاصون لار به څه وي نو د هغه راتلونکو فتنو څخه مخکي د اعمال صالحه په ذریعه خپل دیني ژوند مستحکم جوړ کړی ، دراتلونکي وخت انتظار مه کوئ ځکه چي هغه وخت به د دین او شریعت تعلق د داسي سختو آفاتو او مصیبتو سره وي چي د نېک کار کولو موقع به نه تر لاسه کیږي هغه وخت به د خلکو ذهن، فکر او اعمالو باندي څومره خراب اثر وي او هغه فتنې به څومره ژر اثر کونکي وي دې ته اشاره فرمایل سوي دي چي د مثال په توګه سړی به په سهار کي پورته کیږي نو په ایمان به متصف وي مګر په ماښام کېدو سره به د کفر تیارو ته ورځي، پاته سوه دا خبره چي د کفر څخه مراد څه دی؟ نو کېدای سي چي اصل کفر مراد دي یعني هغه سړی په حقیقت کي د کفر په دائره کي داخل سي یا دا مراد دی چي هغه کفران نعمت یعني د نعمت ناشکري کونکی سي یا هغه د کافرانو مشابهت اختیار کړي یا دا چي هغه داسي کارونه پېل کړي چي یوازي کافریې کوي.

ځیني حضرات وایي چي د ذکر سوې جملې معنی داده چي د مثال په توګه یو سړی چي په سهار کي پاڅي نو هغه شی به حلال ګڼي کوم چي الله تعالی حلال ګرځولی دی او هغه شی به حرام ګڼي کوم چي الله تعالی حرام ګرځولی دی مګر په ماښام کېدو سره به د هغه ذهن او فکر او د هغه په عقیده کي داسي بدلون راسي چي هغه شی به حرام ګڼي کوم چي الله تعالی حلال ګرځولی دی او هغه شی به حلال ګڼي کوم چي الله تعالی حرام ګرځولی دی ، پر دې باندي د جملې دوهمه برخه یعني ماښام به مؤمن وي او سهار به د کفر په حالت کي وي، هم قیاس کیدای

سي او خلاصه داده چي عام خلک به ددغه فتنو په وجه د دين او شريعت په معاملاتو کي تذبذب او تردد ښکار سي او په نامه پوهانو او عالمانو پسي تلل به پېل کړي ، مظهر رحمة الله عليه ويلي دي: د ذکر سوي صورت حال به څو وجي او اسباب وي يو خو دا چي په مسلمانانو کي به تفرقه ولوېږي او هغوئ به په مخالفو ډلو کي وويشل سي نو دهغوئ په منځ کي محض عصبيت او بغض وعناد په وجه به قتلونه وي او د دواړو ډلو خلک به د خپل مخالف ځان او مال ته تاوان رسوي او د يو بلويني تويول به حلال ګڼي ،

دوهم دا چي د مسلمانانو حاکم به په ظلم او زور حکمراني نېولې وي هغه به د مسلمانانو ناحقه ويني تويوي ، دهغوئ مال به په زور اخلي ، زنا به کوي، شراب به څښي او نور خراب کارونه به کوي مګر د هغوئ ددغه څرګندو بدکاريو سربېره ځيني خلک به دا عقيده لري چي هغه حاکم او امير پر حق دی او داسي خلک به د بدي عقيدې په دغه فتنه کي اخته کونکي هغه په نامه علماء وي چي هغوئ ته علماء سوء ويل کيږي د هغوئ له خوا به د اميرانو د هغه کارو د جواز فتوا ورکول کيږي چي هغوئ به يې دمسلمانانو د ويني تويولو او حرامو کارو په صورت کي کوي، او دريم دا چي په عامو مسلمانانو کي به جهالت او د دين څخه د ناخبرتيا په وجه چي کومي خرابۍ خپريږي او د هغوئ څخه چي کوم غير شرعي کارونه کيږي لکه د رانيولو او پلورلو په معاملا کي او په نورو امورو کي د دين او شريعت د احکامو خلاف ورزي کول به حلال او جائز ګڼي، شيخ عبدالحق دا ليکلي دي چي مذکوره حال به په دې وجه پيدا کيږي چي خلک به دخپل اغراضو او منافعو له کبله د دنياداره اميرانو او شتمنو سره تعلق ساتي ، دهغوئ څخه د حاجت پوره کېدو په اميد به هغوئ ته ورځغلي د هغوئ ناسته ولاړه به عزت ګڼي نو ددې نتيجه به دا وي چي د هغوئ پيروان به دهغوئ تابع سي او د هغوئ د شريعت خلاف کارو کي به دهغوئ پر موافقت او تائيد کولو باندي مجبور وي .

سړی به په سهار کي د ايمان په حالت کي وي...الخ: ددې يوه معنی دا هم کېدای سي چي سړی به په سهار کي پاڅي نو دخپل مسلمان ورور د ويني او مال ساتلو په سبب به د ايمان په حالت کي وي او هغه چي په ماښام کېدو سره د هغه عقيده بدله سي او هغه به دخپل مسلمان ورور وينه او مال حلال ګڼي او په دې وجه به هغه کافر وګرځول سي ، ددغه معنی اختيارولو په صورت کي د فتنو څخه مراد جنګ او قتال دی مګر ددغه جملې چي کومه معنی مخکي تېره سوې ده هغه د رسول الله ﷺ دارشاد سره زياته مناسب ده .

## د فتنو د ظهور پر وخت عافيت و لټوئ

﴿۵۱۵۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَيَكُونُ فِتَنٌ الْقَاعِدُ

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ و فرمايل: ډير ژر به فتنې ظاهري سي

فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِي وَالْمَاشِي فِيهَا خَيْرٌ مِنَ

ددې فتنو په زمانه كي به ناست تر ولاړو غوره وي او ولاړ به تر روان غوره وي او تلونكى به د

السَّاعِي مَنْ تَشَرَّفَ لَهَا تَسْتَشْرِفْهُ فَمَنْ وَجَدَ مَلْجَأً أَوْ مَعَاذًا فَلْيَعُذْ بِهِ.

ځغستونكي څخه غوره وي، څوك چي د دغه فتنو په لور ګوري فتنه به يې ځان ته راكش كړي، څوك چي په دغه زمانه كي د پناه يو ځاى ته تللاى سي هغه دي هلته پناه تر لاسه كړي.

متفق عليه و في رواية لمسلم قَالَ تَكُونُ فِتْنَةٌ النَّائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْيَقْظَانِ

بخاري او مسلم، او د مسلم په يوه روايت كي دا الفاظ دي چي رسول الله ﷺ و فرمايل: فتنه به راسي چي په هغه كي به بيده كس تر ويښ غوره وي

وَالْيَقْظَانُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ وَالْقَائِمُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي فَمَنْ وَجَدَ مَلْجَأً أَوْ مَعَاذًا فَلْيَسْتَعِذْ.

او ويښ كس به تر ولاړ او ولاړ به تر ځغليدونكي غوره وي، نو څوك چي دغه وخت د پناه يو ځاى تر لاسه كړي نو هلته دي پناه تر لاسه كړي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۶۱۲، رقم: ۲۶۰۱. ومسلم ۴\۲۲۱۲، رقم: ۱۰-۲۸۸۶.

**د لغاتو حل**: تشرف: اى نظر اليها. معاذا: اى موضعا او شخصا ملاذا يتخلص بالذهاب اليه بالعياذ به من الفتن.

**تشريح**: په فتنه كي ناست كسان تر ولاړو ځكه غوره دي چي د يو شي سره ولاړ سړى د هغه شي سره زيات نژدې وي چي هغه شى ويني هم او اوري يې هم حال دا چي ناست خلك هغه شى نه ويني او نه يې اوري نو په فتنو كي ولاړ سړى د هغه د ليدو او اوريدو په وجه چي ناست سړى يې نه ويني او نه يې اورې عذاب ته زيات نژدې وي، كيداى سي چي په دغه جمله كي د ناست سړي

څخه مراد هغه سړی وي چي هغه په دغه زمانه کي د ظاهرېدونکي فتنې محرک نه وي بلکه د
هغه څخه په ليري پاته کېدو سره په خپل ځای کي ناست وي او دباندي نه راوځي ، او د ولاړ
سړي څخه مراد هغه څوک وي چي په هغه کي د هغه فتنې تعلق وي مګر په فتنې کي متردد وي ،
کوم څوک چي فتنو ته ګوري ...الخ: مطلب دادی که چيري يو سړی هغه فتنو ته متوجه کيږي
او هغه ته نژدې ورځي نو د هغه توجه په هغه فتنو کي د هغه د اخته کېدو باعث کيږي نو د هغه
فتنو څخه د ساتني او د هغه دجال څخه د خلاصون په صورت کي ددې څخه پرته نور هيڅ به نه
وي چي د هغه فتنو څخه څومره زيات ليري او سېدل ممکن وي هغومره زيات ليري دي اوسي

﴿۵۱۵۲﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُوْلُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّهَا سَتَكُوْنُ

د حضرت ابوبکره رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ډير ژر به فتنې يو په بل

فِتَنٌ اَلَا ثُمَّ تَكُوْنُ فِتْنَةٌ اَلْقَاعِدُ خَيْرٌ مِنَ الْمَاشِيْ فِيْهَا وَالْمَاشِيْ فِيْهَا خَيْرٌ

پسي څرګنديږي او ياد لرئ چي بيا د دغه فتنو څخه يوه لويه فتنه پېښيږي په دغه فتنه کي به
ناست سړی د تلونکي سړي څخه غوره وي او تلونکی به

مِنَ السَّاعِيْ اِلَيْهَا اَلَا فَاِذَا نَزَلَتْ اَوْ وَقَعَتْ فَمَنْ كَانَ لَهُ اِبِلٌ فَلْيَلْحَقْ بِاِبِلِهِ

د فتنې په لور د ځغستونکي څخه غوره وي ، خبردار! کله چي دا فتنه واقع سي نو هغه څوک
چي د هغه سره اوښان وي د خپلو اوښانو سره دي سي

وَمَنْ كَانَتْ لَهُ غَنَمٌ فَلْيَلْحَقْ بِغَنَمِهِ وَمَنْ كَانَتْ لَهُ أَرْضٌ فَلْيَلْحَقْ بِأَرْضِهِ

او څوک چي پسونه او بزې لري د هغو سره دي سي او د چا سره چي مځکه وي هغه دي د خپل
مځکي سره پريوځي (يعني ټول کارونه دي پريږدي او يوازيوالی دی اختيار کړي) او په دغه
شيانو کي دي بوخت سي ،

فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ أَرَأَيْتَ مَنْ لَمْ يَكُنْ لَهُ اِبِلٌ وَلَا غَنَمٌ وَلَا أَرْضٌ قَالَ

يو کس (ددې په اوريدو سره) وويل چي اې د الله رسوله ! د چا سره چي اوښان، پسونه او يا
مځکه نه وي هغه دي څه وکړي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

يَعۡمِدُ إِلَى سَيۡفِهِ فَيَدُقُّ عَلَى حَدِّهِ بِحَجَرٍ ثُمَّ لِيَنۡجُ إِنۡ اسۡتَطَاعَ النَّجَاءَ اللَّهُمَّ

هغه دي د خپل توري په لور متوجه سي هغه دي په ډبره وهلو وهلو سره وټکوي (يعني د هغې ثوكه دي پڅه كړي چي د جنګ خيال پيدا نه سي) او بيا هغه ته پكار ده چي د دغه فتنو څخه د خلاصون لپاره وتښتي كه هغه ژر داسي وكړلای سي ، د دې څخه وروسته رسول الله ﷺ وفرمايل : اې الله !

هَلۡ بَلَّغۡتُ ثلثا فَقَالَ رَجُلٌ يَا رَسُولَ اللّٰهِ أَرَأَيۡتَ إِنۡ أُكۡرِهۡتُ حَتَّى يُنۡطَلَقَ بِي

ما ستا احكام ستا بندګانو ته ورسول ، درې واره رسول الله ﷺ دا الفاظ وفرمايل ، يو سړي عرض وكړ اې د الله رسوله ! كه پر ما ظلم وكړل سي تر دې چي په دواړو ډلو كي زه د يوې ډلي

إِلَى أَحَدِ الصَّفَّيۡنِ فَضَرَبَنِي رَجُلٌ بِسَيۡفِهِ أَوۡ يَجِيءُ سَهۡمٌ فَيَقۡتُلُنِي قَالَ يَبُوءُ بِإِثۡمِهِ وَإِثۡمِكَ وَيَكُونُ مِنۡ أَصۡحَابِ النَّارِ . رواه مسلم .

صف ته بوتلل سم ، يا يو غشى راسي ما مړ كړي نو زما په اړه ستاسو څه خيال دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: ستا پر قاتل به خپله او ستا د دواړو ګناه وي او هغه سړی به په دوږخيانو كي وشميرل سي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۴\ ۲۲۱۲، رقم: ۱۳– ۲۸۸۷.

**تشريح**: دعلماؤ په نزد دا يو اوږد بحث دی كه چيري د انتشار يو فتنه را پورته سي او مسلمانان په دوو ډلو كي په وېشل كېدو سره په خپلو كي جنګ كول پېل كړي نو هغه وخت به د پاته مسلمانانو طرز عمل څه وي، د عالمانو د يو ډلي دا وينا ده چي د انتشار په صورت كي هيڅ مسلمان ته جائز نه ده چي هغه په قتل او قتال كي شريک سي نو په هغه كي د ګډون څخه پرهيز كول او د دواړو ډلو څخه جلاوالی اختيارول واجب دی ، د دغه حضراتو دليل ذكر سوی ارشاد او همدارنګه نور حديثونه دي ، مشهور صحابي حضرت ابوبكر ﷛ او د ځينو نورو صحابه كرامو مذهب هم دا وو ، د حضرت ابن عمر ﷛ قول دادی چي د قتل او جګړې پېل په خپله كول نه دی پكار كه ثوک ويني تويوي نو دهغه دفع كول لازم دي ، د جمهور صحابه او تابعينو دا مذهب دی كه چيري په مسلمانانو كي جګړه وسي او د يو بل خلاف قتل او قتال شروع كړي نو د هغه ډلي حمايت كول پكار دي كوم چي پر حق او انصاف باندي وي او كومه ډله

چي د ظلم او نا انصافۍ لار اختيار كړي وي يا د مسلمانانو د امام او سردار څخه د بغاوت كولو په وجه د ملي انتشار سبب جوړيږي د هغه خلاف جنګ كول پكار دى ځكه كه چيري داسي ونه كړل سي نو د فتنې او فساد بازار به ګرم سي او د بغاوت كونكو همت به لوړ سي ،

ددغه مذهب دليل د الله تعالى دا فرمان دى : (وان طائفتان من المؤمنين اقتتلوا....الخ) نو آيت كريمه دا څرګندوي چي كله د مسلمانانو په دوو ډلو كي جګړه وسي نو د هغوئ په منځ كي صلح كول پكار دي او د دواړو ډلو هغه انتشار څخه د ليري كولو هڅه دي وكړل سي ، كه چيري په هغه دواړو ډلو كي يوه ډله د حد څخه تجاوز كوي او په فتنه جاري كولو كي مصروف وي نو بيا د هغه ډلي پر خلاف بايد توره پورته كړل سي او د هغوئ سره جنګ وكړل سي چي پر حق لار باندي راسي .

﴿۵۱۵۳﴾: وَعَنْ أَبِي سَعِيدٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يُوشِكُ أَنْ يَكُونَ خَيْرَ مَالِ الْمُسْلِمِ غَنَمٌ يَتْبَعُ بِهَا شَعَفَ الْجِبَالِ وَمَوَاقِعَ الْقَطْرِ يَفِرُّ بِدِينِهِ مِنْ الْفِتَنِ . رواه البخاري.

د حضرت ابو سعيد رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : هغه زمانه نژدې ده چي د مسلمان غوره مال به پسونه وي چي هغه د غرونو په لمن كي يا د باران اوريدو ځاى ته بوځي د فتنو څخه به وتښتي او خپل دين به وژغوري. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۶۹، رقم: ۱۹.

**د لغاتو حل**: شعف: اى رؤوس الجبال (د غره څوكي)

**تشريح**: ددغه حديث مطلب هم دا تلقين كول دي چي كله داسي فتنې را پورته سي چي په هغه سره په مسلمانانو كي انتشار او د جنګ و جګړې وباء خپره سي او داسي ماحول پيدا سي چي په هغه كي د دين ساتل مشكل سي نو هغه وخت به د خلاصون لار دا وي چي يوازيوالى اختيار كړل سي او څومره چي ممكن وي خپل ځان د نړيوالو څخه جلا كړي لكه چي فرمايل سوي دي چي داسي حالت تر ټولو غوره صورت دادى چي يو مسلمان د يو څو پسو مالک وي او د هغه پسو په پېولو سره ځنګل ، غر يا داسي ځاى ته ولاړ سي چيري چي د څر ځاى او اوبو پيدا كېدو ذريعه وي او هلته د پسو په پېولو سره د شېدو په صورت كي د حاجت په اندازه خوراک باندي

په قناعت كولو سره خپل ژوند تېروي ، ددې لپاره چې نه د دنيا د خلكو سره وي او نه دين ته په تاوان رسونكو فتنو كي اخته وي .

**د فتنو پيشگوئي**

﴿۵۱۵۴﴾ : وَعَنْ أُسَامَةَ بْنِ زَيْدٍ قَالَ أَشْرَفَ النَّبِيُّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عَلَى أُطُمٍ مِنْ آطَامِ الْمَدِينَةِ فَقَالَ هَلْ تَرَوْنَ مَا أَرَى قَالُوا لَا قَالَ فَإِنِّي لَأَرَى الْفِتَنَ تَقَعُ خِلَالَ بُيُوتِكُمْ كَوَقْعِ الْمطرِ . متفق عليه

د حضرت اسامه بن زيد رضي الله عنه څخه روايت دى چې رسول الله ﷺ د مدينې پر يو لوړ ځاى وختى ، صحابه كرام يې مخاطب كړل او ورته وه يې فرمايل: تاسو هغه شي وينئ كوم چې زه وينم؟ صحابه كرامو وويل :يا، رسول الله ﷺ ورته وفرمايل: زه فتنې وينم، چې ستاسو پر كورونو داسي وريږي لكه څرنگه چې باران اوريږي . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۴\ ۹۴،رقم: ۱۸۷۸، ومسلم ۴\ ۲۲۱۱، رقم: ۹- ۲۸۸.

**د لغاتو حل**: اطم: اى شاهق جبل او بناء مرتفع (د غره لوړه څوكه يا لوړه ماڼۍ)

**تشريح**: اطم: د غره څوكي، قلعه او لوړ ځاى ته وايې ، او اطام يې جمع ده ، دلته د اطام څخه مراد مدينې منورې چاپېره هغه لوړ ځايونه او قلعې دي چې په هغه ځاى كي يهوديان اوسېدل، رسول الله ﷺ يوه ورځ د هغه قلعه څخه د يوې قلعې بام ته تشريف يووړ او بيا يې ذكر سوى حديث ارشاد وفرمايه .

زه هغه فتنې وينم ...الخ: ددې وضاحت دادى چې الله تعالى خپل نبي ته هغه وخت چې هغه بام ته وختى د فتنو نژدې كېدل وښودل چې د هغه فتنو په اړه يې خبردار كړي او خلك په دې پوهېدو سره چې د هغه فتنو نازلېدل مقدر سوي دي د هغه څخه د ساتني طريقه اختيار كړي او دا خبره د رسول الله ﷺ د معجزو څخه شمېرل كيږي چې رسول الله ﷺ كومه وړاند وينه فرمايلې وه هغه بالكل صحيح ثابته سوه .

**يوه خاصه پيشگوئي**

﴿۵۱۵۵﴾ : وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَكَةُ أُمَّتِي عَلَى يَدَيْ غِلْمَةٍ مِنْ قُرَيْشٍ. رواه البخاري.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : زما د امت هلاکت به د قريشو د څو ځوانانو دلاسه وي. بخاري.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦١٢/١٦، رقم: ٢٦٠٥.

**د لغاتو حل**: الغلمة: الشبان، جمع غلام. (زلميان)

**تشريح**: په دغه حديث د امت څخه مراد صحابه کرام او اهل بيت دي، چي د امت تر ټولو غوره او افضل کسان وه، لفظ د غلمة د غلام جمع ده چي معنى يې د زلمي ده، په صراح کي ليکلي دي چي د غلام معنى د هلک ده او ځرګنده دي وي چي د غلام لفظ د غلم او اغتلام څخه اخيستل سوى دى چي د هغه معنى د جوش غلبه ده، په هر حال دلته د غلمة څخه مراد هغه کم عمره زلمي دي چي ناپوه او بې باکه وي، د مشرانو او بزرګانو ادب او احترام نه کوي او د عالمانو او پوهانو خلکو د عزت خيال نه ساتي نو رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي د قريشو کومو زلمو ته چي اشاره وفرمايل د هغه څخه د قريشو سره نسلي تعلق لرونکي د دين او ملت هغه بدخواه خلک مراد دي چي هغوئ د سلطنت او عزت تر لاسه کولو لپاره حضرت عثمان غني، حضرت علي، حضرت حسن او حضرت حسين رضي الله عنهم اجمعين شهيدان کړل اود هغوئ د هلاکت باعث سول، يا هغوئ هغه وخت په ملت کي د انتشار او ظلم فتنه پيدا کړل، په مجمع البحاري کي ليکلي دي چي حضرت ابو هريره رضي الله عنه د رسول الله ﷺ د دغه ارشاد په رڼا کي هغه خلک په تعين سره و پېژندل مګر دا حديث بيانولو وخت د فتنې له بيري د هغه خلکو نو مونه ځرګند نه کړل او هغه خلک د بني اميه عبد الله ابن زياد او دهغه په ډول نور کسان وه چي هغوئ تر دې حده د فتنې او فساد بازار ګرم کړ چي اهل بيت يې د بې پايه ظلمو ښکار کړل، د لوړي درجې مهاجر او انصار صحابه کرامو ته يې په لوى مظلوميت سره د خپل ځانو څخه لاس پرېولى او داسي ويني توى سوې چي ځمکه او آسمان رېږدل ددغه خلکو دغه د ظلم ډکي کارنامې د تاريخ په کتابو کي په تفصيل سره ذکر دي.

﴿٥١٥٦﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَتَقَارَبُ الزَّمَانُ وَيُقْبَضُ الْعِلْمُ وَتَظْهَرُ الْفِتَنُ وَ يُلْقَى الشُّحُّ وَيَكْثُرُ الْهَرْجُ قَالُوا وَمَا الْهَرْجُ قَالَ الْقَتْلُ. متفق عليه

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زمانې به يو په بل پسې نژدې وي (د دنيا زمانه او د آخرت زمانه) او علم به پورته كړل سي او د فتنو به ظهور وي او بخل به واچول سي (يعني د خلكو په زړونو كي) او هرج به زيات وي، صحابه كرامو پوښتنه وكړه چي هرج څه شي دی؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: قتل. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۱\۱۸۲، رقم: ۸۵، ومسلم ۴\۲۰۵۷، رقم: ۱۱- ۲۶۷۲.

**تشريح**: زمانې به يو بل ته نژدې سي: ددې مطلب يا خو دادی چي هغه وخت به د دنيا زمانه د آخرت زمانه يو بل ته نژدې سي، په دغه صورت كي به د قيامت نژدې كېدل مراد وي يا ددغه جملې څخه مراد د زمانو د خرابۍ تعلق دی يعني په هغه زمانه كي چي بدكاره خلك وي هغه به يو بل ته نژدې راسي يا دا مطلب دی چي خپله د زمانې اجزاء د بدۍ او خرابۍ په اعتبار هم يو بل ته نژدې او مشابه وي يعني يوه زمانه به د خرابۍ او بدۍ ماحول اخيستی وي او د هغه څخه وروسته به بيا دوهم زمانه همداسي وي، يا دا مطلب دی چي يوه داسي زمانه به راسي چي په هغه كي به حكومت تر ډېره وخته نه وي او مختلف انقلابونه او ډېر مختصر وخت كي به بدليږي، ځينو حضراتو دا مطلب بيان كړی دی چي په آخر كي كومه زمانه راځي په هغه كي به د خلكو عمرونه ډېر لږ وي او دا احتمال هم دی چي دغه جمله په اصل كي دگناهو په سبب د زمانې څخه د بركت ختمېدو كنايه ده يعني په آخره زمانه كي كله چي د گناهو زياتوب سي خلك به د دين او شريعت تقاضې او د الله او آخرت د ييري څخه په بې پروا كېدو د عيش او غفلت په ژوند كي ولويږي نو د زمانې څخه به بركت ولاړ سي او د هغه د شپې او ورځي گردش به دومره تيز او د ورځي او شپې وخت به دومره مختصر محسوس كيږي چي د كلونو مخكي يوه واقعه به د پرون خبره معلوميږي او هر څوك د وخت د كمۍ شكايت كوی ددې تائيد ددې څخه هم كيږي چي په هغه كي فرمايل سوي دي چي په آخره زمانه كي به وخت داسي تيريږي چي كال به دمياشتي برابر، مياشت به د اونۍ په اندازه او اونۍ به د ورځي برابر معلوميږي.

علم به پورته كړل سي: مطلب دا چي په هغه زمانه كي باعمل او د حقيقي علم حامل علماء پورته كړل سي او همدارنگه حقيقي علم به ختم سي او د مختلف علمي فتنو تياره به داسي خپره سي چي د علماء حق او علماء سوء په منځ كي به امتياز كول مشكل سي او هري خوا ته به دا محسوس كيږي لكه د علم څراغ چي مړ سوی وي او د جهالت او ناپوهۍ تياره خپره سوې وي.

بخل به واچول سي: مطلب دادی چي په آخره زمانه كي به په خلكو كي د بخل خصلت ډېر پوخ سي او دا شی يعني د بخل خرابي به د يوې عامي وباء په ډول خپره سي او خلك به د هغه

بخل دومره تابع سي چي صنعت او حرفت ته به د خپل صنعتي شیانو جوړولو او پیدا کولو کي د بخل او تنګی کول پیل کړي او د مال او تجارت خلک به خپل مال پټوي تر دې چي د ضروري شیانو د ورکولو څخه به هم انکار کول پیل کړي ، ددې څخه معلومه سوه چي بخل به عام کړل سي ، دلته په خلکو کي اصل بخل مراد نه دی ځکه چي اصل بخل خو د انسان په خلقت او طبیعت کي پروت دی او په دې اعتبار دا خبره د مخکي زمانې د خلکو په اړه نسي ویل کیدای چي په هغوئ کي د بخل وجود نه وو مګر ددې څخه دا نتیجه هم اخذ کیدای نسي چي اصل بخل د انسان په جبلت کي پروت دی ځکه نو هیڅوک ددغه عادت څخه پاک سوی نه دی ، حقیقت دادی چي الله تعالی چا ته وغواړي ددغه خصلت څخه یې په پوره توګه خوندی کولای سي .

او څرنګه چي ددغه آیت (ومن یوق شح نفسه فاولئک هم المفلحون) څخه څرګندیږي چي داسي پاک انسانان مخکي هم تېر سوي دي او س هم موجود دي او بیا به هم موجود دي، دا بېله خبره ده چي د زمانې د اثراتو په وجه د داسي پاکو کسانو شمېر په هره راتلونکې زمانه کي د مخکې زمانو په نسبت کم سي .

د هرج معنی ده په فتنه او فساد کي لوېدل او څرنګه چي په قاموس کي لیکلي دي چي کله دا ویل کیږي : هرج الناس: نو ددې معنی دا وي چي خلک په فتنو کي ولوېدل او قتل او اختلاط یعني ویني تویول، د نورو کارونو سره د ګډېدو په وجه د ښه او بد تمیز نه کولو په آفت کي اخته سي نو په دغه ارشاد کي د هرج څخه مراد په خاصه توګه هغه قتل او ویني تویول دي چي د مسلمانانو په منځ کي د انتشار او فتنې په صورت کي او د ښه او بد د نه تمیز په وجه خپره سي .

## د فتنو د شدت پای

﴿۵۱۵۷﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وَالَّذِي نَفْسِي

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : په هغه ذات دي مي قسم وي

بِيَدِهِ لَا تَذْهَبُ الدُّنْيَا حَتَّى يَأْتِيَ عَلَى النَّاسِ يَوْمٌ لَا يَدْرِي الْقَاتِلُ فِيمَ قَتَلَ

د چا په واک کي چي زما روح ده دنیا به تر هغه وخته پوري نه فنا کیږي تر څو پوري چي پر خلکو داسي ورځ رانه سي چي په هغې کي به قاتل ته دا معلومه نه وي چي هغه مقتول ولي قتل کړ

وَلَا الْمَقْتُولُ فِيمَ قُتِلَ فَقِيلَ كَيْفَ يَكُونُ ذَلِكَ قَالَ الْهَرْجُ الْقَاتِلُ

## وَالْمَقْتُولُ فِي النَّارِ . رواه مسلم .

او نه به مقتول ته دا معلومه وي چي هغه ولي قتل کړل سو ، صحابه کرامو عرض وکړ : داسي به څنگه وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : هرج (يعني فتنه)، قاتل او مقتول به دواړه دوږخ ته ځي. مسلم

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۳۱، رقم: ۵۶– ۲۹۰۸.

**تشريح**: مطلب دادی چي په هغه زمانه کي به د خلکو د زړه او دماغ څخه د فتنې، فساد او قتل احساس داسي ختم سي چي نه به قاتل پېژندل کيږي چي هغه د مقتول وينه ولي بهولې ده او نه بهٔ مقتول او د هغه ورثاء ته دا معلومه وي چي د هغه ځان د يو دنياوي غرض او مقصد لپاره يا د يو شرعي وجه پر بناء وژل سوی دی ، داسي تياره به خپره سي چي شکوک او شبهات باندي به د انسان وينه بهيږي ، ددې خبري سره به هيڅ غرض نه وي چي کوم څوک پر حق دی او کوم څوک پر ناحق دی ، څوک چي څه غواړي هغه به کوي ، د موجوده زمانې د حالت په لېدو سره څوک ويلای سي چي د ذکر سوي صورت ظهور نه دی سوی .

د هرج په سبب: مطلب دادی چي د بې وجه قتل په وجه د جهالت او ناپوهی هغه تياره بهٔ دا وي چي پوره ماحول به د فتنې او فساد او بد امنی څخه ډک وي . د شرارت عروج به وي د اخلاقي قوانينو گرفت به کمزوری سي، دښه او بدو کارو تميز به ورک سي ، حق او باطل به گډ وډ سي ، د زړه او دماغ څخه به د انساني ويني د ساتني احساس ختم سي .

دواړه به دوږخ ته ځي: ددې څخه معلومه سوه چي د نيت فتور به دومره عام سي چي په ظاهره مقتول او مظلوم سړی به هم په ځان کي د ظلم او طغيان فتنه پټه ساتي د هغه مقتول او مظلوم کېدل به په دې وجه نه وي چي هغه واقعتا د يو ظالمانه قتل ښکار سوی دی بلکه په دې اعتبار به وي چي هغه خطا سو او خپله د حملې کولو څخه مخکي دبل دحملې ښکار سو نو د ذکر سوي جملې مطلب دادی چي قاتل خوبه دوږخ ته ددې لپاره ځي چي هغه واقعتا د قتل عمد گناه کار دی او مقتول به ددې وجي دوږخ ته ځي چي هغه خپله هغه د هغه قاتل قتلول غوښتل او د هغه تباه کولو خواهش يې درلودی او سړی د يوې گناه د ارادې په وجه هم ماخوذ کيږي ځکه هغه هم د دوږخ مستوجب گرځول کيږي ، مگر څرگنده دي وي چي دا حکم د جهالت خپرېدو او دحق او باطل په منځ کي د تميز ختمېدو په صورت کي دی مگر که چيري د هغه مقتول څخه د ذکر سوي نيت او ارادې تعلق جهالت او ناپوهي او عدم تميز سره نه وي بلکه ددې څخه وي چي هغه د اشتباه په وجه په خطآ کي ولوېدی نو پر هغه باندي د ذکر سوي حکم اطلاق نه کيږي ،

ددې وضاحت دادی چي هغه (مقتول) د خپل قاتل په اړه کوم عداوت او نفرت کوی او د هغه د قتل سره مقتول هم د عذاب مستوجب سو مگر که چیري هغه مقتول د جهالت او ناپوهی په وجه نه بلکه د دین له موخي د هغه سرې یعني د قاتل د قتل کولو اراده درلودل نو دغه ارادې ته هغه د دین او شریعت د خپل علم په رڼا کي غور او فکر کولو څخه وروسته او د نیت اخلاص سره رسیدلی وي نو که چیري د حقیقت په اعتبار هغه ارادې ته د هغه رسیدل غیر صحیح وي نو هغه محض د هغه ارادې په وجه د عذاب مستوجب نسي گرځېدای ځکه چي اجتهاد او صحیح نتیجې ته د رسېدو لپاره خطا کونکی سړی به عندالله ماخوذ نه وي ، څرګنده دي وي چي ذکر سوی ارشاد ددغه مشهور او صحیح مذهب دلیل دی چي کوم څوک د یو ګناه نیت وکړي او پر هغه نیت قائم وي نو هغه به د ګناه کار په حکم کي وي که څه هم هغه په خپلو اندامو او ژبه سره په عملي توګه هغه ګناه ونه کړي .

## د فتنو په ماحول کي پر دین باندي د قائم پاته کېدونکي فضیلت

﴿۵۱۵۸﴾: وَعَنْ مَعْقَلِ بْنِ يَسَارٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْعِبَادَةُ فِي الْهَرْجِ كَهِجْرَةٍ إِلَيَّ . رواه مسلم

د حضرت معقل بن یسار رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : د فتنو په زمانه کي به د عبادت دومره ثواب وي څومره چي زما په لور د هجرت ثواب دی . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۲۲۶۸، رقم: ۱۳۰ – ۲۹۴۸.

**تشریح**: مطلب دادی چي د نبوت په زمانه کي د مکې د فتح څخه مخکې د دارالحرب څخه په هجرت کولو سره مدینې ته راتلونکي او د رسول الله ﷺ د ملګرتیا شرف لرونکي ته چي کوم ثواب تر لاسه کېږي هغه ثواب به هغه سړي ته هم حاصلیږي چي د فتنې او فساد د جهالت څخه د ځان ساتني لپاره د الله جل جلاله په عبادت کي بوخت او پر خپل دین باندي قائم پاته سي .

## پر مظالمو صبر وکړئ او په دې پوه سئ چي راتلونکې زمانه به تر دې هم بدتره وي

﴿۵۱۵۹﴾: وَعَنِ الزُّبَيْرِ بْنِ عَدِيٍّ قَالَ أَتَيْنَا أَنَسَ بْنَ مَالِكٍ فَشَكَوْنَا إِلَيْهِ مَا

د زبیر بن عدي رضي الله عنه څخه روایت دی چي موږ انس بن مالک رضي الله عنه ته ورغلو او هغه ته مو د حجاج

نَلْقَى مِنَ الْحَجَّاجِ فَقَالَ اصْبِرُوا فَإِنَّهُ لَا يَأْتِي عَلَيْكُمْ زَمَانٌ إِلَّا الَّذِي بَعْدَهُ

د ظلمونو شکایت وکړ، هغه وویل: صبر کوئ ځکه چې راتلونکې زمانه به تر تیرې سوې

شَرٌّ مِنْهُ حَتّٰى تَلْقَوْا رَبَّكُمْ سَمِعْتُهُ مِنْ نَبِيِّكُمْ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ. رواه البخاري

زمانې بدتره وي، تر دې چې تاسو د الله ﷻ سره یو ځای سئ دا خبره مې ستاسو د نبي ﷺ څخه اوریدلې ده. بخاري

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۱۹–۲۰. رقم: ۷۰۶۸.

**تشريح**: په دغه حدیث کې دا فرمایل سوي دي چې هره راتلونکې زمانه به د تېرې زمانې څخه بدتره وي نو پر دې باندې په دغه صورت کې سوال پیدا کیږي چې کله د راتلونکې زمانې څخه مراد بېله استثناء هره زمانه وي، نو حجاج ابن یوسف د زمانې څخه وروسته د حضرت عمر ابن عبدالعزیز رحمه الله زمانه راغلل، یا وروسته به د حضرت عیسی او حضرت مهدي زمانه راځي نو ایا پر دغه زمانو باندې هم د ذکر سوي خبرې اطلاق کیږي او بېله استثناء دا ویل به صحیح وي چې هره راتلونکې زمانه به د حجاج د زمانې څخه هم بدتره وي، مګر که چیرې دا خبره په استثناء سره فرمایل سوې وي نو بیا سوال نه پیدا کیږي، د حدیث شارحینو وضاحت کړی دی چې دراتلونکې زمانې د بد تر کېدو خبر ورکول د اکثر او اغلب په اعتبار دی یعنې راتلونکو زمانو کې به اکثرې زمانې داسې وي چې دتیرې زمانې څخه به بدترې وي او راتلونکې زمانې څخه مراد دحجاج د زمانې څخه د دجال تر زمانې پورې ټولې زمانې دي چې د هغو څخه دحضرت عیسی او حضرت مهدي علیهما السلام زمانې مستثنی دی، ددې څخه پرته ددغه حدیث اصل مقصد د امت خلکو ته ډاډ ورکول، پر ظلم او زور باندې د صبر کولو تلقین کول، د راتلونکو زمانو په اړه باخبر کول او دې ته راغب کول دي چې خپله زمانه په غنیمت ګڼلو سره زیات اخروي ګټې تر لاسه کولو کې بوخت سي، څه خبر چې په راتلونکې زمانه کې چا ته دومره موقع هم په لاس ورسي که یا.

ځینو حضراتو ددغه وضاحت سره مناسب ویلي دي چې د راتلونکو زمانو په اړه چې څه ویل سوي دي د هغه څخه د حضرت عیسی علیه السلام زمانه مستثنی ده پاته زمانې په څه نا څه اعتبار سره د حالاتو مطابق د مخکې زمانې څخه د بدتر حالت حامل وي او د رسول الله ﷺ د زمانې څخه د لیرې والي تقاضا هم داده چې زمانه څومره د رسول الله ﷺ د عهد مبارک څخه لیرې کیږي هغومره به بدي او خرابي زیاتیږي او ددې لړۍ د رسول الله ﷺ د رحلت څخه سمدستي وروسته پیل سوې وه، لکه چې تر صحابه کرامو پورې د خپل باطن پاکوالي او د نفس سربېره د

رسول الله ﷺ د تدفين وروسته د خپلو زړو په حالت کي تبديلي محسوس کړې وه ، د مخکنيو ځينو بزرګانو په اړه ليکلي دي چي هغوئ بيان وکړ چي اول وخت په زړه کي د ګناه خيال پيدا سو او بيا هغه خيال ولاړی نو ډېر وخت وروسته کله چي هغه خيال بيا راغلی نو اوس يې په اساني سره د دفع کولو نوم نه اخيستی ، د ډېر فکر کولو وروسته د دغه فرق وجه له دې پرته او ر هيڅ په پوهه کي نه راغلل چي دغه ظلمت د نبوت د زمانې د نور څخه او د زيات بعد کېدو په وجه پيدا سوي دی ، ځکه د نبوت د زمانې د تېرېدو چي څومره وخت زياتيږي د بدی تياره په هغه اعتبار زياتيږي .

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### رسول الله ﷺ تر قيامته پوري د پيداکېدونکو فتنو په باره کي خبر ورکړی دی

﴿۵۱۶۰﴾: عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ وَاللّٰهِ مَا أَدْرِي أَنَسِيَ أَصْحَابِي أَمْ تَنَاسَوْا وَاللّٰهِ مَا

حضرت حذيفه ﷺ وايي چي په الله ﷻ دي مي قسم وي زه نه سم ويلای چي زما د ملګرو څخه هيره سوې ده او که د هيريدلو اظهار کوي، (په حقيقت کي هيره ځيني نه ده سوې) قسم په

تَرَكَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ مِنْ قَائِدِ فِتْنَةٍ إِلَى أَنْ تَنْقَضِيَ الدُّنْيَا

خدای رسول الله ﷺ د هيڅ داسي کس ذکر نه دی پرې ايښی چي تر قيامته پوري به د فتنو باعث

يَبْلُغُ مَنْ مَعَهُ ثَلَاثَ مِائَةٍ فَصَاعِدًا إِلَّا قَدْ سَمَّاهُ لَنَا بِاسْمِهِ وَاسْمِ أَبِيهِ وَاسْمِ

قَبِيلَتِهِ. رواه ابوداؤد.

وي يعني د هغه فتنه پورته کونکی سړی چي د هغه د ملګرو تعداد تردرې سوه يا تر درو سوو زيات وي تر دې چي موږ ته يې د هغه ، د هغه د پلار او د هغه د قبيلې نوم وښودی . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴۴۳\۱۴، رقم: ۴۲۴۳.

**تشريح**: د فتنې اچونکي څخه مراد هغه سړی دی چي د فتنې او فساد باعث وي لکه هغه عالم چي په دين کي بدعت پيدا کړي ، د دين په نامه باندي په مسلمانانو کي د انتشار پيدا کولو سره د اسلام شوکت مجروح کړي او څرنګه چي هغه ظالم پاچا او امير چي د مسلمانانو د قتل او قتال باعث وي .

د درو سوو قيد ځکه لګول سوي دي چي کم از کم په دومره شمېر کي د خلکو جمع کېدل د هغه فتنې د خپرولو په اثر کولو او د دين او ملت ته د تاوان رسولو لپاره په عامه توګه کافي کيږي که د يو فتنې اچونکي پيروانو شمېر تر دې کم وي نو که څه هم هغه په انفرادي او جزوي توګه په فتنه اچولو کي کامياب سي مګر په اجتماعي توګه د اثر کېدو قابل نه وي.

**ګمراه کونکی قائد**

﴿۵۱۶۱﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ اِنَّمَا أَخَافُ عَلَى أُمَّتِي الْأَئِمَّةَ الْمُضِلِّينَ وَإِذَا وُضِعَ السَّيْفُ فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهُمْ إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ. رواه ابوداؤد والترمذي.

د حضرت ثوبان رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: زه د خپل امت لپاره چي د کومو خلکو څخه زيات بيريږم هغه ګمراه کونکي سرداران دي او هر کله چي زما په امت. کي توره وچليږي نو بيا به تر قيامت پورې نه بنديږي (يعني هر کله چي امت محمديه کي قتل شروع سي نو تر قيامته پوري به شروع وي). ابوداؤد او ترمذي

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۱، رقم: ۴۲۵۲، والترمذي ۴\۴۳۷، رقم: ۲۲۲۹.

**تشريح**: ائمه د امام جمع ده او امام د قوم او ډلي مشر او هغه سړي ته وايي چي خلک خپل قول يا فعل يا د عقيدې اتباع ته راوبولي نو ددغه ارشاد مقصد دا څرګندول دي چي د مسلمانانو اجتماعي او ملي حيثيت او د هغوئ دين ته تر ټولو زيات تاوان رسونکی چي کوم شی دی هغه د مسلمانانو قيادت او رهبري کونکو خلکو ګمراه کېدل دي ځکه چي په انفرادي حيثيت کي د يو سړي د ګمراه کېدو تاوان د هغه تر ذات پوري محدود وي مګر د قائد او مشر د ګمراهی تاوان او ضرر ټول قوم او ډله متاثره کوي.

کله چي زما په امت کي توره وچليږي...الخ: مطلب دادی چي کله د يو بل خلاف د توري او طاقت دزمانې ابتداء وسي او د يو بل د مسائلو او معاملاتو د دين په رڼا کي د حل کولو پر ځای د تشدد او زور لار اختيار کړل سي نو بيا د طاقت ازمانيي تشدد هغه فتنه تر قيامته پوري نه يخيږي او مسلمانان به يو د بل خلاف جنګيږي، څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذريعه په امت کي د ويني تويولو د ابتداء کېدو کوم خوا ته ارشاد فرمايلی دی د هغه مصداق د امير المؤمنين حضرت عثمان غني رضي الله عنه د شهادت واقعه رامنځته سوه نو په اسلام

كي تر ټولو مخكي چي مسلمان د مسلمان پر خلاف توره پورته کړه هغه دحضرت عثمان شهادت دی او بیا د هغه د شهادت څخه وروسته مسلمانانو د یو بل د وینې لړۍ پیل کړه چي تر ننه پوري باقي ده او څرنګه چي مخبر صادق ﷺ خبر ورکړی دی چي د مسلمانانو دغه بدبختي به تر قیامته پوري جاري وي.

## د خلافت راشده دوخت په باره کي پیشګوئي

﴿۵۱۶۲﴾: وَعَنْ سَفِينَةَ قَالَ سَمِعْتُ النبي صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ الْخِلَافَةُ

د حضرت سفینه (رض) څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوریدلي دي چي خلافت به

ثَلَاثُونَ سنة ثُمَّ يَكُونُ مُلْكًا ثُمَّ يَقُوْلُ سَفِينَةُ أَمْسِكْ خِلَافَةَ أَبِي بَكْرٍ رَضِيَ

دیرش کاله وي بیا به دا خلافت په پاچاهي تبدیل سي، ددې حدیث راوي سفینه وایي چي حساب وکړل سي او وکتل سي نو د حضرت ابوبکر رضی الله عنه خلافت

اللّٰهُ عَنْهُ سَنَتَيْنِ وَخِلَافَةَ عُمَرَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ عَشْرَةً وَ عُثْمَانَ رَضِيَ اللّٰهُ عَنْهُ اثْنَيْ عَشْرَةَ وَعَلِيٍّ سِتَّةً. رواه احمد والترمذي وابوداؤد.

دوه کاله، د حضرت عمر رضی الله عنه خلافت لس کاله، د حضرت عثمان رضی الله عنه خلافت دوولس کاله او د حضرت علي رضی الله عنه خلافت شپږ کاله وو. احمد، ترمذي، ابوداؤد.

**تخريج**: مسند الامام احمد ۵\۲۲۰، وابوداود ۵\۳۶، رقم: ۴۶۴۶، والترمذي ۴\۴۳۶، رقم: ۲۲۲۶.

**تشريح**: د خلافت څخه مراد حق خلافت دی یا هغه خلافت مراد دی چي د الله جل جلاله او د هغه د رسول په نزد غوره او د هغه بنیاد د قرآن او سنت هدایت او د دین او شریعت پر اتباع باندي وي نو ددغه خلافت صحیح مصداق د رسول الله ﷺ څخه وروسته اول خلافت دی چي هغه ته خلافت راشده ویل کیږي او دهغه وخت دېرش کاله وو.

شیخ عبدالحق دهلوي رحمه الله په خپل شرح مشکوة کي د دغه روایت په نقل کولو سره د ملکا څخه وروسته عضوضا لفظ هم نقل کړی دی، مطلب دا سو چي رسول الله ﷺ دا وفرمایل: چي خلافت به په پاچاهي بدل سي یعني د خلاف دور ختم کېدو څخه وروسته د پاچاهۍ دور پیل سي او پاچاهي به هم د داسي خلکو وي چي دهغوئ د سختیو او ظلمو څخه به امن نه تر لاسه کیږي او د عدل او انصاف نظام او ددین د پیروۍ ماحول چي څرنګه پکار دی هم هغسي

جاري نه وي ، دا بېله خبره ده چي ددغه دور حکمرانان د تېرو خلفاؤ د جانشینی دعوه کولو په وجه مجازا د هغه پر پاچاهي باندي د خلافت اطلاق کوي او ځان ته خليفه وايي او که څه هم هغوئ ته امير المؤمنين ويل د حقيقت خلاف خبره نه وي ځکه چي د ظاهري قانون مطابق هغوئ د مسلمانانو په هر حال امير او حاکم وي مګر حقيقي خلافت چي هغه ته اشاره سوې ده يوازي تر ديرشو کالو پوري به وي نو خلفاء راشدين چي دهغوئ دور د حقيقي خلافت مصداق وو پر دېرشو کالو باندي مشتمل دی .

په شرح عقائد کي ددغه حديث اړوند يو سوال وارد سوی دی او هغه دا چي رسول الله ﷺ د خلافت دور دېرش کاله فرمايلی دی حال دا چي د خلفاء راشدينو څخه وروسته خلفاء عباسيه بلکه په بني اميه کي هم ځيني خلفاء لکه حضرت عمر بن عبدالعزيز پر خلافت باندي د مسلمانانو اتفاق راغلی دی نو ايا دهغه خلافت ته خلافت نه ويل کيږي ، ددې جواب دادی چي رسول الله ﷺ کوم خلافت ته اشاره فرمايلې ده د هغه څخه مراد دادی چي خلافت کامله چي په هغه کي د دين او شريعت او د عدل او انصاف ذره برابر ګډون نه وي ديرش کاله به وي ، ددې څخه وروسته د خلافت شکل او صورت کي به تبديلي راسي مګر يوه زمانه به داسي هم راسي چي په هغه کي به ددغه خلافت طرز اختيار کړل سي ،په عامه توګه چي کوم خلافت قائميږي هغه به يوازي په نامه خلافت وي دا په اصل اعتبار کي پاچاهي وي ، څرګنده دي وي چي د خلافت راشده څخه وروسته د بنو اميه حکمرانی پېل سول چي هغوئ که څه هم د خلافت نوم ورکړ مګر په حقيقت کي هغه پاچاهي وه ، حضرت امير معاويه ددغه دور اول حکمران دی د هغه حکمراني که څه هم د خلافت راشده په ډول د دين او ملت په حق کي د حقيقي خلافت نمونه نه وه مګر دهغه په خلافت او حکومت کي د پاچاهی هغه ټولي خرابی هم نه وې چي دهغوئ د جانشين دور حکومت کي پيدا سوې او هغوئ په خپل حکمرانی کي تر يو حده پوري د خلافت راشده پر طريقې د ساتلو هڅه وکړه مګر دهغه څخه وروسته د بنو اميه اکثر حکمرانان د مسلمانانو د قتل او ويني تويولو خلاف دين او د ظلم او نا انصافی د ډېرو زياتو مثالو څخه ډکه وه ددغه دور ابتداء د يزيد ابن معاويه څخه وسوه، د يزيد څخه وروسته د هغه زوی معاويه ابن يزيد سو ، وليد بن عبدالمالک ، سليمان بن عبدالمالک، حضرت عمر بن عبدالعزيز ، يزيد بن عبدالمالک ، هشام بن عبدالمالک، وليد بن عبدالمالک ، ابراهيم بن وليد بن عبدالملک، مروان بن محمد بن مروان په ترتيب سره يو په بل پسي خليفه او حکمران سول ، مروان ابن محمد ابن مروان د بنو اميه اخري حکمران وو ، ددې څخه وروسته خلافت د بنو اميه

څخه ووتی او بنو عباس ته ورسیدی .

د حدیث راوي حضرت سفینه ﷛ چي د دېرشو کالو کوم شمېر بیان کړی دی هغه تخمینًا دی او پر دې خبره مبني دی چي هغه کسور بیان نه کړل، صحیح روایات او مستند تاریخي کتابو کي د خلافت راشده دېرش کال وخت داسي بیان سوی دی چي د حضرت ابوبکر صدیق ﷛ د خلافت زمانه دوه کاله او څلور میاشتي وه، د حضرت عمر فاروق ﷛ د خلافت زمانه لس کاله او شپږ میاشتي وه، د حضرت عثمان غني ﷛ د خلافت زمانه څو ورځي کم دوولس کاله وه او د حضرت علي مرتضی ﷛ د خلافت زمانه څلور کاله نهه میاشتي وه ، همدارنګه د څلورو خلفاء راشدینو مجموعي وخت یو کم دېرش کاله او اووه میاشتي کیږي او پنځه میاشتي چي پاته سوې هغه د حضرت امام حسن د خلافت زمانه ده نو حضرت امام حسن ﷛ هم د خلفاء راشدینو څخه سو .

## د راتلونکي زمانې په اړه پیشګوئي

﴿۵۱۶۳﴾: وَعَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ قُلْتُ يَا رَسُولَ اللهِ اَيَكُونُ بَعْدَ هٰذَا الْخَيْرِ شَرٌّ

د حضرت حذیفة ﷛ څخه روایت دی چي ما عرض وکړ اې د الله رسوله ! ایا د دغه خیر د زمانې څخه وروسته به شر وي

كَمَا كَانَ قَبْلَهُ شَرٌّ قَالَ نَعَمْ قُلْتُ فَمَا الْعِصْمَةُ قَالَ السَّيْفُ قُلْتُ وَهَلْ بَعْدَ

لکه د اوس څخه مخکي چي شر وو ؟ (یعني څرنګه چي د اسلام څخه مخکي خرابي خپره سوې وه نو ایا د اوسني خیر د زمانې څخه وروسته به هم د بدۍ زمانه راځي) ، رسول الله ﷺ وفرمایل: هو، ما وویل بیا د هغه څخه د خلاصیدو څه صورت دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: توره، ما وویل ایا

السَّيْفِ بَقِيَّةٌ قَالَ نَعَمْ تَكُونُ اِمَارَةٌ عَلَى أَقْذَاءٍ وَهُدْنَةٌ عَلَى دَخَنٍ قُلْتُ ثُمَّ

د توري څخه وروسته (یعني د جنګ څخه وروسته) به مسلمان پاته سي، رسول الله ﷺ وفرمایل هو، سلطنت او حکومت به وي، چي د هغه بنیاد به پر فساد وي او د صلح بنیاد به پر خرابۍ وي ، ما وویل: بیا به

مَاذَا قَالَ ثُمَّ يَنْشَأُ دُعَاةُ الضَّلَالِ فَإِنْ كَانَ لِلَّهِ فِي الْأَرْضِ خَلِيفَةٌ جَلَدَ ظَهْرَكَ

څه وي ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل : ددې څخه وروسته به ګمراهي ته بلونکي خلک پيدا سي که هغه وخت يو څوک خليفه وي او هغه ستا ملا په درو ووهي ا

وَأَخَذَ مَالَكَ فَأَطِعْهُ وَإِلَّا فَمُتْ وَأَنْتَ عَاضٌّ عَلٰى جِذْلِ شَجَرَةٍ قُلْتُ ثُمَّ مَاذَا

و ستا مال هم واخلي نو هم ته د هغه اطاعت کوه (او که خليفه يا پاچا نه وي) نو د يوې درختي په بيخ کي کښينه (يعني د پناه ځای ونيسه) او هلته مړ سه، ما وويل: بيا به څه حال وي؟

قَالَ ثُمَّ يَخْرُجُ الدَّجَّالُ بَعْدَ ذَالِكَ مَعَهُ نَهْرٌ وَنَارٌ فَمَنْ وَقَعَ فِي نَارِهِ وَجَبَ

رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا به دجال راوځي په داسي ډول سره چي د هغه سره به د اوبو وياله وي او اور، څوک چي د هغه په اور کي ولويږي

أَجْرُهُ وَحُطَّ وِزْرُهُ وَمَنْ وَقَعَ فِي نَهْرِهِ وَجَبَ وِزْرُهُ وَحُطَّ أَجْرُهُ قَالَ قُلْتُ ثُمَّ مَاذَا

د هغه اجر ثابت او قائم سو او د هغه ګناهونه ليري سول او څوک چي د هغه په وياله کي ولويدی د هغه ګناه ثابته او قائمه سول او د هغه اجر ولاړی ، ما عرض وکړ بيا به څه حال وي ؟

قَالَ ثُمَّ يُنْتَجُ المهر فَلَا يُرْكَبُ حَتّٰى تَقُوْمَ السَّاعَةُ، وفي رواية قَالَ هُدْنَةٌ عَلٰى

رسول الله ﷺ وفرمايل: بيا به د آسپي بچيان پيدا سي او هغه به د سپرلۍ وړ لا نه وي چي قيامت به قائم سي ، او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي هغه وخت به په ظاهر کي صلح وي

دَخَنٍ وَجَمَاعَةٌ عَلٰى أَقْذَاءٍ قُلْتُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ الْهُدْنَةُ عَلَى الدَّخَنِ مَا هِيَ قَالَ

او په باطن کي به خرابوالی وي او د خلکو اجتماع به په ناخوښي سره وي ، ما عرض وکړ اې دالله رسوله ! پر خرابوالی باندي د صلح کيدو څه مطلب دی ؟ رسول الله ﷺ وفرمايل:

لَا تَرْجِعُ قُلُوْبُ أَقْوَامٍ عَلَى الَّذِي كَانَتْ عَلَيْهِ قُلْتُ هَلْ بَعْدَ هٰذَا الْخَيْرِ شَرٌّ

د قومونو زړونه به پر هغه حال نه وي کوم چي مخکي وه، (يعني د خلکو زړونه به دومره نرم نه وي څومره چي د اسلام په پيل کي وه) ما عرض وکړ : ايا د نيکۍ څخه وروسته به بدي وي ؟

قَالَ فِتْنَةٌ عَمْيَاءُ صَمَّاءُ عَلَيْهَا دُعَاةٌ عَلٰى أَبْوَابِ النَّارِ فَإِنْ مُتَّ يَا حُذَيْفَةُ وَأَنْتَ

عَاضٌّ عَلَى جِذْلٍ خَيْرٌ لَكَ مِنْ أَنْ تَتَّبِعَ أَحَدًا مِنْهُمْ. رواه ابوداؤد.

رسول الله ﷺ وفرمايل: هو، هغه يوه ړنده او کڼه فتنه ده، دغه فتنې ته به بلونکي خلک وي ګويا هغوئ د دوږخ پر دروازه ولاړ دي او خلک رابولي، نو اې حذيفه! دغه وخت ته د درختي لاندې پناه جوړه کړه او هلته مړ سه، ته به ددې څخه غوره يې چې ته په هغه خلکو کي د يوې ډلي پيروي وکړې. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\ ۴۴۴، رقم: ۴۲۴۴.

**د لغاتو حل**: اقذاء: هي ما يقع في العين والماء والشراب. جذل شجرة: اى اصلها (د وني رېښې).

**تشريح**: قتاده رضي الله عنه وايي: رسول الله ﷺ چې د کومي فتنې د ژغورني ذريعه توره ګرځولې وه د هغه مصداق هغه خلک دي چې رسول الله ﷺ د وفات څخه وروسته د حضرت ابوبکر صديق عليه السلام د خلافت په زمانه کي د اسلام څخه ګرځېدلي وه او دخپل ارتداد او بغاوت په ذريعه د يوې لوي فتنې باعث جوړ سوي وه مګر حضرت ابوبکر صديق رضي الله عنه په ډېر تدبر او هوښياري سره د هغوئ خاتمه وکړه او د طاقت په ذريعه يې هغوئ لاندي کړل.

اقذاء د قذي جمع ده او قذاة چې د هغه معنی خيري، چټلي او مرداري ده چې په سترګه، اوبو يا شربت وغيره کي ولوېږي، رسول الله ﷺ وفرمايل چې هغه وخت به امارت او حکومت قائم سي او د مسلمانانو امير او خليفه به هم وي مګر خلک به اخلاص او ښه نيت سره دخپل هغه امارت او حکومت په اړه وفاداري نه لري بلکه دهغوئ په زړو کي به بغض او عداوت وي، لکه څرنګه چې د يو سړي په سترګه کي يو شی ولوېږي نو که څه هم د بباندي څخه ښهٔ معلومېږي مګر دننه په هغه کي درد وي، همدارنګه هغه خلک که څه هم په ظاهر کي د خپل امارت او حکومت وفادار معلومېږي مګر دهغوئ دننه بهٔ دغير وفادارۍ او مخالفت څخه ډک وي، قاضي ددغه جملې بله معنی بيان کړې ده او هغه دا چې هغه وخت به د مسلمانانو حکومت او امارت قائم وي مګر هغه امارت او حکومت به د ځينو بدعتيانو او مخالفانو په ذريعه خپل حيثيت خراب کړي.

هدنة دمصالحت په مفهوم کي دی او په اصل کي ددې معنی د سکون او ارام ده، دخن د دخان په مفهوم کي دی چې د هغه معنی د دود ده، ددغه جملې: (هدنة على دخن) مطلب هم هغه دی کوم چې مخکي بيان سو چې هغه وخت به په خپلو کي د مخاصمت او مخالفت لرونکو ډلو په منځ کي چې کوم مصالحت وي هغه به پر فريب او نفاق باندي وي په دې اعتبار سره دغه

جمله د مخکنۍ جملې مؤکد ده او شارحینو بیان کړی دی چې د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مصداق مصالحت او مفاهمت دی چې د امام حسن او امیر معاویه په منځ کې سوی وو او دهغه سره سم امام حسن د خلافت څخه په ایسته کېدو سره د ملک واک یې معاویه ته سپارلی وو او امیر معاویه خپل امارت او سیادت مستحکم کړی وو، ددې څخه معلومه سوه چې ځینو حضراتو په خاصه توګه مؤرخینو دا نتیجه اخذ کړې ده چې امیر معاویه د امام حسن رضي الله عنه سره صلح کولو څخه وروسته خلیفه سوی وو، په دې معنی کې صحیح نه ده چې امام حسن رضي الله عنه په حقیقت کې امیر معاویه د خلافت څخه زیات مستحق او اهل ګڼی ځکه هغه صلح کولو سره د هغه په حق کې د خلافت څخه استعفاء ورکړې وه بلکه حقیقت دا دی چې د هغه وخت سیاسي عناصر د امام حسن رضي الله عنه کوم ډول ماحول جوړ کړی وو او ددغه دواړو عظیمو شخصیتو د منځني جنجال په وجه چې دین او ملت ته کوم تاوان رسېدونکی وو امام حسن رضي الله عنه د هغه څخه د ساتني لپاره صلح وکړه او خپل خلافت او حکومت ته یې پر دین او ملت باندي ترجیح ورکړه،

ګمراهي ته بلونکي خلک به پیدا سي: مطلب دادی چې د مسلمانانو په امیرانو کې بهٔ د داسي خلک ډلي پیدا سي چې خلک به بدعت او ګناه ته مائل کوي او د بدۍ پر لار به یې روانوي، د یوې درختي په بېخ کې یې پناه اخیستې وه: ددغه جملې په ذریعه ددې تلقین کول مقصد دي چې داسي نازک حالت او داسي سخت ماحول کي تاته پکار دي چې د خلکو څخه بېلوالی اختیار کړې او خپل ځان د فتنې او فساد څخه د ساتني لپاره په یو داسي ځای کي خپل ژوند تېر کړې چې هلته ددغه فتنې اثرات نه وي تر دې که چیري تا ته ددغه نازک حالات او د فتنو څخه ډک ماحول څخه د لیري اوسېدو لپاره ځنګل ته د یو درختي په بېخ کي پناه اخیستل وي او هلته دومره سخت ژوند تېرول وي چې د وښو او لرګیو خوړلو نوبت راسي نو ددې څخه منع مه کوه، ځینو حضراتو ویلي دي چې په (والا فمت) تعلق د فاطعه سره دی چې په دغه صورت کي به مطلب دا وي چې د هغه امیر او پاچا له خوا ستا په حق کي هر څومره سخت حالات پیدا کړل سي ته د هغه د اطاعت او فرمانبرداری څخه مخ مه اړوه ځکه که چیري ته د هغه امیر او پاچا اطاعت نه کوې نو بیا به زیات سخت حالات کي به ستا مړ کېدل وي او په ځینو نسخو کي د فمت پر ځای قمت لفظ دی چې د قیام ماضي صیغه ده، په دغه صورت کي به مطلب دا وي که چیري داسي نه وي یعني ته د هغه امیر او پاچا د ظلم په وجه د هغه اطاعت او فرمانبرداري څخه معذوریې نو بیا ووځه او لیري یو ځای په ځنګل کي د درختي لاندي پناه واخله.

چې د هغه سره به د اوبو ویاله وي او د اور کنده وي: په دې اړه ځینو حضراتو ویلي دي چې

دغه دواړه شیان حقیقي نه دي بلکه محض خیالي به وي او دهغه تعلق به دجادو سره وي یعني په ظاهره خو به داسي معلومیږي چي د دجال سره به د اوبو ویاله او داور کنده وي مگر حقیقت به دهغه څخه پرته بل څه وي، نو په راتلونکي عبارت کي په (فمن وقع في ناره) کي د دجال طرف ته د اور نسبت هم دا خبره ثرگندوي چي دغه دواړه شیان جادو او طلمساتي وي، ځینو حضراتو ویلي دي چي د هغه سره د اوبو کومه ویاله وي هغه به د نتیجې او حقیقت په اعتبار اور وي او د اور کنده به په حقیقت کي اوبه وي، شیخ عبدالحق رحمة الله عليه د دغه جملې په تشریح کي لیکلي دي چي صحیح خبره داده چي دغه عبارت پر حقیقي معنی محمول وي یعني د هغه سره به په حقیقت کي د اوبو ویاله او د اور کنده وي مگر دا احتمال هم دی چي د دغه شیانو څخه مراد لطف او قهر دی یعني د اوبو د ویالې څخه مراد دادی چي د هغه سره به د خپلو اړوندو کسانو لپاره د راحت او شوق سامان وي او داور د کندي څخه مراد دادی چي هغه به د خپل مخالفینو لپاره بېرونکي سامان او د تکلیف ورکولو ذرائع وي، نو کوم څوک چي د هغه په اور کي ولویږي...الخ: مطلب دادی چي کوم څوک د دجال موافقت او تابعداري نه کوي نو هغه به په اور کي اچوي او ډول ډول تکلیفونه به ورکوي او کوم څوک چي دهغه په او رکي ولویږي نو هغه به پر دین باندي د ثابت قدمۍ او پر تکلیفو باندي دَصبر کولو په وجه ډېر اجر تر لاسه کړي او هغه چي مخکي گناهونه کړي وي هغه به پرېولل سي،

همدارنگه کوم څوک چي د دجال موافقت او پیروي اختیار کړي هغه به په اوبو کي واچوي یعني هغه ته به ډول ډول راحتونه او نعمتونه ورکړي نو کوم څوک چي دهغه اوبو ته ولاړ سي نو هغه به د دنیا د راحت پر ځای د دنیوي میني په سبب پر هغه ایمان راوړي او دهغه پیروي کولو په وجه به په سخت عذاب کي سي او هغه چي مخکي کوم نېک کارونه کړي دي د هغه ټولو اجر به ضائع سي.

ثم ینتج المهر: د ینتج لفظ د انتج مجهول صیغه ده چي د انتاج څخه ده او د نتج معنی د حاملې خبر اخیستل دي تر څو چي هغه لنگه سي، او د انتاج معنی د ولادت وخت راتلل دي، علماء لیکلي دي چي دلته نتج په اصل کي د تولید په معنی کي استعمال سوی دی یعني خلک به د خپلو آسپو د بچیانو کېدو تدبیر اختیاروي او د بچي پیدا کېدو وخت به د آسپو څارنه او خدمت کوي لکه څرنگه دایي د یوې ښځي د لنگوالي پر وخت خدمت کوي، او د مهر معنی د بچي ده او که چیري دغه لفظ په ة سره یعني مهرة وي نو ددې معنی د بچي ده همدارنگه د یرکب معنی د سپرلۍ عمر ته رسیدل دي.

په هر حال دا چي فرمايل سوي دي چي خلک به د خپلو آسو څخه د بچي پيدا کېدو تدبير کوي چي هغه د سپرلۍ په کار کي راوستل سي مګر کله چي هغه آسپه بچي راوړي نو هغه بچي د سپرلۍ قابل سوي نه وي چي قيامت به راسي نو ددې څخه مراد د حضرت عيسى عليه السلام زمانې ته اشاره کول دي ځکه چي د حضرت عيسى عليه السلام د نزول د وخت څخه د قيامت تر ورځي پوري د آسونو د سپرلۍ موقع نه راځي او دا به په دې وجه وي چي په هغه زمانه کي به د کفارو وجود نه وي چي د هغوئ سره د جنګ کولو لپاره د اسانو د سپرلۍ ضرورت پېښ سي مګر دا مراد اخيستل او د ذکر سوي تاويل کول په هغه زمانه کي صحيح دي کله چي د آسونو سپرلۍ يوازي د جنګ تر ميدان پوري محدود وي او د آس اصل مصرف د کفارو په مقابله کي د جنګ لپاره وي، ظاهره ده چي په اوسنۍ حالت کي دا خبره زياته وزن داره نه معلوميږي ، يا د دغه جملې په ذريعه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د دجال ظاهرېدو څخه وروسته تر قيامت راتلو پوري به دومره وخت پاته سي لکه څومره وخت چي د يو بچي د پيدا کېدو څخه د هغه د سپرلۍ وړ کېدو پوري وي ، دغه وضاحت نه يوازي دا چي زيات صاف او قياس ته نژدې دی بلکه د هغه احاديثو د مفهوم مطابق هم دی کوم چي په دې اړه منقول دي .

## د خلافت راشده وروسته د راتلونکو واقعاتو پيشګويي

﴿۵۱۶۴﴾: وَعَنْ أَبِي ذَرٍّ قَالَ كُنْتُ رَدِيفًا خَلْفَ رَسُوْلِ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت ابوذر رضي الله عنه څخه روايت دی چي يوه ورځ زه د رسول الله صلى الله عليه وسلم سره پر خره سپور وم ،

يَوْمًا عَلَى حِمَارٍ فَلَمَّا جَاوَزْنَا بُيُوْتَ الْمَدِيْنَةِ قَالَ كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍ إِذَا كَانَ

کله چي موږ د مدينې د کورونو څخه مخکي ووتلو (يعني د مدينې څخه دباندي ولاړو) نو رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: اې ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي هر کله چي

بِالْمَدِيْنَةِ جُوْعٌ تَقُوْمُ عَنْ فِرَاشِكَ وَلاَ تَبْلُغُ مَسْجِدَكَ حَتّٰى يُجْهِدَكَ الْجُوْعُ

پر مدينه قحط (وچ کالي) راسي ته به د بستري څخه نه سي پورته کيدلای او خپل مسجد ته به (دضعف له کبله) په مشکل سره رسيږې ،

قَالَ قُلْتُ اَللهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ تَعَفَّفْ يَا أَبَا ذَرٍ قَالَ كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍ إِذَا

ما عرض وکړ : الله تعالى او د هغه رسول ښه پوهيږي ، رسول الله صلى الله عليه وسلم وفرمايل: هغه وخت

پرهیزګاري اختیار کړه (یعني پر لوږه صبر کوه او حرام او مشتبه مال څخه ځان وساته)، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي کله چي

كَانَ بِالْمَدِيْنَةِ مَوْتٌ يَبْلُغُ الْبَيْتُ الْعَبْدَ حَتّٰى اَنَّهُ يُبَاعُ الْقَبْرُ بِالْعَبْدِ قَالَ قُلْتُ

په مدینه کي د مرګ بازار ګرم وي او د سرای قیمت به د غلام د قیمت سره برابر وي، تر دې چي د قبر ځای به د غلام په قیمت خرڅیږي ما عرض وکړ

اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ تَصَبَّرْ يَا أَبَا ذَرٍ قَالَ كَيْفَ بِكَ يَا أَبَا ذَرٍ إِذَا كَانَ

الله ﷻ او د هغه رسول ﷺ ښه پوهیږي، رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابوذر! هغه وخت صبر کوه (یعني پر هغه مصیبت صبر کوه تیښته مه کوه)، بیا رسول الله ﷺ وفرمایل: اې ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي چي

بِالْمَدِيْنَةِ قَتْلٌ تَغْمُرُ الدِّمَاءُ أَحْجَارَ الزَّيْتِ قَالَ قُلْتُ اَللّٰهُ وَرَسُوْلُهُ أَعْلَمُ قَالَ

په مدینه کي د قتل بازار ګرم وي چي د هغه وینه به مقام احجاز الزیت پټ کړي، ما عرض وکړ الله ﷻ او د هغه رسول ښه پوهیږي، رسول الله ﷺ وفرمایل

تَأْتِيْ مَنْ أَنْتَ مِنْهُ قَالَ قُلْتُ وَأَلْبَسُ السِّلَاحَ قَالَ شَارَكْتَ الْقَوْمَ إِذًا قُلْتُ

نو خپل هغه امام ته ورسه چي د هغه ته تابع یې، ما عرض وکړ هغه وخت زه پر خپل بدن وسله وتړم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: (که ته داسي کوې) نو ته به د هغه قوم په ګناه کي شریک سې،

فَكَيْفَ اَصْنَعُ يَا رَسُوْلَ اللّٰهِ قَالَ إِنْ خَشِيْتَ أَنْ يَبْهَرَكَ شُعَاعُ السَّيْفِ فَأَلْقِ نَاحِيَةَ ثَوْبَكَ عَلٰى وَجْهِكَ يَبُوْءُ بِإِثْمِكَ وَإِثْمِهِ. رواه ابوداؤد.

بیا ما عرض وکړ اې د الله رسوله! بیا زه څه وکړم؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: که ته د توري د بریښنېدو څخه بیریږي نو پر خپل مخ د خپل جامې یوه برخه واچوه چي قاتل ستا ګناه او خپله ګناه د ځان سره یوسي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۸، رقم: ۴۲۶۱.

**د لغاتو حل**: احجار الزیت: اسم موضع بالمدینة (په مدینه منوره کي د یو ځای نوم).

**تشریح**: تصبر د تفعل د باب څخه دامر صیغه ده او په یوه نسخه کې دغه لفظ د مضارع په صیغه سره منقول دی چې د امر په معنی کې دی، ددغه جملې خلاصه داده چې ستاسو پر هغه آفتو باندې صبر کول او د فریاد او ژړا څخه پرهیز کول پر تقدیر الهي باندې راضي کېدل دي، او د مدینې څخه د تښتېدو هڅه نه کول دي، احجار الزیت د مدینې په شاوخوا کې د یو ځای نوم وو د هغه ځای مځکه ډېره ډبرینه وه او هغه ډبرې هم دومره توري او ځلانده وې لکه د زیتون تیل چې په یو چا پوري ومومړل سي، په دې مناسبت سره هغه ځای ته احجار الزیت ویل کېږي، رسول الله ﷺ ددغه ارشاد : اې ابوذر! هغه وخت به ستا څه حال وي کله چې په مدینه کې قتل عام وي...الخ، ددغه ارشاد په ذریعه د وړاند وینې هغه واقعې ته اشاره وکړه چې د مسلمانانو د قتل عام په صورت کې به په مدینه منوره کې پېښه سوه.

دغه واقعه د حرة په نامه مشهوره سوه، په مستندو کتابو کې چې ددغه واقعې په تفصیل سره ذکر دی هغه دومره دردناک او خطرناک دي چې نه دهغه د بیانولو ژبه او قلم واک لري او نه څوک په اساني سره د هغه د ویلو او اورېدو توان راوړلای سي، بیا هم په اجمالي توګه دومره ویل ضروري دي چې کله د بدبخت یزید ابن معاویه فوج د کربلا په میدان کې حضرت امام حسین رضی الله عنه په ډېره بې دردي سره شهید کړ نو په ټوله اسلامي نړۍ کې غوغاء خپره سوه او د یزید پر خلاف په عامو مسلمانانو کې د ډېر نفرت جذبات پیدا سول . نو د مدینې اوسیدونکو په اتفاق سره د هغه د خلافت او حکومت څخه د بېزارۍ اظهار وکړ او د هغه خلاف یې د جهاد اعلان وکړ، کله چې یزید ته دا معلومه سوه نو هغه د مسلم ابن عقبه په مشرتابه کې یو ډېر لوی لښکر د مدینې لپاره واستوی، مسلم مدینې ته په را رسېدو سره د لویدیځ حرة (یعني حرة الوهرة) له خوا پر ښار حمله وکړه، که څه هم د مدینې خلکو په ډېره زړه ورتیا سره د یزید د فوج مقابله وکړه مګر اول خو د تربیت یافته فوج او نورو وسائلو د کمۍ په وجه او دوهم د مسلم ابن عقبه په ډول هوښیار او تجربه کار مشر مقابله یې ونه کړلای سوه او په دې وجه یې ماته وخوړل، بیا مسلم ابن عقبه او د هغه فوج په ښار کې په داخلېدو سره د قتل عام بازار ګرم کړ او د قتل عام دغه لړۍ تر څو ورځو پوري جاري وه په زرهاوو مسلمانان یې په ډېره بې دردۍ سره قتل کړل چې په هغو کې د صحابهٔ کرامو او تابعینو ډېر لوی مقدار هم وو، د مقدس ښآر او مسجد نبوي حرمت یې تر پښو لاندي کړ، او نور د بیان نه وړ کارنامې یې وکړې، یوازي دمدینې پر بربادۍ یې اکتفاء ونه کړل بلکه دهغه څخه وروسته د یزید هغه فوج مکې ته روان سو چې دهغه ځای خلکو دمځکې څخه حضرت عبد الله ابن زبیر رضی الله عنه خپل خلیفه ټاکلی وو،

يزيدي لښکر په مکه مکرمه کي هم ډېره تباهي وکړه او تر کعبې شريفي پوري يې ډېر تاوان ورسوی او په هغه کال يزيد مړ سو .

خپل هغه امام ته ورسه چي د هغه ته تابع يې،: ددې معنی داده چي هغه وخت کوم خلک ستا د دين او مذهب همنوا او ستا دخيالاتو او اعمالو موافق وي هغوئ ته ورسه ، او قاضي رحمة الله عليه ددغه جملې دا مراد بيان کړی دی چي تاسو خپلي کورنۍ او قريبانو ته ورسئ او دا چي په خپل کور کي کښېنيه، طيبي رحمة الله عليه ويلي دي چي ددې مطلب دادی چي هغه وخت ته خپل امام او امير ته رجوع وکړه د چا چي ته پيروي کوې ، دا مطلب زيات صحيح او د حضرت ابوذر رضي الله عنه ددغه جملې (ايا زه وسله وتړم) سره زيات مناسب دی .

نو ته به د هغه قوم په ګناه کي شريک سې: ددې مطلب د طيبي رحمة الله عليه د منقولاتو په رڼا کي دادی چي په داسي وخت کي کله چي فتنه او فساد خپور سي او د قتل بازار ګرم سي نو مسلح او وسله پورته کول په هغه جګړه کي ګډون کول او په فتنه کي شامليدل دي نو ته مه اسلحه پورته کوه او مه د چا خلاف په جنګ کي ګډون کوه بلکه دخپل امام او مقتداء خلکو سره اوسه تر دې چي ته د صلح په لار کي کامياب سې مګر پر دغه وضاحت باندي دا سوال کيږي چي يوې خوا ته حضرت ابوذر رضي الله عنه ته دا حکم ورکړل سو چي هغه خپل امير او امام سره اوسي چي يقينا هغه وخت هغه قتل او جګړه کي د يو ډلي حيثيت لري ،بلي خوا ته دا حکم ورکړل سو چي هغه د قتل او جګړې څخه ليري اوسي نو د دواړو خبرو يو ځای کول څرنګه ممکن دي؟ ددې جواب ابن ملک رحمة الله عليه داسي ورکړی دی چي د شريعت حکم خو دادی که چيري يو سړی ناحقه او د ظلم له موخي داسي کول غواړي نو هغه وخت دفاع کول او د هغه فساد د طاقت په ذريعه د ختمولو هڅه کول واجب دي مګر کله چي رسول الله صلى الله عليه وسلم دا وفرمايل چي هغه وخت وسله پورته کول د فتنې د ډلي سره ګډون کول دي نو ددې اصل مقصد د فتنې خرابۍ واضح کول او د هغه د تباهۍ اثراتو خلاف خبرداری ورکول دي ، بيا هم په دې اړه صحيح خبره داده که چيري د ويني تويولو لپاره راتلونکی دښمن مسلمان وي نود طاقت په ذريعه د هغه دفاع کول او دهغه سره جګړه کول جائز دي په شرط ددې چي د هغه سره د مقابلې په صورت کي د فتنې او فساد خوف نه وي او که چيري هغه دښمن غير مسلم وي نو بيا په هره ممکن ذريعې سره د هغه مقابله کول او د هغه سره په هر صورت جګړه کول واجب دي .

نو پر خپل مخ د خپلي جامې يوه برخه واچوه: ددې مطلب دادی که چيري جګړه کونکي خلک پر تا حمله وکړي نو ته دهغوئ سره جګړه مه کوه بلکه دهغوئ د حملې پر وخت ځان غافل

او غير متعلق جوړ کړه چي تا ته د هغه حملې څخه بېره محسوس نه وي ، په دې سره دې ته اشاره ده چي ته د هغه خلکو سره په هيڅ حالت کي جنګ مه کوه او دهغوئ خلاف توره مه پورته کوه کله چي هغوئ ستا سره جنګ کول غواړي او ستا وژل غواړي بلکه ستا لپاره د کاميابۍ لار داده چي هغه وخت مظلوم سه او خپل ځان دهغوئ د لاسه شهيد کېدو ته تيار کړه ځکه چي هغه خلک په هر حال مسلمانان دي او د مسلمان خلاف توره پورته کول جائز نه دي که هغوي تا قتل کړي نو دا به د هغوئ عمل وي او خداى ﷻ خپله د هغوئ سره بنه پوهيږي ، ځينو شارحينو ليکلي دي چي د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد اصل مقصد د مسلمانانو په خپلو کي د ويني تويولو خرابي او دهغه څخه د ځان ساتني فضيلت په زيات ارزښت سره بيانول دي که څه هم دخپل ځان څخه لاس پرېولل وي مګر د يو مسلمان پر خلاف وسله پورته کول نه دي پکار ، کنه ترڅو چي د مسئلې تعلق دی نو دا مخکي ښودل سوي دي چي د فتنې د ختمولو لپاره جنګ کول جائز دي که څه هم هغه مسلمان وي .

دا خبره څرګندول ضروري دي چي د حره پېښه په ۶۳ ھ کال کي پېښه سوه او د حضرت ابوذر ﷺ وفات د حضرت عثمان ﷺ د خلافت په آخري زمانه ۳۲ ھ کال کي سوی وو، نو پر رسول الله ﷺ باندي دا منکشف سوي وه چي دغه واقعه به په مدينه منوره کي راځي، دا نه وه منکشفه سوې چي دغه واقعه به کله پېښيږي نو رسول الله ﷺ ابوذر د هغه په اړه باخبر کړ او دا وصيت يې ورته وکړ که چيري دغه فتنه ستا په مخکي کي پېښه سي او ستا ژوند تر هغه وخت پوري پاته وي نو د صبر او ثبات لار اختيار کړه او په دغه فتنه کي هيڅکله ګډون مه کوه ، او کوم چي د لوږي د حالت او د زياتو مرګونو د واقعې تعلق دی نو کېدای سي چي مديني والا ددغه دواړو سره مخ سوي وي او د حضرت ابوذر ﷺ په ژوند کي دغه دواړي وړاند ويني هم پوره سوي وي لکه څرنګه چي په عام الرماد کي پېښېدونکي صورت حال څخه ددې تصديق هم کيږي او دا هم احتمال لري چي د قتل عام په ډول دغه دواړي خبري هم د حضرت ابوذر ﷺ د وفات څخه وروسته ظاهري سوي وي .

## د فتنو په ماحول کي د خلاصون لار

﴿۵۱۶۵﴾ : وَعَنْ عَبْدِ اللهِ بْنِ عَمْرِو بْنِ الْعَاصِ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د حضرت عبدالله بن عمرو بن عاص ﷺ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وفرمايل:

قَالَ كَيْفَ بِكَ إِذَا أُبْقِيتَ فِي حُثَالَةٍ مِّنَ النَّاسِ مَرِجَتْ عُهُودُهُمْ وَأَمَانَاتُهُمْ

(اې) عبدالله! ته به په هغه وخت کي څه کوې هر کله چي ته په بيکاره خلکو کي پرېښودل سې (يعني هر کله چي ته په خرابو خلکو کي ژوند کوې) د هغوئ عهد او امانتونه به مخلوط او غير

وَاخْتَلَفُوا فَكَانُوا هٰكَذَا وَشَبَّكَ بَيْنَ أَصَابِعِهِ قَالَ فَبِمَ تَأْمُرُنِي قَالَ عَلَيْكَ بِمَا

مخلوط وي او په خپل منځ کي به اختلاف ساتي، ددې په ويلو سره رسول الله ﷺ د خپلو دواړو مبارکو لاسونو گوتي په يو بل کي داخلي کړې او وه يې فرمايل: چي هغوئ به داسي يو د بل سره مخالف سي، عبدالله عرض وکړ (که زه هغه زمانه ووينم) نو تاسو ما ته څه حکم راکوئ،

تَعْرِفُ وَدَعْ مَا تُنْكِرُ وَعَلَيْكَ بِخَاصَّةِ نَفْسِكَ وَإِيَّاكَ وَعَوَامَّهُمْ. وَفِي رِوَايَةٍ

رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه شی اختيار کړه چي ته هغه حق گڼې، او هغه شی پرېږده چي ته هغه بد گڼې او خپل ځان لازم ونيسه (يعني يوازي خپل ځان سنبال کړه) او د عوامو څخه ليري اوسه (يعني د عوامو معاملاتو کي دخل مه کوه) او په يوه روايت کي دا الفاظ دي چي

إِلْزَمْ بَيْتَكَ وَامْلِكْ عَلَيْكَ لِسَانَكَ وَخُذْ مَا تَعْرِفُ وَدَعْ مَا تُنْكِرُ وَعَلَيْكَ بِأَمْرِ خَاصَّةِ نَفْسِكَ وَدَعْ أَمْرَ الْعَامَّةِ. رواه الترمذي وصححه.

په خپل کور کي پروت اوسه، خپل ژبه په واک کي ساته، هغه شی اختيار کړه کوم چي ته ښه گڼې او د هغه عوامو په معاملاتو کي هيڅ تعلق مه ساته. ترمذي.

**تخريج**: لم نجده عند الترمذي وهو في سنن ابي داود ۵۱۳/۱۴، رقم: ۴۳۴۳، بلفظ قريب.

**د لغاتو حل**: مرجت: ای فسدت.

**تشريح**: د حثالة معنی د وريجو، اوربشو او نورو شيانو د پوستکو ده چي هغه ته سبوس وايي، همدارنگه د يو شي بېکاره او بې گټې برخي ته هم خثاله وايي، نو د حثالة من الناس څخه مراد هغه خلک دي چي د انساني او اخلاقي قدرونو په اعتبار د ادنی درجې وي چي د انسانيت جوهر نه لرلو په سبب ډېر کښته وي او د دين او آخرت په اعتبار بالکل بې کاره او بې گټې وي.

چي د هغوئ عهد او امانتونه به گډ وډ وي: مطلب دادی چي هغه به بالکل بې اعتباره خلک وي د هغوئ د هيڅ عمل او هيڅ قول باور به نه وي د هغوئ په هيڅ معامله کي به د

استقلال نوم نه وي د هغوئ عهد او قول به وخت پر وخت په مختلف شکل او صورت کي بدليږي، د دين او ديانت د تقاضو څخه به بې پرواه وي او په امانت کي به خيانت کوي .

خپلي ګوتي مبارکي په يو بل کي داخلي کړې: يعني رسول الله ﷺ د دې پوهولو لپاره چي هغوئ به په خپلو کي څرنګه د يو بل په هلاکت پسي لګېدلي وي او د هغوئ د اختلاف او جګړو به څه صورت وي، رسول الله ﷺ د خپل دواړو لاسو ګوتي مبارکي په يو بل کي په ورکولو سره وموښلولې او د مثال په توګه يې څرګنده کړه چي څرنګه د دغه دواړو لاسو ګوتي د يو بل سره موښتي دي همدارنګه د هغوئ اخلاص او حيثيت به تر دغه درجې پوري موښتي وي او د هغوئ ديني معاملات او اعمال به دومره ګډ وډ وي چي امين او خائن ، نيک او بد به معلومول ممکن نه وي .

څرګنده دي وي چي د دواړو لاسونو ګوتي په يو بل کي د ننه کول لکه څرنګه چي د يو بل اختلاف او جګړې په توګه ممثل بيانولو لپاره وي همدارنګه کله د دوو شيانو د ربط او اتصال ظاهرولو لپاره هم د دواړو لاسونو ګوتي په يو بل کي داخلولو سره ښودل کيږي لکه څرنګه چي د مال غنيمت په بيان کي هغه حديث تېر سوی دی چي په هغه کي رسول الله ﷺ د مال غنيمت د خمس د تقسيم اړوند بنوهاشم او د بنوعبدالمطلب ربط او اتصال او د هغوئ يو بل سره قربت ظاهرولو لپاره د تمثيل په توګه د خپل دواړو لاسو ګوتي په يو بل کي داخلولو سره وښودلې ، پر دواړو صورتو باندي د دغه تمثيلي عمل اطلاق په معنوي توګه سره څه تضاد نه لري ځکه چي د تشبيک اصل معنی داده يعني يود بل مختلط کېدل ، د دوو شيانو يو په بل کي داخلېدل په دواړو صورتو کي موجوديږي ،

ځان د عامو خلکو څخه ليري ساته: مطلب دادی چي د فتنو څخه په ډک دور کي تر ټولو زيات ضرورت د خپل ځان د اصلاح او د خپل دين د ساتني دی نو هغه وخت تاسو هم د خپل دين او خپل اخروي خير د کارونو په تکميل او ساتنه کي بوخت اوسئ او د نورو خلکو له خوا په څه خيال او فکر کي مه لويږئ ، دغه حکم په داسي ماحول کي د امر بالمعروف او نهي عن المنکر پر فريضه باندي د عمل نه کولو د اجازې په توګه دی کله چي د بدو او شريرو خلکو زياتوب او د هغوئ غلبه وي او صالح او نيک خلک ډېر کمزوري وي .

خپله ژبه په واک کي لره: مطلب دادی چي کله په ټول ماحول کي د بديو دور وي او د شرير او بدکاره خلکو اثرات غالب وي نو د ژبي څخه ښه خبره ايستل هم جرم جوړيږي نو تاسو هغه وخت د خلکو داحوالو او معاملاتو په اړه بالکل سکوت اختيار کړئ د يو چا د بدی يا نيکی په

اړه ژبه مه خلاصوئ چي ستا په خبره سره بدمنونکي خلک تکلیف در نه کړي ، دلته یوه خاص خبره باید په ذهن کي وي چي د فتنو څخه ډک دور کي یو حدیث خو دادی او یو حدیث مخکي تېر سوی دی چي حضرت حذیفه ﷺ نقل کړی دی په دغه دواړو حدیثو کي یو ډول تضاد معلومیږي او هغه دا چي په دغه حدیث کي خو رسول الله ﷺ حضرت عبدالله ابن عمرو ﷺ ته دا اجازه ورکړې ده چي هغه په دغه فتنو کي هم دخلکو په منځ کي د هستوګني څخه پرهیز نه کوي او د نړېوالو څخه مکمل بېلوالي نه اختیاروي او هغه ته یې دا حکم هم ورکړ چي هغه یوازي دخپل نفس تزکیه او اصلاح او د خپل دیني ژوند غوره کولو کي بوخت سي ، د عوام الناس د معاملاتو سره دي څه کار نه لري او دهغوئ د حالاتو او اعمالو په اړه دي هیڅ فکر نه کوي، ددې پر خلاف رسول الله ﷺ حضرت حذیفه ﷺ ته دا حکم ورکړ چي هغه دي په داسي ماحول کي تعلق نه ساتي او د خلکو څخه د بېلوالي په اختیارولو سره دي یو ځنګل ته ولاړ سي .

ددغه دواړو حدیثو دا ظاهري تضاد لیري کولو لپاره علماء لیکلي دي چي د یوه صورت لپاره دوه ډوله حکم په اصل کي د شخصي حالت د رعایت او مصلحت په اعتبار دی، رسول الله ﷺ په هغه دواړو کي هر یوه ته هغه حکم ورکړ چي د هغه د حالت او حیثیت مطابق وو چي په هغه کي د هغه اصلاح پټه وه.او په هغه عمل کولو سره هغه د خلاصون لار ترلاسه کولای سي لکه څرنګه چي د پیر او مرشد او مصلح د اصلاح طرز وي چي هغه د خپل مرید د ذهن او مزاج مطابق هغه ته تلقین او هدایت کوي .

حضرت عبدالله ابن عمرو ﷺ چي د ډېري لوړي درجي صحابي دی ، دده پر ژوند باندي په نظر اچولو سره اندازه کیږي چي هغه د څومره عظمت او فضیلت خاوند وو، نقل سوي دي چي هغه د زلمیتوب په ورځو کي هم دومره عابد او زاهد وو چي د روژې ماتولو څخه پرته به یې پرله پسې روژې نېولې ، د شپې به یې خوب نه کوی بلکه په عبادت الهي کي به بوخت وو ، د دنیاوي لذتو او خواهشاتو څخه دومره متنفر وو چي ښځي ته یې هم هیڅ میلان نه درلودی، یوه ورځ د هغه پلار محترم حضرت عمرو بن عاص ﷺ هغه رسول الله ﷺ ته راوست او د هغه د عبادت او ریاضت حال یې ورته بیان کړ، رسول الله ﷺ د دومره سخت ریاضت او دومره زیات عبادت څخه منع کړ او حکم یې وکړ چي بېله روژې ماتولو تر درو ورځو زیاته روژه مه نیسه او د شپې دریمه یا شپږمه برخه کښېنه، او همدارنګه رسول الله ﷺ دا نصیحت هم ورته وکړ چي د خپل پلار د مرضی او منشاء همېشه خیال ساته ، د رسول الله ﷺ ددغه وصیت او نصیحت په وجه هغه د تفرقې او انتشار په سختو فتنو کي هم د خپل پلار څخه بېلوالی اختیار نه کړ چي د حضرت امیر

معاویه ، مشیر اعلی او وزیر وو، او څرنګه چي رسول الله ﷺ هغه ته حکم کړی وو چي هغه د خلکو د معاملاتو او حالاتو څخه په بې پروا کېدو د خپل ذات اصلاح او استقامت ته متوجه سي ، کله چي د هغه پلار حضرت عمرو به هغه ته وویل چي ته زموږ سره د کېدو سربېره زموږ څخه بېل ولې اوسې، او زموږ په کارو کي ولي ګډون نه کوې ، نو هغه بهٔ جواب ورکوی چي ستاسو په ښه کارو کي زه شریک یم مګر په هغه کارو کي ګډون کولای نسم چي زما په نزد د الله ﷻ او د هغه د رسول د مرضی او د ملي مفاد خلاف وي، مګر دا سي هیڅکله ونه سو چي د لوی فتنې په وخت کي د هغه د زړه څخه د اهل بیت عزت او احترام په یو ډول کم سوی وي د هغه باطن د اهل بیت په محبت او عظمت سره منور وو .

## د قیامت څخه مخکي د ظاهرېدونکو فتنو پیشګویي

﴿۵۱۶۶﴾: وَعَنْ أَبِي مُوسَى الْأَشْعَرِيِّ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ أَنَّهُ قَالَ إِنَّ

د حضرت ابوموسی اشعري رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل :

بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ فِتَنًا كَقِطَعِ اللَّيْلِ الْمُظْلِمِ يُصْبِحُ الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي

د قیامت دراتلو څخه مخکي به فتنې رامنځته سي چي د توري شپې د ټکړو په ډول به وي (یعني په هر ساعت کي به فتنه پیدا کیږي) هغه وخت به سړی په سهار کي ایماندار پورته کیږي

كَافِرًا وَيُمْسِي مُؤْمِنًا وَيُصْبِحُ كَافِرًا الْقَاعِدُ فِيهَا خَيْرٌ مِنَ الْقَائِمِ وَالْمَاشِي فِيهَا

او په ماښام کي به کافر سي او په ماښام کي به مؤمن وي او په سهار کي به کافر وي ، (په دغه فتنو کي ) ناست سړی به تر ولاړ سړي غوره وي او تلونکی به

خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي فَكَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ وَاضْرِبُوا

تر ځغلیدونکي غوره وي ، هغه وخت ته خپل لیندۍ ماتي کړه او د لیندیو کځونه خیري کړه ،

سُيُوفَكُمْ بِالْحِجَارَةِ فَإِنْ دُخِلَ يَعْنِي عَلَى أَحَدٍ مِنْكُمْ فَلْيَكُنْ كَخَيْرِ ابْنَيْ آدَمَ.

توري په ډبرو ووهه بیا که څوک ستاسو څخه د چا وهلو ته ورسي نو هغه ته پکار ده چي هغه د آدم علیه السلام د دوو زامنو څخه د غوره زوی په ډول سي (یعني د هابیل په ډول...) .

رواه ابوداؤد وفي رواية له ذكر الى قوله خَيْرٌ مِنَ السَّاعِي ثُمَّ قَالُوا فَمَا تَأْمُرُنَا قَالَ

ابوداؤد، او د ابوداؤد په يو بل روايت كي دي د (كرار تلونكي به تر ځغليدونكو غوره وي) څخه وروسته دا الفاظ دي چي بيا صحابه كرامو پوښتنه وكړه چي تاسو موږ ته څه حكم كوئ؟

كُونُوا أَحْلَاسَ بُيُوتِكُمْ . وفي رواية الترمذي ان رسول الله صلى الله عليه وسلم

رسول الله ﷺ وفرمايل: تاسو په خپلو كورونو كي پراته اوسئ، او د ترمذي په يوه روايت كي داسي راغلي دي چي رسول الله ﷺ

قَالَ فِي الْفِتْنَةِ كَسِّرُوا فِيهَا قِسِيَّكُمْ وَقَطِّعُوا فِيهَا أَوْتَارَكُمْ وَالْزَمُوا فِيهَا أَجْوَافَ بُيُوتِكُمْ وَكُونُوا كَابْنِ آدَمَ . وقال هذا حديث صحيح غريب .

د فتني په اړه داسي وفرمايل: چي تاسو په هغه فتنو كي خپل ليندۍ ماتي كړئ او د هغه كځوني ځيري كړئ او په كورونو كي پراته اوسئ او د آدم عليه السلام د زوی (هابيل) په ډول سئ لكه زوی د آدم عليه السلام يعني د حضرت هابيل عليه السلام په ډول چي خپل ورور ته يې وويل چي كه ته ما وژني زه به دي ونه وژنم..

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۷، رقم: ۴۲۵۹، والترمذي ۴\۴۲۵، رقم: ۲۲۰۴.

**د لغاتو حل**: قسيكم: جمع قوس. احلاس البيوت: ما يبسط تحت حر الثياب والمعنى الزموا بيوتكم والتزموا سكوتم كيلا تقعوا في الفتنة التي بها دينكمن يفوتكم.

**تشريح**: چي د توري شپې د ټكړو په ډول به وي: مطلب دادی چي د مسلمانانو خپل منځي قتل او قتال په صورت كي هغه فتنې به دومره هيبت ناكه او سختي وي چي د دين او ملت مستقبل به زيات تاريک معلوميږي او هغه وخت به د نېک او بد په منځ كي امتياز كول داسي ناممكن سي لكه څرنګه چي په تاريكه شپه كي د يو چا شناخت كول ممكن نه وي.

هغه وخت به سړی په سهار كي ايماندار پورته كيږي: مطلب دادی چي د خلكو په عقېدو، اقوالو او احوالو كي به ساعت په ساعت بدلون كيږي، د ډول ډول نظريې او عقيدې حامل به وي، كله به د يو چا يو حال وي او كله به يې بل حال وي، كله به پر ديانت باندي چليږي او كله به خيانت كوي، كله به پر سنت عمل كونكی وي او كله به د بدعت پر لار روان وي، په يو وخت كي به د ايمان او يقين په دولت برخمن وي او بل وخت به د كفر په تيارو كي لوېدلی وي، غرض دا چي په هر ساعت او هره لحظه كي به بدلون پيدا كېدل معلوميږي او ددې امر يقين كول به مشكل وي چي د يو سړي اصل كيفيت او حالت څه دی.

ناست به تر ولاړ غوره وي، ددغه جملې اصل مقصد دا څرګندول دي چې کوم څوک ددغه فتنو څخه څومره ليري وي دهغه لپاره به غوره وي ، ددغه جملې تفصيلي وضاحت په اول فصل کې تېر سوی دی .

د لينديو کڅوړه ځيري کړه: دغه حکم د اول حکم يعني خپل ليندۍ ماته کړه، مؤکد دی او مقصد په زيات ارزښت سره د بيانولو لپاره دی ، او ټينګار کوي او وايي چې د لېنديو ماتولو څخه وروسته که چيري دهغه کڅوړه پاته وي نو هغه ځيري کړه ، دغه حکم د اول حکم د بيان او تاکيد لپاره دی .

چې هغه د آدم عليه السلام د دوو زامنو څخه د غوره زوی په ډول سي: مطلب دا چې څرنګه د آدم عليه السلام يو زوی هابيل د مظلوميت مرګ خوښ کړ مګر هغه د آدم عليه السلام د دوهم زوی يعني د خپل ورور قابيل د حملې جواب ورنه کړ او ټول ظلم يې پر ځان تېر کړ ، همدارنګه د فتنو په وخت کې که يو سړی پر تا حمله وکړي او ستا وژل غواړي نو ته د هغه هيڅ مقابله مه کوه او د هغه دلاسه مړ کېدل په صبر او ضبط سره ومنه، ځکه که چيري ته د هغه مقابله کوې نو د هغه په وجه به په فتنه کې نور زيات شدت پيدا سي او قتلونه به زيات سي نو هغه وخت د خپل حمله کونکی د مقابلې کولو څخه پرته شهيد کېدل او مقابله نه کول ډېر غوره دي .

تاسو په خپلو کورونو کې پراته اوسئ: مطلب دادی چې څرنګه د يو ښه فرش لکه غالۍ وغيره لاندې يو ټاټ هوار وي نو هغه همېشه او هر وخت پر خپل حال پروت وي ، همدارنګه تاسو هم په خپلو کورو کې پراته اوسئ او د سرای څخه په راوتلو آخوا دېڅوا مه ځئ ددې لپاره چې تاسو په دغه فتنه کې اخته نه سئ او د هغه اثرات ستاسو دين تباه نه کړي، خلاصه دا چې د فتنې څخه ليري اوسېدل د خلکو د معاملاتو او کارو څخه بې تعلقي اختيارول او بېلوالي کې د خپل دين ساتنه کول به هغه وخت د خلاصون غوره لار وي کله چې د مسلمانانو په منځ کې د قتل او قتال او انتشار فتنه خپره سي

## د فتنو په وخت کې به تر ټولو غوره کس څوک وي؟

﴿۵۱۶۷﴾: وَعَنْ أُمِّ مَالِكٍ الْبَهْزِيَّةِ قَالَتْ ذَكَرَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ

د بي بي ام مالک بهزيه (رض) څخه روايت دی چې رسول الله ﷺ د فتنو ډېر ژر راتلو يادونه

فِتْنَةً فَقَرَّبَهَا قُلْتُ يَا رَسُولَ اللَّهِ مَنْ خَيْرُ النَّاسِ فِيهَا قَالَ رَجُلٌ فِي مَاشِيَتِهِ

وفرمایل، ما عرض وکړ اې دالله رسوله! هغه وخت به په خلکو کي غوره سړی څوک وي؟ رسول الله ﷺ وفرمایل: هغه سړی چي په خپلو حیوانانو کي اوسي

يُؤَدِّي حَقَّهَا وَيَعْبُدُ رَبَّهُ وَرَجُلٌ آخِذٌ بِرَأْسِ فَرَسِهِ يُخِيفُ الْعَدُوَّ وَيُخَوِّفُوْنَهُ.

رواه الترمذي.

د هغه حق او زکوة وغیره ادا کوي او د خپل پروردګار عبادت کوي هغه سړی چي پر خپل آس باندي سپور سي هغه د اسلام دښمنان بیروي او دښمن هغه بیروي (یعني د فتنې پرېښودو سره هغه د اسلام د دښمنانو سره جنګیږي) . ترمذي.

**تخریج**: سنن الترمذي ۴\۴۱۰، رقم: ۲۱۷۷.

**تشریح**: بهزیه د باء په زور او دهاء په جزم سره، بني امراء القیس ته منسوب ده، بي بي ام مالک یوه صحابیه وه چي حجازیه هم ورته ویل کیږي او هغه یې نژدې پرېښودل: مطلب دادی چي رسول الله ﷺ د هغې د فتني ذکر وفرمایه او ددې خبري څخه یې باخبر کړه چي هغه فتنه بالکل نژدې ده او راتلونکي ده، طیبي رحمة الله علیه ددې مطلب دا بیان کړی دی چي رسول الله ﷺ هغه فتنه په ډېر تفصیل او وضاحت سره بیان کړه او دا یوعام طرز دی چي کله یو سړی د چا په مخکي یو شی په تفصیل سره بیانوي او د هغه خصوصیات او علامات په زیات ارزښت سره څرګندوي نو هغه د مخاطب ذهن مشاهدې ته نژدې کوي نو هغه مخاطب یوازي په خپل ذهن او خیال کي ځای ورکوي بلکه هغه په خارج کي هم داسي محسوس کوي لکه هغه شی چي په خپل شکل او صورت سره د هغه بالکل نژدې موجود وي.

هغه سړی چي په خپلو حیوانانو کي اوسي: مطلب دادی چي د هغه فتنو په زمانه کي کله چي د مسلمانانو په منځ کي د قتل او قتال بازار ګرم سي نو کامیاب سړی به هغه وي چي د فتنو څخه په بې تعلقه کېدو سره په خپل جائز کاروبار کي بوخت سي او خپل معاملاتو ته متوجه وي پر دې به دهغه د کاروبار او معاملاتو په اړه چي د شریعت کوم حقوق عائد کیږئ د هغه په ادا کولو کي دي کوتاهي نه کوي او خپل پروردګار ته دي متوجه وي او دهغه په عبادت کي دي بوخت اوسي، دغه ارشاد د قرآن کریم ددغه آیت (ففروا الی الله وتبتل الیه تبتیلا، والیه یرجع الامر کله فاعبده، وتوکل علیه وما ربک بغافل عما تعملون) په رڼا کي وړاند وینه سوې ده.

هغه سړی چي پر خپل آس باندي سپور سي: مطلب دادی چي هغه سړی په هغه فتنه او

فساد كي د لوېدلو پر ځای خپل طاقت د هغه خلكو پر خلاف استعمالولو ته متوجه وي كوم چي د دين اسلام اصل دښمن او مخالف دي او د هغوئ سره په جنګ كولو كي ولګيږي دا شی نه يوازي دا چي د دين او ملت اصل خدمت كېدو په وجه د اجر او ثواب مستحق ګرځي بلكه د هغه فتنو څخه د ساتني ذريعه هم ثابتيږي .

## د فتني ذكر

﴿۵۱۶۸﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سَتَكُونُ فِتْنَةٌ تَسْتَنْظِفُ الْعَرَبُ قَتْلَاهَا فِي النَّارِ اللِّسَانُ فِيهَا أَشَدُّ مِنَ السَّيْفِ . رواه الترمذي وابن ماجه

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنهما څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نژدې ده چي فتنه ټول عرب راګير كړي ددې مقتول به دوږخ ته ځي ، په دغه فتنه كي به د زبان درازی فتنه (يعني خلكو ته بد او رد ويل او عيب ګيري كول) د توري چلولو څخه هم سخت وي . ترمذي او ابن ماجه

**تخريج**: سنن الترمذي ۴\ ۴۱۱، رقم: ۲۱۷۸، وابن ماجه ۲\ ۱۳۱۲، رقم: ۳۹۶۷.

**د لغاتو حل**: تستنظف: ای تستوعبهم.

**تشريح**: د هغه فتنې څخه مراد خپل منځنی قتل او قتال دی او هغه فتنه ده چي مختلفي ډلي به د حق او رهښتنا ثابتولو ، د دين د بيرغ لوړولو او دحق او انصاف لپاره نه بلكه محض د اقتدار او عزت تر لاسه كولو لپاره د يو بل پر خلاف جګړه كوي او په خپلو كي به د قتل او قتال بازار ګرموي ، لكه څرنګه چي په يو هيواد كي د خانه جنګۍ پر وخت كيږي چي خلك د يو پاك او ديني مقصد څخه پرته محض د ذاتي اغراضو او خواهشاتو په وجه د يو بل وينه تويول او يو بل ته تاوان رسول پيل كړي .

ددغه وضاحت څخه دا خبره څرګنده سوه چي د هغه فتنې مقتولين به دوږخ ته ولي ځي، نو دا خبره بالكل څرګنده ده چي كوم څوک په خانه جنګي كي په اخته كېدو سره د لوټېدو لپاره جنګ كوي او د هغه جنګ په دوران كي ووژل سي نو هغه ته به شهيد نه ويل كيږئ او نه د هغه مرګ د دين او شريعت د تقاضي او د اسلامي احكامو خلاف د جنګ او جدل په صورت كي راځي نو څرنګه چي ناحق وينه بيونكی قاتل به دوږخ ته ځي همدا رنګه هغه مقتول به هم د دوږخ د اور مستحق وي .

﴿۵۱۶۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ سَتَكُونُ فِتْنَةٌ صَمَّاءُ بَكْمَاءُ عَمْيَاءُ مَنْ أَشْرَفَ لَهَا اسْتَشْرَفَتْ لَهُ وَإِشْرَافُ اللِّسَانِ فِيهَا كَوُقُوعِ السَّيْفِ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: نژدې ده چي د ګونګ، کڼه او ړنده فتنه به ظاهره سي څوک چي دغه فتنې ته نژدې سي يا دا ويني، فتنه هغه ويني او د هغې نژدې راسي نو په دغه فتنه کي به زبان د رازي د توري چلولو برابر وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۶۰، رقم: ۴۲۶۴.

**تشريح**: فتنې ته ګونګۍ او کڼه ويل د خلکو په اعتبار دي يعني هغه فتنه به دومره سخته او هيبتناکه وي چي عام خلک به هغه وخت حيران او سرګردان وي نه به څوک فرياد اوريدونکی وي چي هغه ته د خلاصون درخواست وکړل سي او نه به چا ته خلاصون ورکولای سي او نه به څوک داسي لار ښيي چي د هغه په ذريعه د هغه فتنې څخه خلاصون تر لاسه سي، يا دا مطلب دی چي د هغه فتنو په وخت کي به خلک حق او باطل او نيک او بد په منځ کي تميز نسي کولای، نصيحت اوريدل او په هغه عمل کول به نه خوښوي، د امر بالمعروف او نهي عن المنکر خبرو ته به فهم نه کوي کوم څوک چي هغه نيکۍ ته رابولي او د ژبي څخه حقه خبره کوي نو هغه به په روحاني او بدني تکليفو اخته کوي او د هغه سره به ډېر تکليفي او د پريشانۍ چلن کوي.

کوم څوک چي هغه فتنه ويني...الخ: مطلب دادی چي کوم څوک هغه فتنو ته متوجه کيږي او د هغه خلکو ملګرتيا اختياروي چي د هغه فتنې باعث دي نو د هغه سړي د هغه فتنې څخه خوندي کېدل او د هغه د خرابو اثراتو څخه ساتنه بهٔ ممکن نه وي، ددې پر خلاف کوم څوک چي د هغه فتنو څخه ليري او بې تعلق سي نو هغه به کامياب سي.

زبان درازي به د توري چلولو په ډول وي: مطلب دادی چي هغه وخت به په خلکو کي تعصب او عداوت او پر حق نه قبلولو باندي اصرار زيات وي ځکه هغوئ به د چا د ژبي څخه يو داسي خبره اوريدل هم نه خوښوي چي د هغوئ د مرضۍ خلاف وي نو هغه په فتنه کي ژبه خلاصونکی ګوا د ويني تويولو دعوت ورکوي او دا خبره بالکل څرګنده ده چي د ځينو ژبو څخه وتلي الفاظ د خپل تاثير په اعتبار د توري څخه هم زيات سخت وار کوي، يو چا ډېر ښه ويلي دي:

جراحات السنان لها التئام ولا يلتئام ما جرح اللسان

ژباړه: د نېزي زخم جوړېدلای سي مګر د ژبي زخم هيڅکله جوړېدای نسي.

## د يو څو فتنو په باره کي پيشګويي

﴿٥١٧٠﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عُمَرَ قَالَ كُنَّا قُعُودًا عِنْدَ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

د حضرت عبدالله بن عمر ﷛ څخه روايت دی چي موږ د رسول الله ﷺ سره ناست وو،

وَسَلَّمَ فَذَكَرَ الْفِتَنَ فَأَكْثَرَ فِي ذِكْرِهَا حَتّٰى ذَكَرَ فِتْنَةَ الْأَحْلَاسِ فَقَالَ قَائِلٌ

رسول الله ﷺ د فتنو ذکر وکړ او ډېر زيات ذکر يې وکړ تر دې چي د احلاس د فتنې بيان يې وکړ، يو سړي پوښتنه وکړه چي

وَمَا فِتْنَةُ الْأَحْلَاسِ قَالَ هِيَ هَرَبٌ وَحَرْبٌ ثُمَّ فِتْنَةُ السَّرَّاءِ دَخَنُهَا مِنْ

د احلاس فتنه څه شي ده؟ رسول الله ﷺ وفرمايل: هغه تښتېدل دي (يعني خلک به د يو بل د بيري څخه تښتي) او جنګ کول دي، او بيا به سراء فتنه وي (يعني د خوشحالی، اسراف او عيش او عشرت فتنه) د دې فتنې تاريکي به د هغه سړی

تَحْتِ قَدَمَيْ رَجُلٍ مِنْ أَهْلِ بَيْتِي يَزْعُمُ أَنَّهُ مِنِّي وَلَيْسَ مِنِّي وَإِنَّمَا أَوْلِيَائِي

د قدمو څخه راوځي چي زما د اهل بيت څخه به وي (يعني دا سړی به د فتنې باني وي) هغه سړی به دا خيال کوي چي هغه زما د خاندان څخه دی مګر په حقيقت کي به هغه زما څخه نه وي،

الْمُتَّقُونَ ثُمَّ يَصْطَلِحُ النَّاسُ عَلٰى رَجُلٍ كَوَرِكٍ عَلٰى ضِلَعٍ ثُمَّ فِتْنَةُ الدُّهَيْمَاءِ لَا

دغه وخت به پرهيزګاران خلک زما دوستان وي، بيا به خلک د هغه سړي پر لاس بيعت کوي چي د تشي سربيره د پښتی په ډول به وي (يعني غير مستقيم) همداسي به هغه (غير مستقل) وي. د دې څخه وروسته به د دهيماء فتنه وي (يعني توره او تاريکه فتنه)

تَدَعُ أَحَدًا مِنْ هٰذِهِ الْأُمَّةِ إِلَّا لَطَمَتْهُ لَطْمَةً فَإِذَا قِيلَ انْقَضَتْ تَمَادَتْ يُصْبِحُ

دا فتنه به زما په امت کي هيڅوک نه پرېږدي او هر څوک به په چپلاخه وهي، بيا هر کله چي وويل سي چي فتنه ختمه سوه نو د هغې وخت به يو څه نور هم زيات کړل سي او د دې څخه

وروسته به دا فتنه اوږده سي،

الرَّجُلُ فِيهَا مُؤْمِنًا وَيُمْسِي كَافِرًا حَتَّى يَصِيرَ النَّاسُ إِلَى فُسْطَاطَيْنِ فُسْطَاطِ

سړی به په سهار کي مؤمن پورته کيږي او په مابنام کي به کافر وي، تر دې چي خلک به په دوو خيمو کي وويشل سي يوه خيمه به

إِيمَانٍ لَا نِفَاقَ فِيهِ وَفُسْطَاطِ نِفَاقٍ لَا إِيمَانَ فِيهِ فَإِذَا كَانَ ذَاكُمْ فَانْتَظِرُوا الدَّجَّالَ مِنْ يَوْمِهِ أَوْ مِنْ غَدِهِ. رواه ابوداؤد.

د ايمان وي چي په هغه کي به اتفاق وي او بله خيمه به د نفاق وي چي په هغه کي به ايمان نه وي هر کله چي داسي واقعه راسي نو تاسو د دجال انتظار کوئ په هغه ورځ يا په دويمه ورځ. ابوداؤد

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۴۲، رقم: ۴۲۴۲.

**د لغاتو حل**: الدهيماء: اى الفتنة العظماء والطامة العمياء.

**تشريح**: د احلاس د فتنې څخه مراد دادی چي هغه فتنه به تر ډېره وخته پوري وي او د هغه اثرات به د امت خلک تر ډېر وخت پوري په مختلفو پريشانيو کي اخته کوي، څرګنده دي وي چي احلاس په اصل کي د حلس جمع ده او حلس هغه ټاټ ته وايي چي د يو ښه فرش لکه غالی وغيره لاندي پر مځکه اچول کيږي او هغه تل پر ځای پروت وي، يا حلس هغه شړۍ ته وايي چي د پالان لاندي د اوښ پر شا اچول کيږي، نو دغه فتنې ته د احلاس ويلو وجه داده چي څرنګه د ښه فرش لاندي ټاټ په ځانګړې توګه پر خپل ځای پروت وي او هغه نه ايسته کيږي، همدارنګه دغه فتنه هم په خلکو کي پرېښودونکې نه ده بلکه قائمه به وي او د هغه په خرابو اثراتو کي به تر ډېره وخته پوري خلک اخته وي، يا دا چي هغه فتنې ته د ظلمت او تيارې په توګه د حلس سره تشبيه ورکړل سوې ده يا دا چي فتنې ته فتنه احلاس ويلو سره دې ته اشاره ده چي څرنګه ټاټ همېشه هوار وي او هغه د خپل ځای څخه نه ليري کيږي همدارنګه خلک هم بايد د هغه فتنې په دوران کي په خپلو کورو کي کښېنستل پر ځان لازم کړي او بېلوالی اختيار کړي.

فتنة السمراء: دغه لفظ په رفع سره دی او په دې اعتبار سره دغه لفظ پر هرب باندي عطف دی يعني کله چي د رسول الله ﷺ څخه دا پوښتنه وسوه چي د فتنه احلاس نوعيت او صورت به څه وي نو رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي هغه فتنه به د هرب او حرب په صورت کي وي د هرب او

حرب معنی مخکي په ترجمه کي څرګنده سوې ده یعني د یو بل سره دښمني او عداوت په وجه د یو بل څخه لیري تښتېدل او د چا مال لوټول، او دسرا معنی داده چي هغه فتنه به په دننه کي د اسلام بېخ کاږي یعني داسي خلک به پیداسي چي په ظاهر کي به د اسلام او مسلمانانو همدرد وي مګر په باطن کي به د اسلام او مسلمانانو بربادي غواړي او د خپل دغه ناپاک خواهش د پوره کولو لپاره به ډول ډول سازشونه کوي.

په نهایه کي لیکلي دي چي د سراء څخه ډېرین میدان مراد دی، په دغه صورت کي د فتنه سرا څخه به د حرا واقعې ته اشاره مراد وي چي د یزید په حکومت کي سوې وه او د هغه په وجه د اهل مدینې قتل عام وسو، په سوونو صحابه کرام او تابعین په شهادت ورسېدل او د حرم محترم سخته بربادي وسوه، دا معنی به په هغه صورت کي وي کله چي سراء د پټ په مفهوم کي واخیستل سي که چیري دغه لفظ د سرور په مفهوم کي وي نو په هغه صورت کي به دا معنی وي چي هغه فتنې داسي حالات پېدا کړل چي په هغه کي به د عیش او عشرت شیان زیات وي او خلک به د اسراف او تنعم په ذریعه په راحت او ارام کي ژوند تېروي او د الله تعالی او آخرت د بیري څخه به بې نیازه سي، یا دا چي د هغه فتنې په وجه به د اسلام او مسلمانانو شان او شوکت ته تاوان ورسیږي او ملت اسلامیه به په ډېره سخته تباهۍ کي اخته سي نو دا صورت حال به د اسلام او مسلمانانو د دښمنانو لپاره د خوښۍ سبب سي او په یوه نسخه کي فتنة السراء په نصب سره دی، په دغه صورت کي به ددغه عطف پر فتنة الاحلاس باندي وي او دا معنی به وي چي رسول الله ﷺ د فتنه احلاس ذکر وفرمایه او دهغه وروسته یې د فتنه سراء ذکر وفرمایه، مګر هغه به زما د خپلو څخه نه وي: مطلب دادی چي هغه زما د اهل بیت څخه د کېدو هر څو مره ګمان لري او که څه هم د نسب او کورنۍ په اعتبار هغوئ په حقیقت کي زما د اهل بیت څخه وي مګر هغه به د خپل طریقو او خپلو افعالو په لحاظ زما د خپلوانو څخه یقینا نه وي ځکه که چیري هغه زما د خپلوانو څخه وای نو دمځکي پر مخ به د فتنې او فساد په ذریعه زما امت په تاوان کي نه اخته کېدی، ددغه ارشاد نظیر د الله تعالی دا قول دی چي (انه لیس من اهلک) یقینا هغه ستا دخپلوانو څخه نه دی، ددغه جملې مطلب دادی چي هغه سړی که څه هم د نسب په اعتبار زما د کورنۍ سره تعلق لري مګر د حقیقت په اعتبار هغه زما محبوب او له خپلوانو څخه نه دی ځکه چي زما محبوب او خپل یوازي هغه مسلمان کیدای سي کوم چي تقوا او پرهیزګاري اختیار کړي او هیڅکله داسي فعل او قول ونه کړي کوم چي اسلام او مسلمانانو ته د ذرې په اندازه تاوان رسولای سي، ددې تائید د مخکي جملې څخه هم کیږي.

چي د تشي سربېره د پوښتنې په ډول به وي: ددغه جملې په ذريعه د هغه سړي ذهني او عملي کوړتيا ته اشاره سوې ده چي څرنگه د تشي هډوکي د پښتنې پر هډوکو وخېژول سي نو هغه پښتنې به پر خپل ځاى قائم پاته نسي او د پښتنې هډوکي د هغه جوړ نسي راتلاى همدارنگه خلک که چيري د هغه سړي په لاس بيعت کولو سره هغه خپل امير ومني مگر په حقيقت کي هغه د امارت او مشرۍ وړ نه وي ځکه چي هغه بهٔ د علم او پوهي څخه محروم وي، د حکمرانۍ د قوانينو څخه به بې خبره وي، د قوت فيصلې او د رايي په کمزورۍ کي به اخته وي، نو د هغه هيڅ حکم او فيصله به د محل او موقع مطابق نه وي او کله چي دا صورت حال وي نو د سلطنت او پاچهي ټول نظام به د انتشار ښکار سي.

بيا به د دهيماء فتنه څرگنده سي، په دې اړه دا څرگندول ضروري دي چي څرنگه د فتنة الاحلاس دواړه اعرابه يعني رفع او نصب ذکر سوي دي او په هغه کي د هر يوه مطابق معنى بيان سوې ده همدارنگه په فتنة الدهيماء کي هم د فتنې د لفظ دواړه اعرابه يعني رفع او نصب دي، دُهَيماء: د دال په پېښ او دهاء په زور سره په اصل کي د هيماء تصغير دى چي د هغه معنى توروالي ده او دلته د بدۍ په توگه استعمال سوى دى ، خلاصه دا چي د فتنه احلاس څخه وروسته چي کومه فتنه ظاهرېږي هغه به د خپل اثراتو د ظلمت او قتل وقتال د سختۍ په اعتبار د يو توري شپې په ډول وي او دهغه توري شپې تياره به هر سړى په تياره کي واچوي، همدارنگه د هغه فتنې تياره به دهر سړي پر دماغ او زړه باندي اثر کوي او دهر يوه پر فکر او عمل باندي به توره سايه خپره سي.

تر دې چي خلک به په دوو خېمو کي وويشل سي: مطلب دادى چي د زمانې خلک به په دوو ډلو کي وويشل سي يوه ډله به خاص د ايماندارو وي چي په هغوئ کي به کفر او نفاق نه وي. او بله ډله به خاص د کفر وي چي په هغوئ کي به د ايمان او اخلاص نوم نه وي، ځينو حضراتو دلته د فسطاط ترجمه د خيمې پر ځاى دښار کړې ده يعني د هغه زمانې خلک به په دوو ښارو يا دوو هيوادو کي وويشل سي ، په يوه ښار يا يوه هيواد کي به يوازي مسلمانان او اهل ايمان وي او په يوه ښآر يا هيواد کي به خاص کافران وي. څرگنده دې وي چي فسطاط په اصل کي خيمې ته وايي مگر پر ښار باندي هم ددغه لفظ اطلاق کيږي. او په حديث کي ددغه لفظ استعمال په دې ډول چي ذکر خو د محل (د اوسېدو ځاى) وي مگر مراد حال يعني د اوسيدونکو د حالت او کيفيت وي نو خلک به په دوو خيمو يا دوو ښارو کي وويشل سي.

خلاصه دا چي هغه وخت به د ټولي نړۍ خلک په څرگنده توگه پر دوو ډلو وويشل سي يوه

ډله به د اهل ایمان وي او یوه ډله به داهل کفر وي او هغه دواړي ډلي چي هر ځای اوسیږي، دلته دا خبره باید په ذهن کي وي چي دا فرمایل سوي دي چي یوه خیمه به نفاق وي او په هغه کي ایمان نه وي نو د هغه خیمې د خلکو څخه دایمان نفي یا خو د اصل په اعتبار ده یعني دهغه خیمي په خلکو کي به ایمان نه وي یا د کمال ایمان نفي مراد ده یعني د هغه خیمې خلک به داسي وي چي دظآهر په اعتبار به ایمان لري مګر د اهل نفاق په ډول اعمالو اختیارولو یعني د دروغ ویلو ، خیانت کولو او وعدې ماتولو وغیره په وجه به د مخلص اهل ایمان د ډلي څخه خارج وي.

د دجال ښکاره کېدو په انتظار کي اوسېدل: مطلب دادی چي کله فتنه دهیماء ظاهره سي نو پوه سه چي د دجال ظهور کېدونکی دی نو د هغه فتنې څخه وروسته بهٔ دجال ظاهر سي هغه وخت به حضرت مهدي علیه السلام په دمشق کي وي دجال به د دمشق ښار راګیر کړي بیا به حضرت عیسی علیه السلام له آسمان څخه نازل سي او د جال به د هغوئ په مقابله کي داسي ویلي سي لکه څرنګه چي مالګه په اوبو کي ویلي کیږي ، حضرت عیسی علیه السلام به هغه په خپل نېزه سره قتل کړي او د هغه په مرګ سره به هغه ډېر زیات خوشحاله سي.

طیبي رحمة الله علیه ددغه حدیث په تشریح کي لیکلي دي چي فسطاط یا خو خیمې ته وایي چي په هغه کي خلک جمع کیږي ، د حدیث ددغه آخري برخي څخه چي په هغه کي د فسطاط ذکر دی دا ښکاره کیږي چي دغه فتنه به په اخره زمانه کي ظاهریږي مګر علماؤ د مخکي ذکر سوو فتنو په اړه هیڅ نه دي لیکلي او وایي چي دغه فتنې به کله ظاهري سي او کوم واقعات به د هغه مصداق وي ، په خاصه توګه د فتنه سراء په اړه خو مکمل سکوت اختیار سوی دی او هغه ته هیڅا اشاره نه ده کړې چي په اهل بیت کي هغه کوم څوک دی چي هغه ته ددغه فتنې باني ویل سوي دي.

## د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه شهادت

دا خبره طیبي رحمة الله علیه لیکلې ده مګر په وروستنیو علماؤ کي شاه ولي الله دهلوي رحمة الله علیه په دغه حدیث کي د ذکر سوو فتنو د مصداق تعین کړی دی ، هغه لیکلي دي چي رسول الله صلی الله علیه وسلم د فتنه احلاس په ذریعه چي کومي فتنې ته اشاره کړې ده هغه د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه د شهادت په صورت کي ظاهره سوې ده کله چي هغه د یزید ابن معاویه د خلافت د اعلان څخه وروسته د هغه د بیعت څخه په تېښته سره د خپل کورنۍ د مدینې څخه ووتی او مکې ته راغلی ، بیا چي په ۶۳ هـ کال کي یزید ابن معاویه خپل خلاف د اهل مدینې د تحریک د ماتولو لپاره د

مسلم ابن عقبه په مشرۍ کي د شاميانو يو ډېر لوی فوج مدينې ته واستوی نو مسلم ابن عقبه هغه مقدس ښار ته په رسېدو سره لويه تباهي وکړه او د اهل مدينه قتل عام يې وکړه، دغه واقعه د حره په نامه سره مشهوره ده ، مسلم د شاميانو د فوج سره د مکې پر خوا روان سو ، که څه هم مسلم په خپله مکې ته ونه رسېدی ځکه چي په لاره کي مړ سوی وو مګر د هغه فوج د حصين ابن نمير په مشري کي مکې ته ورسيدی او هغه د يوې ورځي جنګ څخه وروسته د مکې محاصره وکړه ، حصين ابن نمير پر ابن قيس باندي د مچلوغي په نصب کولو سره پر کعبې شريفي د ډبرو بريد پېل کړ ، د دغه محاصرې او ډبرو ويشتلو په دوران کي يوه مياشت وخت تېر سو ، اهل مکه د سختو تکليفو او پريشانيو سره مخامخ سول ، د اتفاق خبره ده چي په دغه دوران کي په دمشق کي يزيد مړ سو او ابن نمير ته د هغه د مرګ د خبر په را رسېدو سره محاصره پورته کړه او خپل فوج يې دمشق ته روان کړ ، د دې څخه وروسته د حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ خلافت نه يوازي په ټول حجاز کي بلکه په عراق او مصر کي هم قائم سو ، تر دې چي د يزيد ابن معاويه د جانشين معاويه ابن يزيد تقريبا دوولس مياشتي خلافت څخه وروسته کله چي هغه مړ سوی وو ، نو حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ د ټولي اسلامي نړۍ خليفه ومنل سو ،

مګر بيا مروان په خپلو فلانونو او هڅو کي په کاميابه کېدو سره پر شام باندي قبضه وکړه او په دمشق کي يې د خلافت اعلان وکړ ، د شام څخه وروسته مصر او عراق هم د حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ د خلافت څخه ووتی او په دغه دوران کي مروان ابن حکم مړ سو او د هغه زوی عبدالملک ابن مروان د هغه پر ځای سو ، عبدالملک د سخت جنګي طاقت په ذريعه تقريبا د ټولو سيمو څخه د حضرت ابن زبير ﷺ خلافت ختم کړ او په پای کي يې د حجاج ابن يوسف په مشرۍ کي يو لوی لښکر مکې مکرمې ته واستوی او په ۷۳ هـ کال کي د رمضان په مياشت کي حجاج د مکې ښار محاصره کړ او پر کوه ابوقيس باندي د منجنيق په نصب کولو سره سنګ باري يې پېل کړل او د محاصرې او سنګ بارۍ دغه لړۍ تر ذي الحجې پوري جاري وه ، په دغه وخت کي د مکې خلک له ډېرو مصيبتو او مشکلاتو سره مخامخ سول ، د حج په ورځو کي تر څو ورځو پوري سنګ باري بنده سوه او د حج پر ختمېدو باندي بيا دغه لړۍ پېل سوه چي د هغه نښه خاص کعبه شريفه وه چيري چي حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ محصور وو ،

او په آخري مرحله کي ابن زبير ﷺ د کعبې شريفي څخه په وتلو سره محض د خپلو څو ملګرو سره د شاميانو پر هغه عظيم لښکر باندي حمله وکړه او په ډېره مېړانه يې جنګ وکړ ، کله چي هغه څو ملګري هم په يو يو کېدو سره پر کار سول او خپل دښمن د څلورو خواوو څخه د

ډبرو او غشو باران شروع کړ نو د دنیا دغه عظیم الشان او متقي انسان په ډېر مظلومیت سره د جماي الثاني په میاشت ۷۳ هـ کال کي داسي شهید سو چي هغه وخت د جنګ د مېدان د مېړاني ، زهد ، عبادت او شرافت څخه پرته هیڅ انسان د هغه پر مړي باندي افسوس کونکی نه وو، دا د حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه د شهادت هغه دردناکه واقعه ده چي حضرت شاه ولي الله دهلوي رحمة الله علیه د فتنه احلاس مصداق ګرځولې ده .

## فتنه مختار

د فتنه سراء په اړه د حضرت شاه ولي الله صاحب وینا داده چي دغه فتنه هم د مختار د فتنې او فساد په صورت کي ظاهره سوې ده، مختار هغه سړی وو چي مخکي یې د فریب او مکر په ذریعه او بیا په جنګ کولو سره پر عراق باندي واک حاصل کړی وو او د خپلي دغه کاروایي لپاره یې د حضرت محمد بن الحنفیه د اجازې او د اهل بیت د تائید او نصرت دعوه کول، دغه واقعه هم د لږ تفصیل غوښتونکې ده، ددغه سړي اصل نوم مختار ابن عبیده ابن مسعود ثقفي وو، په کوفه (عراق) کي اوسېدی او د شیعان علي څخه وو، حضرت امام حسین رضي الله عنه چي د اهل کوفه په بلنه کوفې ته تلل فیصله کړه او مخکي یې خپل د اکا زوی مسلم ابن عقیل هلته واستوی چي هغه په پټه توګه په کوفه کي په کار کولو سره د خلکو څخه د هغه په نامه بیعت واخلي، نو مسلم ابن عقیل کوفې ته په رسېدو سره د هغه مختار ابن عبیده په ځای کي کښېنته سو، بیا په دې اړه چي څه پېښ سول او د کربلا حادثه واقع سوه هغه ټول ډېر مشهوري واقعې دي، په کربلا کي د حسین رضي الله عنه د شهادت څخه وروسته په کوفه کي یو ډلي د توابین په نامه په وجود کي راغلل چي د هغو مشر سلیمان بن صرد وو، دغه ډله د کوفې پر هغه ډلي باندي مشتمل وه چي دا یې ویل چي زموږ د خلکو د بې وفایي په وجه حضرت امام حسین رضي الله عنه په کربلا کي شهید سو او موږ د خپل هغه جرم په اقرار کولو سره تائب کیږو او عهد کوو چي ددغه جرم د تلافۍ په توګه د حسین د وینو بدله اخلو، او هر هغه څوک به قتل کړو کوم چي د حسین رضي الله عنه په شهادت کي د ذرې په اندازه برخه اخیستې وي.

مختار ابن عبید د مخکي څخه د خپل مختلفو فلانو په ذریعه پر عراق باندي د قبضې کولو هڅه کول او ددغه مقصد لپاره د قاتلان حسین خلاف د خلکو جذبات را پارولو سره هغوئ را جمع کول، ځکه هغه د توابین ډلي څخه د ګټې اخیستلو اراده وکړه او د ډلي خلکو او دهغوئ پیروانو په جمع کولو سره یې ورته وویل چي ستاسو مشر سلیمان خو د کم همت سړی دی د

جنګ څخه ځان ساتي ، نو امام مهدي محمد بن الحنفيه چي د حضرت امام حسين ﷺ ورور دی ، زه خپل نائب جوړولو سره را استولی يم چي تاسو خلک زما په لاس باندي بيعت وکړئ او د حسين دويني د بدلې اخيستلو لپاره زما تر بيرغ لاندي راجمع سئ ، نو د کوفې هغه ټولو خلکو چي شيعان حسين ورته ويل کېده، ورته وويل چي د مختار په لاس بيعت کول شروع کړی هغه وخت پر عراق باندي د حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ قبضه وه او په کوفه کي هغه له عبدالله ابن زبير له خوا والي وو هغه ته چي د مختار د کارنامو او د هغه د حقيقي ارادو علم وسو نو هغه د مختار په نېولو سره په بند کي بندي کړ مګر د توابين ډلي مشر سليمان ابن صرد په هر حال په خپل جنګي تياريو کي مصروف وو ، هغه د اووه لس زره لښکر سره د ابن زياد پر خلاف د جنګ کولو لپاره ولاړی چي په کربلا کي د حضرت امام حسين ﷺ د شهيد کولو د کاروايو ټولو ذمه دار وو ، او دمروان ابن حکم له خوا په موصل کي د والي په حيثيت ټاکل سوی وو ، بيا په عين الورده ځای کي د عبدالله ابن زياد د فوج سره د هغه مقابله وسوه او تر څو ورځو جنګ کولو وروسته خپله سليمان ابن صرد او د توابين ډلي ټول لوی لوی مشران ووژل سول. په لښکر کي چي کوم خلک پاته سول هغوئ په تېښته سره کوفې ته راغلل ، په کوفه کي مختار د بنديخانې څخه هغه خلکو ته د همدردی پيغام را واستوی او ډاډ يې ورکړ چي تاسو خلک غم مه کوئ که زه ژوندی پاته سوم نو د حسين ﷺ د وينو سره به ستاسو د مقتولينو د ويني بدله هم ضرور واخلم، ددې څخه وروسته هغه په يو طريقه د جيل څخه يو خط د حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ په نامه مدينې ته را واستوی چي په هغه کي دا درخواست وو چي عبدالله ابن يزيد د کوفې والي ته په سفارش کولو سره ما د بنديخانې څخه خلاص کړي، نو حضرت عبدالله ابن عمر ﷺ د کوفې والي ته د سفارش خط وليکی او والي د هغه د سفارش په تکريم کي مختار په دې شرط ايله کړ چي هغه به په کوفه کي هيڅ بې امني نه خپروي او په خپل کور کي به ناست وي، دغه مکار د بنديخانې څخه د راوتلو وروسته کوفې والا ته په خاصه توګه شيعان حسين ته دا ظاهره کړه چي دا زما روحاني طاقت او کرامت وو چي هغه د بندیخانې دروازې خلاصي کړې او زه راووتلم ، بلي خوا ته په يو وجه حضرت عبدالله ابن زبير ﷺ ، عبدالله ابن يزيد د کوفې د واليتوب څخه بر طرف کړ او د هغه پر ځای يې عبدالله ابن مطيع وټاکی، مختار هغه عزل او نصب هم خپل کرامت ظاهر کړ او د پخواني حاکم د کوفې د تللو څخه وروسته د ټولو پابنديو په ماتولو سره په ازاده توګه په خپل کاروايو کي مصروف سو هغه دمکر او فريب په ذريعه پر کوفه والا باندي د خپل روحاني بزرګی. او کرامت داسي اوازه خپره کړه چي خلک د هغه مريد کېدل

پېل کړل او د هغه ډلي حیرانونکی پرمختګ وکړ، د ښار د هغه ډلي پرمختګ او د هغه د فلانو د تحریک څخه چي والي خبر سو او د دارالامارة (د ولایت مقام) څخه د هغه خلاف د کاروایي کولو تیاري هم وسول مګر وخت تېر سوی وو او مختار په ډېره چالاکي سره د والي څخه وژغورل سو او په پټېدو سره یې خپل ډله په فوج بدله کړه، او پر کوفې باندي د قبضې کولو د منصوبې په تکمیل کي بوخت سو، بلي خوا ته هغه محمد بن الحنفیه په پوره توګه په واک کي کړی وو، کله چي مختار د کوفې ځیني نور بااثره حضرات د قاتلان حسین خلاف را پارولو لپاره د خپل ځان سره یو ځای کول وغوښتل او د محمدبن الحنفیه د نیابت دعوه یې وکړه او هغه خلکو یو څو کسان ددغه دعوې د تصدیق لپاره محمدبن الحنفیه ته واستول نو هغه وویل: هو مختار ته د حسین د ویني د بدلي اخیستني موږ اجازه ورکړې ده، دغه تصدیق مختار ته لوی طاقت ورکړ، په پای کي یوه ورځ د شپې په تیاره کي د خپل ډلي د کسانو سره مسلح خروج اختیار کړ او د کوفې کوڅه په کوڅه کي جنګ پېل سو، د سختي مقابلې څخه وروسته حکومتي فوج ماته وخوړل او عبدالله ابن مطیع د کوفې والي په دارالامارة کي محصور سو، او بیا درې ورځي وروسته هغه په یو ذریعه د دارالامارة څخه په پټه تللو کي کامیاب سو،

مختار پر حکومتي ځایو او بیت المال باندي قبضه وکړه او دکوفې د خلکو څخه یې د محمد بن الحنفیه په نامه بیعت اخیستل پېل کړل او پر ټول ښار باندي د هغه واک قائم سو، څو ورځي وروسته د کوفې خلک د مختار خلاف سول مګر مختار په ډېره چالاکي سره پر هغوئ واک تر لاسه کړ او په ټول ښار کي یې قتل عام وکړ او د کوفې هیڅ کور داسي پاته نه سو چي په هغه کي یو یا دوه کسان قتل سوي نه وي هغه د قاتلان حسین څخه هم بدله واخیستل او چا چي د کربلا په میدان کي برخه اخیستې وه په هغوئ کي یې د هر یوه سر د بدن څخه جلا کړ، یوې خوا ته هغه پر کوفه باندي د واک تر لاسه کولو وروسته پر نورو سیمو باندي د قبضې کولو په کار بوخت وو او بلي خوا ته د حضرت علي رضي الله عنه د خوف په راپورته کولو سره د خلکو د خپل غیر معمولي روحاني طاقتونو معتقد جوړولو کي لګېدلي وه او په کرار کراره د نبوت دعوې ته ورسېدل، کله چي حضرت عبدالله ابن زبیر رضي الله عنه ته معلومه سوه چي مختار نه یوازي دا چي په کوفه کي قتل عام کوي او پر اهل کوفه باندي ظلم کوي بلکه د نورو سیمو په قبضه کولو کي هم بوخت دی، بلکه دا مشوره یې کړې ده چي ما ته جبرائیل امین وایي او د الله تعالی له خوا وحي راوړي او زه د نبي په توګه را استول سوی یم، نو هغه دده په ښخ ایستلو کي زنډ کول مناسب ونه ګڼل او خپل ورور مصعب ابن زبیر رضي الله عنه یې د بصرې والي وټاکی او د مختار د سر قلم کول یې

هغه ته حواله کړل، نو حضرت معصب د خپل فوج په راوستلو سره کوفې ته ولاړ، بلي خوا ته مختار ته چي ددغه فوج علم وسو نو هغه هم خپل لښکر د کوفې څخه را وایست، د دواړو لښکرو په منځ کي مدارا نامي کلي ته نژدې مقابله وسوه، بنه په زور سره جګړه وسوه، په پای کي مختار ماته وخوړل او کوفې ته وتښتېدی او په دار الاماره کي قلعه بند کړل سو، حضرت معصب ابن زبیر رضی الله عنه کوفې ته په رسېدو سره دار الاماره محاصره کړ، مختار د سامان د کمی په وجه مجبوره سو او د قلعې دروازه يې خلاصه کړه او آخري مقابله يې وکړه مګر ژر قتل کړل سو او همدارنګه د کوفې دغه فتنه ختمه سوه.

# د مروان قصه

په حدیث کي دا فرمایل سوي دي چي ددې څخه وروسته به خلک د داسي سړي پر بیعت اتفاق وکړي چي د پښتۍ د هډوکي سربېره د تشي په ډول به وي، نو حضرت شاه صاحب ددې مصداق مروان ابن حکم ګرځولی دی، د مروان ابن حکم د خلافت قصه که څه هم د مختار د فتنې څخه مخکي وه او کله چي د عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه فوج هغه په کوفه کي په وژلو سره د هغه د فتنې بېخ وایست نو هغه وخت مروان ابن حکم مړ سوی وو او د بنو امیه د خلافت جانشین عبدالملک ابن مروان ټاکل سوی وو، مګر که څه هم ددغه لفظي تقدیم او تاخیر سره یوازي په نظر کولو سره نفس حقیقت ته وکتل سي نو د حضرت شاه صاحب بیان سوی مصداق منلو کي څه خنډ نسته، دا مروان ابن حکم وو چي هغه د معاویه ابن یزید ابن معاویه د مرګ څخه وروسته پر ټوله اسلامي نړۍ باندي د حضرت عبدالله ابن زبیر رضی الله عنه قائم سوی خلافت چیلنج کړ او د مختلفو سازشونو په ذریعه په دمشق کي پر خپل خلافت باندي د بیعت کولو لپاره خلک مجبور کړل، نو د بنو امیه څخه پرته د شام نور قبائل بنو کلب، عنان، طی او داسي نور د هغه خلافت باندي اتفاق وکړ او بیا د هغه وخت څخه د انتشار او فتنې لړۍ پیل سوه، چي هغه اسلام او مسلمانانو ته سخت تاوان ورسوی او ملي طاقت يې دومره منتشر کړ چي تر ډېره وخته پوري مسلمانان په خپلو کي په جنګ وه، او کوم قوت چي د دښمنان دین پر خلاف استعمالېدی هغه په مختلفو سیمو کي د خپل مسلمان ورور لپاره استعمالېدی،

مروان ابن حکم د عیار او چالاک کېدو سربېره د قوت فیصله، بصیرت او تدبر، استقلال او استحکام په ډول هغه اوصاف نه درلودل کوم چي د هیواد د سیاسي استحکام لپاره ضروري دي، ددې ټولو لوی مثال دادی چي په کومه زمانه کي د معاویه ابن یزید د وفات څخه وروسته

په دمشق کي د انتخاب خليفه په اړه اختلاف او په شام کي د بنو اميه مرسته کونکو هغه طاقتور او مقتدر قبائل بنوکلب او بنو قيد په منځ کي رقابتونه ظاهرېدل پيل سول نو مروان ددې په لېدو سره نه يوازي عراق بلکه د شام هم يوه لويه برخه چي د حضرت عبد الله ابن زبير خلافت يې منلې وو ، اراده يې کړې وه چي د مشق څخه په روانېدو سره د حضرت عبد الله ابن زبير ﷛ په خدمت کي حاضر سي او د هغه په لاس په بيعت کولو سره د هغه د خلافت وفادار سي بلکه هغه د سفر سامان هم سم کړی وو ، مګر په دغه دوران کي عبد الله ابن زياد دمشق ته راغلی ، کله چي هغه ته د مروان ددغه ارادې خبر وسو نو هغه مروان له دغه ارادې څخه منع کړ او په دې يې پوه کړ چي هغه د خلافت د اميدار په حيثيت بيعت اخيستل پيل کړل نو د مروان خلافت په اصل کي د عبد الله ابن زياد د هڅو نتيجه ده که چيري په مروان کي مستقل مزاجي، درايي پختيا او تدبر وای نو هغه به په هيڅ قيمت د ابن زياد رايه منلې نه وای او په خپله اراده کي به پوخ پاته سوی وای او دحضرت عبد الله ابن زبير ﷛ په خدمت کي به حاضر سوی وای او دهغه په وجه چي کومي فتنې پيدا سوي او ټول ملت چي په تاوان او ضرر کي اخته سو د هغه نوبت به نه راتلی .

## د دهيماء فتنه

د دهيماء د فتنې په اړه د حضرت شاه صاحب وېناده چي ددغه فتنې په ذريعه رسول الله ﷺ دترکو د دغه قبضې او واک وړاند وينه وفرمايل چي هغه اسلامي ښارونه برباد کړل او مسلمانانو ته يې سخت تباهي او تاوان ورسوی نو هغه وخت چا چي د ترکو حمايت وکړ او دهغوئ مرسته کونکي سول هغوئ د منافقانو په ډله کي وشمېرل سول او دا د اوومي پېړۍ د منځ واقعه ده کله چي د خلافت عباسيه آخري پيروان مستعصم بالله بن مستنصر بالله د بغداد پر تخت باندي واکمن وو ، دی ډېر بې همته، بې حوصلې او غيرمدبر خليفه وو ، هغه خپل وزير وزيرمؤئدالدين علقمي جوړ کړی وو چي ډېر متعصب او بدباطن شيعه وو ، پر علمي عهده باندي په فائز کېدو سره د خپلي عياري او چالاکۍ خليفه عضو معطل کولو سره خپله د سپين او تور مالک سوی وو د هغه د شروع څخه دا خواهش وو چي په څه طريقه د عباسيانو نوم او نښان ختم کړي او په بغداد کي د علويانو خلافت قائم کړل سي ، ددغه خواهش د پوره کولو لپاره هغه يو غير ملکي طاقت يعني تاتاريانو سره لار جوړه کړه او د چنګيز خان لمسي هلاکوخان ته يې دعوت ورکړ چي ته خپل فوج راوله او پر بغداد باندي حمله وکړه ، زه به په ډېره اساني سره تا ته د بغداد خلافت او د هغه تر واک لاندي نوري سيمي په واک کي درکړم،

هلاکو خان په پېل کي د هغه دعوت په قبلولو کي تامل وکړ، ځکه چي هغه د اهل بغداد د مېړاني او خلافت د هيبت څخه مرعوب وو مګر کله چي علقمي په مختلفو حيلو او فلانونو په ذريعه د بغداد د فوج ډېره لويه برخه د ليري ليري برخو او ښارو کي منتشر کړل او د پاته فوجيانو په ذريعه په ښار کي ځيني اقداماتو کولو سره د لوټ مار بازار ګرم کړ چي په هغه سره سخت انتشار خپور سو او هلاکو خان ته معلومه سوه چي د خلافت طاقت ډېر کمزور سوی دی او د خليفه فوج د لوی حملې زغملو وړ نه دی، نو هلاکو خان د هغه د دعوت په قبلولو کي څه خنډ محسوس نه کړ، علقمي يو بل چال اختيار کړ هغه د بغداد د شيعه ګانو له خوا هلاکو خان ته په زيات شمېر کي پر بغداد باندي دحملې کولو دعوت باندي مشتمل خطونه واستول چي په هغه کي داليکلي وه چي زموږ بزرګانو وړاند وينه کړې وه او موږ ته يې خبر راکړی وو چي په فلاني کال کي به فلانی تاتاري سردار پر بغداد او عراق باندي قبضه وکړي او زموږ يقين دی چي هغه فاتح سردار ته يې ، دې خبري د هلاکو ارادې ته نور تحريک ورکړ ، بلي خوا د هلاکو خان په دربار کي يو شيعه نصر الدين طوسي د مخکي څخه موجود وو او دعلقمي په ډول هم د عباسيانو د خلافت ختمولو پسي لګېدلی وو هغه هم د مختلفو ترغيباتو او حرص په ذريعه د هلاکو خان ارادې ته تقويت ورسوی .

هلاکو خان اول خو زبردست فوج بغداد ته واستوی چي د هغه مقابله د خليفه د کمزوري فوج سره وسوه او په پېل کي دغه فوج ته کاميابي هم حاصله سوه، مګر په پای کي يې ماته وخوړل، او د تاتاريانو هره اوله دسته کاميابه سوه ، بيا د هلاکو خان يو ډېر لوی فوج پر بغداد باندي حمله وکړه او ښار يې محاصره کړ ، د ښار خلکو د هغه مقابله وکړه او تر پنځوس ورځو پوري تاتاريان يې ښار ته د ننه نه پرېښودل مګر د بغداد شيعه ګانو يوازي دا چي په پټه توګه هلاکو خان د ځان لپاره د امن او تحفظ ضمانت تر لاسه کړی وو بلکه د ښار حالالت او فوجي اطلاعات يې هم هلاکو خان ته رسول، بيا علقمي يو بل سازش وکړ هغه خليفه ته وويل چي ما ستا لپاره د امن او تحفظ ضمانت حاصل کړی دی تاسو هلاکو خان ته ورسئ هغه به ستا سو سره په ډېر عزت مخامخ سي او په مفاهمت کولو سره به تاسو ته د بغداد او عراق حکمراني پرېږدي، خليفه د علقمي په دوکه کي په راتللو سره د خپل زوی سره د ښار څخه په وتلو د هلاکو خان لښکر ته ورسيدی، هلاکو خان د خليفه په لېدو سره وويل تاسو خپل آراکين سلطنت او د ښار علماء او فقهاء هم دلته راوغواړئ نو خليفه هم ټولو ته حکم واستوی او هلته يې راوغوښتل، کله چي ټول خلک راغلل نو هلاکو خان د خليفه په مخکي هغه ټول په يو يو کولو سره قتل کړل،

ددې څخه وروسته هلاکو خان خليفه ته وويل چي ته ښار ته پيغام واستوه چي د ښار خلک وسله کښيږدي او دباندي ووځي، خليفه دا پيغام هم ښار ته واستوی او د ښار خلک دباندي راووتل او تاتاريانو د هغوئ قتلول پيل کړل، دښار ټول خلک د لکونو په شمېر شهيدان کړل سو. د دباندي خندق د هغوئ په مړو ډک سو او بيا دومره وينه وبهېدل چي د هغه د کثرت څخه د درياء دجلې اوبه سرې سوې، تاتاري خلک په ښار کي ننوتل، ښځي او کوچنيانو پر سرو باندي قرآن کريم اخيستی راووتل مگر د تاتاريانو د توري څخه هيڅوک خلاص نه سو او هغه ظالمانو بغداد او د هغه شاوخوا کي خلک قتل کړل د بغداد په ښار کي يوازي څو خلک وه چي په څاهانو او نورو پټو ځايو کي پټ سوي وه، او پاته هيڅ ژوندی شی يې نه پرېښود، په راتلونکي ورځ يعني نهم صفر ۶۵۶ھ کال کي هلاکوخان د خليفه مستعصم سره په بغداد کي داخل سو او د خلافت ماڼۍ ته په رسېدو سره يې د خليفه څخه د ټولو خزانو کيلياني واخيستلې، څومره خزانې چي وې هغه يې تر لاسه کړلې، بيا خليفه نظر بند کړل سو او تر ډېره وخته پوري وساتل سو، ددې څخه وروسته هلاکوخان د خليفه مستعصم د مستقبل په اړه د خپلو اراکينو سره مشوره وکړه نو ټولو رايه ورکړه چي بايد ووژل سي مگر بدبخت علقمي او طوسي وويل چي نه توره دده په وينو رنګول نه دي پکار بلکه دی په نمده کي په نغښتلو سره په لغتو وهل پکار دي نو دا کار علقمي ته حواله کړل سو او هغه خپل بادار مستعصم باالله په نمده کي په نغښتلو سره او پر يوې ستني باندي په تړلو سره دومره په لغتو ووهی چي د خليفه ساه وختل او بيا د هغه مړی پر مځکه اچولو سره د تاتاري سپاريانو په پښو سره مېده کړ او په دې لېدو سره خوشحاله کېدل چي زه د علويانو بدل اخلم، خلاصه دا چي د بدنصيبه خليفه مړی ته کفن او قبر هم په برخه نه سو او ه همدارنګه د عباسيه کورنۍ د خلافت خاتمه وسوه، ددې څخه وروسته هلاکوخان شاهي کتابخانه هم نه پرېښودل په هغه کي بې شمېره کتابونه ذخيره وه هغه ټول کتابونه يې د دجلې سند ته وغورځول چي په هغه سره په سند کي يو بند غوندي جوړ سو او کرار کرار هغه ټول اوبو وبيول، د دجلې اوبه د بغداد او شاوخوا سيمو په وينو سرې سولې، ټول شاهي محلونه يې وران کړل. مؤرخينو ليکلي دي چي هغه وخت د هلاکو خان د فوج په لاس چي په بغداد او شاوخوا سيمو کي کوم قتل عام وسو د هغه په نتيجه کي يو کروړ شپږ لکه مسلمانان قتل سول. غرض دا چي هغه عظيم الشان او هيبت ناکي بربادۍ چي د هغه مثال په تاريخ کي نسي لېدل کېدای او پر مسلمانان باندي يو داسي مصيبت راغلی وو چي خلکو د قيامت صغری په نامه سره تعبير کړی دی، ددغه ستري پېښي تر ټولو عبرتناک اړخ دادی چي علقمي د

کوم علوي خلافت د قیام او د خپلي حکمرانۍ د خواهش لپاره د عظیم الشان تباهۍ او بربادۍ اسباب پیدا کړه او ټولي اسلامي نړۍ ته د سخت تاوان رسولو سبب سو هغه ته هیڅ په لاس نه ورغلل، هلاکو خان د هاشمي یا علوي خلیفه کولو پر ځای خپل سړی په عراق کي حاکم کړ، عقلمي ډېر چالونه و چلول، هلاکو خان ته یې ډېري زارۍ وکړې مګر هلاکو خان داسي چغه کړ لکه څرنګه چي سپی چغه کیږي، تر څو ورځو پوري علقمي به د غلامانو په ډول تاتاریانو ته ټېلۍ سمولې په پای کي د خپل منافقت او غدارۍ په عبرتناک حشر لېدو سره په ناکامۍ او نا امیدۍ ډېر ژر مړ سو، ددغه پېښي څخه وروسته بغداد دار الخلافه نه سو او د خلیفه مستعصم باالله څخه وروسته تر درو کالو پوري داسي وخت تېر سو چي په هغه کي د دنیا هیڅوک خلیفه نه وو.

## د نبوي زماني وروسته په عربو کي د راتلونکو فتنو پیشګویي

﴿۵۱۷۱﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ وَيْلٌ لِلْعَرَبِ مِنْ شَرٍّ قَدِ اقْتَرَبَ أَفْلَحَ مَنْ كَفَّ يَدَهُ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابوهریرة رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: د عربو بد نصیبي ده چي فتنه نژدې راغلل، په فتنه کي به هغه سړی کامیاب وي چي خپل لاس بند کړي. ابوداؤد

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۴۹، رقم: ۴۲۴۹.

**تشریح**: طیبي رحمه الله وايي: رسول الله ﷺ ددغه ارشاد په ذریعه د عربو هغه فتنې ته اشاره وفرمایل چي د حضرت عثمان غني رضی الله عنه په خلافت کي پېښه سوه او هغه د مسلمانانو د منځني انتشار، خروج او بغاوت په صورت کي نه یوازي حضرت عثمان غني رضی الله عنه پر شهادت باندي مجبور کړ بلکه دا لړۍ وروسته د حضرت علي او حضرت امیرمعاویه د جګړې په صورت کي تر ډېرو ورځو پوري جاري وه، او مسلمانانو ته ډېر زیات تاوان پېښ سو، مګر د ملا علي قاري رحمه الله وینا ده چي د رسول الله ﷺ ددغه ارشاد مصداق د حضرت امام حسین رضی الله عنه خلاف د یزید ابن معاویه هغه کاروايي ده چي د هغه په نتیجه کي امام عالي مقام د کربلا په میدان کي شهید سو، د معنی په اعتبار دغه قول زیات صحیح دی او حدیث ته نژدې دی، ځکه چي د حضرت امام حسین رضی الله عنه د شهادت پېښه یوه داسي فتنه وه چي د هغه په خرابۍ کي عرب او عجم هیڅ ته هم شک او شبه نسته.

## د فتنو او فساد څخه ځان ساتونکی کس نیک بخت دی

﴿۵۱۷۲﴾: وَعَنِ الْمِقْدَادِ بْنِ الْأَسْوَدِ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنَ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنِ إِنَّ السَّعِيدَ لَمَنْ جُنِّبَ الْفِتَنُ وَلَمَنْ ابْتُلِيَ فَصَبَرَ فَوَاهًا. رواه ابوداؤد.

د حضرت مقداد بن اسود رضی الله عنه څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه دا واوریدل چي هغه سړی بختور دی چي د فتنو څخه لیري وساتل سو، هغه سړی بختور دی چي د فتنو څخه لیري وساتل سو هغه سړی بختور دی چي د فتنو څخه لیري وساتل سو، او څوک چي په ازموینه کي واچول سو او هغه صبر وکړ نو هغه ډېر ښه کار وکړ. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۶۰، رقم: ۴۲۶۳.

**د لغاتو حل**: فواها: المعنى هنا التلهف. (افسوس)

**تشریح**: د (واها) معنی دافسوس ده، او کله دغه لفظ د خوښی ظاهرولو لپاره هم استعمالیږي، که چیري دلته دغه لفظ د افسوس په معنی کي واخیستل سي نو ویل کیږي چي د فواها لفظ د مخکنی جملې یعني لمن ابتلی فصبر څخه بېل دی او د یو داسي جملې سره تعلق لري چي که څه هم په لفظو کي مذکور نه دی مګر د هغه مفهوم مراد اخیستل سوی دی نو په هغه صورت کي به ټول عبارت داسي وي چي د افسوس وړ دی هغه سړی چي د فتنو څخه خوندي نه سو او په فتنو کي صبر او ضبط اختیار نه کړي، همدارنګه په مخکنی جملې (لمن ابتلی فصبر) کي د لام لفظ مفتوح ګرځول کیږي او که چیري دلته د واها معنی د خوښی د اظهار وي نو په هغه صورت کي به واها د یو بیلي جملې د مفهوم لپاره نه وي بلکه دا به د مخکنی جملې (لمن ابتلی فصبر) سره یو ځای ګڼل کیږي، او دهغه جملې معنی به داسي وي چي د فتنو څخه خوندي کېدل او صبر اختیارول څومره ښه او د خوښی شی دی، ځینو محدثینو چي دلته په لمن ابتلی فصبر کي د لمن لام په زېر لیکلی دی او هغه ته یې د فواها متعلق ویلي دي نو ددې څخه دا ثابتیږي چي دلته د فواها لفظ د خوښی د اظهار په معنی کي استعمال سوی دی.

## یو څو پیشګویاني

﴿۵۱۷۳﴾: وَعَنْ ثَوْبَانَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِذَا وُضِعَ السَّيْفُ

د حضرت ثوبان ﷺ څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : هر کله چي زما په امت کي

فِي أُمَّتِي لَمْ يُرْفَعْ عَنْهَا إِلَى يَوْمِ الْقِيَامَةِ وَلَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى تَلْحَقَ قَبَائِلُ

توره وچلیږي نو تر قیامته پوري به ددې لړۍ جاري وي او تر هغه وخته پوري به قیامت نه قائمیږي تر څو پوري چي زما د امت ځیني قبائل به

مِنْ أُمَّتِي بِالْمُشْرِكِينَ وَحَتَّى تَعْبُدَ قَبَائِلُ مِنْ أُمَّتِي الْأَوْثَانَ وَإِنَّهُ سَيَكُونُ فِي

د مشرکانو سره یو ځای سي او د بتانو عبادت به پیل کړي ، زما په امت کي به ژر

أُمَّتِي كَذَّابُونَ ثَلَاثُونَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ نَبِيٌّ وَأَنَا خَاتَمُ النَّبِيِّينَ لَا نَبِيَّ بَعْدِي

دیرش درواغجن نبیان پیدا اسي او په هغوئ کي به هر یو سړی دا خیال لري چي هغه د الله ﷻ نبي دي او حال دا دی چي زه خاتم النبیین یم زما څخه وروسته به هیڅوک نبي نه وي

وَلَا تَزَالُ طَائِفَةٌ مِنْ أُمَّتِي عَلَى الْحَقِّ قَالَ ابْنُ عِيسَى ظَاهِرِينَ ثُمَّ اتَّفَقَا لَا يَضُرُّهُمْ مَنْ خَالَفَهُمْ حَتَّى يَأْتِيَ أَمْرُ اللهِ. رواه ابوداؤد والترمذي.

او زما په امت کي به همېشه یو ډله پر حق وي او پر دښمنانو به غالب وي کوم خلک چي ددغه ډلي مخالفت کوي هغوئ ته به هیڅ تاوان نسي رسولای تر دې چي د الله ﷻ حکم راسي (یعني قیامت راسي) یا هغه وخت راسي چي اسلام پر ټولو غالب سي . ابوداؤد او ترمذي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۱، رقم: ۴۲۵۲.

**تشریح**: د حدیث د اولي برخي مطلب دادی که چیري یو وار د ځینو مسلمانانو په وجه زما په امت کي د قتل او قتال سیاست ته د عمل او دخل موقع حاصله سوه نو بیا به د مسلمانانو د یو بل خلاف د تشدد او د طاقت دغه لړۍ پیل سي چي تر قیامته پوري به ختم نسي او تل به زما د امت خلک په څه ناڅه صورت کي د خپلو صفونو پر خلاف جنګ کوي نو د رسول الله ﷺ دا فرمایل بالکل صحیح ثابت سول او د حضرت معاویه ﷺ د زمانې څخه د مسلمانانو چي کومه جګړه پېل سوې ده د هغه لړۍ تر اوسه پوري جاري ده .

تر څو چي زما د امت ځیني ډلي د مشرکینو سره یو ځای نسي: د رسول الله ﷺ ددغه وړاند وینه یو څه خو د رسول الله ﷺ دوفات څخه وروسته ښکاره سوه ، کله چي د حضرت ابوبکر

صديق ﷺ د ابتدائي زمانې په خلافت كي دعربو څو قبائل د منافقينو په فريب كي په راتلو سره په ارتداد اخته سوه او د كفر او شرک د طاقتونو سره يو ځای سول، مگر د حضرت ابوبكر صديق ﷺ فراست او پوهي او فيصلي د هغه مرتدينو بېخ وايستی .

تر څو چي زما په امت كي ځيني قبائل د بتانو عبادت پيل كړي: دلته د بتانو عبادت كه په حقيقي معنی كي مراد دي نو ويل كيږي چي كيدای سي په راتلونكي زمانه كي داسي وخت هم راسي ، چي د مسلمانو څه طبقې د ايمان او اسلام د دعوې درلودلو سربېره په حقيقت كي د بتانو عبادت پېل كړي هسي خو په اوسنۍ زمانه كي هم د داسي مسلمانانو وجود په هر حال تر لاسه كيږي چي قبر پرستي وغيره صورت كي خپل تندی د غير الله په مخكي پر سجده اېږدي او كه چيري دا وويل سي چي په دغه جمله كي د بتانو د عبادت خبره پر خپل حقيقي معنی باندي محمول نه ده بلكه ددې څخه مجازي او معنوي صورت مراد دی نو بيا ددې محمول دېر صورتونه كېدای سي چي په هره زمانه كي تر لاسه كيږي په هغه كي يو صورت د مال او دولت وغيره تر لاسه كول د خپل ژوند اصلي مقصد او دخپل امېدونو مقصد جوړوي ، په دغه صورت كي ددغه ارشاد يو محمول هغه خلک دي چي دهغوئ په اړه فرمايل سوي دي: (تعس عبدالدينار وعبدالدرهم): د درهم او دينار غلام دي هلاک سي.

د خاتم لفظ د تاء په زېر او زور دواړو سره راځي او د اناخاتم النبيين جمله د نحوي قاعدې په اعتبار حال واقع سوې ده يعني د لانبي بعدي جمله د خپل لومړنۍ جملې يعني اناخاتم النبيين د تفسير او وضاحت په توگه ده .

تر دې چي د الله ﷻ حكم راسي: دلته د الله ﷻ د حكم څخه قيامت مراد دی يا د دين داسي تسلط مراد دی چي د مځكي پر مخ د كفر هيڅ نوم او نښان پاته نسي او حتی ياتي ..الخ دغه جمله د لاتزال سره متعلق ده .

﴿۵۱۷۴﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ مَسْعُودٍ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ

د حضرت عبدالله بن مسعود ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل :

تَدُورُ رَحَى الْإِسْلَامِ لِخَمْسٍ وَثَلَاثِينَ أَوْ سِتٍّ وَثَلَاثِينَ أَوْ سَبْعٍ وَثَلَاثِينَ فَإِنْ

د اسلام ژرنده به پنځه دېرش يا شپږدېرش يا اووه دېرش کاله چليږي بيا كه خلک هلاک سي (يعني اختلاف وكړي) نو هغوئ به د هغوئ پر لار روي كوم چي

يَهْلَكُوا فَسَبِيلُ مَنْ هَلَكَ وَإِنْ يَقُمْ لَهُمْ دِينُهُمْ يَقُمْ لَهُمْ سَبْعِينَ عَامًا قَالَ قُلْتُ أَمِمَّا بَقِيَ أَوْ مِمَّا مَضَى قَالَ مِمَّا مَضَى. رواه ابوداؤد.

هلاک سول او كه د هغوئ دين باقي پاته سي نو بيا ددې لړۍ به تر اويا كالو پورې وي ، ما وويل: دا اويا كاله به ددې كلونو څخه وروسته وي چې د هغې ذكر وسو يا ددې سره ، رسول الله ﷺ وفرمايل : كومه زمانه چې تيره سوه د هغې څخه وروسته به وي (يعني د اسلام څخه وروسته). ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۵۳، رقم: ۴۲۵۴.

**تشريح**: د اسلام ژرنده به ګرځي: د رسول الله ﷺ مطلب دا وو چې هغه زمانه چې په هغه کې به د دين نظام مستحكم وي د شرعي احكامو حكمراني به وي، د مسلمانانو ټول ديني او دنياوي معاملات به د قرآن او سنت مطابق چليږي او د دين او آخرت ژوند به د فتنې او فساد څخه خوندي او مامون وي، پر ۳۵ يا ۳۶ يا ۳۷ كالو به مشتمل وي ، او ددغه زمانې ابتداء د هجرت د كال څخه ده، چې د اسلامي ملي او سياسي ظهور او دملكي فتوحاتو لړۍ به د هجرت د كال څخه پيل كيږي نو په دې كې هيڅ شک نسته چې د حضرت عثمان غني ؓ د شهادت پېښه د اسلامي تاريخ هغه لومړنۍ فتنه ده چې په هغه كې د مسلمانانو ديني او ملي ژوند ته سخت تاوان ورسيدى او د اسلام سياسي طاقت د انتشار په وجه ډېر كمزور سو ، دغه فتنه په ۳۵ھ كال كې ظاهره سوه ، ددې څخه وروسته په ۳۶ھ كال كې جنګ جمل او په ۳۷ھ كال كې د جنګ صفين فتنې پېښې سوې چې د مسلمانانو ديني او ملي نظام او سياسي استحكام يې هلاک كړ او دهغه ډېر بد نتائج راووتل.

څرګنده دې وي چې په (لخمس وثلثين او ست و ثلثين او سبع و ثلثين) دلته د او حرف د تنويع لپاره يا د بل په معنى كې دى .

د ۳۵ يا ۳۶ يا ۳۷ كلو د تعين په اړه يو وضاحت خو هغه وو چې مخكې ذكر سو يعني كه چيرې ابتداء د هجرت د كال څخه وشمېرل سي او انتهاء د حضرت عثمان ؓ شهادت او بيا جنګ جمل او جنګ صفين وګرځول سي نو په ترتيب سره د ۳۵، ۳۶ او ۳۷ واقعات دي، مګر په دې اړه يو احتمال دا هم بيانيږي چې رسول الله ﷺ دغه كلام په هغه كال فرمايلى وو كله چې د رسول الله ﷺ دژوند مبارک څو كاله پاته وه او كه دا څو كلونه د خلفاء اربعه د خلافت سره يو

ځای کړل سي نو ددغه ټولو مجموعي وخت هغو مره کلو باندي مشتمل دی کوم چي رسول الله ﷺ په دغه ارشاد کي ظاهر کړ ، یعني ددغه قول مطابق د ۳۵، ۳۶ او ۳۷ کلو ابتدائي کال خو به هغه ګرځول کیږي چي په هغه کي رسول الله ﷺ دغه حدیث ارشاد وفرمایه او ددغه کلونو اخري کال به د حضرت علي رضي الله عنه د خلافت اخري کال وګرځول سي نو ددین د نظم د استقرار او تکمیل څخه که چیري دا مراد واخیستل سي چي په دغه ذکر سوو کلو کي به دین په پوره توګه محفوظ او مامون وي چي د بدعت او د فکر و جمال لغزش به نه وي او د هیواد او ملت هیڅ کار به د شارع د حکم خلاف نه وي نو بیا د ذکر سوو کلونو د تعین په اړه دا وضاحت مناسب دی ،

او که د دین د استقرار او تکمیل څخه مراد دا واخیستل سي چي د ملک او ملت انتظام به د فتنې او فساد څخه پاک وي ، د خلافت مسئله به په ښه چلن او اتفاق او اتحاد سره فیصله کیږي او د مسلمانانو په منځ کي به هیڅ اختلاف او عناد نه وي نو بیا به د مذکوره کلو په تعین کي هغه وضاحت مناسب وي چي مخکي نقل سوی دی ، یو بل احتمال هم بیانیږي چي د ذکر سوو کلونو ابتداء د هغه څخه کیږي کله چي پر رسول الله ﷺ باندي دوحي نازلېدو لړۍ پیل سوې وه یعني دنبوت په اول کال ، په دغه صورت کي د ۳۵ کلو د وخت اختتام د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په اختتام کیږي ، دا احتمال په دې اعتبار قیاس ته نژدې معلومیږي چي رسول الله ﷺ څخه وروسته د دین او ایمان سلامتیا ، دسنت اتباع، جماعتي اتحاد او تفاق د مسلمانانو په منځ کي محبت او د دین او ملت د اخلاقي او سیاسي استحکام په کومه زمانه کي چي ښه وو هغه د حضرت ابوبکر او حضرت عمر رضي الله عنهما د خلافت زمانه ده، د حضرت عمر رضي الله عنه څخه وروسته د حضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کي یو دوه کاله وروسته چي کوم صورت حال پیدا سو او ددین او ملت دنظم او استحکام خلاف چي کومي پېښي څرګندي سوې هغه ددغه فتنو باعث جوړ سو .

بیا که خلک هلاک سي...الخ: مطلب دادی چي په ذکر سوو کلونو کي د دین او ملت اخلاق او سیاسي نظام کي د استحکام او استقرار څخه وروسته که خلک د خپل دیني او ملي معاملاتو داختلاف ښکار سي د دین او آخرت په چارو کي سستي ، کوتاهي او ګناه کول پېل کړي نو پوه سئ چي هغوئ پر هغه خطرناکه لار باندي روان سوي دي پر کومو باندي په تللو سره چي د تېرو امتو خلک د تباهۍ او بربادۍ ښکار سوي وه، نو د تېرو امتو خلک څکه تباه او برباد سول چي هغوئ کړتیا اختیار کړې وه د حق څخه لیري سوي وه ، شرعي احکام او خپل ملي معاملاتو کي د اختلاف او انتشار ښکار سوي وه ، پر خپل دین باندي په عمل کولو او د خپل

پیغمبر د تعلیماتو په منلو کي یې سستي او بې پرواهي اختیار کړې وه او د ګناه او معصیت څخه یې پرهیز نه کوی، څرګنده دي وي چي کوم شیان د انسان دهلاکت او تباهی سبب جوړیږئ او د هغه په اختیارولو سره انسان په هلاکت کي لویږي دلته هغه اسباب په هلاکت سره تعبیر سوي دي.

او که دهغوئ د دین نظام کامل او برقرار پاته سو ...الخ: مطلب دادی که چیري مسلمانانو د مخکي په ډول د خپل امیر او خلیفه پر اطآعت او فرمانبرداري باندي قائم وي، احکام شریعت او دیني نظام برقرار وساتي او دهغه پر اتباع کولو باندي عامل وي او دملي اتحاد او اتفاق په ذریعه د اسلام شوکت لوړ کړي نود هغوئ د دیني او ملي، سیاسي استحکام او برقراری لړی به تر اویا کالو پوري جاري وي.

اوس دا سوال پیداکیږي چي د اوویا کالو د تحدید څخه مراد څه دی؟ نو ددې حقیقي مفهوم په وضاحت سره نسته، بیا هم دا ویل کیدای سي چي د دیني او ملي نظام، اخلاق او سیاسي استحکام په اړه چي کومه خبره مخکي سوې ده که هغه تر ۳۵ کاله یا ۳۶ یا ۳۷ کالو پوري قائم وي نو په دې اعتبار سره دا خبره ویل سوې ده چي د مسلمانانو ملي او ملکي چارو او سیاسي معاملاتو به د راتلونکي زمانې په نسبت په اوویا کالو کي زیات ښه وي،

په هر حال ددغه حدیث په تشریح کي شارحینو ډېر زیات بحث کړی دی او اوږدې خبري یې لیکلي دي، مګر د قابل اعتماد مختار مذهب او عقیدې سره سم د حدیث د الفاظو په رعایت کولو سره په لنډه توګه چي کومه تشریح تر لاسه کیږئ هغه دلته نقل سوې ده چي انشاء الله تعالی کافي به وي، مګر که چیري په اختصار سره د حضرت شاه ولي الله دهلوي رحمة الله علیه هغه منقولات او فرمودات هم بیان کړل سي چي ددغه حدیث د تشریح تعلق لري نو دحدیث فرمودات او دهغه د مصداق څه نور وضاحت به وسي، نو د شاه صاحب مطابق د حدیث خلاصه او مصداق داسي څرګندیږي چي رسول الله ﷺ دا وفرمایل چي دهجرت د زمانې څخه وروسته د اسلام پرمختګ او د مسلمانانو په حالاتو کي چي کوم استحکام پیدا سوی دی هغه به تر ۳۵ او یا ۳۶ کلو پوري همداسي چلیږي، او ټول دیني او ملي معاملات به په ښه ډول فیصله کیږي، بیا د اسلام په دائره کي که څه اضطراب واقع سي او د انتشار په وجه د مسلمانانو دیني او ملي معاملاتو کي خرابي پیدا سي نو ددغه خرابۍ پیل د ۳۵ھ کال څخه وسوه چي د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت پېښه رامنځته سوه، بیا په ۳۶ھ کال کي نوره خرابي واقع سي.

کله چي د ام المؤمنین بي بي عائشې رضي الله عنها او حضرت علي رضي الله عنه په منځ کي جګړه وسوه او هغه

ته جنګ جمل ویل کیږي، او ددې څخه وروسته په ۳۷ هـ کال کي حالات د واک څخه ووتل، اسلام او مسلمانانو ته سخت تاوان ورسیدی کله چي د حضرت علي او حضرت امیر معاویه رضي الله عنهما په منځ کي ډېر سخت جنګ (د صفین جنګ) وسو، ددې څخه وروسته رسول الله ﷺ دې ته اشاره وفرمایل چي د مسلمانانو په دیني او ملي نظام کي ددغه خرابۍ واقع کېدو څخه وروسته او د باغیانو په غالب کېدو سره او د خلیفه حق د مغلوبیت په وجه که خلک د دیني او ملي نظام تباه کولو والا هغه اعمال او اطوار اختیار کړي او هلاک سي نو هغوئ به پر هغه لار باندي د تللو په وجه هلاک سي پر کومه لار چي د تېرو امتو خلک تللي او تباه سوي دي، نو د حضرت علي ﷛ د شهادت څخه وروسته داسي وسوه چي حضرت امام حسین ﷛ ته په ډېره مجبورۍ سره د خپل خلافت څخه لیري کېدل پرېوتل او څرنګه چي هغه ته مغلوب کېدل پرېوتل چي د هغه نتائج په وړاندي راتلو سره د انتشار او اقتدار لپاره د یو بل خلاف د قتل او قتال په صورت کي ظاهر سول او که د خلیفه برحق اقتدار او تسلط قائم پاته سوی وای او باغیانو ته د غالب راتلو موقع نه وای تر لاسه سوې نو د مسلمانانو دیني او ملي نظام به د راتلونکو زمانو په نسبت په ډېره ښه طریقه چلیدی او دغه نظام به تر اوویا کالو پوري قائم وای.

## د حضرت عثمان ﷛ شهادت

د حدیث په تشریح کي د درو داسي واقعاتو ذکر راغلی دی چي په اسلامي تاریخ کي ډېر روح لري او په خفه کونکي پایلو سره یادیږي، او هغه ته رسول الله ﷺ دمخکي څخه اشار وفرمایل، دغه درې پېښې د حضرت عثمان ﷛ شهادت، د جمل جنګ، او د صفین جنګ ضروري معلومېږي چي درې سره واقعاتو باندي په لنډه توګه رڼا اچول کیږي، تر ټولو مخکي د حضرت عثمان ﷛ د شهادت واقعه او د هغه حالات بیانیږي.

حضرت عثمان غني ﷛ د اسلام دریم خلیفه او د حضرت عمر فاروق ﷛ څخه وروسته د مسلمانانو امیر او حکمران وټاکل سو، د حضرت عمر ﷛ د خلافت تر وخت پوري د مسلمانانو عام دیني او سیاسي چاري د یو مستحکم خلافت لاندي په ډېره ښه طریقه چلېدلې او هغه عواملو او اسبابو ته د سر پورته کېدو موقع تر لاسه نه سوه چي د خلافت استحکام او ملي نظام د څه فتنې باعث سي، د حضرت عثمان ﷛ د خلافت په لومړنۍ نیمه برخه کي هم هغه طریقه استواره وه مګر د هغه څخه وروسته ځیني داسي اندروني عوامل او اسباب پیدا سول او په هغه سره ځیني داسي بیروني فلانونه هم په حرکت کي راغلل چي په هغه سره د حضرت عثمان

رضي الله عنه د خلافت استحکام په لړزه سو او دملک او ملت ديني او سياسي معاملاتو باندي د حضرت عثمان رضي الله عنه واک کمزوری سو.

ځرنګه چي د حضرت عثمان رضي الله عنه بې شمېره صفتونه وه نو په هغوئ کي يو وصف د حلم او معافی او په خاصه توګه د خپلو قريبانو د ښه چلن جذبه هم وه، هغه په اخلاص سره خپل قريبان پر عهد او منصب باندي فائز کړه چي هغوئ يې د هغه عهدې لپاره واقعتا او ديانتا اهل او مناسب ګڼل او هغوئ په ذاتي توګه ډېر شتمن وو ځکه د خپل مال او دولت په ذريعه دخپلوانو قريبانو خبر يې اخيستی او دهغوي مالي مرسته به يې کول، بلي خوا د مسلمانانو په ذهني او فکري حالاتو کي هم دزمانې تغيرات او پراخو احوالو کي د عام ګډون په اثراتو سره تر ډېره حده تبديلې راغلې وه نو په ځينو مسلمانانو کي او په خاصه توګه په هغه مسلمانانو کي چي نوي په اسلام کي داخل سوي وه او د پخوانی قبائلي او علاقائي عصبت د ګرفت څخه په پوره توګه ازاد سوي نه وه، دا شکونه پيدا کېدل پېل سول چي امير المؤمنين دخپل خلافت په ذريعه د خپل قبيلې او خاندان خلکو ته ګټه رسوي، که څه هم داسي خلک تر اوسه ډېر کم وه او په عامو خلکو کي د حضرت عثمان رضي الله عنه له خوا بدګماني او شکايت نه وو پيدا سوی مګر هغه وخت عبد الله ابن سبا دخپل مکر او سازش جال خپرول پېل کړل، عبد الله ابن سبا د صنعاء د ښار اوسيدونکی يو يهودي وو هغه دحضرت عثمان رضي الله عنه په خلافت کي په دې لېدو سره چي مسلمانان د دنيا تر ټولو لوی فاتح قوم جوړ سوی دی او دغه قوم ته ډېر زيات مال تر لاسه سوی دی، عبد الله ابن سبا مدينې ته راغلی او په ظاهره په مسلمان کېدو سره اوسېدی، د هغه اصل مقصد محض د دولت او عزت تر لاسه کول نه وو بلکه هغه په خپل ذهن کي د مسلمانانو د طاقت کمزوري کول او د اسلام شان او شوکت ختمولو سازش هم په زړه کي وو، هغه په مدينه کي دخپلو سازشونو په پوره کولو کي بوخت سو، هلته چي کاميابي تر لاسه نسوه نو بصرې ته ورسيدی، په بصره کي هغه په مختلف مکر او فريب په ذريعه خلک خپل هم خيال جوړ کړه او د ډول ډول بدو عقيدو تبليغ يې پېل کړه، کله چي د بصرې والي ته د هغه دحالاتو او د هغه د اصل حقيقت علم وسو نو هغه چي پلټنه وکړه نو د هغه ځايه څخه د خپلو حاميانو د يو ډلي په پرېښودو سره کوفې ته راغلی چي هلته د مخکي څخه يو ډله د حضرت عثمان رضي الله عنه او د هغوئ د عاملانو خلاف وو، دلته عبد الله ابن سبا ته د خپل سازش خپرولو زياته موقع تر لاسه سوه هغه يوې خوا ته د اسلام سره مخالفت وو او بلي خوا ته هغه د حضرت عثمان رضي الله عنه سره ذاتي عداوت او عناد هم درلودی او د هغه څخه دبدلې اخيستلو خواهش يې درلودی.

څو ورځي وروسته هغه کوفه هم پرېښودل او بیا دمشق ته ولاړ، په دمشق کي د هغه چال زیات کامیاب نه سو او بیا مصر ته ورسېدی او هلته یې په زیاته هوښیاري او اطاعت سره کار پیل کړی او د یو منظم جماعت تنظیم یې وکړ، هغه اهل بیت او حضرت علي رضي الله عنه سره د تعلق دعوی هم کول نو ددغه فریب په ذریعه په مصر کي هغه ته کامیابي تر لاسه سوه او خلک د هغه تابع کېدل پیل سول، دلته په ناسته سره هغه د اسلامي سلطنت هغه ټولو علاقو سره رابطه قائمه کړه چیري چي هغه تللی وو او دخپل حامیانو ډله یې پرې ایښې وه، د خپلو هغه حامیانو په ذریعه یوې خوا ته هغه مختلف سیمو څخه اهل مدینې ته دا شکایتونه ورسول چي د عثمان رضي الله عنه عامل او والي د خپلو سیمو پر خلکو باندي سخت ظلم کوي، بلې خوا ته هغه په عامو مسلمانانو کي د حضرت عثمان رضي الله عنه پر خلاف د ناراضګی او شکونو صورت حال پیدا کړ، کله چي حضرت عثمان رضي الله عنه په دې خبر سو نو هغه صورت حال ته توجه وکړه او خپل عاملین او مشران یې په جمع کولو سره مشوره ورسره وکړه چي کوم کسان ددغه انتشار کولو ذمه دار دي هغوئ دي پیدا سي او قتل دي سي، او د مجرمانو سره دي هیڅ رعایت نه کیږي، مګر حضرت عثمان رضي الله عنه دخپل مروت او حلم په وجه دا مشوره قبوله نه کړه او دا یې وفرمایل چي زه د قرآن او حدیث د حکم مطابق هیڅوک تر هغه وخته پوري وژلای نسم تر څو چي هغه په ډاګه مرتد نسي، او د هغه جرم ثابت نسي، غرض دا چي د معمولي تدبیرونو څخه پرته د فلانونو خلاف څه سخته کاروایي ونه سوه چي په هغه سره د هغوئ حوصلې نورې پورته سوې او دهغوئ ډېر زور په خپل تخریبي کارو کي مصروف وو، او په زیاتو سیمو کي په خاصه توګه په مصر کي د شور کونکو ډلي تیارې سوې چي هغوئ ته پر مدینه باندي د حملې کولو او د حضرت عثمان رضي الله عنه د قتلولو تربیت ورکړل سو.

بلې خوا ته د عبدالله ابن سبا خلکو د مختلفو سیمو د والیانو او کارکونکو پر خلاف چي کومې فرضي شکایتونه اهل مدینې ته استول، اهل مدینه هغه په صحیح ګڼلو سره د حضرت عثمان رضي الله عنه د هغه والي او عاملانو معزول کولو مطالبه کول مګر حضرت عثمان رضي الله عنه ته د پلټنې او تحقیق څخه معلومېده چي ټول شکایتونه فرضي دي ځکه هغه د والیانو او عاملانو پر خلاف هیڅ کاروایي ونه کړل، ددې نتیجه دا سوه چي خپله په مدینه کي د حضرت عثمان رضي الله عنه او دهغه د حکومت د بدګمانو او شکایتو یوه فضاء جوړه سوه او ځای پر ځای په خلیفه پسي خبري کېدل پیل سول، دا هغه زمانه وه چي د عبدالله ابن سبا ایجنټان ټولو اسلامي هیوادو او ټولو ښارو ته رسیدلي وو او دهغه د حامیانو ډلي هر ځای پیدا سوي وې کله چي هغه ولېدل چي د

هغه فلان آخري مرحلو ته رسيدلی دی او په ټولو سيمو کي د خلافت عثمانيه د بدګمانيو او شکايتونو جال خپور سوی دی او هر ځای د هغه د حاميانو زيات شمېر سوی دی نو هغه دهري سيمي څخه د خپل مسلح کسانو لوی شمېر د کوچنيو کوچنيو ډلو په شکل په پټه مدينې ته را واستوی او بيا څو ورځي وروسته مديني والا ولېدل چي دباغيانو يو لويه ډله د نعره تکبير په ويلو سره په مدينه کي داخل سوي دي.

عبدالله ابن سبا د حضرت علي ﷜ دميني او د هغه د خليفه جوړېدو په دعوه کولو سره چي کوم خلک چاپېره کړي وه په هغوئ کي يې د حضرت علي ﷜ يو جعلي خط هم خپور کړی وو چي په هغه کي د باغيانو د حمايت اعلان وو نو باغيانو مدينې ته په رسېدو سره چي حضرت علي ﷜ ته يې د مرستي خواست وکړ نو هغه ددې خبري څخه بالکل انکار وکړ چي ما ستاسو د حمايت کولو اظهار کړی دی او وه يې فرمايل چي ما هيڅکله تاسو ته خط نه دی ليکلی، حضرت علي ﷜ دکودتاه کونکو د هغه سازشونو څخه دليري کولو ډېر هڅه وکړه ، نورو صحابه کرامو هم د معاملې سمولو هڅه وکړه ، حضرت عثمان ﷜ د کودتاه کونکو په مطالبه د مصر والي هم معزول کړ مګر داصل تحريک مقصد محض شور کول او بغاوت خپرول وو، ځکه د کودتاه کونکو مشرانو د صورت حال پر معمول باندي راوستلو او د شور کمولو تدبيرونه ناکام سول، حضرت عثمان ﷜ د مدينې منورې په کوڅو کي د کودتاه کونکو په زيات لېدو سره د مختلفو ښارو واليانو ته خطونه واستول او مرسته يې وغوښتل، او هغوئ د ښارو څخه سرکاري فوجونه د کودتاه کونکو د خاتمې لپاره روان کړل مګر هغه کودتاه کونکو د هغه فوج د راتلو څخه مخکي د حضرت عثمان ﷜ د سرای محاصره وکړه.

دلته دا څرګندول ډېر ضروري دي چي په دغه صورت حال کي لوی دخل د مروان ابن حکم هم وو چي د حضرت عثمان ﷜ د اکا زوی او دهغه وزير وو ، هغه د حضرت عثمان ﷜ د حلم او بردبارۍ څخه په ناجائزه ګټه تر لاسه کولو د خپل بداخلاقي، جعل سازۍ او د عوامو د مخالف اقداماتو په ذريعه عامو مسلمانانو او په خاصه توګه اهل مدينه ډېر زيات په غصه کړي وه ، اهل مدينه ددغه موقع څخه دومره فائده تر لاسه کول غوښتل چي د مروان خلاف هغوئ هم د کودتاه کونکو سره شريک سول، مګر دهغوئ مطالبه يوازي د مروان د عهدې څخه په معزول کولو سره اهل مدينې ته د هغه د حواله کولو وه ، او که چيري حضرت عثمان ﷜ دا مطالبه منلې وای نو کېدای سي کودتاه کونکو ته په خپل اصل مقصد کي زياته کاميابي نه وای سوې ځکه چي بيا به د مدينې خلکو د کودتاه کونکو حمايت پرې ايښی وای او د هغوئ مقابله به يې

کړې وای مګر د حضرت عثمان ﷜ مروت دا ونه زغمل چي هغه مروان اهل مدينې ته په حواله
کولو سره د هغوئ په لاس د هغه د وژني ننداره ووينې، په هر حال کودتاه کونکو زيات شور را
پورته کړ تر دې چي د هغوئ سرای ته د اوبو ورتللو څخه هم پابندي ولګول سول او کله چي
حضرت علي ﷜ او نورو جليل القدر صحابه کرامو ته معلومه سوه چي اوس کودتاه کونکي
دحضرت عثمان ﷜ د سرای دروازې په ماتولو سره د هغه قتلول غواړې نو هغوئ ټولو خپل
زامن په ډېره مېړانه سره د کودتاه کونکو په مقابله کولو سره د حضرت عثمان ﷜ ساتنه وکړه
او په دروازې باندي ودرېدل ، ځيني کسانو د هغه د سرای د بام څخه څارنه کول پېل کړه،
کودتاه کونکو په دې فکر سره چي د دباندي څخه د سرکاري فوځونو د راتګ څخه مخکي ډېر
ژر په يو طريقه سره د حضرت عثمان ﷜ کار تمامول پکار دي ، دا چال يې وچلوی چي په پټه
توګه د يو همسايه په سرای کي ورننوتل او پر دېوال باندي په اوښتلو سره د حضرت عثمان ﷜
په سرای کي داخل سول هغه وخت چي د حضرت عثمان ﷜ کوم ساتونکي وه په هغوئ کي
ځيني بام ته په ختلو سره د باغيانو د کوښښ او نقل وحرکت څارنه يې کول او ځيني پر دروازه
ولاړ وه، په سرای کي يوازې حضرت عثمان ﷜ وو او د هغه زوجه محترمه بې بي نائله ، کودتاه
کونکو په ننوتلو سره پر حضرت عثمان ﷜ توره وچلول چي هغه وخت د قرآن کريم کي په
تلاوت کي بوخت وو ، د هغه بي بي سمدستي په وړاندي کېدو سره توره يې په لاس منع کړه چي
دهغې ګوتي پرې سوې، بيا يې دوهم وار پر ورکړ چي په هغه سره حضرت عثمان ﷜ شهيد سو ،
يو کودتاه کونکي په وړاندي کېدو سره په پښو ووهی چي په هغه سهر د حضرت پښتۍ ماتي
سوې بيا ټول کودتاه کونکي د يو ستري غونډې په ډول په سرا يکي دننه حمله وکړه او دکور
ټول سامان يې لوټ کړ او ډېره بربادي يې وکړه ، دغه المناکه واقعه د ذي الحجې پر ۱۸ ، ۳۵ھ
د جمعې په ورځ رامنځته سوه، تر درو ورځو پوري د حضرت عثمان ﷜ مړی بې ګور او کفن
پروت وو ، پر ټول ښار باندي د کودتاه کونکو واک وو، په پای کي ځينو حضراتو په هڅه کولو
سره تر درو ورځو وروسته د شپې د حضرت عثمان ﷜ مړی مبارک بېله غسل ورکولو په جامو
کي ښخ کړ ، د جنازې لمونځ حضرت جبير ابن مطعم ﷜ ادا کړ او د حضرت عثمان ﷜ ددغه
مظلومانه شهادت په ذريعه د هغه د خلافت دور ختم سو او بدبخته يهوديانو ته د يو تباه
کونکي سازش د کامياب کېدو موقع تر لاسه سوه .

# جنګ جمل

د حضرت عثمان ﷛ د شهادت څخه وروسته په مدينه کي د قاتلين عثمان ﷛ او کودتاه کونکو دور وو، ځکه هغوئ تر ټولو مخکي اهل مدينه په اخطار ورکولو سره د انتخاب خليفه پر ګار باندي اماده کړه، عبدالله ابن سبا په خپل ټول سازش او تحريک کي د حضرت علي ﷛ نوم پورته کړی وو او د هغه د خلافت قائمولو په نامه يې خلک پر ځان راټول کړي وه ځکه په قدرتي توګه سره د کودتاه کونکو زيات شمېر د حضرت علي ﷛ د خليفه کېدو حامي وه، که څه هم حضرت علي ﷛ د حضرت عثمان ﷛ د شهادت څخه مخکي هم باغيانو ته د خپل تعلق انکار کړی وو او د هغوئ د مرستي خواست يې په لغته وهلی وو مګر کله چي کودتاه کونکو هغه ته اصرار وکړ، بلي خوا ته اهل مدينه هم په کثرت رايه سره په خپل اړه ولېدل نو هغه د خلافت بار سنبالولو لپاره تيار سو، بيا هم چي خلک به د بيعت لپاره د هغه په خدمت کي حاضر سول نو هغه به صفا ورته ويل چي تر څو اصحاب بدر ما خليفه ونه مني نو زه بيعت نه اخلم، ددې په اورېدو سره هغه خلکو تر څو چي ممکن وه د اصحاب بدر په جمع کولو سره د حضرت علي ﷛ په خدمت کي راوستل او همدارنګه د هغوئ په لاس د خلافت بيعت وسو، د خليفه کېدو څخه وروسته حضرت علي ﷛ ته چي تر ټولو مخکي د کومي مطالبې مخ وو هغه د حضرت عثمان ﷛ قصاص وو، هغه د حضرت عثمان ﷛ د زوجې محترمي څخه د قاتلانو په اړه پوښتنه وکړه نو هغې يوازي د دوو کسانو حليه (شکل) وښودی، مګر د هغوئ نومونه يې ونه ښودل، ظاهره ده چي حضرت علي ﷛ بېله تشخيص او ثبوت تر لاسه کېدو پرته قاتلين عثمان ته څرنګه سزا ورکولای سوه ځکه د قصاص مطالبې په منلو کي ځنډ پيدا سو، کله چي خلکو په خاصه توګه حضرت طلحه ﷛ او حضرت زبير ﷛، حضرت علي ﷛ ته پر دغه مطالبه اصرار وکړ نو حضرت علي ﷛ وويل: زه به د قاتلين عثمان څخه خامخا قصاص اخلم او د حضرت عثمان ﷛ په اړه به پوره انصاف کوم، مګر تر اوسه پوري د کودتاه کونکو زور دی او بلي خوا ته د خلافت زور په پوره توګه مستحکم سوی نه دی ځکه نو في الحال زه په دې اړه هيڅ نسم کولای.

د اطمينان او استحکام تر لاسه کېدو وروسته تر ټولو مخکي به دغه معاملې ته توجه کوم، بس د همدغه ځای څخه د حضرت علي ﷛ پر خلاف د بدګمانۍ فضاء پيدا کېدل پيل سول، مسلمانانو په خاصه توګه بنو اميه ته يقين وسو چي د حضرت عثمان ﷛ د قتل بدله نسي اخيستلای او قاتلان عثمان په خوند سره ګرځي، بلي خوا ته سبايانو ددې بيري څخه چي

حضرت علي ﷺ د قتل عثمان په اړه موږ ته سزا را نه کړي په خپل سازش کي ولګېدل او هڅه کول يې پېل کړل چي خلافت ته استحکام نصيب نسي او ټول مسلمانان د يو بل خلاف په بدګماني او عداوت کي اخته سي .

ام المؤمنين بي بي عائشې ﷺ د حج لپاره مکې تشريف وړی وو ، د هغه ځای څخه مدينې ته په بېرته راتللو سره يې د حضرت عثمان ﷺ د شهادت واقعه واورېدل او بيرته مکې ته راغلل ، هغې ته د حضرت علي ﷺ د خلافت خبر هم وسو ، او دا هم ورته معلومه سوه چي حضرت علي ﷺ قاتلان عثمان ته په سزا ورکولو کي تامل کوي نو کله چي هغه مکې ته راغلل او خلکو ته د هغې د ستنېدو حال معلوم سو نو هغوئ راغلل او د دې د سپرلۍ چاپېره جمع سول ، هغې د مجمع په مخکي په تقرير کولو سره اعلان وکړ چي زه به خپله د حضرت عثمان ﷺ بدله اخلم ، د بني اميه ټول خلک او د مکې عثماني والي د هغې د حمايت اعلان وکړ ، حضرت طلحه او حضرت زبير د مدينې څخه مکې ته راغلل نو هغوئ دواړه هم د بي بي عائشې ﷺ سره سول ، څه وخت په تياري کولو کي ولګېدل او بيا بي بي عائشه ﷺ د خپل ټولو حاميانو سره بصرې ته روانه سوه چي د هغه ځای څخه د بنه مرستي په اخيستلو پر مخ ولاړه سي ، په لاره کي ځيني خلک د هغې څخه جلا هم سول ، خپله بي بي عائشې ﷺ پر يو ځای باندي دا اراده وکړه چي د خپل ارادې څخه په منع کېدو سره بېرته ولاړه سي مګر د مسلمانانو پر جمع کېدو باندي چي د سازشيانو کوم خلک ټاکلي وه هغوئ داسي حالات پيدا کړه چي کاروان بيا پر مخ ولاړ سي ، بصرې ته په نژدې رسېدو سره ام المؤمنين پړاو واچوی ، که څه هم د بصرې امير د هغې د مرستي څخه انکار وکړ مګر عامو خلکو د هغې حمايت وکړ او د هغې په لښکر کي شامل سول .

بي بي عائشه ﷺ د خپل لښکر سره امر بد ته را ورسېدل ، د دې څخه وروسته د بصرې امير هم د خپل لښکر سره هلته راغلی او دواړه لښکر يو بل ته مخامخ سول د دواړو په منځ کي جنګ وسو او د بصرې فوج په ماته خوړلو سره وتښتېدی .

ام المؤمنين ﷺ پر بصرې باندي قبضه وکړه . کله چي حضرت علي ﷺ ته دا حال معلوم سو نو د يو لوی لښکر سره بصرې ته روان سو ، بلي خوا ته پوهانو او د بصيرت خاوندانو د ام المؤمنين او حضرت علي په منځ کي د صلح کولو هڅه پېل کړل ، د ام المؤمنين او حضرت علي دواړو زړونه پاک وه او دواړه پر خپل منځي جګړې باندي سخت خفه وه ، ځکه کله چي صلح کونکو د دواړو پر خلاف د بدګمانۍ ليري کولو سره د صلح ميدان هموار کړ او صلح کول يقيني سول نو په دغه وخت کي عبدالله ابن سبا چي د حضرت علي ﷺ په لښکر کي موجود وو

د خپل پخواني يهودي سازش سره سم متحرک سو او په کومه ورځ چي پر صلح نامې باندي امضاء کېدونکې وه د هغه ورځي په سهار د سپين والي د ښکاره کېدو څخه مخکي لښکر ناڅاپه د ام المؤمنين پر لښکر حمله وکړه او همدارنګه دواړه فوځونه په دغه بدګمانۍ کي په لوېدو سره چي مخالف فريق د صلح کوشش ته په لغته ورکولو سره د جنګ اراده کړې ده، دواړي خواوي په جنګ سوې مګر د دواړو خواوو څخه جذبات را پورته سوي وو ځکه د جنګ په ميدان کي د هغوئ راتګ د دواړو خواوو څخه د جنګ شعلو ګرمولو زيات سبب جوړ سو، سخت جنګ وسو او د جنګ ټول زور د بي بي عائشې ﷺ د اوښ شاوخوا وو، په دغه مناسبت دغه جنګ د جنګ جمل يعني د اوښ د جنګ په نامه ياديږي، د سازشيانو سازش به خلک ګرمول او د مسلمانانو توري به دخپلو ورونو غاړي پرېکولې ، بي بي عائشې ﷺ د جنګ بندولو يو بل کوښښ هم وکړ مګر د عبدالله ابن سبا د خلکو په وجه هغه کوښښ هم ناکام سو، د ام المؤمنين اوښ د جنګ او قتل مرکز جوړ سوی وو، د ټلورو خواوو څخه د بي بي عائشې ﷺ پر کجاوه باندي د غشو باران وو، اهل بصرې په پوره قربانۍ سره هغه غشو ته ځانونه ورکړل او د اوښ شاوخوا د مړو انبار ولګېدی ، په پای کي د حضرت علي ﷺ لښکر يو زور داره حمله وکړه او يو سړي په موقع تر لاسه کولو سره د بي بي عائشې ﷺ د اوښ پښې په توره ووهلې او په چغه وهلو سره اوښ پر سينه کښېناست، د اوښ په را لوېدو سره اهل بصره منتشر سول او جنګ ختم سو .

په دغه جنګ کي د بي بي عائشې ﷺ له خوا دجنګ کونکو شمېر دېرش زره وو چي په هغوئ کي نهه زره د جنګ په ميدان کي په کار راغلل ، ددې څخه وروسته په راتلونکي ورځ حضرت علي ﷺ په بصره کي داخل سو، د ښار ټولو خلکو د هغه په لاس بيعت وکړ او وروسته حضرت علي ﷺ د ام المؤمنين ﷺ په پوره ادب او احترام کولو سره د بصرې څخه روانه کړه او د دواړو ډلو په منځ کي صلح وسوه، دغه پېښه د ۳۶ ھ کال په منځ کي پېښه سوه او دا د يهوديانو د سازش دوهمه حمله وه چي په هغه سره اهل اسلام ته سخت تاوان ورسېدی .

## جنګ صفين

حضرت امير معاويه ﷺ د حضرت عثمان ﷺ له خوا د شام هيواد والي ټاکل سوی وو، نوموړی د حضرت عثمان ﷺ سره کورنۍ او قرابتي تعلق هم درلود ، کله چي حضرت علي ﷺ د نورو هيوادونو او ښارو د خلافت عثماني ټاکل سوي واليان او عاملان برطرف کړل او خپل

معتمد خلک یې د هغوئ پر ځای کښېښول نو د حضرت امیر معاویه د برطرفۍ فرمان هم صادر سو او د هغه د عهدې سنبالولو لپاره یې سهل ابن حنیف واستوی مګر ابن حنیف د لاري څخه را ستون سو او هغه د حضرت امیر معاویه رضی الله عنه څخه د شام د والي توب په سنبالولو کي ناکام پاته سو، همدارنګه دا خبره رامنځته سوه چي حضرت معاویه د حضرت علي رضی الله عنه خلافت تسلیم نه کړ او هغه د بنو امیه د معتمد کېدو په حیثیت سره د خون عثمان د قصاص پر مسئله باندي په ډېره ټېنګه د حضرت علي رضی الله عنه مخالف وو، په دغه وخت کي بیا یهودیانو د سبایانو په صورت کي د سازش جال خپور کړ او د حضرت علي رضی الله عنه او حضرت معاویه رضی الله عنه په منځ کي د اختلاف په پراختیا کي بوخت سول تر دې چي حضرت علي د حضرت معاویه خلاف د شام پر هیواد باندي د لښکر کشۍ اراده وکړه مګر په منځ کي د جنګ جمل واقعه پېښه سوه، د دغه جنګ څخه د فارغه کېدو وروسته د حضرت علي رضی الله عنه په مخکي تر ټولو لوی کار د شام هیواد په واک کي کول او د امیر معاویه څخه بیعت اخیستل وو، نو هغه کوفه خپل دار الخلافه جوړ کړ او دغه مسئلې ته متوجه سو، او شام ته یې د لښکر کشۍ کار پیل کړ، بلي خوا ته امیر معاویه ته دا معلومه سوه نو هغه د مقابلې لپاره تیار سو، د کوفې څخه د حضرت علي رضی الله عنه لښکر روان سو او د فرات پر سند باندي په پوري وتلو سره هغه خوا ته یې پړاو واچوی، بلي خوا ته د دمشق څخه د حضرت معاویه رضی الله عنه فوځ راووتی او د حضرت علي رضی الله عنه دلښکر دمقابلې لپاره روان سو مخکي د دواړو لښکرو د مقدمة الجیش په منځ کي مقابله وسوه ددې څخه وروسته دواړه فوځونه د جنګ مېدان ته په رسېدو سره د یو بل خلاف کمربسته سول، حضرت علي رضی الله عنه دخپل فوځ کمان کوی او حضرت امیر معاویه دخپل فوج سپه سالار وو، بیا ځینو حضراتو دصلح هڅه پیل کړل مګر د سازشیانو جال دواړو خواوو ته خپور سوی وو ځکه دا کوښښ ناکام سو، ددې څخه وروسته مجبورا جنګ پیل سو، تقریبا تر یوه میاشت پوري د جنګ رخ انفرادي وو او د باقاعده جنګ څخه ډډه کېدل، ددې څخه وروسته تر یوې میاشتي پوري انفرادي جنګ هم معطل سو او په دغه وخت کي د صلح هڅي بیا پېل سوې مګر دصلح دغه دوهم کوښښ هم ناکام سو، په پای کي د صفر په اوله نېټه په ۳۷ ھ کي جنګ شروع سو او تر یوې اونۍ زیات ډېر سخت جنګ وسو

د حضرت علي رضی الله عنه د فوج پله درنه وه او د جنګ په اخري ورځ هغه مرحله هم راغلې وه چي حضرت امیر معاویه په پوره توګه ماته خوړلې وه مګر په خاص وخت کي دامیر معاویه خاص مشیر د حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه حکمت عملي سمدستي جنګ بندي وکړه، ددې څخه

وروسته دواړو ډلو دا فیصله وکړه چي د حکم ثالث په ذریعه د قرآن کریم په رڼا کي صلح وکړل سي، د امیر معاویه رضی الله عنه له خوا حضرت عمرو بن العاص رضی الله عنه او د حضرت علي رضی الله عنه له خوا ابوموسی اشعري رضی الله عنه پر ثالث جوړولو باندي اتفاق وسو ، که څه هم د هغه د ځینو اسبابو او عواملو په وجه د هغه تفصیل ډېر اوږد دی ، دغه صلح کامیابه نه سوه او د حضرت علي او امیر معاویه په منځ کي د دغه اختلاف لړۍ ختمه نه سوه مګر دا خطرناک جنګ چي د جنګ صفین په نامه مشهور سو د زیاتي تباهۍ او ویني بهېدو څخه پرته بندي سي دغه جنګ مسلمانانو ته ډېر تاوان ورسوی او د اسلام شان او شوکت یې ډېر مجروح کړ. ویل کیږي چي د دغه حګړې په دوران کي په مجموعي توګه اوویا زره مسلمانان د جنګ په میدان کي بوخت وه.

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دریم فصل)

### یوه واقعه او یوه پیشګوئي

﴿۵۱۷۵﴾: عَنْ أَبِي وَاقِدٍ اللَّيْثِيِّ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَمَّا خَرَجَ

د حضرت ابي واقد لیثي رضی الله عنه څخه روایت دی چي کله رسول الله ﷺ د حنین غزا ته تشریف یووړ

إِلَى غَزْوَةِ حُنَيْنٍ مَرَّ بِشَجَرَةٍ لِلْمُشْرِكِينَ كَانُوا يُعَلِّقُونَ عَلَيْهَا أَسْلِحَتَهُمْ

نو د مشرکانو پر یو درخته تیر سو چي په هغې کي به مشرکانو خپل وسله زړول او د هغې نوم

يُقَالُ لَهَا ذَاتُ أَنْوَاطٍ فَقَالُوا يَا رَسُولَ اللهِ اجْعَلْ لَنَا ذَاتَ أَنْوَاطٍ كَمَا لَهُمْ ذَاتُ

(ذات انواط) وو، ځیني خلکو (چي نوي نوي یې اسلام راوړی وو) عرض وکړ اې د الله رسوله ! زموږ لپاره هم یو ذات انواط وټاکئ لکه څرنګه چي د مشرکانو ذات نواط دی،

أَنْوَاطٍ فَقَالَ رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ سُبْحَانَ اللهِ هٰذَا كَمَا قَالَ قَوْمُ

رسول الله ﷺ وفرمایل: سبحان الله دا خو تاسو داسي سوال وکړ لکه څرنګه چي د موسی علیه

مُوسَى اجْعَلْ لَنَا إِلٰهًا كَمَا لَهُمْ آلِهَةٌ وَالَّذِي نَفْسِي بِيَدِهِ لَتَرْكَبُنَّ سُنَّةَ مَنْ كَانَ قَبْلَكُمْ. رواه الترمذي.

السلام قوم د هغه شخه کړې وو دوئ ویلي وه زموږ لپاره معبود مقرر کړه لکه دوئ لره چي معبودان وي، په هغه ذات دي مي قسم وي چي د هغه په لاس کي زما ساه ده البته تاسو به د هغه خلکو پر لار ځئ کوم چي ستاسو څخه مخکي وه .ترمذي.

**تخریج:** سنن الترمذي ۴۱۲\۴، رقم: ۲۱۸۰.

**تشریح:** انواط د نوط جمع ده چي مصدر دی او معنی یې د زړولو ده، پر هغه درختي باندي وسله زړول کېدل ځکه د هغه نوم ذات انواط سو، او دا نوم د هغه خاص درختي وو،

چي ستاسو څخه مخکي تېر سوی دی: ددې څخه مراد د تېرو امتونو خلک یعني یهود او نصاری وغیره مراد دي ، دحدیث ددغه جملې په ذریعه رسول الله ﷺ د هغه خلکو په اړه د ناراضۍ او بې اطمینانۍ اظهار وکړ، که چیري تاسو خلک داسي خبري او کارونه کوئ نو څه عجیبه خبره نه ده چي دګمراهۍ او حد څخه په وړاندي کېدو سره پر هغه لار باندي ولاړ سي کوم چي تېرو امتونو اختیار کړې وه ، او د الله ﷻ غضب وهلي بندګان ګرځول سوي وه .

## د یو څو فتنو ذکر

﴿۵۱۷۶﴾: وَعَنِ بْنِ الْمُسَيَّبِ قَالَ وَقَعَتْ الْفِتْنَةُ الْأُولَى يَعْنِي مَقْتَلَ عُثْمَانَ

د حضرت بن مسیب رحمه الله څخه روایت دی چي لومړنۍ فتنه واقع سوه ، یعني د حضرت عثمان

فَلَمْ تُبْقِ مِنْ أَصْحَابِ بَدْرٍ أَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتْ الْفِتْنَةُ الثَّانِيَةُ يَعْنِي الْحَرَّةَ فَلَمْ

رضي الله عنه قتل ، نو په جنګ بدر کي ګډون کونکي صحابه کرامو کي هیڅوک پاته نه سو ، بیا دویمه فتنه واقع سوه یعني د حره واقعه،

تُبْقِ مِنْ أَصْحَابِ الْحُدَيْبِيَةِ أَحَدًا ثُمَّ وَقَعَتْ الثَّالِثَةُ فَلَمْ تَرْتَفِعْ وَلِلنَّاسِ طَبَاخٌ . رواه البخاري.

په دې کي د هغه صحابه کرامو څخه هیڅوک پاته نه سو کوم چي په حدیبیه کي شریک سوي وه، بیا دریمه فتنه واقع سوه او پورته نه سول تر څو پوري چي په خلکو کي قوت وو (یعني په هغه کي د صحابه کرامو او تابعینو طاقت ختم سو او په هغوئ کي یو سړی هم پاته نه سو). بخاري.

**تخریج:** صحیح البخاري (فتح الباري): ۸۱\۱۳- ۸۲، رقم: ۷۱۲۱.

**د لغاتو حل:** طباخ: ای احد . هیڅوک .

**تشريح**: د (يعني) لفظ د هغه راوي دي چا چي دا روايت د حضرت ابن مسيب رحمة الله عليه څخه نقل کړی دی، يعني هغه راوي ددغه لفظ په ذريعه وضاحت وکړ چي حضرت ابن مسيب رحمة الله عليه د کومي فتنې ذکر وکړ د هغه څخه مراد کومه فتنه وه ، (فلم يبق ...الخ) دغه الفاظ د ابن مسيب دی چي د هغه څخه مراد دادی چي اصحاب بدر د هغه وخت څخه په حق رسيدلي وه کله چي د اولي فتنې يعني ۳۵ھ کال کي د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت دردناکه پيښنه سوې وه، او بيا په ۳۶ھ کي دوهمه فتنه يعني د حره د جنګ واقعه پيښنه سوه نو تر هغه وخت پوري هيڅ بدري صحابي پاته نه وو، نو د ذکر سوي الفاظو مراد دانه دی چي اصحاب بدر د حضرت عثمان رضي الله عنه د شهادت په فتنه کي وژل سوي وه ، د دغه وضاحت څخه وروسته جمله هم پر دغه الفاظو باندي منطبق کول پکار دي او خلاصه دا چي د بدر په غزا کي د شرکت په برکت الله تعالى بدري صحابه کرام خوندي وساتل او هغوئ بيا د فتنې مخ ونه ليدی، په اصحاب بدر کي تر ټولو په پای کي چي کوم صحابي وفات سوی دی هغه حضرت سعد ابن ابي وقاص رضي الله عنه دی چي د حره د واقعې څخه څو کاله مخکي وفات سوی وو .

حره د مدينې شاوخوا سيمو ته وايي چي د هغه ځمکه سخته ډبرينه او توره وه، يزيد ابن معاويه له خوا چي کوم لښکر پر مدينې باندي حمله کړې وه د هغه جنګ پيل ددغه ځای څخه سوی وو ، ددغه واقعې تفصيل په تېرو صفحو کي بيان سوی دی .

د طباخ معنی د ټينګوالي، قوت او چاغوالي دي، او کله دغه لفظ پر خپل برعکس معنی کي هم استعماليږي د مثال په توګه ويل کيږي چي د فلاني سړي طباخ نسته يعني د هغه عقل نسته ، په هغه کي خير نسته ، د حديث د آخري جملې څخه مراد دادی چي کله هغه فتنه ظاهره سوه نو هغه وخت په خلکو کي يعني په تابعينو کي صحابي پاته نه وو ، په ځينو حاشيو کي ليکلي دي چي ابن مسيب رحمة الله عليه کومي دريمي فتنې ته اشاره وکړه د هغه څخه د ابن حمزه خارجي فتنه خروج مراد دي چي د مروان ابن محمد ابن مروان ابن الحکم په زمانه کي پيښنه سوې وه ، کرماني ليکلي دي چي ددغه فتنې څخه مراد د حضرت عبد الله ابن زبير رضي الله عنه او د اهل مکه خلاف دحجاج ابن يوسف هغه جنګ مراد دی چي د عبد الملک ابن مروان په زمانه کي په ۷۴ھ کي سوی وو، او د هغه په نتيجه کي د کعبې شريفي تخريب هم سوی وو، مګر دا مراد په هغه صورت کي صحيح کېدای نسي کله چي د حديث د آخري جملې مطابق دا وويل سي چي ددغه فتنې پر وخت په دنيا کي هيڅ صحابي موجود نه وو ځکه چي د حجاج بن يوسف د جنګ په وخت کي صحابه کرامو ډېر موجود وه ، ځکه نو اول مراد صحيح دی .

## بَابُ الْمَلَاحِمِ (دوړلو بيان)

ملاحم د ملحمة جمع ده چي معنى يې د سخت جنګ ده، او د اصل په اعتبار دغه لفظ د لحم څخه وتلى دى چي د غوښو معنى يې ده او دلحمة څخه مشتق دى چي د جامې په معنى کي استعماليږي او که چيري ماده اشتقاق يې لحم وګرځول سي نو د قتل او قتال يا ځاى د قتال څخه په ملحمة سره تعبير په دې سبب وي چي قتل او قتال يا د جنګ په ميدان کي د مقتولين د غوښو ټوټې معلوميږي او که چيري دا ومنل سي چي د ملحمة لفظ د لُحمه څخه اخيستل سوى دى نو بيا به دا ويل کيږي چي په يو جنګ کي خلک په خپلو کي داسي موښتي وي لکه څرنګه چي جامه په بدن پوري موښتې وي ځکه قتل او قتال په ملحمة سره تعبير کيږي، مګر اوله خبره مناسب ده او د ملحمة لفظ د جنګ او لوى پيښي په معنى کي هم استعماليږي او په صراح کي ليکلي دي چي د ملحمة معنى د فتنې او لوى جګړې ده.

څرګنده دي وي چي په دغه باب کي د هغه جګړو ذکر دى چي د هغه تعلق په خاصه توګه د يو خاص ډلو سره او خاصو ځايو سره وي ځکه چي د هغه جګړو د يادوني لياره دغه بېل باب قائم سوى دى او په باب الفتن کي د هغو يادونه نه ده سوې ځکه چي په باب الفتن کي د قتل او قتال په لحاظ چي کوم ذکر سوى دى هغه په عامه توګه دى او په اجمال سره دى.

## اَلْفَصْلُ الْأَوَّلُ (لومړى فصل)

### يو څو هغه شيان د کومو چي د قيامت څخه مخکي واقع کېدل ضروري دي

﴿۵۱۷۷﴾: عَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ لَا تَقُومُ

د حضرت ابوهريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : نه به قائميږي

السَّاعَةُ حَتَّى تَقْتَتِلَ فِئَتَانِ عَظِيمَتَانِ تَكُونُ بَيْنَهُمَا مَقْتَلَةٌ عَظِيمَةٌ دَعْوَتُهُمَا

قيامت تر هغه وخته پوري تر څو چي دوې لوى ډلي په خپل منځ جګړه ونه کړي، د دغه ډلو په منځ کي به سخته جګړه وي او د دواړو به يوه دعوا وي (يعني دواړي ډلي به مسلماني وي)

وَاحِدَةٌ وَحَتَّى يُبْعَثَ دَجَّالُونَ كَذَّابُونَ قَرِيبٌ مِنْ ثَلَاثِينَ كُلُّهُمْ يَزْعُمُ أَنَّهُ

او قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو پوري چي دجالان فسادي او چم بازه خلک

پيدا نسي چي پر الله ﷻ او رسول ﷺ باندي دروا غ وايي د دوئ شمير به دديرشو نژدې وي

رَسُولُ اللَّهِ وَحَتَّى يُقْبَضَ الْعِلْمُ وَتَكْثُرَ الزَّلَازِلُ وَيَتَقَارَبَ الزَّمَانُ وَتَظْهَرَ

په هغوئ كي به د هر يوه دا خيال وي چي هغه د الله رسول دی، او قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو پوري چي علم پورته نه سي ، ډيري زلزلې رانه سي او تر څو پوري چي زمانه نژدې رانه سي (يعني بركت د زمانې به ولاړ سي د خلكو عمرونه به كم سي) او تر څو پوري چي

الْفِتَنُ وَيَكْثُرَ الْهَرْجُ وَهُوَ الْقَتْلُ وَحَتَّى يَكْثُرَ فِيكُمُ الْمَالُ فَيَفِيضَ حَتَّى يُهِمَّ

فتنې ظاهري نه سي او تر څو پوري چي هرج يعني قتل واقع نه سي او تر څو پوري چي مال او دولت دومره زيات نه سي چي مال والا به د خيرات اخيستونكى په لټولو كي پريشانه سي

رَبَّ الْمَالِ مَنْ يَقْبَلُ صَدَقَتَهُ وَحَتَّى يَعْرِضَهُ فَيَقُولَ الَّذِي يَعْرِضُهُ عَلَيْهِ لَا

او كوم سړي ته چي صدقه وركوي هغه به ورته وايي چي ما ته ددې حاجت او ضرورت نسته (د امام مهدي په زمانه كي به د خلكو سره دومره مال وي چي هيڅ محتاج به پاته نه سي چي د بل چا څخه زكوة قبول كړي)،

أَرَبَ لِي بِهِ وَحَتَّى يَتَطَاوَلَ النَّاسُ فِي الْبُنْيَانِ وَحَتَّى يَمُرَّ الرَّجُلُ بِقَبْرِ الرَّجُلِ

او قيامت به تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو پوري چي خلك په اوږده او پراخ عمارتونو فخر ونه كړي ، او تر څو پوري چي يو سړی د يو قبر سره په تيريدو سره دا ووايي چي

فَيَقُولُ يَا لَيْتَنِي مَكَانَهُ وَحَتَّى تَطْلُعَ الشَّمْسُ مِنْ مَغْرِبِهَا فَإِذَا طَلَعَتْ وَرَآهَا

كاش! زه دده پر ځای وای ، او تر څو پوري چي لمر د مغرب څخه راونه خيژي او خلك يې

النَّاسُ يَعْنِي آمَنُوا أَجْمَعُونَ فَذَلِكَ حِينَ لَا يَنْفَعُ نَفْسًا إِيمَانُهَا لَمْ تَكُنْ

وويني نو ټول به ايمان راوړي خو دا به هغه وخت وي چي د چا ايمان راوړل به ګټه نه وركوي تر

آمَنَتْ مِنْ قَبْلُ أَوْ كَسَبَتْ فِي إِيمَانِهَا خَيْرًا، وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ نَشَرَ

څو پوري چي هغه مخكي ايمان نه وي راوړی او نه به يو نيك كار كول ګټور وي تر څو پوري

چي د وړاندي څخه يې يو نيک کار نه وي کړی او البته قيامت به په داسي حال کي قائم سي چي

**الرَّجُلَانِ ثَوْبَهُمَا بَيْنَهُمَا فَلَا يَتَبَايَعَانِهِ وَلَا يَطْوِيَانِهِ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ**

دوو کسانو به د رانيولو او خرڅولو لپاره جامه خلاصه کړې وي او هغوئ به نه خرڅه کړې وي او نه به يې رانغښتې وي چي قيامت به راسي ، البته په داسي حال کي به قيامت قائم سي چي يو

**انْصَرَفَ الرَّجُلُ بِلَبَنِ لِقْحَتِهِ فَلَا يَطْعَمُهُ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَهُوَ يُلِيطُ حَوْضَهُ**

سړی به د خپلي اوښي شيدې لوېشلې وي او هغه به يې څښلي نه وي چي په دغه وخت کي به قيامت راسي او البته په داسي حال کي به قيامت راسي چي يو سړی به د خپل حوض جوړونه

**فَلَا يَسْقِي فِيهِ وَلَتَقُومَنَّ السَّاعَةُ وَقَدْ رَفَعَ أُكْلَتَهُ إِلَى فِيهِ فَلَا يَطْعَمُهَا.**

**متفق عليه .**

کوي چي په هغه کي په خپلو حيوانانو باندي اوبه وڅښي او هغه به لا اوبه ورکړي نه وي چي په دغه وخت کي به قيامت راسي او په داسي حال کي به قيامت قائم سي چي يو سړی به خولې ته ګوله پورته کړې وي او هغه به ونه خوري سي چي قيامت به راسي. بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۳\۸۱، رقم: ۷۱۲۱، ومسلم ۱\۱۳۷، رقم: ۲۴۸– ۱۵۷.

**د لغاتو حل**: لقحته: ای ناقة ذات لبن. (شېدې کوونکې اوښه). يلبط: ای يطين ويصلح. (سمونه)

**تشريح** : او د دواړو به يوه دعوه وي: مطلب دا دی چي په خپلو کي د جګړه کونکو ډلو به د دين دعوه وي او د هغه دواړو ډلو خلک به مسلمانان وي ، يا دا چي دواړي ډلي به مسلماني وي او پر حق به دعوه کوي او په هغوئ کي هره ډله بهٔ دا ګمان او عقيده لري چي د دين او ديانت په اعتبار بالکل پر صحيح لار دي .

علماؤ ليکلي دي چي په دغه ارشاد کي د کومو دوو ډلو ذکر سوی دی د هغوئ څخه دحضرت علي او حضرت امير معاويه رضي الله عنهما پيروي او ملګري مراد دي لکه څرنګه چي حضرت علي ﷺ دامير معاويه ﷺ د خلکو په اړه فرمايلي وه چي (اخواننا بغوا علينا) هغه هغوئ زموږ وروڼه دي چي زموږ پر خلاف بغاوت کوي، همدارنګه په يوه روايت کي دا هم نقل سوي دي چي په هغه زمانه کي د حضرت علي ﷺ د لښکر يو سړي د حضرت معاويه ﷺ د لښکر يو سړی بندي کړ او د حضرت علي ﷺ په خدمت کي يې حاضر کړ، يو بل سړي د هغه په

بندي لېدلو سره د هغه پر حال افسوس وکړاو وه يې ويل چي زه بنه پوهېږم چي دا مسلمان دی ، حضرت علي ﷺ چي دا واورېدل نو په ناخوښي سره يې وفرمايل : دا څه وايې دا سړی خو اوس هم مسلمان دی ، نو دغه حديث د خوارجو قول باطل ثابتوي چي وايي د دواړو ډلو يعني حضرت علي او حضرت معاويه رضي الله عنهما د ډلو ملګري کافران دي ، همدارنګه ددغه حديث په ذريعه د روافضو دا قول هم باطلېږي چي وايي د حضرت علي ﷺ مخالفين کافران دي، د هغوئ شمېر به دېرشو ته نژدې وي: همدارنګه په يو حديث کي تېر سوي دي چي د هغوئ شمېر به دېرش وي او دلته دهغوئ شمېر دېرشو ته نژدې فرمايل سوی دی نو کېدای سي چي وروسته کوم حديث تېر سوی دی هغه دلته د نقل کونکي حديث څخه وروسته وي ، يعني په دې اړه چي مخکي چي رسول الله ﷺ ته کومه وحي راغلې وه او هغه ته د اجمال او ابهام په توګه کومه خبره معلومه سوې وه هغه رسول الله ﷺ بيان کړل چي د هغوئ شمېر به دېرشو ته نژدې وي مګر بيا وروسته د دوهمي وحي په ذريعه دا شمېر مقيد او متعين کړل سو نو ددغه وحي د راتلو څخه وروسته چي کوم حديث رسول الله ﷺ بيان کړ په هغه کي يې وفرمايل چي د هغوئ شمېر به دېرش وي ، همدارنګه د دېرشو شمېر والا دغه حديث د هغه روايت خلاف نه دی چي هغه طبراني د حضرت ابن عمر ﷺ څخه نقل کړی دی چي: (لا تقوم الساعة حتى يخرج سبعون كذابا)، ځکه چي د حضرت ابن عمر ﷺ د روايت مقصد محض د هغه درواغجنانو کثرت ظاهرول دي او دهغوئ يو خاص شمېر يې نه دی بيان کړی يا دا چي د اوويا څخه دېرش به هغه وي چي د نبوت دعوه وکړي او پاته به درواغجن هم وي چي دنبوت دعوه نه کوي او يو احتمال دا هم دی چي د اوويا شمېر د هغه دېرش څخه پرته دی او همدارنګه د ټولو مجموعي شمېر سل دی.

تر څو چي علم پورته نه کړل سي: دلته د علم څخه مراد هغه خاص علم دی چي په شريعت کي ګڼه ورکونکی علم ورته ويل کيږي او هغه د قرآن او حديث او د هغه د متعلقاتو علم دی او هغه ته د دين علم هم ويل کيدای او دعلم د پورته کېدو څخه مراد د اهل سنت والجماعت د علماؤ د دنيا څخه رخصت کېدل دي کله چي علم حامل او علم رسونکي په دنيا څخه پورته کړل سي نو علم به هم له دنيا څخه پورته کړل سي نو د آخري زمانې د نښو څخه يوه نښه دا هم ده چي هغه وخت به مخلص او باعمله او حقيقي علماء رخصت سي او په دنيا کي به د جاهل او بې علم خلکو زياتوب سي ځکه ويل سوي دي چي د عالم مرګ د عالم مرګ دی .

تر څو چي زلزلې ډېري نسي: دلته د زلزلو څخه مراد يا خو واقعي زلزلې دي چي د مخکي بنو رېدل او زلزلې به ډېري سي ، يا دلته د زلزلو لغوي معنی مراد ده چي ډول ډول آفتونه او

بلاوي به نازل سي او نوي نوي پيښبي به دانسان مال او ځان ته تاوان رسوي ،

تر څو چي زمانه نژدې نسي: ددې څخه د حضرت امام مهدي مبارکي زمانې ته اشاره کول مقصد دي هغه وخت به تهول د مځکي مخ د امن، او خوشحالۍ فضاء جوړه سي او د خلکو ژوند به په ډېر اطمينان او سکون سره تيرېږي ځکه د وخت رفتار به تېز معلومېږي او د مصيبت او سختۍ زمانه چي هر څومره مختصره وي مگر ډېره اوږده به معلومېږي لکه د عيش او آرام زمانه چي څومره اوږده وي بيا هم ډېره لنډه معلومېږي .

ويكثر الهرج وهو القتل: دلته د (هو القتل) الفاظ د راوي دي چي د هغه په ذريعه د هرج وضاحت سوى دى چي ددغه لفظ څخه مراد د قتل او قتال واقع کېدل دي چي د فتنو په سبب په وجود کي راځي .

حتى يهم رب المال: په دې اړه څو قولونه دي يو خو دا چي د دغه لفظ د ياء په پېښ او دهاء په زېر سره ويل کيږي او رب د يهم د مفعول کېدو په وجه منصوب وګرځول سي، په دغه صورت کي د يهم فاعل به فقدان وي، او من يقبل الصدقت مضاف محذوف دى، دغه قول زيات مشهور دى او ددې مطابق معنى به دا وي چي هغه وخت کله چي زمانه نژدې سي د خلکو سره به د مال او دولت زياتوب سي چي د صدقې او خيرات مال اخيستونکى به نه وي چي د هغه سړي پيدا کول به سخت وي چي د صدقې او خيرات مال قبول کړي ، يعني يو شتمن او مالدار سړى به په فقير پسي ګرځي چي هغه ته د صدقې او خيرات مال ورکړي مگر په ټولنه کي به داسي خلک ډېر کم وي تر دې چي د هغه کس پيدا کول به ډېر سخت او د پرېشانۍ کار وي چي د صدقې او خيرات مال قبول کړي يعني شتمن سړى به په فقير او مسکين پسي ګرځي ددې لپاره چي د صدقې او خيرات مال هغه ته ورکړي مگر په ټولنه کي د مسکينانو او اړو کسانو د کمۍ په وجه به په ډېر مشکل سره هغه ته فقير او مسکين تر لاسه سي ، دوهم قول دا دى چي (يهم) د هم څخه او په معنى د قصد او ارادې دى د ياء په زور او دهاء په پېښ سره وويل سي او رب مرفوع وګرځول سي نو په دغه صورت کي به د رب المال د يهم فاعل وي او من يقبل د هغه مفعول ، همدارنګه د عبارت معنى به دا وي چي هغه وخت چي د قيامت زمانه نژدې سي ستاسو به مال او دولت دومره زيات سي تر دې چي يو شتمن به په يو داسي سړي پسي ګرځي چي هغه ته د صدقې او خيرات مال ورکړي .

او دريم قول دا دى چي د يهم لفظ فعل متعدي وي چي د هغه معنى د غمجن کېدو ده، په دغه صورت کي به د يهم لفظ د ياء په زور سره او دهاء په پېښ سره ويل کيږي او رب به منصوب

گرځول کیږي، همدارنګه د هغه عبارت معنی به دا وي چي یو داسي فقیر او مفلس پیدا کول چي د صدقې او خیرات مال قبول کړي شتمن سړی به په غم کي اخته کړي.

تر څو چي د ماڼیو په جوړولو فخر شروع نه سي: یعني خلک به محض د هستوګني د اړتیا لپاره یا د یو نیک مقصد لپاره لوی لوی ماڼي جوړوي بلکه هغه لوی لوی ماڼی به محض د خپل شان او شوکت د اظهار او فخر لپاره وي، تر دې چي هغوئ به د دغه مقصد پوره کولو لپاره د مسجدو او هدیرو د ورانولو څخه هم پرهېز نه کوي او د هغه پر ځای به د عیش او عشرت، سیر او تفریح مرکزونه او باغونه جوړوي.

او کله چي یو سړي پر قبر باندي تیریږي: مطلب دادی چي یا خو په دیني معاملاتو کي د غم او کثرت په وجه یا د آفاتو د زیاتوب په وجه د قبرو په لېدو سره حساس زړونه او پر آخرت باندي یقین لرونکي خلک دا ویل پیل کړي چي کاش موږ په دنیا کي نه وای او په دغه قبرو کي پراته وای چي موږ د دغه آفتونه او مصیبتونه نه وای لېدلي.

تر څو چي لمر د لویدیځ د خوا څخه را ونه خیژي: د دغه جملې وضاحت به په باب علامات بین یدي الساعة کي راسي، دلته یوازي دا ښودل کافي دي چي په کومه ورځ لمر د لوېدیځ څخه راوخیژي په هغه ورځ به د توبې دروازه بنده سي، د دې څخه وروسته به د چا توبه نه قبلیږي لکه څرنګه چي په خپله په حدیث کي فرمایل سوي دي.

او د هغوئ ایمان راوړل به ګټه نه ورکوي: ځیني حضراتو د دغه عبارت مفهوم دا بیان کړی دی چي کله لمر د لوېدیځ څخه راوخیژي نو هغه وخت به د توبې دروازه بنده سي نو هغه وخت یا د هغه وخت څخه وروسته به د چا ایمان راوړل چي تر دې مخکي یې ایمان نه وي راوړی او د یو چا نیکي کول چي تر مخه یې نیکي نه وې کړې هیڅ ګټه نه کوي.

څرګنده دي وي چي دلته د نیکۍ څخه مراد توبه ده یعني څرنګه چي په هغه ورځ د هغه سړي ایمان ګټه نه ورکوي همدارنګه په هغه ورځ به د هغه د ګناهو څخه توبه کول هم ګټه نه ورکوي، د دې څخه معلومه سوه چي په (او کسبت في ایمانها خیرا) کي د او لفظ د تنویع لپاره دی چي د هغه مطلب دادی چي رسول الله ﷺ لکه چي دا وفرمایل چي په هغه ورځ به نه د شرک څخه توبه کول په کار راځي او نه به د ګناهو څخه توبه کول ګټه کوي.

چي دوو کسانو به خپله جامه خلاصه کړې وي: دلته د دواړو خوا ته د جامو خلاصولو اضافت په دې اعتبار دی چي په هغوئ کي به یو سړی (پلورونکی) د هغه جامې مالک وي او هغه دوهم سړي چي (رانیونکی دی) هغه به د هغه جامې رانیونکي وي نو په دې اعتبار د جامې

اضافت هغه ته هم سوی دی .

د حديث د اخري برخي خلاصه داده چي قيامت به ناڅاپه راځي ، ټول خلک به په خپلو کارو کي بوخت وي چي ناڅاپه به دقيامت په پنجه کي راګېر سي، چا ته به دومره مهلت نه وي چي هغه د خوړلو لپاره ګوله په لاس کي پورته کړې وي هغه خولې ته یوسي ، څرګنده دي وي چي دقيامت ناڅاپه راتلو څخه مراد مخکي د شپيلۍ ناڅاپه پوکل دي چي په هغه اواز سره به ټول خلک مړه سي مګر مخکي به د قيامت ټولي نښي وويني .

## د ځينو قومو د جنګ پيشګوئي

﴿۵۱۷۸﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى تُقَاتِلُوا قَوْمًا نِعَالُهُمُ الشَّعَرُ وحَتّٰى تُقَاتِلُوا التُّرْكَ صِغَارَ الْأَعْيُنِ حُمْرَ الْوُجُوهِ ذُلْفَ الْأُنُوفِ كَأَنَّ وُجُوهَهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ. متفق عليه .

د حضرت ابوهريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت به تر هغو پوري نه راځي تر څو پوري چي تاسو د هغه قوم سره جګړه ونه کړئ چي د هغوئ څپلۍ به د وريښتانو لرونکو پوست څخه وي او تر څو پوري چي تاسو د هغه ترکو سره ونه جنګيږي چي د هغوئ سترګي به کوچنۍ کوچنۍ ، سره مخونه او پيتي پزي وي، ګويا د هغوئ مخونه به د غبرګو پوستو د ډال په ډول وي .بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\١٠٤، رقم: ٢٩٢٨، ومسلم ١٤\٢٢٣٣. رقم: ٦٢– ٢٩١٢.

**د لغاتو حل**: المِجان: الترس. (سپر)

**تشريح** : د ترکو څخه مراد هغه خلک دي چي د هغوي نسب د يافث بن نوح څخه را روان دی ، ددغه خلکو د مورث اعلی نوم ترک وو ځکه نو دهغه ټول قوم ته ترک ويل کيږي، دا هغه قوم دی چي هغوي ته مګولين يا تاتاري هم ويل کيږي .

مَجَان: په اصل کي د مجن جمع ده چي معنی يې د سپر ده، ددغه قوم د خلکو مخونو ته د سپر سره تشبيه په دې اعتبار ورکړل سوې ده چي دهغوئ مخونه پلن وي او دهغوئ مخونه په ګولايي سره خپاره او د غوښو څخه ډک وي، مګر د هغوئ د مخونو ګولايي او دغوښو څخه په ډکېدو سره د سپر سره تشبيه ورکړل سوه چي د پوست څخه جوړ سوی وي .

﴿۵۱۷۹﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته پوري نه راځي

حَتّٰى تُقَاتِلُوا خُوزًا وَكَرْمَانَ مِنَ الْأَعَاجِمِ حُمْرَ الْوُجُوهِ فُطْسَ الْأُنُوفِ صِغَارَ

تر څو پوري چي تاسو د خوزاو كرمان سره ونه جنګيږي چي د عجميانو څخه دی، او د هغوئ مخونه به سره وي چيت پزي كوچنی.

الْأَعْيُنِ وُجُوهُهُمُ الْمَجَانُّ الْمُطْرَقَةُ نِعَالُهُمُ الشَّعَرُ. رواه البخاري و في رواية له عن عمرو بن تغلب عراض الوجوه.

ستركي مخونه به يې غبرګ ډالونه وي د هغوئ څپلی به ويښتان لرونكي وي.. بخاري او د بخاري په يو بل روايت كي د عمروبن تغلب دا الفاظ دي چي د هغوئ مخونه به پلن وي.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۶\۶۰۴، رقم: ۳۵۹۰.

**د لغاتو حل**: خُوزا: ای الجيل من الناس واسم لجميع بلاد خوزستان.

**تشريح**: خوز د هغه قوم نوم دی كوم چي په خوزستان كي اوسيږي، او كرمان د يو مشهور ښار نوم دی چي په ايران كي واقع دی.

### د يهوديانو سره د فيصله كونكي جنګ پيشګوئي

﴿۵۱۸۰﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ

د حضرت ابو هريرة رضی اللہ عنہ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: قيامت به تر هغه وخته

السَّاعَةُ حَتّٰى يُقَاتِلَ الْمُسْلِمُونَ الْيَهُودَ فَيَقْتُلُهُمُ الْمُسْلِمُونَ حَتّٰى يَخْتَبِئَ

پوري نه راځي تر څو پوري چي مسلمانان به د يهودو سره جنګ ونه كړي، مسلمانان يهود ووژني تر دې چي

الْيَهُودِيُّ مِنْ وَرَاءِ الْحَجَرِ وَالشَّجَرِ فَيَقُولُ الْحَجَرُ أَوِ الشَّجَرُ يَا مُسْلِمُ يَا

د ډبرې لاندې يا د درختې شاته به (يهودي) پټيږي او ډبره او درخته به دا وايي اې مسلمانه!

عَبْدَ اللّٰهِ هٰذَا يَهُودِيٌّ خَلْفِي فَتَعَالَ فَاقْتُلْهُ إِلَّا الْغَرْقَدَ فَإِنَّهُ مِنْ شَجَرِ الْيَهُودِ. رواه مسلم.

اې د الله بنده! دې خوا ته راسه زما په خوا کې يهودي پټ سوی دی او قتل يې کړه خو غرقد درخته (به داسي نه وايي) ځکه چي دا د يهوديانو درخته ده. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم ۲۲۳۹/۱۴، رقم: ۸۲– ۲۹۲۲.

**تشريح**: غرقد د يوې درختي نوم دی چي اغزي لرونکې ده، د مدينې د هديرې نوم جنت البقيع اصل نوم بقيع الغرقد ځکه دی چي چيري هديره ده مخکي دا د غرقد خطه وه، خلاصه دا چي کله مسلمانان د يهوديانو خلاف فيصله کونکی جنګ کوي او پر هغوئ غلبه تر لاسه کوي نو هغه وخت به يو يو يهودي د درختو او ډبرو لاندي پټيږي چي د مسلمانانو د وهلو څخه وساتل سي مګر د کومي ډبري او درختي لاندي چي پټ سي هغه به په چغه مسلمان ته وايي چي راسه او زما تر شا يهودي پټ سوی دی، مګر هغه وخت به غرقد يو داسي درخته وي چي دنورو درختو پر خلاف خپل شا ته پټ يهودي به نه ظاهروي بلکه هغوئ ته به پناه ورکړي او مسلمانانو ته به د هغه معلومات نه ښيي.

پاته سوه دا خبره چي دنورو درختو پر خلاف د غرقد رويه داسي ولې ده؟ نو کېدای سي چي د غرقد د يهوديانو سره يو خاص نسبت او تعلق وي چي د هغه حقيقت الله ﷻ او د هغه رسول ته معلوم دی. ځينو حضراتو ليکلي دي چي په دغه حديث کي د يهوديانو د عبرتناک حشر چي کومه وړاند وينه ذکر سوې ده، په اخره زمانه کي به د دجال ظاهرېدو څخه وروسته دا وړاند وينه پوره سي، هغه وخت به يهوديان د دجال د تابع او فرمانبردار کېدو په حيثيت او د هغه په مرسته د مسلمانانو پر خلاف جنګ کوي وروسته به مسلمانان د الله ﷻ په مرسته ديهوديانو فتنه د تل لپاره ختم کړي.

## د يو قحطاني کس په باره کي پيشګوئي

﴿۵۱۸۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتّٰى يَخْرُجَ رَجُلٌ مِنْ قَحْطَانَ يَسُوقُ النَّاسَ بِعَصَاهُ. متفق عليه.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : قيامت به تر هغه وخته پوري نه راځي تر څو پوري چي قحطان څخه يو سړی پيدا نه سي چي په خپل لکړي سره به خلک پر يو طرف بيايي، بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ٦\٥٤٥، رقم: ٣٥١٧، ومسلم ۴\۲۲۳۲، رقم: ٦٠ – ٢٩١٠.

**تشريح** : قحطان هغه قوم ته وايي چي په هغه زمانه کي د يمن څخه تر عمان پوري اباد وه، دغه قوم په اصل کي د ارفخشه بن سام بن نوح د اولاد څخه د هغه ښاخ نسل دی چي د هغوئ مورث قحطان وو، نو د دغه نسل خلکو ته قحطان ويل کيږي، د يمن خلک د دغه نسل سره تعلق لري.

چي خلک به په لکړه شړي: ددې څخه مراد هغه سړي مکمل تسلط او اقتدار دی چي خلک به د هغه اطاعت او پيروي کوي او هغه به په اتفاق سره خپل سردار ګڼي او هغه سړی به د جابرانه تسلط او تسخير په ذريعه هغه خلک داسي په واک کي کړي چي هيڅوک به د هغه د اطاعت څخه د ګرځېدو همت نسي کولای، او يو احتمال دادی چي دلته د شړلو څخه مراد په حقيقي توګه شړل دي يعني پر کومو خلکو چي غلبه تر لاسه کوي هغه به د خپل لکړي په ذريعه داسي شړي لکه څرنګه چي څاروي شړل کيږي، ځيني حضرات وايي چي په دغه حديث کي د کوم قحطاني سړي ذکر سوی دی هغه کېدای سي هغه سړی وي چي په راتلونکي حديث کي د جهجاه په نامه ياديږي.

《۵۱۸۲》: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَذْهَبُ الْأَيَّامُ وَاللَّيَالِي حَتَّى يَمْلِكَ رَجُلٌ يُقَالُ لَهُ الْجَهْجَاهُ، وفي رواية حتي يملك رجل من الموالي يقال له الجهجاه. رواه مسلم.

د حضرت ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : شپه او ورځ (يعني زمانه) به نه تيريږي تر څو پوري چي پاچا به سي يو سړی چي د هغه نوم به جهجاه وي، او په يوه روايت کي داسي دي تر هغو چي پاچا به سي يو سړی چي د غلامانو څخه به وي او جهجاه به ورته ويل کيږي. مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\۲۲۳۲، رقم: ٦١ – ٢٩١١.

**تشريح**: موالي د مولی جمع ده چي معنی يې د غلام ده، لفظ د جهجان په ځينو نسخو کي په دوو هاوو سره منقول دی او په ځينو نسخو کي د آخري هاء څخه پرته جهجا منقول دی.

## د کسرئ د خزانې په باره کې پیشګوئي

﴿۵۱۸۳﴾: وَعَنْ جَابِرِ بْنِ سَمُرَةَ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ لَتَفْتَحَنَّ عِصَابَةٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ كَنْزَ آلِ كِسْرَى الَّذِي فِي الْأَبْيَضِ . رواه مسلم .

د حضرت جابر بن سمرة رضي الله عنه څخه روایت دی چې ما د رسول الله ﷺ څخه دا اوریدلي دي چې د مسلمانانو یو ډله به د کسرئ (د ایران پاچا) خزانه فتح کړي چې سپین محل کې به وي . مسلم.

**تخریج**: صحیح مسلم ۴\۲۲۳۷، رقم: ۷۸- ۲۹۱۹.

**تشریح**: په آل کسرئ کې د آل لفظ زائد دی یا د دغه لفظ څخه د کسرئ کورنۍ او رعیت مراد دی، لفظ د کسرئ په اصل کې د خسرو معرب دی چې په هغه زمانه کې د فارس (ایران) د پاچا لقب خسرو خاقان ، د مصر د پاچا لقب فرعون، د یمن د پاچا لقب قیل او د حبش د پاچا لقب نجاشي وو .

ابیض په اصل کې د یو محل نوم دی چې په مدائن کې واقع دی او هغه ته به اهل فارس سفید کوشک وایه، د دغه ښار د مسلمانانو کېدو څخه وروسته د دغه محل پر ځای مسجد جوړ کړل سو چې اوس هم موجود دی او رسول الله ﷺ د کسرئ د خزانې تر لاسه کولو لپاره چې کومه وړاند وینه فرمایلې وه هغه د حضرت عمر رضي الله عنه د خلافت په زمانه کې پوره سوه او فاتح مسلمانانو هغه خزانه ښکاره کړه .

## د روم او فارس د فتح پیشګوئي

﴿۵۱۸۴﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ هَلَكَ كِسْرٰى لَا يَكُونُ كِسْرَى بَعْدَهُ وَقَيْصَرٌ لَيَهْلِكَنَّ ثُمَّ لَا يَكُونُ قَيْصَرٌ بَعْدَهُ وَلَتُقْسَمَنَّ كُنُوزُهُمَا فِي سَبِيلِ اللّٰهِ وَسَمَّى الْحَرْبَ خَدْعَةً. متفق علیه.

د حضرت ابو هریرة رضي الله عنه څخه روایت دئ چې رسول الله ﷺ وفرمایل : کسرئ به هلاک سي او د هغه څخه وروسته به هیڅ کسرئ پاته نه سي او البته قیصر (د روم پاچا) به هلاک سي او بیا به هیڅ قیصر نه وي او د دغه دواړو پاچاهانو خزانې به د الله جل جلاله په لار کې وویشل سي او رسول الله ﷺ د جنګ نوم دوکه او چم

اينبي دی . بخاري او مسلم.

**تخريج**: صحيح البخاري (فتح الباري): ۱۵۷\۶، رقم: ۳۰۲۷، ومسلم ۲۲۳۷\۴، رقم: ۷۶ – ۲۹۱۸.

**تشريح**: کسری هلاک سو : دغه جمله خبريه ده ددې څخه دا مفهوم مراد دی چي ډېر ژر به د کسری هيواد تباه او برباد سي . ددې خبري ادا کولو لپاره د ماضي صيغه په دې اعتبار استعمال سوې ده چي ددې خبري واقع کېدل يو يقيني امر دی يا د ماضي صيغه استعمالول د دعاء او نېک فالي په توګه وو،

بل کسری به نه وي: يعني د رسول الله ﷺ په زمانه کي چي کوم کسری وو د هغه په اړه رسول الله ﷺ دا وفرمايل چي بس دا آخري کسری دی او د هغه څخه وروسته به بل کسری نه وي.

څرګنده دي وي چي رسول الله ﷺ دا خبره هغه وخت وفرمايل کله چي رسول الله ﷺ ته دا خبره معلومه سوه چي رسول الله ﷺ پر دعوت اسلام باندي مشتمل خپل مکتوب د يو کسری قاصد په ذريعه استولی وو، هغه کسری د کبر له موخي په ټيرلو سره رېزه رېزه کړ.

و سمي الحرب خدعة: او رسول الله ﷺ د جنګ نوم دوکه او فريب کښېښود، دغه جمله پر قال رسول الله..الخ، باندي عطف ده يعني راوي د رسول الله ﷺ ارشاد نقل کولو څخه وروسته دا وويل چي د سمي الحرب خدعة خلاصه داده چي رسول الله ﷺ دا زيری بيان کړ چي مسلمانانو ته به د قيصر او کسری پر هيوادو فتح تر لاسه سي او هغوئ ته به د هغوئ اموال او جائيداد او خزانو باندي قبضه تر لاسه سي نو د ټولو په ذهن کي دا خبره راغلې وي چي دغه شيان بېله جنګ څخه نه تر لاسه کيږي او جنګ يو داسي شی دی چي د دوکې او فريب محتاج دی ځکه رسول الله ﷺ خپل صحابه کرام خبردار کړل چي د جنګ په اړه په دغه وهم کي مه لويږئ چي جنګي تاکتيک او فريب ، خيانت او بدخيانتي د ډول څخه دي بلکه دا حقيقت په ذهن کي ساتل چي د دښمنانو سره د جنګ په صورت کي د حکمت عملي په توګه داسي فريب او حيلې اختيارول ضروري وي چي په جنګ کولو او طاقت او مرسته تر لاسه کولو کي لوی دخل لري د مثال په توګه پر دښمن باندي د رعب اچولو لپاره دا ضروري وي چي د هغه پر ذهن باندي خپل طاقت د زياتوب او د اسلحې د زياتوب رعب واچوي،

ددغه مقصد لپاره فرضي کاروايي او دروغ رېښتيا بيانونو مرسته اخيستل کيږي، يا د جنګ په ميدان کي د دښمن په سترګو کي د خاورو اچولو لپاره د جنګ د ميدان څخه ليري او وروسته کېدل چي د دښمن دا وګڼي چي مقابل د جنګ تاب نه درلودو په وجه د مېدان په پرېښودو سره تښتېدلی دی او کله چي دښمن په دغه غلط فهمۍ کي سي نو د يوې خوا څخه پر هغه حمله

کول او همدارنګه نوري ډېري کاروایاني داسي حیلې دي چي دهغو د جنګي حکمت عملي په توګه اختیارولو اجازه ده مګر څرګنده دي وي چي د عهد ماتولو په هیڅ حالت کي اجازه نسته، کله چي عهد او قول وکړل سي نو په هغه عمل په هر صورت ضروري دي ، او د معاهدې ماتول هیڅکله صحیح نه دي .

لفظ دخدعة که څه هم د خاء په پېښ سره نقل سوی دی او په زور سره هم، همدارنګه د دال په جزم او پیښ سره هم نقل کیږي او په زور ره هم ، مګر دغه لفظ د خاء په زور او دال په جزم سره زیات فصیح دی .

﴿۵۱۸۵﴾: وَعَنْ نَافِعِ بْنِ عُتْبَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تَغْزُونَ جَزِيرَةَ الْعَرَبِ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ فَارِسَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ تَغْزُونَ الرُّومَ فَيَفْتَحُهَا اللّٰهُ ثُمَّ تَغْزُونَ الدَّجَّالَ فَيَفْتَحُهُ اللّٰهُ. رواه مسلم.

د حضرت نافع بن عتبه رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل : زما څخه وروسته به تاسو د جزیره عرب سره غزا کوئ او الله تعالی به هغه ستاسو په لاس فتح کړي بیا به تاسو د فارس سره غزا کوئ او الله تعالی به پر هغو هم فتح درکړي بیا به تاسو د روم سره جنګیږي پر هغو به هم الله تعالی فتح درکړي بیا به تاسو د دجال سره غزا کوئ او بیا به پر هغه هم تاسو ته الله تعالی فتح درکړي. مسلم

**تخریج**: صحیح مسلم: ۱۴\۲۲۲۵، رقم: ۳۸- ۲۹۰۰.

**تشریح**: د عربي نړۍ هغه خطه چي هغه په جزیرة العرب سره تعبیر کیږي د پخوانیو جغفرافیه پوهانو مطابق نجد او حجاز (همدارنګه د دوو مقدسو ښارو لکه مکه او مدینې) ، یمامه، یمن او عروض باندي مشتمل دي، ددغه خطې په جنوب کي بحر عرب، په مشرق کي خلیج عربي او خلیج عمان ، په مغرب کي بحر احمر دی، ددې په شمال کي درياء فرات بهیږي، ددغه خطې د هغه شمالي خشکۍ سر تر ډېره حده پوري پرېکوي او په دې وجه دغه خطې ته مجازا جزیرة العرب ویل کیږي کنه په اصل کي دغه خطه په جزیره نماء عرب سره نومول کیږي، هغه اهل عرب جزیره نما ته هم توسعا جزیره وايي .

د جزیره عرب سره جنګ کیږي: مطلب دادی چي دا وخت زما په ژوند کي د جزیره العرب کومي سیمي چي د اسلام د رڼا څخه محرومي سوي دي زما څخه وروسته دهغوئ تیاره هم

ختميږي ، ځيني سيمي به د تبليغ په ذريعه د كفر د تيارو څخه ووځي او پاته سيمو سره به تاسو جنګ كوئ، او د الله تعالى د مرستي او نصرت په ذريعه به فتح تر لاسه كوئ ، همدارنګه هر ځلور خواته به د اسلام بېرغ لوړ وي او په ټوله جزيره عرب كي به يو كافر هم پاته نسي .

د دجال سره به جنګ كوئ: مطلب دادى چي دجال كوم وخت ظاهر سي نو په خپل طلسماتي طاقت او مكر و فريب په ذريعه به لوى شور جوړ سي او پر ځينو هيوادو به واک تر لاسه كړي مګر كله چي تاسو د هغه مقابلې ته راووځئ نو الله تعالى به هغه مقهور مغلوب كړي او كوم هيواد او سيمه چي د هغه په قبضه كي راغلي وي هغه به بېرته ستاسو په واک او قبضه كي راسي همدارنګه به دجال د حضرت عيسى عليه السلام په لاس مړ سي چي د مسلمانانو لپاره به د اسمان څخه راكښته سي . څرګنده دي چي په دغه ارشاد كي د رسول الله ﷺ خطاب صحابه كرامو ته دى مګر اصل مخاطب ټول امت دى .

### هغه شپږ شيان چي د قيامت څخه مخكي واقع كېدل يې ضروري دي

﴿۵۱۸۶﴾: وَعَنْ عَوْفِ بْنِ مَالِكٍ قَالَ أَتَيْتُ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي

د حضرت عوف بن مالک رضي الله عنه څخه روايت دى چي زه د تبوک په غزا كي د رسول الله ﷺ په

غَزْوَةِ تَبُوكَ وَهُوَ فِي قُبَّةٍ مِنْ أَدَمٍ فَقَالَ اعْدُدْ سِتًّا بَيْنَ يَدَيِ السَّاعَةِ مَوْتِي ثُمَّ

خدمت كي حاضر سوم ، هغه وخت رسول الله ﷺ د پوست په خيمه كي وو ، رسول الله ﷺ وفرمايل: د قيامت مخكي تاسو شپږ شيان وشميرئ : (۱) لومړى زما مرګ (۲) بيا

فَتْحُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ ثُمَّ مُوتَانٌ يَأْخُذُ فِيكُمْ كَقُعَاصِ الْغَنَمِ ثُمَّ اسْتِفَاضَةُ

بيت المقدس فتح كول (۳) بيا عامه وبا چي په تاسو كي به د پسونو د ناروغى په ډول خپره سي

الْمَالِ حَتَّى يُعْطَى الرَّجُلُ مِائَةَ دِينَارٍ فَيَظَلُّ سَاخِطًا ثُمَّ فِتْنَةٌ لَا يَبْقَى بَيْتٌ

(۴) بيا د مال دومره زياتوالى كه يو سړى ته سل ديناره وركړل سي نو هغه به يې سپک ګڼي او پر هغه به ناراضه وي (۵) بيا د فتني ظاهريدل چي

مِنَ الْعَرَبِ إِلَّا دَخَلَتْهُ ثُمَّ هُدْنَةٌ تَكُونُ بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ بَنِي الْأَصْفَرِ فَيَغْدِرُونَ

د هغه څخه به د عربو هيڅ يو كور پاته نه سي (۶) بيا صلح چي ستاسو او د بني الاصفر تر مينځ

به وي، بیا به رومیان خیانت (غدر) وکړي

فَيَأْتُونَكُمْ تَحْتَ ثَمَانِينَ غَايَةً تَحْتَ كُلِّ غَايَةٍ اثْنَا عَشَرَ أَلْفًا . رواه البخاري.

او ستاسو په مقابله کي به د اتیا بیرغو لاندي راسي چي په هغه کي به تر هر بیرغ لاندي دوولس زره کسان وي. بخاري.

**تخریج**: صحیح البخاري (فتح الباري): ٦/ ٢٧٧، رقم: ٣١٧٦.

**د لغاتو حل**: مُوتان: ای وباء. (وباء). قُعلص الغنم: هو داء یاخذ الغنم فلایلبثها ان تموت. بني الاصفر: هم الروم (رومیان). غاية: ای راية. (رایه او نظر).

**تشریح**: په بیت المقدس کي د مقدس لفظ د میم په زور، د قاف په جزم او دال په زېر سره د مجلس وزن دی مګر د مشکوة په یوه نسخه کي دغه لفظ د میم په پېښ، د قاف په زور او د دال په تشدید سره د معظم پر وزن منقول دی.

قعاص د څارویو یوې ناروغې ته وایي چي په عامه توګه د څارویو په سینه کي وي او هغه سمدستي هلاکوي، رسول الله ﷺ چي دلته دکومي عامي وباء وړاند وینه وفرمایل او هغه ته د څارویو ناروغي یعني قعاص سره تشبېه ورکړل ددې څخه مراد د طاعون هغه وباء ده چي دحضرت عمر ﷺ دخلافت په زمانه کي پیدا سوه او د هغه په وجه په درو ورځو کي اوویا زره کسان هلاک سول، هغه وخت به د مسلمانانو فوجي مرکز په عمواس کي وې چي بیت المقدس ته نژدې واقع یو ځای دی، په دغه مناسبت سره هغه وباء ته طاعون عمواس ویل کیږي، دا اول طاعون دی چي د اسلام په زمانه کي راغلی او د هغه په وجه دومره سخت ځاني تاوان وسو.

بین الاصفر رومیانو ته ویل کیږي ځکه چي دغه خلکو د کوم نسل سره تعلق درلودی نو هغوئ د مورث اعلی روم بن عیص بن یعقوب بن اسحاق بن ابراهیم، رنګ زړ او سپین ته مائل وو او دغه بدني رنګ په ټول کي تر لاسه کیږي.

غاية: هغه نښي یا بېرغ ته وایي چي دلښکر د مشر سره وي او په ځینو روایتو کي دغه لفظ د یاء پر ځای په ب سره یعني غابة منقول دی چي معنی یې د ځنګل ده، په دغه صورت کي به ویل کیږي چي د نښو او بېرغو د زیاتوب په وجه هغه لښکر ته د درختو سره تشبېه ورکړل سوې ده او دلښکر پر شمېر د ذکر کولو مقصد دلښکر زیاتوب بیانول دی.

## د روميانو سره د جنګ او د دجال د قتل پیشګوئي

﴿۵۱۸۷﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللهِ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ
د حضرت ابو هريرة ﷺ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : د قيامت تر راتګ مخکي

حَتَّى يَنْزِلَ الرُّومُ بِالْأَعْمَاقِ أَوْ بِدَابِقٍ فَيَخْرُجُ إِلَيْهِمْ جَيْشٌ مِنَ الْمَدِينَةِ مِنْ
به روميان مقام اعمق يا ابق ته راسي او د هغو مقابلې ته به د مديني يو لښکر ولاړ سي چي په

خِيَارِ أَهْلِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ فَإِذَا تَصَافُّوا قَالَتِ الرُّومُ خَلُّوا بَيْنَنَا وَبَيْنَ الَّذِينَ سَبَوْا
هغه کي به د هغه وخت ښه خلک وي هر کله چي هغوئ د جنګ لپاره صف بندي وکړي نو
روميان به هغوئ ته وايي موږ د هغه خلکو سره جنګ کوو چي زموږ خلک يې بنديان کړي دي

مِنَّا نُقَاتِلْهُمْ فَيَقُولُ الْمُسْلِمُونَ لَا وَاللهِ لَا نُخَلِّي بَيْنَكُمْ وَبَيْنَ إِخْوَانِنَا فَيُقَاتِلُونَهُمْ
ستاسو سره جنګ نه کوو هغه خلک زموږ مقابلې ته راوليږئ ،مسلمانان به په جواب کي ورته
وايي قسم په خدای موږ داسي نه کوو موږ خپل هغه مسلمانان ورونه ستاسو مقابلې ته نه

فَيَنْهَزِمُ ثُلُثٌ لَا يَتُوبُ اللهُ عَلَيْهِمْ أَبَدًا وَيُقْتَلُ ثُلُثُهُمْ أَفْضَلُ الشُّهَدَاءِ عِنْدَ اللهِ
راليږو بيا به مسلمانان د روميانو سره په جنګ سي او په هغوئ کي به دريمه برخه مسلمانان د
روميانو څخه وتښتي ، الله ﷻ به د هغه تښتېدونکو مسلمانانو توبه هيڅکله قبوله نه کړي او
دريمه برخه مسلمانان به شهيدان سي او د الله ﷻ په نيز به دا غوره شهيدان وي

وَيَفْتَتِحُ الثُّلُثُ لَا يُفْتَنُونَ أَبَدًا فَيَفْتَتِحُونَ قُسْطَنْطِينِيَّةَ فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُونَ
او فتحه به ورکړي دريمي برخي ته د دوئ چي الله تعالی به يې هيڅکله په فتنه کي اخته نه کړي
بيا به مسلمانان قسطنطنيه فتح کړي او د دې څخه وروسته چي مال غنيمت ويشي

الْغَنَائِمَ قَدْ عَلَّقُوا سُيُوفَهُمْ بِالزَّيْتُونِ إِذْ صَاحَ فِيهِمُ الشَّيْطَانُ إِنَّ الْمَسِيحَ قَدْ
نو خپلي توري د زيتون پر درخته وزړوي نو شيطان به د هغوئ په منځ کي دا اعلان وکړي چي

خَلَفَكُمْ فِي أَهْلِيكُمْ فَيَخْرُجُونَ وَذَلِكَ بَاطِلٌ فَإِذَا جَاءُوا الشَّأْمَ خَرَجَ فَبَيْنَمَا هُمْ
ستاسو په نه شتون کي مسيح دجال ستاسو کورونو ته ورسيدی ، د دې اوريدو سره به مسلمانان

د قسطنطنیه ښخه ووځي او دا خبره به درواغ وي ، د قسطنطنیه ښخه چي ووځي او مسلمانان
شام ته ورسيږي نو دجال به خروج وکړي

يُعِدُّونَ لِلْقِتَالِ يُسَوُّونَ الصُّفُوفَ إِذْ أُقِيمَتْ الصَّلَاةُ فَيَنْزِلُ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ

مسلمانان به ذ هغه سره د جنګ لپاره تيار سي او خپل صفونه به سم کړي ، چي دلمانځه وخت به
راسي او حضرت عیسی علیه السلام به د اسمان ښخه راکښته سي

صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فَأَمَّهُمْ فَإِذَا رَآهُ عَدُوُّ اللَّهِ ذَابَ كَمَا يَذُوبُ الْمِلْحُ فِي الْمَاءِ فَلَوْ

او مسلمانانو ته به لمونځ ورکړي بيا چي د الله تعالی دښمن دجال حضرت عیسی علیه السلام ووینې نو
دجال به داسي ويلي سي لکه ښرنګه چي مالګه په اوبو کي ويلي کيږي که

تَرَكَهُ لَانْذَابَ حَتَّى يَهْلِكَ وَلَكِنْ يَقْتُلُهُ اللَّهُ بِيَدِهِ فَيُرِيهِمْ دَمَهُ فِي حَرْبَتِهِ . رواه
مسلم .

حضرت عیسی علیه السلام هغه د لږ وخت لپاره نور پريږدي او قتل يې نه کړي نو هغه به ټول ويلي سي
او په خپله به مړ سي مګر الله تعالی به يې د حضرت عیسی علیه السلام په لاس قتل کړي ، بيا به حضرت
عیسی علیه السلام د خپلي نيزې وينه ټولو مسلمانانو ته وښيي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۱۴\۲۲۱، رقم: ۳۴- ۲۸۹۷.

**د لغاتو حل**: دابق: اسم موضع في المدينة. (په مدينه کي د يو ځای نوم). المسيح: الدجال.

**تشريح**: اعماق د مدينې په شاوخوا کي د يو ځای نوم وو ، همدارنګه وابق د مدينې د يو بازار نوم وو مګر يو قول چي زيات صحيح معلوميږي دادی چي په دغه حديث کي د مدينې ښخه مراد د حلب ښار دی ، د شام په هيواد کي واقع دی او اعماق او وابق د حلب او انطاکيه په منځ کي د دوو ځايو نومونه دي نو په کتاب ازهار کي دا وضاحت سوی دی چي د مدينې ښخه مدينة النبي مراد اخيستل صحيح نه دي ځکه چي په حديث کي د کومي زمانې د واقع کېدو په اړه وړاند وينه سوې ده هغه وخت به مدينه منوره د يو ډول تخريب کارۍ يا د يو اسلام دښمن د حملې ښخه بالکل محفوظ او مامون وي، ځينو حضراتو دا صحيح ويلي دي چي د مدينې ښخه مراد دمشق دی (چي الله تعالی به هغوئ هيڅکله معاف نه کړي) ددې ښخه دې ته اشاره کول مقصد دي چي د هغه خلکو مرګ به د کفر په حالت کي وي او هغوئ به هيڅکله د عذاب ښخه

خلاصون تر لاسه نه کړي ، (هغه مسلمانان به الله تعالی هیڅکله په فتنه کي اخته نه کړي) د دې مطلب دادی چي هغه مسلمانان به په کوم ایماني استقلال او عزیمت او اسلامي شجاعت ثبوت ورکړي د هغه انعام به هغوئ ته دا ورکول کیږي چي الله تعالی به هغوئ هیڅکله په یو آفت او مصیبت کي اخته نه کړي او نه به د ځان او مال د ازمائش سره مخامخ سي چي الله تعالی به هغه مسلمانان هیڅکله هم په غریبۍ کي اخته نه کړي ، نو دا د دې خبري زیری دی چي د هغه خلکو خاتمه به په خیر وي ، د قسطنطنیه په اړه زیات مشهور او صحیح قول دادی چي په اصل کي دغه لفظ قسطنطینیة دی مګر ځینو حضراتو قسطنطینة ته زیات صحیح ویلي دي، دمشکوة په اکثرو نسخو کي دغه لفظ داسي دی او په ځینو کي تر ټولو لوی ښارو کي یو لوی ښار ویل سوي دي ، دغه ښار قسطنطین پاچا ته منسوب دی چي هغه په ۳۳۰ کال کي اباد کړی وو او د دغه سلطنت پایتخت یې جوړ کړی وو اوس دغه ښار ته چي ابناء فاسفورس په غاړه واقع دی استنبول ویل کیږي او د ترکي هیواد یو ښار دی ، ترمذي وضاحت کړی دی چي دغه ښار د صحابه کرامو په زمانه کي فتح سوی وو او د تاریخي روایاتو مطابق په دوهم ځل دا ښار په ۱۴۵۳عیسوي کال کي د عثماني ترکو په ذریعه فتح سو ، تر اوسه پوري پر دغه ښار د مسلمانانو قبضه ده مګر د دغه حدیث څخه دا معلومیږي چي دغه ښار به یو وار د مسلمانانو د لاس څخه وځي او بیا به په آخري زمانه کي کله چي قیامت نژدې سي مسلمانان به دا فتح کړي او په هغه زمانه کي به د دجال ظهور وي.

فاذا جاء الشام: کله چي مسلمانان شام ته ورسیږي ، دلته د شام څخه مراد قدس دی چي هغه ته بیت المقدس ویل کیږي نو په ځینو روایتو کي د دې تصریح هم سته او هغه وخت به بیت المقدس د شام په شاوخوا کي وي اوس دا په فلسطین کي دی چي یو ځانګړی هیواد دی.

او د مسلمانانو امامت به کوي: مطلب دادی چي هغه وخت به لمونځ تیار وي ځکه حضرت عیسی علیه السلام به ټولو مسلمانانو ته لمونځ ورکړي او په هغه مسلمانانو کي به امام مهدي علیه السلام هم وي مګر په یوه روایت کي دادي چي هغه وخت به عیسی علیه السلام د امامت لپاره امام مهدي مخکي کړي او هغه ته به ووایي چي د دغه لمانځه اقامت ستا د امامت لپاره سوی دی ځکه ته لمونځ ورکړه ، په دغه خبره سره به د حضرت عیسی علیه السلام مقصد دې ته اشاره کول وي چي ته اوس د مسلمانانو امیر او امام یې ځکه نو ما ته ستا پیروي کول پکار دي نه دا چي ته به زما اتباع کوې او په ځانګړې توګه د امام او امیر جوړېدو لپاره نه یم را استول سوی بلکه زما راتلل یوازي ستا د مرستي او تائید لپاره دي نو حضرت مهدي علیه السلام به د هغه لمانځه امامت وکړي

مګر د هغه شخه وروسته امامت به حضرت عیسی علیہ السلام کوي، په دغه صورت کي به ویل کیږي
چي په حدیث کي دا فرمایل سوي دي چي (فامهم) او د مسلمانانو امامت به کوي، نو دا تغلیبا
ارشاد فرمایل سوی دی یعني وروسته به حضرت عیسی علیہ السلام هغوئ ته لمونځ ورکوي نو په دې
اعتبار سره د هغه د لمانځه په اړه هم وویل چي هغه د مسلمانانو امامت کوي یا دا چي امامت
به کوي ددې مجازي معنی مراد ده یعني حضرت عیسی علیہ السلام به هغه وخت د مسلمانانو امام
(حضرت مهدي) ته د امامت لپاره وواییي.

﴿۵۱۸۸﴾: وَعَنْ عَبْدِاللهِ ابْنِ مَسْعُوْدٍ قَالَ إِنَّ السَّاعَةَ لَا تَقُوْمُ حَتّٰى يُقْسَمَ

د حضرت عبد الله بن مسعود رضی اللہ عنہ شخه روایت دی چي قیامت تر هغه وخته نه راځي تر هغو چي

مِيرَاثٌ وَلَا يُفْرَحَ بِغَنِيمَةٍ ثُمَّ قَالَ عَدُوٌّ يَجْمَعُوْنَ لِأَهْلِ الشام وَيَجْمَعُ لَهُمْ

میراث ویشل کیږي، مسلمانان به د غنیمت د مال سره خوشحاله نه وي، ددې وروسته ابن
مسعود رضی اللہ عنہ ددې حقیقت شرح وکړه او وه یې ویل: د شام والا سره د جنګ لپاره به کافران لښکر

أَهْلُ الْإِسْلَامِ يعني الروم فَيَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا

جمع کړي (یعني رومیان) بیا به مسلمانان یو ډله وټاکي د رومیانو د مقابلې لپاره نو مسلمانان
به راټول کړي داسي ډله چي تر هغو به د جنګ شخه نه راګرزي

غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُوْنَ حَتّٰى يَحْجُزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ

چي غلبه تر لاسه کړي او د مرګ تر وخته پوري وجنګیږي یا به مړه کیږي یا به غازي کیږي، بیا
به دواړې ډلي پر یو بل حمله وکړي تر دې چي پر دواړو لښکرونو به شپه راسي او دواړې ډلي به
خپل خپل ځایو ته ولاړي سي او هیڅ یو ته به فتح تر لاسه نه سي

غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ ثُمَّ يَشْتَرِطُ الْمُسْلِمُوْنَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا

مګر د مسلمانانو هغه ډله چي مخکي لیږل سوی وه هغه به فنا سي بیا (په دویمه ورځ د
مسلمانانو یو بله ډله به په دغه شرط سره) مخکي ور ولیږل سي او دواړې ډلي به د یو بل سره

غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُوْنَ حَتّٰى يَحْجُزَ بَيْنَهُمُ اللَّيْلُ فَيَفِيءُ هٰؤُلَاءِ وَهٰؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ

مقابله وکړي تر دې چي شپه به په منځ کي حائله سي او دواړي ډلي به ولاړي سي په هغو کي به هيڅوک کامياب نه وي

غَالِبٍ وَتَفْنَى الشُّرْطَةُ ثُمَّ يَشرطه الْمُسْلِمُونَ شُرْطَةً لِلْمَوْتِ لَا تَرْجِعُ إِلَّا

خو د مسلمانانو دغه ډله به هم فنا سي (په دريمه ورځ) بيا به د مسلمانانو يو ډله مخکي وليږل

غَالِبَةً فَيَقْتَتِلُونَ حَتَّى يُمْسُوا فَيَفِيءُ هَؤُلَاءِ وَهَؤُلَاءِ كُلٌّ غَيْرُ غَالِبٍ وَتَفْنَى

سي او دواړي ډلي به په جنګ سي تر دې چي ماښام به سي او دواړي ډلي به ولاړي سي چي په هغو کي به هيڅا ته فتح تر لاسه نه سي او د مسلمانانو هغه ډله به فنا سي

الشُّرْطَةُ فَإِذَا كَانَ يَوْمُ الرَّابِعِ نَهَدَ إِلَيْهِمْ بَقِيَّةُ أَهْلِ الْإِسْلَامِ فَيَجْعَلُ اللّٰهُ

چي مخکي ليږل سوې وه هغه به، په څلورمه ورځ به د مسلمانانو پاته فوځ د جنګ لپاره تيار سي او الله تعالى به هغو ته پر کفارو فتح ورکړي

الدَّبْرَةَ عَلَيْهِمْ فَيَقْتُلُونَ مَقْتَلَةً إِمَّا قَالَ لَا يُرَى مِثْلُهَا وَإِمَّا قَالَ لَمْ يُرَ مِثْلُهَا

دا جنګ به سخت وي، مسلمانان به ښه په نره جنګ وکړي او داسي به وجنګيږي چي تر اوسه پوري به يې داسي جنګ نه وي ليدلى

حَتَّى إِنَّ الطَّائِرَ لَيَمُرُّ بِجَنَبَاتِهِمْ فَمَا يُخَلِّفُهُمْ حَتَّى يَخِرَّ مَيِّتًا فَيَتَعَادُّ بَنُو

تر دې که يو مرغه د لښکر د شاوخوا څخه تيريدل وغواړي نو هغه به لښکر وروسته پرې نه ښودلاى سي يعني د لښکر څخه به مخکي تللاى نه سي چي پر مځکه به مړ راوغورځي بيا به

الْأَبِ كَانُوا مِائَةً فَلَا يَجِدُونَهُ بَقِيَ مِنْهُمْ إِلَّا الرَّجُلُ الْوَاحِدُ فَبِأَيِّ غَنِيمَةٍ

د يوه پلار زامن حساب سي چي په حساب سل نفره به وي په هغوئ کي به يوازي يو نفر ژوندى پاته وي، بيا به په کوم غنيمت سره هغوئ

يُفْرَحُ أَوْ أَيُّ مِيرَاثٍ يُقَاسَمُ فَبَيْنَمَا هُمْ كَذَلِكَ إِذْ سَمِعُوا بِبَأْسٍ هُوَ أَكْبَرُ مِنْ

خوشحاله سي يا کوم ميراث به په هغوئ کي تقسيم کړل سي (يعني کوم ځاى چي د مړو دومره

شمیر وي هلته به د غنیمت مال سره او د میراث تقسیم سره چا ته خوشحالي تر لاسه سي)
مسلمانان به په داسي حال کي وي چي هغوئ ته به د يو سخت جنگ خبر راسي چي د دغه جنگ

ذَلِكَ فَجَاءَهُمُ الصَّرِيخُ إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَلَفَهُمْ فِي ذَرَارِيِّهِمْ فَيَرْفُضُونَ مَا

څخه به هم زیات سخت وي بیا به مسلمانان دا اواز واوري چي دجال د هغوئ په نه شتون کي د
هغوئ اهل او عیال ته را رسیدلی دی ، ددې خبر په اوریدو سره به هغوئ هر څه وغورځوي او

فِي أَيْدِيهِمْ وَيُقْبِلُونَ فَيَبْعَثُونَ عَشَرَةَ فَوَارِسَ طَلِيعَةً قَالَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى

ددجال په لور به متوجه سي او لس سپاره به مخکي ولیږي چي هغوئ ددښمن حال معلوم کړي ،

اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ إِنِّي لَأَعْرِفُ أَسْمَاءَهُمْ وَأَسْمَاءَ آبَائِهِمْ وَأَلْوَانَ خُيُولِهِمْ هُمْ

رسول الله ﷺ وفرمایل : مسلمانان چي کوم سپاره مخکي ولیږي د هغوئ او د هغوئ د پلرونو
نومونه هم ما ته معلوم دي او د هغوئ د آسونو رنګ هم،

خَيْرُ فَوَارِسَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ يَوْمَئِذٍ أَوْ مِنْ خَيْرِ فَوَارِسَ عَلَى ظَهْرِ الْأَرْضِ

يَوْمَئِذٍ. رواه مسلم

هغوئ به غوره سپاره وي يا هغه وخت به د مځکي پر مخ د غوره سپارو څخه وي . مسلم.

**تخريج**: صحيح مسلم: ۴\ ۲۲۲۳، رقم: ۳۷ – ۲۸۹۹.

**د لغاتو حل**: يتشرط: اي يهيؤن ويعدون. الدبرة: اى الهزيمة.

**تشريح**: شُرطة د فوځ هغه زړه وري ډلي ته وايي چي د لښکر مخته وي او خپل ځانونه د قربانولو لپاره د جنګ په میدان کي تر ټولو مخکي کړي، د يتشرط لفظ ددې څخه مشتق دی چي د باب تفعل څخه دی او دغه لفظ باب افتعال څخه هم نقل سوی دی ، په هر حال دغه جمله (لا ترجع الا غالبة) په اصل کي د شرط للموت صفت دی مطلب دا چي د مسلمانانو لښکر کومه زړه وره ډله مخکي استوي هغوئ ته به هدایت کوي چي هغوئ په هیڅ حال کي هم د دښمن د مقابلې څخه ونه تښتي بلکه په سخت حال کي هم ټینګ دریږئ تر دې چي د دښمن په فناء کولو سره کامیاب راستانه سئ او یا د خپلي قضاء غېږ ته ورسئ .

فيجعل الله الدبرة عليهم: دلته د دبر لفظ دادبار اسم دی ، په ځینو روایتو کي د دغه لفظ د

ابر هم منقول دی مګر د معنی په اعتبار په دواړو کي فرق نسته ځکه چي د دواړو معنی د ماتي ده.

فباي غنيمة: دلته د فاء حرف تفريعه يا فيصحه دی او طيبي ليکلي دي چي دغه جمله په نحوي ترکيب سره جزاء ده د شرط محذوف چي مخکي هم په مبهمه توګه وفرمايل چي قيامت به تر هغه وخته پوري نه قائميږي تر څو چي د ميراث وېش کېدل موقوف نسي او مسلمانان د غنيمت مال ته خوشحاله کېدل پرېږدي ، ددې څخه وروسته ددغه جملې وضاحت مخکي عبارت (عدو يجمعون ...الخ ) دښمن يعني کافر به داهل اسلام سره د جنګ لپاره د فوج او طاقت جمع کولو په ذريعه او ددې وضاحت مذکوره صفت يعني ډېر خوفناک جنګ کېدو او په هغه کي د دومره ځاني تاوان کېدو سره دا مقيد کړ چي ميراث به ځکه نه ويشل کيږي او مسلمانانو ته به د غنيمت په مال ځکه خوشحالي نه کيږي چي چيري ډېر ځاني تاوان سوی وي او ډېر خلک وژل سوي وي نو هلته ويشل چيري او خوشحالي چيري ده . د طليعه لفظ د کريمه پر وزن دی او ددې معنی د هغه سړي ده چي هغه د دښمن خبر راوړلو لپاره مخکي واستول سي نو د هغه لس سپارو څخه د فوځ د جاسوسانو هغه ډله مراد ده چي د دښمن حالت ، قوت او شمېر معلومولو لپاره د دښمن خوا ته استول کيږي .

د رسول الله ﷺ دغه ارشاد چي زه د هغوئ او د هغوئ د پلرو نومونه پېژنم، دا د اعجاز نبوت دليل دی يعني دا د رسول الله ﷺ معجزه ده چي په سوونو کلو وروسته واقع کېدونکي يو واقعې سره متعلق کسانو نومونه او دهغوئ د پلرونو نومونه او دهغوئ د اسونو رنګونه هم پېژني او دا خبره ددې دليل هم دی چي دالله تعالی علم دهر شي پر کليات او جزئيات باندي محيط دی او هغه چي د کوم شي په اړه څومره مناسب وګڼل هغومره علم يې خپل رسول ته ورکړ .

## د جنګ څخه پرته د يو ښار د فتح کېدو پشګوئي

﴿۵۱۸۹﴾: وَعَنْ أَبِي هُرَيْرَةَ أَنَّ النَّبِيَّ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ هل سَمِعْتُمْ

د حضرت ابوهريرة ؓ څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : ايا تاسو اورېدلی دی

بِمَدِينَةٍ جَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَرِّ وَجَانِبٌ مِنْهَا فِي الْبَحْرِ قَالُوا نَعَمْ يَا رَسُولَ اللَّهِ

نوم د يو ښار چي د هغه يو طرف په وچه کي او يو طرف په درياب کي وي صحابه کرامو عرض وکړ:هو،رسول الله ﷺ اوريدلی مو دی،

قَالَ لَا تَقُومُ السَّاعَةُ حَتَّى يَغْزُوَهَا سَبْعُونَ أَلْفًا مِنْ بَنِي إِسْحَقَ فَإِذَا جَاءُوهَا

رسول الله ﷺ وفرمایل: د قیامت څخه مخکي به د حضرت اسحاق علیه السلام د اولاد اویا زره کسان دد غه ښار د خلکو سره جنګ وکړي

نَزَلُوا فَلَمْ يُقَاتِلُوا بِسِلَاحٍ وَلَمْ يَرْمُوا بِسَهْمٍ قَالُوا لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ

هر کله چي د حضرت اسحاق علیه السلام اولاد دغه ښار ته راسي نو ددې په شاوخوا کي به قیامت قائم سي او هغوئ به په وسلو سره جنګ نه کوي او نه به پر ښاریانو غشي اوروي هغوئ یوازي لااله الاالله والله اکبر وایي

فَيَسْقُطُ أَحَدُ جَانِبَيْهَا قَالَ ثَوْرٌ بن يزيد الراوي لَا أَعْلَمُهُ إِلَّا قَالَ الَّذِي فِي

او د ښار د یوې خوا دیوال به ونړیږي ، ثور بن یزید راوي وایي زما خیال دی چي ابو هریرة رضی الله عنه دا هم ښودلی وه چي

الْبَحْرِ ثُمَّ يَقُولُوا الثَّانِيَةَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ فَيَسْقُطُ جَانِبُهَا الْآخَرُ ثُمَّ

د دریاب خوا ته دیوال به ونړیږي بیا به دویم وار لااله الاالله والله اکبر وایي او د ښار دویم دیوال به ونړیږي بیا به

يَقُولُوا الثَّالِثَةَ لَا إِلَهَ إِلَّا اللَّهُ وَاللَّهُ أَكْبَرُ فَيُفَرَّجُ لَهُمْ فَيَدْخُلُوهَا فَيَغْنَمُوا

په دریم وار لااله الاالله والله اکبر وایي او د ښار لار به خلاصه سي او هغوئ به په ښار کي داخل سي او په ښار کي چي څه وي هغه به غنیمت کړي

فَبَيْنَمَا هُمْ يَقْتَسِمُونَ الْمَغَانِمَ إِذْ جَاءَهُمُ الصَّرِيخُ فَقَالَ إِنَّ الدَّجَّالَ قَدْ خَرَجَ فَيَتْرُكُونَ كُلَّ شَيْءٍ وَيَرْجِعُونَ . رواه مسلم .

بیا چي هغوئ د غنیمت مال ویشي نو یو نارې وهونکی به راسي او وایي به چي دجال راوتلی دی نو هغوئ به هر شی پریږدي او ددجال په لور به متوجه سي . مسلم. (ددې حدیث څخه معلومه سوه چي د دښمن سره د جنګ کولو لپاره لااله الاالله والله اکبر ویل هم غوره وسله ده ) .

**تخریج**: صحیح مسلم: ۴\۲۲۳۸، رقم: ۷۸- ۲۹۲۰.

**تشریح**: رسول الله ﷺ چي په دغه ارشاد کي د کوم ښار ذکر کړی دی د هغه په اړه د یو شارح دا

وينا ده چي هغه ښار په روم كي واقع دى او ځينو حضراتو ويلي دي چي په ظاهره دا معلوميږي چي د هغه ښار ځخه قسطنطينه مراد دى چي د هغه د مسلمانانو په ذريعه فتح كېدل د قيامت د نښو ځخه يوه نښه ده مگر احتمال دى چي هغه ښار د قسطنطنية ځخه پرته د بل ښار نوم دى، ځكه د قسطنطينيه فتح كېدل به د جنگ په ذريعه وي حال دا چي د ذكر سوي ښار د فتح ظاهري سبب يوازي د تهليل او تكبير نعره ښودل سوې ده.

د حضرت اسحاق علیه السلام د اولاد ځخه مراد د شام خلک دي چي دهغوئ نسب د حضرت ابراهيم علیه السلام د دوهم زوى حضرت اسحاق علیه السلام ځخه پيل كيږي او هغه خلک به مسلمانان وي، په دې اړه يو احتمال دا دى چي د هغه په فتح كونكو خلكو كي د حضرت اسحاق علیه السلام د اولاده ځخه پرته دحضرت اسماعيل علیه السلام د اولاد خلک هم وي چي د حجاز اوسيدونكي به وي، دهغوئ ځخه پرته نور مسلمانان به هم شامل وي په دغه صورت كي به ويل كيږي چي دحضرت اسحاق علیه السلام د اولاد ذكر د اختصار لپاره پر نورو خلكو باندي د فوقيت وركولو په وجه دى او دريم احتمال دادى چي د دغه ښار فتح كونكي خلک به يوازي د حضرت اسحاق علیه السلام د اولاد ځخه وي.

د وسلې په ذريعه به جنگ نه وي ددې ځخه وروسته بيا دغه ارشاد چي نه به د هغوئ خوا ته غشي غورځي، د تعميم ځخه وروسته د تخصيص ذكر په توگه دى چي د هغه مقصد د وسلې د نه استعمالولو تاكيد دى.

## اَلْفَصْلُ الثَّانِي (دوهم فصل)

### د قيامت د نژدې كېدو هغه پېښې چي يو په بل پسي به ظاهر يږي

﴿۵۱۹۰﴾: عَنْ مُعَاذِ بْنِ جَبَلٍ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عُمْرَانُ بَيْتِ الْمَقْدِسِ خَرَابُ يَثْرِبَ وَخَرَابُ يَثْرِبَ خُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ وَخُرُوجُ الْمَلْحَمَةِ و فَتْحُ قُسْطَنْطِينِيَّةَ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ. رواه ابوداؤد

د حضرت معاذ بن جبل رضی الله عنه ځخه روايت دئ چي رسول الله صلی الله علیه وسلم وفرمايل : د بيت المقدس آبادي به د مدينې د خرابۍ او تباهي باعث سي او دمدينې خرابي به د فتنې او جنگ عظيم د پيدا كيدو او په واقع كي د راتلو سبب وي او د فتنې ظهور به د قسطنطينه د فتح سبب وي او د قسطنطينه فتح به د دجال د راوتلو سبب وي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴۸۲\۴، رقم: ۴۲۹۴.

**تشريح**: د بيت المقدس ابادي د مدينې منورې د تخريب سبب په دې اعتبار گرځول سوی دی چې بيت المقدس او د هغه په سيمو كي به د غير مسلمانانو غلبه سي او هغوئ به پر واكمن سي كله چې دغه دښمنان پر بيت المقدس باندي خپاره سي نو د هغوئ نظرونه به پر مدينه ولوېږي او ددغه پاک ښار د تخريب منصوبه به جوړه كړي چې دهغه په وجه به د مدينې منورې ټول خلک د خپل ښار څخه په وتلو سره د هغه دښمنانو سره په جنگ كي بوخت سي.، دلته په حديث كي د مدينې منورې ذكر د هغه په پخواني نامه يثرب سره سوی دی څرگنده دې وي چې يثرب په اصل كي د ثرب څخه مشتق دی چې دهغه معنی د هلاكت ده يا دا چې يثرب د مدينې يو كلی وو چې يثرب نامي سړي اباد كړی وو د هغه نوم به د ټول ښار لپاره استعمالېدی نو د رسول الله ﷺ د مكې څخه مدينې ته هجرت كولو پوري دغه ښار ته يثرب ويل كېدل ، دهجرت څخه وروسته رسول الله ﷺ ددغه ښار نوم بدل كړ او دې ته مدينة الرسول ښا رويل پېل سول ، دغه معنی د المدينة څخه هم ادا كيږي نو په عامه توگه دغه ښار المدينة ځكه ويل كيږي، دلته يو سوال كيږي چې مدينې ته د يثرب ويلو څخه منع فرمايل سوې ده نو بيا په دغه حديث كي خپله رسول الله ﷺ يثرب نوم ولي استعمال كړ ؟ ددې جواب دادی چې په دغه حديث كي مدينې ته يثرب ويل د يثرب ويلو دمنع څخه د مخكي خبره ده ، د حديث خلاصه داده چې د كومو حوادثو او پېښو ذكر سوی دی هغه ټول د ذكر سوي ترتيب مطابق د قيامت نژدې به واقع كيږي او په هغه كي د هر يوه واقع كېدل به د دوهم د واقع كېدو علامه وي كه څه هم د هغه واقع كېدل په تاخير سره وي.

طيبي رحمه الله ويلي دي كه چيري دا سوال پيدا سي چې د دغه حديث خو د فتح قسطنطنيه او د دجال د ظاهرېدو علامه گرځول سوې ده حال دا چې مخكي كوم حديث تېر سوی دی په هغه كي دا فرمايل سوي دي چې د مسلمانانو په منځ كي به شيطان ناڅاپه اعلان وكړي چې ستاسو په نه شتون كي دجال ستاسو كورونو ته رسيدلی دی او كله چې مسلمان دغه اعلان واوري او د دجال په لټه كي ووځي نو معلومه به سي چې هغه يو درواغ اعلان وو نو د دواړو حديثو په منځ كي تضاد ولي دی؟ ددې جواب دادی چې په دغه حديث كي د رسول الله ﷺ مقصد محض د قسطنطنيه فتح د دجال د راوتلو علامه گرځول دي كله چې قسطنطنيه فتح سي نو پوه سئ چې اوس به د دجال خروج وي د دجال خروج به څرنگه وي او مسلمانانو ته به د هغه په اړه څرنگه معلومه سي ، په هر حال د اول حديث څخه دا هم ثابتيږي چې د دجال خروج به د قسطنطنيه د فتح

څخه وروسته وي، نو په حقيقت کي ددغه دواړو حديثو په منځ کي هيڅ تضاد نسته، ددې څخه پرته د شيطان د هغه درواغ اعلان تعلق به د دجال د خروج سره هيڅ نه وي بلکه هغه خو به هسي د درواغو اعلان ددې لپاره کوي چي مسلمانان په پريشاني او بې اطميناني کي اخته کړي او هغوئ د غنيمت د مال ويشلو څخه منع سي.

## د جنګ عظيم، فتح قسطنطنيه او د دجال د خروج پيشګوئي

﴿۵۱۹۱﴾: وَعَنْهُ قَالَ قَالَ رَسُولُ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ الْمَلْحَمَةُ الْعُظْمٰى وَفَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ وَخُرُوجُ الدَّجَّالِ فِي سَبْعَةِ أَشْهُرٍ. رواه الترمذي وابوداؤد

د معاذ بن جبل رضی الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل: د جنګ عظيم واقع کيدل د قسطنطنيه فتح کيدل او د دجال را وتل دا ټول به په اووه مياشتي کي وي. ترمذي او ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۸۲، رقم: ۴۲۹۵، والترمذي ۴\۴۴۲، رقم: ۲۲۳۸.

**تشريح**: د جنګ عظيم څخه مراد د ځينو په نزد هغه جنګ دی چي دهغه په اړه فرمايل سوي دي چي د جنګ په پای کي به خلک د خپلو قريبانو د ځاني تاوان معلومات وکړي چي په سلو کي به يو ژوندی پاته سوی وي او پاته به مړه سوي وي مګر صحيح قول دادی چي د هغه جنګ څخه مراد هغه ښار فتح ده چي دهغه په اړه فرمايل سوي دي چي هغوئ به د اسماء الهي په برکت يعني د تهليل او تکبير د نعرې په ذريعه فتح کړي او د قتل وقتال نوبت نه راسي لکه څرنګه چي د حضرت ابوهريره رضی الله عنه په روايت کي تېر سول.

د ذکر سوو درو شيانو د واقع کېدو په اړه چي د اووه مياشتو وخت فرمايل سوی دی هغه د دوو ښارو او فتنه دجال ته د مسلمانانو د متوجه کېدو په اعتبار فرمايل سوي دي او کوم چي ددغه دواړو ښارو د فتح کېدو اعتبار دی نو ذکر سوی جنګ عظيم او د قسطنطنيه فتح کېدل يو په بل پسې پرته له ځنډ څخه کيږي او ددغه دواړو وروسته به د دجال خروج کيږي.

﴿۵۱۹۲﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ بُسْرٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ بَيْنَ الْمَلْحَمَةِ وَفَتْحِ الْمَدِينَةِ سِتُّ سِنِينَ وَيَخْرُجُ الْمَسِيحُ الدَّجَّالُ فِي السَّابِعَةِ. رواه ابوداؤد وقال هذا اصح.

د حضرت عبد الله بن بسر رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : جنګ عظيم او د مديني د فتح په منځ كي به د شپږو كالو فاصله وي او په اووم كال به دجال راووځي . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۸۳، رقم: ۴۲۹۶.

**تشريح**: د دغه حديث څخه څرګنديږي چي جنګ عظيم، فتح قسطنطنيه او د دجال خروج دري سره واقعات به په اووه كاله كي دننه وي ، حال دا چي په اول حديث كي دغه وخت اووه مياشتي بيان سوى دى په دې اعتبار سره د دواړو حديثو په منځ كي سخت اختلاف دى نو دا خبره بايد په ذهن كي وساتل سي چي تعارض بالكل ثابت دى چي په يوه حديث كي په وضاحت سره د اووه كاله وخت بيان سوى دى او په بل حديث كي د اووه مياشتو وخت بيان سوى دى ، د دواړو حديثو په مفهوم كي مطابقت پيدا كول ممكن نه دي ، په دغه صورت كي علماؤ ته بله طريقه نسته چي د دغه دواړو حديثو حيثيت مخته په ايښودو سره هغه حديث راجح وګرځول سي كوم چي زيات صحيح دى، علماؤ او محدثينو ليكلي دي چي په اول حديث كي كلام سوى دى ځكه چي د هغه ځيني راويان د فن حديث په اصطلاح كي مجروح او مطعون دي او دغه دوهم حديث بالكل صحيح دى لكه څرنګه چي خپله امام ابوداؤد وضاحت كړى دى، نو خلاصه دا سوه چي د ذكر سوو درو واقعاتو واقع كېدلو درمياني وخت د اووه مياشتي پر ځاى اووه كاله صحيح دى.

﴿۵۱۹۳﴾: وَعَنِ ابْنِ عُمَرَ قَالَ يُوشِكُ الْمُسْلِمُونَ أَنْ يُحَاصَرُوا إِلَى الْمَدِينَةِ حَتَّى يَكُونَ أَبْعَدَ مَسَالِحِهِمْ سَلَاحِ وَسَلَاحِ قَرِيبٌ مِنْ خَيْبَرَ. رواه ابوداؤد.

د حضرت ابن عمر رضي الله عنه څخه روايت دئ ډير ژر په مدينه كي به د مسلمانانو محاصره وكړل سي تر دې چي د هغوئ آخر حد به سلاح وي (سلاح خيبر ته نژدې يو ځاى دى) . ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود ۴\۴۴۹، رقم: ۴۲۵۰.

**د لغاتو حل**: مسالحهم: جمع المسلح: القوم الذين يحفظون الثغور من العدو. سلاح: اسم موضع اسفل خيبر (د خيبر لاندي يوه سيمه).

**تشريح**: د سلاح لفظ د سين په زېر سره دى مګر له دې كبله چي دغه لفظ اسم مؤخر دى او د دې خبر البعد دى نو دا د سين په پېښ سره هم نقل كيداى سي، د دې څخه پرته په يوه نسخه كي دغه لفظ په دوه زوره او په يوه نسخه كي د حاء په زور سره منقول دى، په هر حال دا د يو ځاى نوم دى چي د خيبر سره دى او خيبر د مديني منورې څخه تقريبا پر شپېته ميله فاصله باندي دى.

د حديث مطلب يا خو دادی چي کله په آخره زمانه کي د مسلمانانو د کمزورۍ او انتشار وخت وي نو د دين د دښمنانو حوصلې به دومره زياتي سي چي هغوئ به د مدينې منورې د محاصره کولو او د هغه ځای د مسلمانانو نيولو هڅه کوي او دهغوي اقتدار به تر خيبر پوري راسي يا دا چي هغه وخت کله چي مسلمانان د دښمنانو د قبضې او تسلط څخه د وتلو لپاره د خپلو هيوادو او ښارو څخه په تېښته مدينې منورې ته راسي نو د مدينې او سلاح په منځ کي به جمع سي ، يا دا چي هغه وخت به د نړۍ د شاوخوا څخه د تښتېدونکو مسلمانانو څخه ځيني مدينې ته راسي او ځيني به هغه وي چي ددغه مقدس ځای د ساتني لپاره د هغه شاوخوا خزې جوړي کړي او په هغه خزو کي به مقابله کوي نو په خزو کي چي تر ټولو ليري کومه خزه ده هغه بهٔ د سلاح په ځای کي وي ، دغه معنی د حديث د آخري الفاظو په مناسب زياته صحيح ده.

## د مسلمانانو او عيسايانو په باره کي پيشګويي

﴿۵۱۹۴﴾: وَعَنْ ذِيْ مِخْبَرٍ قَالَ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ

د حضرت ذي مخبر رضی الله عنه څخه روايت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه اوريدلي دي چي اې

سَتُصَالِحُونَ الرُّومَ صُلْحًا آمِنًا فَتَغْزُونَ أَنْتُمْ وَهُمْ عَدُوًّا مِنْ وَرَائِكُمْ

مسلمانانو! تاسو به ډير ژر د روم سره د امن صلح وکړئ بيا تاسي او روميان به په خپل منځ کي يو ځای سئ او يو بل دښمن سره به مقابله سئ

فَتُنْصَرُونَ وَتَغْنَمُونَ وَتَسْلَمُونَ ثُمَّ تَرْجِعُونَ حَتّٰى تَنْزِلُوا بِمَرْجٍ ذِي تُلُولٍ

تاسو ته به مرسته درکړل سي تاسو به غنيمت حاصل کړئ او سلامت به اوسئ بيا به تاسو ټول راوګرزئ او يو داسي ځای کي به قيام وکړئ چي شين او اباد به وي او کوم ځای چي غونډۍ

فَيَرْفَعُ رَجُلٌ مِنْ أَهْلِ النَّصْرَانِيَّةِ الصَّلِيبَ فَيَقُولُ غَلَبَ الصَّلِيبُ فَيَغْضَبُ

وي هلته به د نصرانيانو څخه يو سړی صليب واخلي وه به دريږي او وايي به صليب فتح حاصله کړه پر دې خبره به يو مسلمان غضبناک سي

رَجُلٌ مِنَ الْمُسْلِمِينَ فَيَدُقُّهُ فَعِنْدَ ذٰلِكَ تَغْدِرُ الرُّومُ وَتَجْمَعُ لِلْمَلْحَمَةِ وَزَادَ

او صليب به مات کړي دغه وخت به روميان وعده ماته کړي او د جنګ لپاره به لښکر جمع کړي

او ځيني راويانو په دغه حديث کي دا الفاظ زيات بيان کړي دي

بعضهم فَيَثُورُ الْمُسْلِمُونَ إِلَى أَسْلِحَتِهِمْ فَيَقْتَتِلُونَ فَيُكْرِمُ اللّٰهُ تِلْكَ الْعِصَابَةَ بِالشَّهَادَةِ. رواه ابو داؤد.

چي مسلمانان به خپلو وسلو ته ور وځغلي او د نصرانيانو سره به وجنګيږي نو الله تعالى به د مسلمانانو دغه ډلي ته د شهادت بزرګي ورکړي . ابو داؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\ ۴۸۱، رقم: ۴۲۹۲.

## د حبشيانو په باره کي يو لار ښوونه

﴿۵۱۹۵﴾: وَعَنْ عَبْدِ اللّٰهِ بْنِ عَمْرٍو عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ اتْرُكُوا الْحَبَشَةَ مَا تَرَكُوكُمْ فَإِنَّهُ لَا يَسْتَخْرِجُ كَنْزَ الْكَعْبَةِ إِلَّا ذُو السُّوَيْقَتَيْنِ مِنَ الْحَبَشَةِ . رواه ابو داؤد.

د حضرت عبد الله بن عمرو رضي الله عنه څخه روايت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمايل : تاسو حبشيان پريږدئ او د هغوئ سره هيڅ ډول جګړه مه کوئ تر څو پوري چي هغوئ تاسو ته څه نه وايي او په تاسو کار نه لري ځکه چي په راتلونکې زمانه کي به د کعبې خزانه يو حبشي راوکاږي چي د هغه پنډۍ به کوچنۍ کوچنۍ وي . ابو داؤد

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\ ۴۹۰، رقم: ۴۳۰۹.

**تشريح**: د حديث په پای کي چي کومي خبري ته اشاره سوې ده د هغې تعلق د آخرې زمانې سره دی کله چي قيامت بالکل نژدې وي، هغه وخت به اهل حبشه ته غلبه حاصله وي او د هغوئ پاچا به د خپل لښکر سره پر کعبه شريفه باندي حمله وکړي او کعبة الله به ورانه کړي او د هغه خزانه به راوکاږي کومه چي د کعبې شريفي لاندي دفن ده، په حديث کي چي د کعبې د خزانې د را ايستونکي حبشي ذکر سوی دی د هغه څخه يا خو د حبشې پاچا مراد دی يا ټول لښکر مراد دی او د خزانې څخه مراد هغه ټوله خزانه ده چي په کعبه شريفه کي لاندي ښخ ده او ځينو حضراتو ويلي دي چي د خزانې څخه مراد هغه مال او اسباب دي چي د نذر په توګه هلته راځي او د کعبې شريفي خادم يې جمع کوي .

څرګنده دي وي دلته چي فرمایل سوي دي چي يو حبشي به د کعبې شريفي خزانه راوکاږي دا په يو بل روايت کي داسي فرمايل سوي دي چي يو حبشي به کعبه شريفه تباه او برباد کړي نو دا خبره په قرآن کريم کي د الله ﷻ د ارشاد (حرما امنا) خلاص نه ده ځکه چي د حبشيانو په ذريعه د کعبې شريفي تخريب او تباهي دغه واقعه به د قيامت نژدې وي کله چي د مځکي پر مخ هيڅوک لااله الاالله ويونکي پاته نسي او آمنا معنى داده چي کعبه شريفه به تر قيامته پوري په امن کي وي ، کله چي د مځکي پر مخ باندي هيڅوک لااله الاالله ويونکي پاته نسي او قيامت راسي نو بيا به بل کوم شی پاته کيږي چي کعبه دي هم پاته سي ، هسي هم دا خبره پر ځای صحيح ده مګر ځينو حضراتو يو بل ځای وضاحت کړی دی او دې ته يې زيات صحيح ويلي چي الله تعالى کعبه شريفه امن والا ګرځولې ده نو ددې د غالب احوال په اعتبار يې ګرځولې ده يعني د کعبې شريفي اصل حقيقت دادی چي هغه به د تل لپاره د هر ډول تخريب او چټلي څخه خوندي وي مګر کله نا کله داسي هم کيدای سي چي يو داسي سخته واقعه پيښه سي چي په هغه سره داسي پيښه وسي ، او کعبې شريفي په تاريخ کي داسي پيښې مځکي هم سوي دي چي هغې ته تاوان رسول سوی دی لکه د حضرت ابن زبير ﷜ په زمانه کي د عبدالملک ابن مروان د خلافت له خوا د اهل مکې پر خلاف د حجاج بن يوسف د حملې په وخت کي د کعبې شريفي سخت تخريب وسو يا د قرامطه پيښه چي په هغه کي کعبې شريفي ته تاوان ورسيدی نو که چيري په راتلونکې زمانه کي هم د کعبې شريفي د تخريب واقعه پيښه سي نو هغه واقعه بهٔ د حرما امنا خلاف نهٔ وي يا دا هم ويل کيدای سي چي د حرم امن ګرځولو څخه مراد دادی چي الله تعالى اهل مکه ته حکم ورکړ چي کوم څوک دغه مقدس ښار او حرم ته ورسي زه بهٔ هغه ته امن او عافيت ورکوم او دلته د چا سره تعرض هم مه کوئ نو منقول دي چي کله دزنديقانو ډله د قرامطه مشر فساد او تباهي وکړي او د خلکو قتل او د ښار لوټ کولو څخه فارغ سي نو يوه ورځ به يو سړی ووايي چي د الله ﷻ دغه فرمان چيري دی چي (ومن دخله کان آمنا) ، په دغه وخت کي به الله ﷻ يو سړي ته د جواب ورکولو توفيق ورکړي او هغه به ووايي چي د قرآن کريم ددغه ارشاد دا مطلب نه دی چي يو څوک هيڅکله هم د کعبې شريفي په ورانولو کي کاميابه کيدای نسي بلکه ددغه فرمان مراد دا حکم ورکول دی چي کوم څوک په حرم کي داخل سو نو هغه ته به امن او عافيت ورکوم او په دې کي د لوټ مار او ظلم په ذريعه د چا سره تعرض مه کوئ.

﴿۵۱۹۶﴾: وَعَنْ رَجُلٍ مِنْ أَصْحَابِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ دَعُوا الْحَبَشَةَ مَا وَدَعُوكُمْ وَاتْرُكُوا التُّرْكَ مَا تَرَكُوكُمْ. رواه ابوداؤد

د رسول الله ﷺ د يو صحابي څخه روايت دی چي هغه وايي حبشيان پريږدئ تر څو پوري چي هغوئ تاسو ته څه ونه وايي او ترکان هم پريږدي تر څو پوري چي هغوئ ستاسو سره کار ونه لري. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۴۸۵، رقم: ۴۲۰۲.

**تشريح**: دلته يو سوال پيدا کيږي چي په قرآن کريم کي دا حکم ورکړل سوی دی چي (قاتلوا المشركين كافة) يعني ټول مشرکين ووژنئ هر ځای چي وي، نو په دغه حکم کي عموم دی چي د حبشيانو او ترکيانو په اړه رسول الله ﷺ دا ولي فرمايلي دي چي هغوئ پر خپل حال پرېږدئ يعني پر هغوئ حمله مه کوئ او دهغوئ پر هيوادو او ښارو باندي دحملې کولو څخه ډډه وکړئ، نو ددې جواب دادی چي د حبشيانو او ترکيانو معامله ددغه عمومي حکم څخه خارج او خاص ده ځکه چي د جغرافيايي حالت په اعتبار دغه دواړه هيوادونه د هغه زمانې د اسلامي طاقت د مرکز څخه ډيري ليري واقع وه او د اسلامي چاونۍ او د هغه هيوادو په منځ کي د دښتو يو داسي سخته لړۍ حائله وه چي هغه په عام حالاتو کي هم پرېکول د چا لپاره ممکن نه وو، نو رسول الله ﷺ په دې وجه مسلمانانو ته حکم ورکړ چي ددغه دواړو هيوادو پر خلاف هيڅ کاروايي مه کوئ او ددغه خلکو سره تر هغه وخته پوري تعرض نه کيږي کله چي هغوئ خپله پر تاسو حمله ونه کړي که هغوئ ستا پر خلاف جارحيت وکړي او د خپل فوځي قوت په جمع کولو سره د مسلمانانو پر ښارو باندي حمله وکړي نو په دغه صورت کي د هغوئ خلاف جنګ کول او د هغوئ سره جګړه کول فرض دي ، يا دا خبره هم کيدای سي چي رسول الله ﷺ دا حکم ورکړی وي چي هغه د اسلام د ابتدائي زمانې واقعه ده کله چي د اسلام او مسلمانانو سره دومره طاقت او سامان نه وو چي د دومره ليري علاقو سره جګړه وکړي نو وروسته چي ذکر سوی آيت نازل سو او اسلام ته طاقت تر لاسه سو نو د رسول الله ﷺ دا حکم منسوخ وګرځول سو .

## د ترکيانو په اړه يو پيشګويي

﴿۵۱۹۷﴾: وَعَنْ بُرَيْدَةَ عَنِ النَّبِيِّ صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي حَدِيثٍ يُقَاتِلُكُمْ

د حضرت بريدة رضي الله عنه څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ ددغه حديث په لړۍ کي چي د هغه پيل

قَوْمٌ صِغَارُ الْأَعْيُنِ يَعْنِي التُّرْكَ قَالَ تَسُوقُونَهُمْ ثَلَاثَ مِرَارٍ حَتَّى تُلْحِقُوهُمْ

دادې چې ستاسو سره به کوچنۍ سترګو والا يو قوم جنګيږي (يعني ترک) وې فرمايل: چې تاسو به هغوئ درې واره وتښتوئ تردې چې تاسو به هغوئ

بِجَزِيرَةِ الْعَرَبِ فَأَمَّا فِي السِّيَاقَةِ الْأُولَى فَيَنْجُو مَنْ هَرَبَ مِنْهُمْ وَأَمَّا فِي

جزيره عرب ته ورسوئ، په لومړي وار هغوئ ته ماته ورکولو سره به په تيښته کې هغه خلک نجات ترلاسه کوي کوم چې وتښتي او

الثَّانِيَةِ فَيَنْجُو بَعْضٌ وَيَهْلَكُ بَعْضٌ وَأَمَّا فِي الثَّالِثَةِ فَيُصْطَلَمُونَ أَوْ كَمَا قَالَ.

رواه ابوداؤد

په دويم وار ماته ورکولو کې به د هغوئ ځيني خلک ووژل سي او ځيني به خلاصون ترلاسه کړي او په دريم وار ماته کې به د هغوئ خاتمه وسي. ابوداؤد.

**تخريج**: سنن ابي داود: ۴\۴۸۷، رقم: ۴۳۰۵.

**د لغاتو حل**: يصطلمون: اى يحصدون بالسيف. (په توره ريبل)

**تشريح**: د (يعني الترک) الفاظ د راوي دي که هغه صحابي وي يا تابعي وي، يعني يا خو خپله حضرت بريده رضي الله عنه يا د هغه څخه روايت کونکي تابعي د (قوم صغار الاعين) په اړه د الترک وضاحت وکړ چې د دغه قوم څخه مراد ترکيان دي.

جزيرة العرب: لکه څرنګه چې مخکې ښودل سوي دي چې د هغه وخت په جغرافيايي نقشه کې د حجاز، يمامه او يمن سيمو ته جزيرة العرب په دې اعتبار ويل کېدل چې هغه تقريبا د څلورو خواوو څخه اوبو راګير کړې وه، د دغه سيمو په جنوب کې بحر عرب، په ختيځ کې خليج عربي او خليج عمان، په لويديځ کې بحر احمر او د هغه په شمال کې د فرات سند دی.

او کما قال: يا د دې په مثل يې وفرمايل، دغه جمله د حديث بيانولو څخه وروسته په هغه صورت کې ويل کيږي کله چې حديث بيانونکی دا ګمان کوي چې د حديث معنی په پوره توګه همداسي ده مګر د حديث اصل الفاظ ما ته ياد نه دي، يعني دغه جمله د حديث د راوي پر احتياط باندي دلالت کوي.

## د بصرې په اړه پیشګویي

﴿٥١٩٨﴾: وَعَنْ اَبِيْ بَكْرَةَ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَنْزِلُ اناس

د حضرت ابوبکره رضي الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: زما د امت خلک به یوې

مِنْ أُمَّتِي بِغَائِطٍ يُسَمُّونَهُ الْبَصْرَةَ عِنْدَ نَهْرٍ يُقَالُ لَهُ دِجْلَةُ يَكُونُ عَلَيْهِ جِسْرٌ

کښتي مځکي ته ورسیږي چي د هغې نوم به بصره کښیږدي هغه بحر د دجلې سره نژدې واقع دی پر دغه دریاب به پل وي،

يَكْثُرُ أَهْلُهَا وَيَكُونُ مِنْ أَمْصَارِ الْمُسلمين وَإِذَا كَانَ فِي آخِرِ الزَّمَانِ جَاءَ بَنُو

د ښار (بصرې) د اوسیدونکو به لوی شمیر وي او دا ښار به د مسلمانانو د ښارونو څخه وي هر کله چي آخري زمانه سي

قَنْطُورَاءَ عِرَاضُ الْوُجُوهِ صِغَارُ الْأَعْيُنِ حَتَّى يَنْزِلُوا عَلَى شَطِّ النَّهْرِ فَيَتَفَرَّقُ

نو د قنطورا اولاد به دغه ښار والاوو سره د جنګ لپاره راسي د هغوئ مخونه به پلن او سترګي به یې کوچنۍ وي دا خلک به د دریاب پر غاړي تم سي

أَهْلُهَا ثَلَاثَ فِرَقٍ فِرْقَةٌ يَأْخُذُونَ فِي أَذْنَابِ الْبَقَرِ وَالْبَرِّيَّةِ وَهَلَكُوا وَفِرْقَةٌ

د ښار خلک به په درو ډلو کي وویشل سي، یوه ډله به د غوایانو لکۍ ټینګي ونیسي او ځنګل ته به ولاړسي دا ډله به هلاک سي او یوه ډله به

يَأْخُذُونَ لِأَنْفُسِهِمْ وَهلكوا وَفِرْقَةٌ يَجْعَلُونَ ذَرَارِيَّهُمْ خَلْفَ ظُهُورِهِمْ وَيُقَاتِلُونَهُمْ وَهُمُ الشُّهَدَاءُ . رواه ابوداؤد

امن طلب کړي دا ډله به هم هلاک سي او یوه ډله به خپل کورنۍ او اولاد تر شا پریږدي او د کفارو سره به وجنګیږي نو دوئ به شهیدان سي . ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۴۸۷\۴، رقم: ۴۳۰۶.

**د لغاتو حل**: قنطورا: اسم ابي الترک (د ترکیانو د پلار نوم). تتمیم وتذییل: لان اخذ اذناب البقر لایکون غالبا الا في البریة الخارجة عن المدینة التي یعبر عنها بالبحریة.

**تشریح**: بصره: د باء په زېر او زور دواړو سره او د صاد په جزم سره دی، او د غه لفظ د صاد په زېر او زور سره هم منقول دي، دجله: د دال په زېر او زور دواړو سره دی ، ددې سیمي مشهور سند دی چي دهغه پر غاړه مشهور ښار بغداد واقع دی.

حلبي په حاشیه شفاء کي لیکلي دي چي د بصرې لفظ د باء په زور، زېر او پېښ درې سره دی او دا هغه ښآر دی چي د حضرت عمر رضی الله عنه د خلافت په زمانه کي عتبه ابن غزوان اباد کړی وو او په دغه ښار کي هیڅکله بت پرستي نه ده سوې.

## په حدیث کي دبصرې څخه مراد بغداد دی

په حدیث کي چي د کومي پېښي وړاند وینه سوې ده په هغه کي صریحا بصره ذکر سوې ده مگر علماؤ لیکلي دي چي ددې څخه بغداد مراد دی او د بغداد مراد اخیستلو دلیل دادی چي د دجلې د سند گزرگاه بصره نه دی بلکه بغداد دی او ددغه سند لاندي چي کوم پل ذکر سوی دی هغه هم په بغداد کي دی ، ددې څخه علماؤ د بغداد ښار د رسول الله ﷺ په زمانه کي داسي ښار نه وو لکه څرنگه چي اوس دی بلکه په هغه زمانه کي په دغه ځای کي ډیر کلي او سیمي وې چي د بصرې په شاوخوا کي شمېرل کېدی، او دهغوئ نسبت بصرې ته کېدی، رسول الله ﷺ د معجزې په توگه ددغه صحرایي سیمو په ښآر بدلېدو وړاند وینه وفرمایل، او د مستقبل په صیغه یې دا وفرمایل چي هغه به په اسلامي ښارو کي یو لوی ښار وي او پر ډېره ابادي به مشتمل وي، دا خبره محض د تاویل د درجې څخه نه ده بلکه ددې تر شا تاریخي دلیل هم دی ، په تاریخ کي دا نسته چي ترکیانو پر بصره باندي حمله کړې ده او دهغوئ او مسلمانانو په منځ کي د وژني هغه صورت پېښ سوی دی چي هغه ته رسول الله ﷺ په حدیث کي ارشاد وفرمایه ، مگر پر بغداد باندي د ترکیانو (تاتاریانو) حمله سوې ده چي د آخري عباسي خلیفه مستعصم باالله د زمانې واقعه ده چي د هغې تفصیل د تاریخ د کتابو څخه په اخیستلو سره موږ د مظاهر حق په آخري جلد کي هم بیان کړي دی، نو څرگنده سوه چي په حدیث کي د بصره ذکر محض په دې سبب دی چي د بغداد په نسبت بصره زیات پخوانی ښار دی او هغه کلي او ځایونه چیري چي بغداد جوړ سو او دغه عظیم ښار جوړ سو بصرې ته منسوب دی او دا هغه بصره ده چي وروسته هم د بغداد ښار څخه دباندي د یو کوچني ابادۍ په صورت کي وو او د ښار د هغه خوا دروازې ته ددغه قوم په مناسبت سره باب البصره ویل کیږي، نو رسول الله ﷺ د بغداد د ذکر لپاره ددغه ښار جزوي نوم ذکر کولو باندي اکتفاء وکړه یا دا چي دلته اصل مراد خو د بغداد

البصره دی مگر د مضاف په حذف کولو سره یوازي د بصرې پر ذکر باندي اکتفاء وسوه لکه ځرنگه چي د قرآن کریم دغه آیت (واسئل القرية) کي الله تعالی یوازي د قریه ذکر کړی دی حال دا چي ددې ځخه مراد اهل قریه دی .

په دغه صورت کي به د حدیث د اولي برخي خلاصه دا وي چي زما په امت کي به ځیني خلک د دجلې د سند پر غاړه پړاو واچوي او هغه ځای به خپل مرکزي ښار جوړ کړي تر دې چي هغه کوچنی ځای به په داسي ښار بدل سي چي د هغه شمېر به د مسلمانانو د لویو لویو ښارو او اسلامي مراکزو کي کیږي، او دا هغه ښار دی چي بغداد ورته ویل کیږي ، دلته باید دا خبره په ذهن کي وي چي په تاریخ کي بغداد ته کوم عظیمت او اهمیت حاصل سو او هغه ځومره عظیم ښار سو د هغه و طرفته د اشاره کولو لپاره رسول الله ﷺ د امصار لفظ استعمال کړ ، امصار په اصل کي د مصر جمع ده او لوی ښار ته وایي او تر دې لاندي په ترتیب سره مدینه، بلده او قریه ورته وایي، د قنطورا ځخه مراد د ترک قوم دی ، ددغه قوم وارث اعلی قنطورا وو ځکه ټول ترک قوم د قنطورا په اولاد سره تعبیر کیږي .

او دوهمه برخه چي د خپلو ځانو لپاره امان طلب کوي ، په دې اړه دا ویل کیږي چي ددغه وړاند ویني مصداق خلیفه مستعصم بالله او دهغه حوالي وه لکه ځرنگه چي د مظاهر حق په مخکني جلد کي تفصیل تېر سوی دی چي کله هلاکو خان د خپل بې امان فوج سره پر بغداد حمله وکړه نو خلیفه مستعصم بالله د خپل لواحقینو سره د هلاکو خان په خدمت کي په حاضرېدو سره د خپل ځان او د ښار د خلکو د امان طلب وکړ مگر هیچا ته امان تر لاسه نه سو او د خلیفه سره ټول هلاک او تباه سول او د هلاکو خان فوځیانو د یوه یوه کس په نیولو سره ووژل .

یو شارح لیکلي دي که چیري دا خبره صحیح وي چي رسول الله ﷺ په دغه حدیث کي د بصرې د ذکر ځخه بغداد مراد اخیستی دی ځکه چي په هغه زمانه کي موجود بغداد د بصرې په شاوخوا کلیو کي یو کلی وو او رسول الله ﷺ پر جزوي نوم باندي د ټول قوم په اطلاق سره گویا د بغداد البصره ذکر پر ځای یوازي د بصرې پر ذکر اکتفاء وکړه نو په دغه صورت کي ویل کیدای سي چي د رسول الله ﷺ دغه وړاند وینه پوره سوې ده چي د رسول الله ﷺ د فرمایلو مطابق مسلمانانو د دجلې د سند پر غاړه بغداد ښار اباد کړ او هغه ته یې پرمختګ ورکړ، هغه د مسلمانانو د یولوی مرکزي ښار په جوړولو سره بیا ترکو پر هغه حمله وکړه او د هغه په نتیجه کي د اهل ښار تقریبا ټوله برخه د ترکو په لاس ووژل سول او که چیري دا وویل سي چي په دغه حدیث کي د بصرې ځخه مراد بغداد نه دی بلکه اوسنی د بصرې ښار مراد دی نو بیا به دا ویل

کیږي چي د رسول الله ﷺ ذکر سوې وړاند وینه تر اوسه پوره سوې نه ده او کېدای سي چي په راتلونکې زمانه کي ددغه ښار مسلمانان د ذکر سوي وړاندي ویني سره سم د یو دښمن د حملې ښکار سي ځکه کوم چي د تېري زمانې تعلق دی نو د تاریخ څخه دا ثابته نه ده چي پر بصره باندي د اسلام دښمن حمله کړې ده او د هغه ځای مسلمانانو ته یې تاوان رسولی دی لکه څرنګه چي په حدیث کي راغلي دي.

په هغوئ کي به اکثره ووژل سي چي د شهادت مرتبې ته به ورسیږي یعني ددغه ښار د مسلمانانو دریمه برخه به پر هغه خلکو باندي مشتمل وي چي غازیان في سبیل الله به وي او د هغه سخت طوفان د مقابلې کولو لپاره به په ډېره مېړانه سره میدان ته راسي او مخکي تر دې چي پر دښمن باندي حاوي او غالب سي د هغه سره په جنګېدو سره به د الله ﷻ په لار کي خپل سر ورکړي نو هغه خلک به شهیدان وي او د پوره شهادت مرتبه به تر لاسه کړي هغوئ چي کوم لږ پاته سي د هغوئ شمېر به ډېر کم وي، دلته یو بل شارح ویلي دي چي دغه حدیث د رسول الله ﷺ د معجزاتو څخه یوه معجزه ده ځکه هر څه داسي واقع سول څرنګه چي رسول الله ﷺ فرمایلي وه لکه چي رسول الله ﷺ د ترکو دحملې وړاند وینه کړې ده هغه د صفر په میاشت ۶۵۶ھ کي حرف په حرف پوره سوه، هغه وخت د تاتاري ترکو د هلاکو خان په مشری کي بغداد چي څرنګه تباه سو د مسلمانانو چي څومره خلک په بې دردۍ سره شهیدان سول، د ښار محلونه او سرایونه تر دې چي کتاب خانې او علمي مرکزونه وسوځل سول او د هغه د اور شعلو ټوله اسلامي نړۍ متاثره او کمزورې کړه نو هغه یوه داسي سانحه ده چي د هغه تفصیل بیانولو څخه ژبه او قلم قاصر دي.

## د بصرې په اړه یو پشګوئي

﴿۵۱۹۹﴾: وَعَنْ أَنَسٍ أَنَّ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قَالَ يَا أَنَسُ إِنَّ النَّاسَ

د حضرت انس رضی الله عنه څخه روایت دئ چي رسول الله ﷺ وفرمایل: اې انس! خلک به ښارونه اباد

يُمَصِّرُونَ أَمْصَارًا وَإِنَّ مِصْرًا مِنْهَا يُقَالُ لَهُ الْبَصْرَةُ فَإِنْ أَنْتَ مَرَرْتَ بِهَا أَوْ

کړې په هغو کي به یو ښار وي چي هغه ته به بصره ویل کیږي که ته دې ښار سره نژدې تیر سې

دَخَلْتَهَا فَإِيَّاكَ وَسِبَاخَهَا وَكِلَاءَهَا ونخيلها وَسُوقَهَا وَبَابَ أُمَرَائِهَا وَعَلَيْكَ

یا په ښار کې داخل سې نو هغه ځایونو ته مه ورځه د کوم ځای مځکه چې ښوره ده د هغه د خرماوو څخه ځان وساته او د هغه ځایونو د پاچاهانو او امیرانو دروازو ته مه ورځه،

بِضَوَاحِيهَا فَإِنَّهُ يَكُونُ بِهَا خَسْفٌ وَقَذْفٌ وَرَجْفٌ وَقَوْمٌ يَبِيتُونَ يُصْبِحُونَ قِرَدَةً وَخَنَازِيرَ . رواه ابوداؤد.

د ښار پر غاړه اوسه یا دباندي تم سه چې بصرې ته نژدې یو ځای دی،(خو دغه ځایونو ته د ورتلو څخه ته منع کړل سوی یې) په دغه مځکه کې به ژوندی ور ننه ایستل سې پر دې به ډبري واوریږي او سختي زلزلې به پر راسي او یو قوم به وي چې په ماښام کې به ښه معلومیږي او سهار ته به بیزوګان او خنزیران ځیني جوړ سي. ابوداؤد.

**تخریج**: سنن ابي داود: ۴\۴۸۸، رقم: ۴۳۰۷.

**د لغاتو حل**: سباخ: ای ارض ذات ملح. (مالګینه مځکه). رجف: ای زلزلة شدیدة (سخته زلزله).

**تشریح**: سِباخ د سبخة جمع ده چې معنی یې د هغه مځکي ده چې ښرنه وي، ویل کیږي چې سباخ د بصرې د هغه علاقې نوم هم دی چیري چې مځکه ښرنه ده، همدارنګه د کلاء په اړه ویل کیږي چې دا هم د بصرې د ځینو ځایو نوم دی.

ضواحي د ضاحیة جمع ده چې معنی یې د ښار د غاړې ده، او د ښاز د نواحي کلي دی، ضاحیة البصره د بصرې د یوه کلي نوم هم دی او ځینو حضراتو ویلي دي چې د ضواحي څخه مراد د بصرې غرونه دي، رسول الله ﷺ حضرت انس ﷺ ته د بصرې په نواحي کې د اوسېدو حکم ورکړی وو، دا په اصل کې د بېلوالي او کونج اختیارولو حکم دی.

د هغوئ شکلونه به د بېزوګانو او خنزیرانو په ډول وي: یعني هغه قوم به د الله تعالی د نافرمانۍ، سرکښۍ او ګمراهۍ په وجه په هغه عذاب کې اخته کیږي، ددغه قوم چې کوم خلق زلمي وي هغوئ به د بېزوګانو په صورت کې وي او کوم چې سپین ږیري وي هغوئ به د خنزیرانو په صورت کې سي، ددغه حدیث څخه دا معلومیږي چې د مسخ او خسف عذاب په دغه امت کي هم جائز الوقوع دی ځکه که چیري داسي عذاب واقع کېدل غیر ممکن وای نو د هغه څخه د بېرولو او د هغه د واقع کېدو د ځایو څخه د تللو منع به بالکل بې ګټې وي او په دې کې شک نسته چې په احادیثو کې دغه ډول عذاب د قدریه ډلې په اړه منقول دی او له دې کبله ځینو شارحینو ویلي دي چې په حدیثو کې دې ته اشاره ده چې ذکر سوي ځایونه به د فرقه

قدريه خلكو مسكن وي ځكه چي په دغه امت كي پر خلكو باندي كوم مسخ او خسف نازليږي هغوئ به په اصل كي تقدير الهي درواغ گڼونكي وي.

د كلاء لفظ د كاف په زور او د لام په شد او مد سره هم منقول دی او ځرنګه چي مخكي وښودل سول چي دا په بصره كي د يو ځای نوم دی، يو شارح ويلي دي چي ددې ځخه مراد د بصرې د ساحلې سيمي هغه ځای دی چيري چي كښتۍ دريږي، ځينو حضراتو ويلي دي چي د كلاء ځخه مراد د بصرې هغه سيمه ده چيري چي د ځارويو ځرځايونه وي ، ددې تائيد ددې خبري ځخه كيږي چي په ځينو نسخو كي دغه لفظ د لام د شد او مد ځخه پرته منقول دی چي دهغه معنی د وښو او شنګياوو ده ، يو شارح ليكلي دي چي په دغه ځايو كي د مسخ او خسف نازلېدو وجه كيدای سي د هغه ځای د خلكو خباثت او سركښي وي ، همدارنګه دهغه ځای د خرماوو ځخه د ليري اوسېدو مقصد د هغه ځای د خرماوو باغو ته د تللو ځخه منع كول وي ځكه چي كېدای سي د هغه باغو ماحول او دهغه اثرات دين ، ايمان او عزت ته د تاوان رسولو بېره وي او د هغه بازار د ديني احكامو ځخه د غفلت او بې پرواهي په وجه بې ايمانه او دهغه ځای د شتمنو او حاكمانو په دروازو د ظلم او نا انصافۍ د چلن په وجه د هغه ځخه د ليري كېدو حكم وركړل سو .

ځرګنده دي وي چي د مشكوة په اصل نسخه كي د رواه ځخه وروسته خالي ځای دی ، مطلب دادی چي د مشكوة مؤلف ته ددغه حديث د صحيح ماخذ علم نه وي مګر جزري ددغه حديث ماخذ په الفاظو سره نقل كړی دی (رواه ابوداؤد من طريق لم يجزم بها الراوي بل قال لا اعلم الا عن موسى ابن انس عن انس بن مالک ) يعني دغه روايت ابوداؤد په داسي سند سره نقل كړی دی چي د هغه د يوه راوي په اړه هغه د بې يقينۍ اظهار كړی دی بلكه هغه راوي ته په اشاره كولو سره چي په هغه سند كي داخل دی ويلي دي چي زه دغه راوي نه پېژنم، مګر هغه ددغه حديث د راوي موسى ابن انس ذكر كړی دی چي هغه د حضرت انس ابن مالک ځخه نقل كړی دی نو دحديث ماخذ ددغه راوي داسي بيانول پر ابهام او اشتباه باندي دلالت كوي ، موسى ابن مالک انصاري د بصرې قاضي او د تابعينو ځخه دی .

## د بصرې د يو كلي د يو مسجد فضيلت

﴿۵۲۰۰﴾: وَعَنْ صَالِحِ ابْنِ دِرْهِمٍ يَقُوْلُ انْطَلَقْنَا حَاجِّيْنَ فَإِذَا رَجُلٌ فَقَالَ لَنَا

د حضرت صالح بن درهم رحمه الله ځخه روايت دی چي موږ (د بصرې ځخه مكې ته) د حج لپاره

ولاړو (کله چې مکې ته ورسیدو) نو موږ یو سړی ولیدی (یعني ابو هریرة) هغه زموږ څخه

إِلَى جَنْبِكُمْ قَرْيَةٌ يُقَالُ لَهَا الأُبُلَّةُ قُلْنَا نَعَمْ قَالَ مَنْ يَضْمَنُ لِي مِنْكُمْ أَنْ

پوښتنه وکړه ایا ستاسو د ښار یوې خوا ته د آبله په نامه یو ځای سته، موږ ورته وویل هو سته، هغه وویل په تاسو کې څوک ددې خبرې ذمه اخلي چې زما لپاره

يُصَلِّيَ لِي فِي مَسْجِدِ الْعَشَّارِ رَكْعَتَيْنِ أَوْ أَرْبَعًا وَيَقُولَ هَذِهِ لِأَبِي هُرَيْرَةَ

په آبله مسجد العشار کې دوه یا څلور رکعته لمونځ وکړي، او دا ووایې چې ددې لمونځ ثواب دې ابو هریره ته ورسیږي

سَمِعْتُ خَلِيلِي اباالقاسم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ إِنَّ اللَّهَ عزوجل

ما د خپل ملګري حضرت ابو القاسم څخه اوریدلي دي چې الله تعالی به د قیامت په ورځ د

يَبْعَثُ مِنْ مَسْجِدِ الْعَشَّارِ يَوْمَ الْقِيَامَةِ شُهَدَاءَ لَا يَقُومُ مَعَ شُهَدَاءِ بَدْرٍ

مسجد العشار څخه شهیدان پورته کوي، او د بدر د شهیدانو سره به ددغه شهیدانو څخه پرته

غَيْرُهُمْ. رواه ابوداؤد وقال هذا المسجد مما يلي النهر. وسنذكر حديث ابي الدرداء ان فسطاط المسلمين في باب ذكر اليمن والشام ان شاء الله تعالى

نور هیڅوک نه وي. ابوداؤد، راوي وایي په آبله کې دا مسجد په دریا فرات کې نژدې واقع دی او انشاء الله ډیر ژر د یمن او شام د ذکر په بیان کې به په ابوداؤد حدیث ان قسطاط المسلمین الخ بیان کړل سي.

**تخریج**: سنن ابي داود ۴\۴۸۹، رقم: ۴۳۰۸.

**تشریح**: اُبله د یو مشهور کلي نوم دی چې بصرې ته نژدې واقع دی، عشار د یو مسجد نوم دی چې په ابله کې واقع دی، د برکت او سعادت تر لاسه کولو لپاره خلک دغه مسجد ته د لمانځه کولو لپاره راځي.

د مسجد عشار شهداء په اړه دا وضاحت نه کیږي چې ددغه شهیدانو تعلق د تېرو امتو د خلکو سره دی یا ددغه امت د خلکو سره دی، په هر حال ددغه حدیث څخه د هغه شهیدانو د

عظمت او فضيلت اظهار كيږي چي هغوئ د بدر د شهيدانو هم پله او هم مرتبه دي نو معلومه سوه چي هغه مسجده دومره فضيلت او شرف لري چي په هغه كي لمونځ كول يقينا ډېر لوی فضيلت او ډېر لوی ثواب لري، ددغه حديث ځخه دا هم ثابتيږي چي په فضيلت لرونكو ځايو كي لمونځ كول او عبادت كول ډېر زيات فضيلت او سعادت لري .

او همدارنگه دا هم ثابتيږي چي د بدل عبادت (لكه لمونځ، روژه) ثواب چا ته بخښل جائز دي كه هغه د ژوندي لپاره وي يا د مړه لپاره وي او د هغه ثواب هغه ته رسيږي ، دا كثرو علماؤ دا مذهب دی ، او مالي عبادات لكه صدقه، خيرات او داسي نورو ثواب بخښل د ټولو علماؤ په نزد جائز دی .

## اَلْفَصْلُ الثَّالِث (دريم فصل)

### حضرت عمر ﷛ د فتنو د دروازې په خلاصېدو كي تر ټولو لوی خنډ وو

﴿۵۲۰۱﴾: عَنْ شَقِيقٍ عَنْ حُذَيْفَةَ قَالَ كُنَّا عِنْدَ عُمَرَ فَقَالَ أَيُّكُمْ يَحْفَظُ

حضرت شقيق ﷛ د حضرت حذيفه ﷛ ځخه روايت كوي چي موږ د حضرت عمر ﷛ سره ناست وو ، هغه زموږ ځخه پوښتنه وكړه په تاسو كي چا ته

حَدِيثَ رَسُولِ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فِي الْفِتْنَةِ انا حفظ كَمَا قَالَ قَالَ

د فتنې په اړه د رسول الله ﷺ حديث ياد دی؟ حذيفه وايي ما وويل: ما ته ياد دی بالكل حرف په حرف لكه ځرنگه چي رسول الله ﷺ بيان فرمايلی دی ، حضرت عمر ﷛ وويل :

هات إِنَّكَ لَجَرِيءٌ وَكَيْفَ قَالَ قَالَ قُلْتُ سَمِعْتُ رَسُولَ اللّٰهِ صَلَّى اللّٰهُ عَلَيْهِ

بيان يې كړه ته (د حديث په روايت كي) دلاوره او زړه ور يې او ځه چي رسول الله ﷺ فرمايلي

وَسَلَّمَ يَقُولُ فِتْنَةُ الرَّجُلِ فِي أَهْلِهِ وَمَالِهِ وَنَفْسِهِ وَوَلَدِهِ وَجَارِهِ يُكَفِّرُهَا

دي هغه او د فتنې كيفيت بيان كړه، حذيفه ﷛ وايي ما عرض وكړ ما د رسول الله ﷺ ځخه دا اوريدلي دي چي د سړي فتنه د هغه اهل او عيال كي ده د هغه په مال كي ده د هغه په ځان كي ده د هغه په اولاد كي ده او د هغه په همسايه كي ده

الصِّيَامُ وَالصَّلَاةُ وَالصَّدَقَةُ وَالْأَمْرُ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّهْيُ عَنِ الْمُنْكَرِ فَقَالَ

او دا فتنه روژه، لمونځ، صدقه، امر بالمعروف او نهي عن المنكر ليري كوي، حضرت عمر

عُمَرُ لَيْسَ هَذَا أُرِيدُ إِنَّمَا أُرِيدُ الَّتِي تَمُوجُ كَمَوْجِ الْبَحْرِ قَالَ قُلْتُ مَا لَكَ وَلَهَا

رضي الله عنه وفرمايل زه د هغې فتنې په اړه پوښتنه نه كوم زما مقصد د هغه فتنې پوښتل دي چې د درياب د څپو په ډول به څپې وهي، حذيفه وايي ما وويل: اې امير المؤمنين! د هغه فتنو سره ستاسو څه تعلق دى

يَا أَمِيرَ الْمُؤْمِنِينَ إِنَّ بَيْنَكَ وَبَيْنَهَا بَابًا مُغْلَقًا قَالَ أَفَيُكْسَرُ الْبَابُ أَوْ يُفْتَحُ

ستاسو او د هغه فتنو په منځ كي خو يوه دروازه حائله ده، حضرت عمر رضي الله عنه پوښتنه وكړه هغه دروازه به ماته كړل سي يا فتح كړل سي،

قَالَ قُلْتُ لَا بَلْ يُكْسَرُ قَالَ ذَلِكَ أَحْرَى أَنْ لَا يُغْلَقَ أَبَدًا قَالَ فَقُلْنَا لِحُذَيْفَةَ

حذيفه وايي ما عرض وكړ (خلاصه به نسي) بلكه ماته به كړل سي، حضرت عمر رضي الله عنه وفرمايل: دا دروازه مناسب خو دادى چي هيڅكله بنده نه كړل سي، د شقيق راوي بيان دى موږ د حذيفه څخه پوښتنه وكړه

هَلْ كَانَ عُمَرُ يَعْلَمُ مَنِ الْبَابُ قَالَ نَعَمْ كَمَا يَعْلَمُ أَنَّ دُونَ غَدٍ اللَّيْلَةَ إِنِّي

ايا حضرت عمر رضي الله عنه ددې دروازې څخه خبر وو، حذيفه وويل هو په دې خبره پوهيدى لكه څرنگه چي هر سړى دا خبره پيژني چي د سبا ورځي څخه مخكي به شپه راځي،

حَدَّثْتُهُ حَدِيثًا لَيْسَ بِالْأَغَالِيطِ قَالَ فَهِبْنَا أَنْ نَسْأَلَ حُذَيْفَةَ مَنِ الْبَابُ فَقُلْنَا لِمَسْرُوقٍ سَلْهُ فَسَأَلَهُ فَقَالَ عُمَرُ. متفق عليه

ما حضرت عمر رضي الله عنه ته هغه حديث بيان كړ چي په هغه كي غلطي نسته، د شقيق راوي بيان دى چي ددغه دروازې په اړه زه د حذيفه څخه د پوښتني كولو څخه بيريدم ځكه ما مسروق ته وويل چي ته پوښتنه ځيني وكړه هغه پوښتنه وكړه نو حذيفه رضي الله عنه ورته وويل هغه دروازه حضرت عمر رضي الله عنه دى. بخاري او مسلم

**د لغاتو حل:** نَهِبنا: ای فخشینا (موږ وېرېدو).

**تشریح:** ته د حدیث په روایت کولو کي ډېر زړه وریې: د حضرت حذیفه رضي الله عنه په اړه د حضرت عمر رضي الله عنه دغه جمله د هغه څخه دناراضي احتمال هم لري او د هغه د تحسین احتمال هم لري، یعني یو احتمال خو دادی چي حضرت حذیفه رضي الله عنه د نورو صحابه کرامو په شتون کي دا دعوه کړې وه چي زه د رسول الله ﷺ حدیث بعینه یاد لرم، په دې اړه زما حافظه ډېره قوي او د باورړ ده ځکه حضرت عمر رضي الله عنه ته د هغه خبره ناخوښه سوه نو هغه ددغه ناخوښۍ ظاهرولو لپاره وفرمایل چي ته خو عجیبه زړور یې، تا ته دداسي خبري کولو جرئت څرنګه وسو چي نه یې زه پېژنم او نه دلته موجود نور صحابهٔ کرام یې د پېژندو دعوه کوي، که چیري تا ته پر خپله حافظه باندي دومره ناز وي نو واوره چي رسول الله ﷺ څه فرمایلي وه، دا اول احتمال وو، دوهم احتمال دادی چي حضرت عمر رضي الله عنه ددغه جملې په ذریعه د حضرت حذیفه رضي الله عنه تحسین او تائید کړی وي یعني هغه دا وفرمایل چي زه ستا دد عوې تصدیق کوم ځکه چي زه ښه پوهېږم چي تا به د رسول الله ﷺ څخه په دغه امت کي د پیدا کېدونکو فتنو او ظاهرېدونکو خرابیو په اړه په ډېر جرئت سره سوالونه کول، نو تا ته به یقینا د فتنو په اړه د رسول الله ﷺ د ارشاداتو زیات علم وي او په دې اړه حدیث به په پوره توګه درته یاد وي موږ ته هغه حدیث واوروه چي رسول الله ﷺ فرمایلی وو.

د سړي فتنه دهغه په اهل او عیال کي ده...الخ: مطلب دادی چي الله تعالی انسان پیدا کړ او د هغه تعلق یې د مختلفو شیانو لکه اهل وعیال، مال او دولت سره قائم کړ بیا هغه ته یې د هغه شیانو حقوق ور وپېژندل او دهغه حقوقو ادا کولو ذمه دار یې وګرځوی او په یو ډول ازمائش کي یې واچوی، مګر د انسان غفلت او ناپوهي ده چي هغه د خپلي ذمه دارۍ د رعایت خیال نه ساتي او کوم حقوقو چي پر هغه عائد سوي دي د هغه په ادا کولو کي کوتاهي کوي، د دې سره اړوند شیانو په اړه چي الله تعالی هغه ته کوم حکم ورکړی دی د هغه خلاف ورزي کوي او د هغه شیانو په وجه نه یوازي د ګناه او منع کارو خیال پر خپل سر اخلي بلکه خپل ځان په مشقت او تکلیف کي اخته کوي نو په دغه صورت کي د انسان لپاره ضروري ده چي د هغه حقوقو په ادا کولو کومه کوتاهي د هغه څخه کیږي د هغه د کفارې لپاره دي نیک کار لکه لمونځ، روژه، صدقه، او داسي نور کوي، ځکه چي الله تعالی فرمایلي دي (ان الحسنات یذهبن السیئات) بېله شکه نیکۍ بدۍ رژوي.

زما مدعی ددغه فتنې ځخه نه وه : یعني حضرت عمر رضی اللہ عنہ چې دخلکو ځخه پوښتنه وکړه چې په تاسو کي کوم چا ته د فتنو په اړه د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم حدیث یاد دی نو د هغه ددغه پوښتنه کولو دوه مفهوم کېدای سي، یو خو دا چې د فتنې ځخه د هغه مراد هغه امتحان وو چې په هغه کي انسان د اولاد او مال په اړه اخته سوی دی لکه ځرنګه چې په قرآن کریم کي فرمایل سوي دي : (ولنبلونکم بشئ من الخوف والجوع...الخ)، او دوهم دا چې د فتنې ځخه د هغه مراد د قتل او قتال او انتشار وي ، د حضرت عمر رضی اللہ عنہ د سوال تعلق ددغه دوهم مفهوم سره وو، یعني هغه د هغه حدیث په اړه پوښتنه کړې وه چې په هغه کي رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم د قتل او قتال د فتنو او فساد ذکر کړی وو، مګر حضرت حذیفه رضی اللہ عنہ دا وګڼل چې حضرت عمر رضی اللہ عنہ د اول مفهوم سره اړوند حدیث په اړه پوښتنه کوي او ځکه د هغه مطابق حدیث یې بیان کړ ، حضرت عمر رضی اللہ عنہ وفرمایل زما د پوښتني مدعی فتنه نه ده زما مراد د هغه فتنې په اړه د رسول الله صلی اللہ علیہ وسلم حدیث اورېدل دی چې دقتل او قتال او په خپلو کي د یو بل خلاف د جګړې په صورت کي پر دغه امت باندي د توري وریځي په صورت کي راځي، او دهغه خراب اثرات مسلمانان په سخت مصیبت کي اخته کوي .

ستاسو او د هغه فتنو په منځ کي یوه بنده دروازه ده : د بندې دروازې ځخه مراد د حضرت عمر رضی اللہ عنہ وجود ته اشاره کول وو، لکه ځرنګه چې د حدیث د آخري الفاظو ځخه وضاحت هم کیږي نو د حضرت حذیفه رضی اللہ عنہ د جواب مطلب دا وو چې تاسو د کومي فتنې په اړه پوښتنه کوئ هغه لیري ده ځکه چې تر څو پوري په دغه امت کي ستا وجود وي هغه فتنه لار نسي تر لاسه کولای مګر کله چې تاسو ددغه دنیا ځخه ولاړ سئ نو هغه فتنه به راسي او په امت کي به لار ترلاسه کړي ، هغه دروازه به ماته کړل سي یا خلاصه کړل سي: یعني هغه دروازه به دومره سخته او ټینګه وي چې بېله ماتولو به نه خلاصیږي یا به دومره سپکه وي چې په اساني سره به خلاصه سي، ځرګنده دي وي چې د یوې دروازې ماتولو او د هغه په خلاصولو کي فرق وي.

یوه دروازه خو هغه وي چې د هغه د ماتولو ځخه پرته د تګ راتګ لار جوړول ممکن نه وي او کله چې هغه دروازه ماته سي نو بیا د هغه بندول ممکن نه وي ، ددې پر خلاف کومه دروازه چې خلاصه سي نو دهغې بندول ممکن وي ، دلته بنده دروازه د تمثیل په توګه بیان سوې ده او د هغه مقصد دا تشبیه ورکول دي چې دمثال په توګه که چیري دوه کورونه وي چې د هغو په منځ کي یو دېوال وي او په هغه دېوال کي یوه بنده دروازه وي نو د هغه دېوال د یوې خوا کور د فتنې او فساد مسکن دی او د بلي خوا په کور کي د امن او عافیت هستوګنه ده او د هغه بندي

دروازې په وجه فتنه او فساد ته هيڅ لار نه ترلاسه کيږي چي د هغه امن او عافيت کور ته ورسي يا د هغه کور امن او سکون خراب کړي نو د حضرت عمر ﷛ ژوند فتنو منع کونکي بندي دروازې په مثل سو او د هغه مرګ د هغه فتنو د دروازې خلاصولو په ډول سو، همدارنګه د هغه دروازې ماتولو ته د هغه په قتل سره او د هغه دروازې خلاصولو ته د هغه په قدرتي مرګ سره تشبيه ورکړل سوه.

## د قسطنطنيې فتح کېدل د قيامت د نژدې کېدو نښه ده

﴿٥٢٠٢﴾: وَعَنْ أَنَسٍ قَالَ فَتْحُ الْقُسْطَنْطِينِيَّةِ مَعَ قِيَامِ السَّاعَةِ . رواه الترمذي وقال هذا حديث غريب .

د حضرت انس ﷛ څخه روايت دى چي قسطنطنيه به د قيامت سره نژدې فتح سي، ترمذي ويلي دي دا حديث غريب دى .

**تخريج**: سنن الترمذي ٤\٤٤٢، رقم: ٢٢٣٩.

==========